# أنوار الهلالين

## لفوايد قيودات الجلالين

پښتو ترجمه — جلد اول

# جمالين شرح جلالين


شارح: محمد جمال بلندشهری

مدرس د دارالعلوم دیوبند

پښتو مترجم: مولانا شاه فیصل

فاضل دارالعلوم اسلامیه چارسده، امداد العلوم پیښور، وفاق المدارس


### خصوصیات

① لغوی تحقیق، چې ددې لفظ په لغت کښې څه معنی ده.
② صرفی تحقیق مثلاً دا کلمه د څه صیغه ده وغیره
③ نحوی تحقیق مثلاً دا کلمه په ترکیب کښې څه واقع شوې ده.
④ بلاغي تحقیق چې په دې اضافي قید کښې کومه بلاغي نکته ده.
⑤ فقهي تحقیق چې په دې اضافي قید سره کومې مسئلې ته اشاره ده.
⑥ د قراءت تحقیق چې په دې مقام کښې دا قراءت څنګه دي.
⑦ تقدیرات راویستل چې دلته کوم لفظ مقدر پروت دې.
⑧ د تقدیری عبارا تو وجه او سبب بیانول.


خورونکی

فیصل کتب خانه مدینه مارکیټ

محله جنګی پیښور موبائل نمبر: ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

# فهرس د سورتونو او آیاتونو

......

## [۷] سورة الأعراف

سورة الأعراف مكية الا واسئلهم عن القرية الثمان اوالخمس آيات مائتان وخمس اوست آيات

سورة الاعراف مکی دي، سوا د: واسئلهم عن القرية، نه د اته يا پنځو آيتونو نه چه دا مدنی دی، ټول ۲۰۵ يا ۲۰۶ آيتونه دی.

[اياتوله: ۱-۱۰]

بسم الله الرحمن الرحيم {المص} الله اعلم بمراده بذلك هذا {كِتَابٌ أُنْزِلَ إِلَيْكَ} خطاب للنبي صلى الله عليه وسلم {فَلَا يَكُنْ فِي صَدْرِكَ حَرَجٌ} ضيق {مِنْهُ} ان تبلغه مخافة ان تكذب {لِتُنْذِرَ} متعلق بانزل اي للإنذار {بِهِ وَذِكْرَى} تذكرة {لِلْمُؤْمِنِينَ} به قل لهم {اتَّبِعُوا مَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ} اي القرآن {وَلَا تَتَّبِعُوا} تتخذوا {مِنْ دُونِهِ} اي الله اي غيره {أَوْلِيَاءَ} تطيعونهم في معصيته تعالى {قَلِيلًا مَا تَذَكَّرُونَ} بالتاء والياء تتعظون وفيه إدغام التاء في الأصل في الذال وفي قراءة بسكونها وما زائدة لتاكيد القلة {وَكَمْ} خبرية مفعول {مِنْ قَرْيَةٍ} اريد اهلها {أَهْلَكْنَاهَا} اردنا إهلاكها {فَجَاءَهَا بَأْسُنَا} عذابنا {بَيَاتًا} ليلا {أَوْ هُمْ قَائِلُونَ} نائمون بالظهيرة والقيلولة استراحة نصف النهار وإن لم يكن معها نوم اي مرة جاءها ليلا ومرة جاءها نهارا {فما كان دعواهم} قولهم {إذ جاءهم بأسنا إلا أن قالوا إنا كنا ظالمين} {فَلَنَسْأَلَنَّ الَّذِينَ أُرْسِلَ إِلَيْهِمْ} اي الامم عن إجابتهم الرسل وعملهم فيما بلغهم {وَلَنَسْأَلَنَّ الْمُرْسَلِينَ} عن الإبلاغ {فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِمْ بِعِلْمٍ} لنخبرنهم عن علم بما فعلوه {وَمَا كُنَّا غَائِبِينَ} عن إبلاغ الرسل والامم الخالية فيما عملوا {وَالْوَزْنُ} للأعمال او لصحائفها بميزان له لسان وكفتان كما ورد في حديث كائن {يَوْمَئِذٍ} اي يوم السؤال المذكور وهو يوم القيامة {الْحَقُّ} العدل صفة الوزن {فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ} بالحسنات {فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ} الفائزون {وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ} بالسيئات {فَأُولَئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ} بتصييرها إلى النار {بِمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا يَظْلِمُونَ} يجحدون {وَلَقَدْ مَكَّنَّاكُمْ} يا بني آدم {فِي الْأَرْضِ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ} بالياء اسبابا تعيشون بها جمع معيشة {قَلِيلًا مَا} لتاكيد القلة {تَشْكُرُونَ} على ذلك

**ترجمه:** شروع کوم د الله تعالی په نوم چې ډير لوئی مهربان او ډير رحم کونکې دې (المص) دې نه خپل مراد هم الله تعالی بهتر پيژنی. دا يو کتاب دې کوم چې په تا باندې نازل کړې شوې دې په دې کښې نبی عليه السلام ته خطاب دې دې ډ پاره چې ته دَدې په ذريعه خلق اووېروې (لِتُنْذِرَ) دَ أُنْزِلَ متعلق دې ای أُنْزِلَ لِلإنذار، لهذا دې دَتبليغ نه دَدې ويرې چې ستا تکذيب به اوکړې شی تا ته هيڅ خفګان نه دی کيدل پکار او (دې ډپاره) چې دَدې په ذريعه مؤمنانو ته نصيحت وی هغوی ته اووايه چې کوم قرآن ستا سو دَرب دَ طرف نه ستا سو ډپاره نازل کړې شوې دې دهغې اتباع اوکړئی الله تعالی پرېخودو سره غير الله سرپرست (کارساز) مه جوړوئی چې دَ الله

تعالی په معصیت کښې دَهغوی اتباع اوکړئ، تاسو ډیرکم نصیحت حاصلوئ.
(یذکرون)په تاء او یاء سره په معنی د یَتَّعِظُوْنَ او په دې کښې په اصل کښې دَتاء په ذال کښې ادغام دې او یوبل قراءت کښې دَ ذال په سکون سره دې اومَادَ قلت دتاکید دَپاره زائده ده او ډیر کلی کم خبریه مفعول دې اودَ کلی نه مراد دَ کلي اوسیدونکی دی مونږ تباه کړل (یعنی) دکوموکلوچې مونږ دَبربادولو اراده اوکړه هغه موبرباد کړل اوپه هغوی باندې زمونږ عذاب دَ شپې راغلو یا په داسې حالت کښې چې هغوی دَغرمې په وخت کښې آرام کولو، قیلوله دَ غرمې په وخت کښې آرام ته وائی اګرچې په دې کښې اوده کیدل نه وی مطلب دا چې عذاب کله دَ ورځې او کله دَ شپې راغلو، کوم وخت چې زمونږ عذاب په هغوی باندې راغلونو دَهغوی دَخلونه بغیردَدې خبرې څه بله خبره نه ده وتلې چې واقعی مونږ ظالمان وو، بیا به مونږ دَدغه خلقونه خامخا تپوس اوکړو چاته چې رسولان لیږلې شوې وو یعنی مونږ به دَ امتیانونه (دَهغوی) دَ رسولانودَدعوت قبلولو اوڅه چې هغوی دوی ته تبلیغ کړې وو په هغې باندې دَعمل کولوباره کښې (خامخاتپوس کوو) اودپیغام رسولوباره کښې به دَ رسولانونه (هم) ضرور سوال کوو بیا به مونږ دَ پوره علم سره دَهغوی عملونوهغوی ته خبر ورکړو، (زمونږ) دَهغوی دَاعمالونه دَ خبریدو دَ وجې نه هغوی ته پوره تفصیل اوښایو(آخر) مونږ د رسولانودَتبلیغ اودَتیرو شوو امتونو دکارنامونه ناخبره خونه وو اودَاعمالو یا دَاعمال نامو په داسې تله سرچې دَهغې په (یو) ډنډئ او دوه چابړې وی لکه چې په حدیث کښې راغلی دی په داسې ورځ یعنی دَ مذکوره سوال کولوپه ورځ چې هغه به دَ قیامت ورځ وی په انصاف سره (دَاعمالو) وزن کیږی، العدل، دَالوزن صفت دې نوچې دکوموخلقو دَ نیکوچابړې، دروندشی نوهم دغه خلق به کامیاب وی اودکومو خلقو دَ نیکو چابړې چې دَ ګناهونودَ وجې نه سپک شی هم دغه هغه خلق دی چې خپل ځان دوزخ ته دَ رسولودَ وجې هم خپل نقصان کونکی به وی، په دې وجه چې هغوی زمونږ دَآیاتونوتکذیب کولوسره دَظالمانو په شان سلوک کولو اې بنیادمو مونږ تاسوته په زمکه کښې بااختیاره سکونت درکړې او مونږ ستاسودَپاره په دې کښې دَ معیشت اسباب پیدا کړل چې دهغې په ذریعه تاسو ژوند تیروئ مَعَائش دَ مَعِیْشَةَ جمع ده تاسوخلق ډیرکم شکرویستونکی یئ مَادَ قلت دتاکید دَپاره ده.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** للانذار،په دې کښې اشاره ده چې لِتُنْذِرَ کښې لام نه پس أن مصدریه مقدردې لهذا دا شبه هم ختمه شوه چې لِتُنْذِرَ کښې په فعل باندې حرف جر داخل دې فلایکن فی صَدْرِكَ حرج منه. د علت او د معلومول په مینځ کښې جمله معترضه ده.

**قوله:** وذکری دا په کتابٌ باندې دمعطوف کیدو دَوجې نه تقدیراً مرفوع، دااسم مصدر

دي تقدیرد عبارت دادي هذاکتابٌ وتذکرة للمؤمنین.

**قوله:** قُلْ لهم، داد یوسوال طرف ته اشاره ده چې ماسبق کښې خطاب رسول الله ﷺ ته دې بیا ناڅاپې خطاب نورو مخاطبینوطرف ته شوددې په ظاهره نه څه وجه شته او نه قرینه؟ هم ددې دجواب دپاره قل لهم محذوف منلوسره التفاف صحیح گرځولې شوې دي.

**قوله:** خَبَرِیَّةٌ مفعولٌ، یعنی کم خبریه د فعل محذوف مفعول واقع دې او علی شریطة التفسیر د قبیل نه دې تقدیری عبارت دادې اَوْاَهْلَکْنَاکَمْ من قریةٍ اَهْلَکْنَاهَا.

**قوله:** اَرَدْنَا: **سوال:** اَهْلَکْنَا نه وړاندې د اَرَدْنَا محذوف منلوڅه فائده ده؟

**جواب:** مفسرعلام اَرَدْنَا محذوف منلوسره د یوسوال جواب ورکړې دې د سوال حاصل دادې چې دالله تعالی قول کم من قریةٍ اَهْلَکْنَاهَا نه معلومیږی چې اهلاك مقدم دې او فجاءها بأسنا مؤخردې یعنی اهلاك کوم چې مسبب دې هغه مقدم دې او مجئ بأس کوم چې سبب دې هغه مؤخردې حالانکه سبب د مسبب نه مقدم وی یعنی د عذاب راتلل مقدم وی او هلاکت روستو وی د آیت نه ددې عکس مفهوم کیږی؟. مفسرینو ددې مختلف جوابونه ورکړی دی هم دهغې نه یوجواب مفسیرعلام اردنامحذوف منلوسره ورکړې دې یعنی مونږ دهغوی دهلاکت اراده اوکړه نوزمونږ په هغوی باندې عذاب راغلو. تقدیری عبارت دادې اَرَدْنَا اهلاکها فجاءها بأسنا مګر اوس هم دا سوال باقی دې چې فجاءها کښې فاء تعقیبیه ده کومه چې د عذاب دهلاکت نه پس په راتلوباندې دلالت کوی لهذا سابقه سوال په خپل حال باندې باقی دې.

**جواب:** فاء کله د تفسیردپاره هم راځی، څکه چې دهلاکت مختلف اسباب کیدې شی مثلاً کله مرګ طبعی د اسبابو نه راځی کله په اور کښې سوزیدوسره راځی اوکله په اوبو کښې ډوبیدو سره وغیره وغیره، فجاءها بأسنا وئیلوسره یې د مرګ د سبب تفسیر اوکړو چې مرګ زمونږ دعذاب د وجې نه راغې.

**قوله:** مَرَّةً جَاءَهَا لَیْلاً وَمَرَّةً نَهَارًا، په دې کښې اشاره ده چې اَوْ دتنویع دپاره دې نه چې د شك دپاره څکه چې دالله تعالی ذات د شك او تردد نه پاك دې.

**سوال:** د یوحال چې کله په بل حال باندې عطف کولې شی نو واؤعاطفه راوړل ضروری وی دلته اُوهم قائلون بیاتًا باندې عطف دې لهذا په مینځ کښې د واؤعاطفه ضروری دی.

**جواب:** اَوْ د تنویع دپاره دې کوم چې په حقیقت کښې هم حرف عطف دې که چرې واؤعاطفه هم راوړلې شوې وی نوتقدیر عبارت به داسې وو اَوْوهم قائلون، واؤحذف کړې شوڅکه چې د دوؤ حروف عطف اجتماع ثقیل وی.

**قوله:** أَوْ صَحَائِفِهَا: دَاعمال نه پس دَ صحائف اعمال اضافه دَدې سوال جواب دې چې اعمال اعراض دی لهذا دَدې وزن ممکن نه دې. دَجواب حاصل دادې چې دلته مضاف محذوف دې تقدیری عبارت صحائف اعمال دې او دَ صحائف اعمال په وزن کښې هيڅ اعتراض نشته.

**قوله:** لِسَانُ الْمِيْزَانِ: لسان الميزان نه غالبا هغه ستن يا ازغې مراد ده چې دَدواړو چابړو برابروالي ښائی کوم وخت چې دواړه چابړی بالکل برابرشی نوهغه لسان (ستن) بالکل تيک په مينځ باندې راځی. (والله أعلم بالصواب)

**قوله:** كائن، دَدې په تقديركښې اشاره ده چې الوزن مبتداء ده او يومئذ دكائنٌ متعلق کيدوسره دَ مبتداء خبر دې.

**قوله:** صِفَةُ الْوَزْنِ په دې کښې په هغه خلقو باندې رددې چې الحقُ دَ الوزن مبتداء خبرګرځوی ځکه چې په دې صورت کښې به مطلب داشی چې وزن هم په هغه ورځ حق دې نه چې دَدې نه علاوه به په بله کښې اوداغلط دې.

**[اياتونه:۱۱-۲۵]**

{وَلَقَدْ خَلَقْنَاكُمْ} أَيْ أَبَاكُمْ آدم {ثُمَّ صَوَّرْنَاكُمْ} أَيْ صَوَّرْنَاهُ وَأَنْتُمْ فِي ظَهْره {ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ} سُجُود تَحِيَّة بِالِانْحِنَاءِ {فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيس} أَبَا الْجِنّ كَانَ بَيْن الْمَلَائِكَة {لم يكن من الساجدين} {قال} تعالى {ما منعك أ} {لا} زائدة {تسجد إذ} حين {أمرتك قال أنا خير منه خلقتني من نار وخلقته من طين} {قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا} أَيْ مِنْ الْجَنَّة وَقِيلَ مِنْ السَّمَاوَات {فَمَا يَكُون} يَنْبَغِي {لَك أَنْ تَتَكَبَّر فِيهَا فَاخْرُجْ} مِنْهَا {إِنَّك مِنْ الصَّاغِرِينَ} الذليلين {قَالَ أَنْظِرْنِي} أَخِّرْنِي {إِلَى يَوْم يُبْعَثُونَ} أَيْ النَّاس {قَالَ إِنَّك مِنْ الْمُنْظَرِينَ} وَفِي آيَة أُخْرَى {إِلَى يَوْم الْوَقْت الْمَعْلُوم} أَيْ يَوْم النَّفْخَة الْأُولَى {قَالَ فَبِمَا أَغْوَيْتنِي} أَيْ بِإِغْوَائِك لِي وَالْبَاء لِلْقَسَمِ وَجَوَابه {لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ} أَيْ لِبَنِي آدَم {صِرَاطك الْمُسْتَقِيم} أَيْ عَلَى الطَّرِيق الْمُوصِل إِلَيْك {ثُمَّ لَآتِيَنَّهُمْ مِنْ بَيْن أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفهمْ وَعَنْ أَيْمَانهمْ وَعَنْ شَمَائِلهمْ} أَيْ مِنْ كُلّ جِهَة فَأَمْنَعهُمْ عَنْ سُلُوكه قَالَ ابْن عَبَّاس وَلَا يَسْتَطِيع أَنْ يَأْتِي مِنْ فَوْقهمْ لِئَلَّا يَحُول بَيْن الْعَبْد وَبَيْن رَحْمَة اللَّه تَعَالَى {وَلَا تَجِد أَكْثَرهمْ شَاكِرِينَ} مُؤْمِنِينَ {قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُومًا} بِالْهَمْزَةِ مَعِيبًا أَوْ مَمْقُوتًا {مَدْحُورًا} مُبْعَدًا عَنْ الرَّحْمَة {لَمَنْ تَبِعَك مِنْهُمْ} مِنْ النَّاس وَاللَّام لِلِابْتِدَاءِ أَوْ مُوَطِّئَة لِلْقَسَمِ وَهُوَ {لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّم مِنْكُمْ أَجْمَعِينَ} أَيْ مِنْك بِذُرِّيَّتِك وَمِنْ النَّاس وَفِيهِ تَغْلِيب الْحَاضِر عَلَى الْغَائِب وَفِي الْجُمْلَة مَعْنَى جَزَاء مِنْ الشَّرْطِيَّة أَيْ مَنْ تَبِعَك أُعَذِّبهُ {و} قَالَ {يَا آدَم اُسْكُنْ أَنْتَ} تَأْكِيد لِلضَّمِيرِ فِي اُسْكُنْ لِيَعْطِف عَلَيْهِ {وَزَوْجك} حَوَّاء بِالْمَدِّ {الْجَنَّة فَكُلَا مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَذِهِ الشَّجَرَة} بِالْأَكْلِ مِنْهَا وَهِيَ الْحِنْطَة {فتكونا من الظالمين} {فَوَسْوَسَ لَهُمَا الشَّيْطَان} إبْلِيس {لِيُبْدِيَ} يُظْهِر {لَهُمَا مَا وُورِيَ}

فَوْعِلَ مِنَ الْمُوَارَاة {عَنْهُمَا مِنْ سَوْآتِهِمَا وَقَالَ مَا نَهَاكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هَذِهِ الشَّجَرَةِ إِلَّا} كَرَاهَةَ {أَنْ تَكُونَا مَلَكَيْنِ} وَقُرِئَ بِكَسْرِ اللَّام {أَوْ تَكُونَا مِنَ الْخَالِدِينَ} اَيْ وَذٰلِكَ لَازِم عَنْ الْأَكْل مِنْهَا كَمَا فِي آيَة أُخْرَى {هَلْ أَدُلُّكَ عَلَى شَجَرَةِ الْخُلْدِ وَمُلْكٍ لَا يَبْلَى} {وَقَاسَمَهُمَا} اَيْ اَقْسَمَ لَهُمَا بِاللّٰهِ {إِنِّي لَكُمَا لَمِنَ النَّاصِحِينَ} فِي ذٰلِكَ {فَدَلَّاهُمَا} حَطَّهُمَا عَنْ مَنْزِلَتِهِمَا {بِغُرُورٍ} مِنْهُ {فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ} اَيْ أَكَلَا مِنْهَا {بَدَتْ لَهُمَا سَوْآتُهُمَا} اَيْ ظَهَرَ لِكُلٍّ مِنْهُمَا قُبُله وَقُبُل الآخَر وَدُبُره وَسُمِّيَ كُلّ مِنْهُمَا سَوْأَة لِأَنَّ اِنْكِشَافه يَسُوء صَاحِبه {وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ} اَخَذَا يَلْزَقَانِ {عَلَيْهِمَا مِنْ وَرَقِ الْجَنَّةِ} لِيَسْتَتِرَا بِهِ {وَنَادَاهُمَا رَبُّهُمَا أَلَمْ أَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ وَأَقُلْ لَكُمَا إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُبِينٌ} بَيِّن الْعَدَاوَة وَالِاسْتِفْهَام لِلتَّقْرِير {قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنْفُسَنَا} بمعصيتنا {وان لم تغفر لنا وترحمنا لنكونن من الخاسرين} {قَالَ اهْبِطُوا} اَيْ آدَم وَحَوَّاء بِمَا اشْتَمَلْتُمَا عَلَيْهِ مِنْ ذُرِّيَّتِكُمَا {بَعْضُكُمْ} بَعْض الذُّرِّيَّة {لِبَعْضٍ عَدُوٌّ} مِنْ ظُلْم بَعْضهم بَعْضًا {وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ} اَيْ مَكَان اسْتِقْرَار {وَمَتَاعٌ} تَمَتُّع {إِلَى حِينٍ} تَنْقَضِي فِيهِ آجَالكُمْ {قَالَ فِيهَا} اَيْ الْأَرْض {تَحْيَوْنَ وَفِيهَا تَمُوتُونَ وَمِنْهَا تُخْرَجُونَ} بِالْبَعْثِ بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ وَالْمَفْعُول

---

**ترجمه:** اومونږ تاسو یعنی ستاسو نیکه آدم پیدا کړو بیا مو ستاسو صورتونه جوړ کړل یعنی ستاسو صورتونه مو په داسې حال کښې جوړ کړل چې تاسو دَ آدم علیه السلام په شا کښې وئ بیا مونږ فرښتو ته حکم ورکړو چې آدم علیه السلام ته سجده اوکړئ ټیټیدو سره دَ تعظیم سجده، نو ټولو سجده اوکړه بغیر دَ ابوالجن ابلیس او هغه دَ فرښتو په مینځ کښې اوسیدو هغه په سجده کونکو کښې شامل نه شو، الله تعالی ورته اوفرمائیل چې کوم څیز ته دَ سجدې کولو نه منع کړې سره دَدې چې ما تا ته حکم درکړې دې لا زائده دې (نو) وئې وئیل زه دَده نه بهتریم (ځکه چه) تا زه دَ اور نه پیدا کړې یم او دې دِ دَخاورې نه پیدا کړې دې، الله تعالی اوفرمائیل ته دَ جنت نه کوز شه او ونیلې شوی دی چې دَ آسمانونه کوز شه، ستا هیڅ حق نشته چې ته په آسمانونو (یا جنت) کښې اوسیدو سره تکبر اوکړې لهذا ته دَدې ځائی نه اوځه یقیناً ته دَ ذلیلانو نه ئې (ابلیس) اووئیل ما ته دَ هغه ورځې پورې مهلت راکړه په کومه ورځ چې به خلق اوچتیږي شي الله تعالی اوفرمائیل تا ته مهلت دې او په بل آیت کښې دی دَ مقرروخت پورې یعنی دَ رومبي شپیلئ پوک وهلو پورې، نو (ابلیس) اووئیل قسم دې زما ستا دَ اغوا کولو باء دَ قسم دَپاره ده زه به ددوئ یعنی بنی آدم دَپاره ستا په نیغه لار باندې (یعنی) هغه لار چې تا ته رسونکې کینم او دَدې جواب لَأَقْعُدَنَّ دې بیا به په هغوی باندې حمله کوم دَهغوی دَ وړاندې نه دَهغوی دَ شا نه دَهغوی دَ ښي طرف نه او دَهغوی دَکس طرف نه یعنی دَهر طرف نه به هغوی دَنیغې لار نه منع کوم. ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چې په خلقو دَ پاسه دَراتلو طاقت نه لری دې دَپاره چې هغه دَ بنده او دَ الله تعالی دَرحمت په مینځ کښې حائل نه شي او به په هغوی کښې اکثر شکر کونکی (یعنی) مؤمن نه وینې الله تعالی اوفرمائیل ته دَدې ځائی نه معیوب مغضوب او مردود اوځه لاړ شه په

انسانانو کښې چې څوک ستا تابعداري کوي او لام ابتداء دې یا دَ قسم دَ تمهید دَپاره دې (یعنی قسم محذوف باندې دلالت کولو دَپاره) هغه لَأملئنّ دې زه به تاسو ټولو نه جهنم ضرور ډکوم یعنی تا نه سره ستا دَ اولادنه او دَ انسانانو نه (به جهنم ډکوم) په دې کښې حاضر ته په غائب باندې غلبه ورکړې شوې ده او جمله (لأملئنّ) کښې د مَن شرطیه دَ جزاء معنی ده یعنی څوک چې ستا اتباع اوکړی زه به هغوی ته عذاب ورکړم او (الله تعالی) اوفرمائیل اې آدم ته او ستا بي بي حواء په مد سره (الدته) أسکن کښې دَ ضمیر مستتر تاکید دې دَپاره چې په دې باندې عطف اوکړې شي په جنت کښې اوسیږئ دَچرته نه چې کوم څیز ستاسو زړه غواړي خورئ او دَ خوراك په نیت سره دې ونې ته مه نیزدې کیږئ او هغه ونه دَغنم ده گنی ستاسو شمیر به په ظالمانو کښې اوشي. بیا شیطان ابلیس دا دواړه اوغولول دې دَپاره چې دَدوی دواړو شرمګاهونه چې دَ یو بل نه ئې پټ کړی وو ښکاره کړي (ووُری) المواراة نه د فُوعِلَ په وزن باندې ماضی مجهول دې او وئې وئیل چې تاسو دواړه دَدغه ونې نه دمنع کولو بغیر دَ دې هیڅ وجه نشته چې هغه ته ستاسو فرښته کیدل ناخوښه دی او (ملِکَین) دلام په کسرې سره (هم) لوستلې شوې دې یا دا چې تاسو دواړه دَهمیشه دَپاره جنتیان شئ څکه چې دا (خلود) دَدې دَ خوړلو دَپاره لازمی دې لکه چې په بل آیات کښې (هَل أدُلُّكَ علی شجرة الخلد ومُلكٍ لا یبلی) او دَدې دواړو په وړاندې ئې دَ الله تعالی قسم اوخوړلو چې زه په دې معامله کښې یقینًا ستاسو دواړو خیرخواه یم نو دا دواړه ئې دَهغوی دَمقام نه دَ دهوکې په ذریعه ښکته راوړل، دې دواړو چې کله دَونې نه څکه اوکړه یعنی دَهغې میوه ئې اوخوړله نو دَدواړو شرمګاهونه دَ یو بل په وړاندې ښکاره شول یعنی په هغوی کښې دَ هریو قبل او دویم قبل او دَهغه شا ښکاره شو او دَ دواړو دَ شرمګاهونو نوم سواة کیخودې شو څکه چې دَ شرمګاه ښکاره کیدل صاحب دَ شرمګاه لره خفه کوي او دواړو دَ جنت په پاڼړو باندې خپل ځان پټولو یعنی دواړو په خپلو شرمګاهونو باندې پاڼړې لګول شروع کړل دې دَپاره چې دَدې په ذریعه خپل ستر پټ کړي او دَهغوی رب هغوی ته ندا اوکړه ولې ما تاسو دواړه دَدې ونې نه منع کړې نه وئې او آیا وئیلې مې نه وو چې شیطان ستاسو ښکاره دښمن دې ښکاره دښمنی کونکې دې دا استفهام تقریری دې، وئې وئیل اې زمونږ ربه مونږ دَ معصیت په ذریعه په خپلو ځانونو باندې ظلم اوکړو که چرې ته زمونږ مغفرت اونه کړې او په مونږ باندې رحم اونه کړې نو مونږ به یقینًا دَ نقصانیانو نه شو. الله تعالی حکم اوکړو اې آدم او حواء تاسو سره دَخپل ذریت په کوم چې تاسو مشتمل یئې ښکته کوز شئ ستاسو په اولاد کښې به بعض دَ بعضو دښمنان وی دَ بعضو په بعض باندې ظلم کولو دَوجې نه، او ستاسو دَپاره زمکه دَ اوسید ونځائې دې او دَ یوې مودې پورې (په دې کښې) نفع حاصلول دی تاسو به دَخپل عمرپورې په دې کښې اوسیږئ وئې فرمائیل تاسو به هم په زمکه باندې ژوند تیروئ او هم هلته به مړه کیږئ او ژوندی کولو سره به تاسو هم دَهغه ځائې

نه راویستلې شئ (تخرجون) کښې معروف مجهول دواړه دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** ای اٰباکم آدم: **سوال:** خلقناکم کښې خطاب بنی آدم ته دې دکوم نه چې معلومیږی چې د خلق اود تصویرتعلق بنی آدم سره دې حالانکه دَ خلقناکم تفسیر أی أباکم آدم نه معلومیږی چې د خلق اودتصویر تعلق د آدم علیه السلام سره دې.

**جواب:** دادې چې وړاندې ملائکه ته حکم ورکولې شی چې آدم ته سجده اوکړئی که چرې په خلقناکم کښې کُمْ نه مراد آدم علیه السلام نه وی نو تخلیق او امر بالسجده کښې به مطابقت باقی پاتې نه شی یعنی تخلیق بیانولې شی دَ ذریۀ اودَ دې انعام ورکولې شی آدم علیه السلام ته، هم دَدې شبه لرې کولودَپاره مضاف محذوف منلوضرورت پیښ شو.

**قوله:** کَانَ بَیْنَ الْمَلٰئِکَةِ: **سوال:** دَدې عبارت دَاضافې څه مقصد دې؟

**جواب:** دَ مذکوره اضافې مقصد إلا ابلیس استثناء صحیح ګرځول دی.

**سوال:** إلا ابلیس نه دَ ابلیس سجده نه کول مفهوم کیږی بیا لم یکن من الساجدین وئیلو څه فائده ده؟

**جواب:** الا ابلیس نه دَمطلق سجدې نفی نه معلومیږی بلکه صرف دَ حکم په وخت دَ سجدې نفی مفهوم کیږی ممکن دی چې هغه وخت ئې سجده نه وی کړې مګر روستوئې کړې وی کله چې دَ لم یکن من الساجدین اضافه اوشوه نو په دې سره دَ مطلق سجدې نفی اوشوه یعنی ابلیس نه په وخت دَ حکم کښې سجده اوکړه او نه روستو.

**قوله:** زائدة یعنی الاّ کښې لا زائده دې ګنی مطلب به وی دَ سجدې کولونه منع کړې، ځکه چې نفی النفی اثبات وی حالانکه دامقصدنه دې.

**قوله:** أخّرنی دَ أنظرنی تفسیربه أخّرنی سره کولوکښې اشاره اوکړه چې أنظرنی په معنی دَ انتظاردې نه چې په معنی دَ رؤیت ګنی معنی به فاسدشی.

**قوله:** وفی آیةٍ آخری دَدې اضافې مقصدیوې شبهې جواب دې.

**شبه:** داده چې ابلیس أنظرنی الی یوم یبعثون وئیلوسره دَ نفخه ثانیه پورې ژوندی پاتې کیدو اجازت اوغوښتلو اودَدې نه پس مرګ نشته دَدې په جواب کښې الله تعالی إنک من المنظرین وئیلوسره دَ ابلیس درخواست منظورکړو دَدې دامطلب شو چې ابلیس دَ مرګ نه محفوظ شو په هغه به مرګ نه راځی ځکه چې په رومبئ شپیلئ سره به په ټول کائنات باندې فنا راشی او په دویمه شپیلئ سره به ټول کائنات راژوندې شی چونکه ابلیس دَ دویمې شپیلئ پورې دَ ژوندی پاتې کیدو اجازت غوښتې وو کوم چې منظور هم شو

ځکه چې دَالله تعالی دَ قول إِنَّكَ مِنَ الْمُنظَرِينَ هم دغه مفهوم دې.
**جواب:** دَ جواب حاصل دادې چې إِنَّكَ مِنَ الْمُنظَرِينَ نه اګر چې مطلقًا دَ ابليس درخواست قبلول معلوميږی مګر دبل آيت نه معلوميږی چې مراد نفخه اولی ده کوم چې نفخه فنا ده لهذا معلومه شوه چې ابليس به هم په فنا کيدونکو کښې شامل وی.
**قوله:** مَذْؤُمًا بِالهمزة په معنی د معيوبًا اوپه يوقرات کښې مذمومًا هم دې.
**قوله:** وَفِي الْجُمْلَة مَعْنَى الْجَزَاءِ دا اضافه دَ دې سوال جواب دې چې لَمَنْ تَبِعَكَ شرط بغيردَ جزاء دې دَجواب حاصل دادې چې جمله لَأَمْلَئَنَّ قائم مقام د جزاء ده لهذا شرط بغيردَ جزاء اعتراض ختم شو.
**سوال:** مذکوره جمله قائم مقام دجملهٔ جزاء ګرځولو په ځائی جزاء ولې اونه ګرځولې شوه؟
**جواب:** جمله فعليه چې کله جزاء واقع کيږی نو په هغې باندې لام نه داخليږی اودلته لام داخل دې په دې وجه دا جمله جزاء ګرځولوپه ځائی قائم مقام دَ جزاء ګرځولې شوې ده. (ترويح الارواح)
**قوله:** أَوْمُوطِئَةٌ لِلْقَسَمِ يعنی لام په قسم محذوف باندې دلالت کولودَپاره دې او هغه لَأَمْلَئَنَّ الخ دې أی أقسم لأملئن الخ.
**قوله:** وُورِيَ (په وزن) د فُوعِلَ مِنَ المُوارة په دې کښې دَ يوسوال مقدرطرف ته اشاره ده.
**سوال:** کله چې کلمې په اول کښې دوه واؤ جمع شی او په هغې کښې اول مضموم وی نو اول په همزې سره بدلول واجب وی لکه چې وُوَيْصِلٌ کښې کوم چې دَوَاصِلٌ تصغيردې رومبې واؤ په همزې سره بدل کړې شو أُوَيْصِلٌ شو.
**جواب:** دا قاعده په هغه دوؤ واؤنوکښې ده کوم چې متحرك وی دې دَپاره چې ثقل کم کړې شی او دلته دويم واؤ ساکن دې لهذا دلته دا قاعده نه جاری کيږی.
**قوله:** حَطْهمَا دا تفسير دلازم معنی بيانولودَپاره ده ځکه چې تدلِيه إرسال الشئ من أعلى إلى أسفل ته وائی.
**قوله:** أي آدَمُ وَحَوَّاءُ بِمَا اشْتَمَلْتُمَا الخ دادَ ددې شبهې جواب دې چې اهبطوا دَ جمع صيغه ده حالانکه دَ دې مخاطب آدم عليه السلام او بی بی حوا صرف دوه کسان دی لهذا اهبطا پکارو. دَ جواب حاصل دادې چې مراد حضرت آدم عليه السلام اوحواء سره دَ ذريت دی لهذا هيڅ شبه نشته.

**[اياتونه: ۲۶-۳۱]**

{يَابَنِي آدَمَ قَدْ أَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا} أَيْ خَلَقْنَاهُ لَكُمْ {يُوَارِي} يَسْتُر {سَوْآتِكُمْ وَرِيشًا} وَهُوَ مَا يُتَجَمَّل بِهِ مِنْ الثِّيَاب {وَلِبَاس التَّقْوَى} الْعَمَل الصَّالِح وَالسَّمْت الْحَسَن بِالنَّصْبِ عُطِفَ عَلَى لِبَاسًا وَالرَّفْع مُبْتَدَأ

خبره جملة {ذلك خير ذلك من آيات الله} دلائل قدرته {لعلهم يذكرون} فيؤمنون فيه التفات عن الخطاب {يا بني آدم لا يفتننكم} يضلنكم {الشيطان} أي لا تتبعوه فتفتنوا {كما أخرج أبويكم} بفتنته {من الجنة ينزع} حال {عنهما لباسهما ليريهما سوآتهما إنه} أي الشيطان {يراكم هو وقبيله} جنوده {من حيث لا ترونهم} للطافة أجسادهم أو عدم ألوانهم {إنا جعلنا الشياطين أولياء} أعوانا وقرناء {للذين لا يؤمنون} {وإذا فعلوا فاحشة} كالشرك وطوافهم بالبيت عراة قائلين لا نطوف في ثياب عصينا الله فيها فنهوا عنها {قالوا وجدنا عليها آباءنا} فاقتدينا بهم {والله أمرنا بها} أيضا {قل} لهم {إن الله لا يأمر بالفحشاء أتقولون على الله ما لا تعلمون} أنه قاله استفهام إنكار {قل أمر ربي بالقسط} بالعدل {وأقيموا} معطوف على معنى بالقسط أي قال أقسطوا وأقيموا أو قبله فاقبلوا مقدرا {وجوهكم} لله {عند كل مسجد} أي أخلصوا له سجودكم {وادعوه} اعبدوه {مخلصين له الدين} من الشرك {كما بدأكم} خلقكم ولم تكونوا شيئا {تعودون} أي يعيدكم أحياء يوم القيامة {فريقا} منكم {هدى وفريقا حق عليهم الضلالة إنهم اتخذوا الشياطين أولياء من دون الله} أي غيره {ويحسبون أنهم مهتدون} {يا بني آدم خذوا زينتكم} ما يستر عورتكم {عند كل مسجد} عند الصلاة والطواف {وكلوا واشربوا} ما شئتم {ولا تسرفوا إنه لا يحب المسرفين}

---

ترجمه: اې دَ آدم علیه السلام اولاد مونږ ستاسو دَپاره لباس پیدا کړو چې ستاسو شرمګاهونه هم پټوي اودَ ښائست سبب هم دې. (ریش) هغه کپړه په کومې سره چې ښکلا حاصله کړې شي اوبهترین لباس دَتقوی لباس دې یعنی دَ نیک عمل، یا ښه صورت لباس، په لباسًا باندې عطف کولو سره په نصب سره دې او مبتداء کیدو دَ وجې مرفوع دې دَدې خبر جمله ذلك خیرٌ دې دا دَالله تعالی دَ نخښونه یوه نخښه یعنی دَالله تعالی دَ قدرت دَ لائلو نه یو دلیل دې دې دَپاره چې دې سره نصیحت حاصل کړې او ایمان راوړې دې کښې دَخطاب نه (دَغیبت طرف ته) التفات دې، اې بنی آدم چرته تاسو شیطان ګمراه نه کړې څنګه چې ستاسو والدین هغه دَخپلې فتنې په ذریعه هغه دواړه دَ جنت نه ویستلې وو یعنی دَهغه منل مه کوئی ګنی تاسو به هم په فتنه کښې راګیر شئ په داسې حال کښې چې دَ هغوی لباس ئې دَهغوی نه کوز کړو (ینزع) أبویکم نه حال دې دې دَپاره چې دَهغوی شرمګاهونه یو بل ته اوښائي (او) یقینًا شیطان اودَهغه لښکر تاسوته داسې ګوري چې تاسو هغوی دَهغوی بدنونه لطیف او بې رنګه کیدو دَ وجې نه لیدلې نه شئ مونږ شیطانان دَهغه خلقو دوستان معاون او دوستان جوړ کړي دي کوم چې ایمان نه راوړي او هغه خلق چې کله څه فحش کار کوي مثلاً شرك دَ بیت الله په بربنډه طواف کول داسې ویناکولو سره چې مونږ په دې کپړو کښې طواف نه کوو په کومو کښې چې دَالله تعالی نافرمانی کوو، اوکله چې هغوی دَدې نه منع کولې شي نووائي چې مونږ خپل پلاران

(نیکونه) په دې طریقه موندلی دی هم په دې وجه مونږ دَهغوی اقتداء کوو اوالله تعالی هم مونږ ته دَداسې کولوحکم راکړې دې هغوی ته اووایه الله تعالی دَ بې حیایئ حکم نه ورکوی آیاتاسو په الله تعالی باندې دَداسې خبروبهتان لګوئی دکوموخبرو چې تاسوعلم نه لرئی چې هغه دغه خبره کړې ده. (دا) استفهام انکاری دې ته ورته اووایه چې زما رب خودَ راستئ او انصاف حکم ورکړې دې دَ هرې سجدې په وخت هم دَالله تعالی طرف ته مخ کوئی یعنی سجده خالص هم دَهغه دَپاره کوئ. دَأقیموا عطف دَ بالقسط په معنی باندې دې أی قال أقیطوا أقیموا (یعنی الله تعالی حکم کړې دې چې دَانصاف نه کاروا خلئ او په دې قائم شئ) دَدې نه وړاندې فاقبلوا مقدردې اوهم دَهغه بندګی کوئی دَ شرك نه دَ هغه دَپاره دین خالص کولوسره څنګه چې هغه تاسو پیدا کړی یئې حالانکه تاسو هیڅ هم نه وئی هغه به هم دغه شان دَ قیامت په ورځ تاسو دوباره راژوندی کړی. په تاسوکښې ئی یوفریق ته هدایت ورکړو او په یوفریق باندې ګمراهی وراونختنه څکه چې هغوی دَالله تعالی په ځائی شیطان خپل ولی جوړکړو اوهغوی داګنړی چې هغوی په نیغه لاردی. اې دَآدم علیه السلام اولادتاسو په جمات کښې دَهرې حاضرئی په وخت یعنی دَ مونځ اوطواف په وخت خپل لباس کوم چې ستاسو ستریټ کړی اغوندئی او څه چې غواړئی خورئی څکئ (مګر) دَحدنه تجاوزمه کوئی څکه چې الله تعالی دَحدنه تجاوز کونکی نه خوښوی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** خَبَرُهُ جُمْلَةٌ په دې کښې اشاره ده چې خان له خیرٌخبرنه دې بلکه جمله خبردې اوبعض حضراتو وئیلی دی چې لباس التقوی دَمبتداء محذوف خبردې، أی هولباس التقوی ای سترالعورة لباس التقوی، دَدې نه پس ئی اوفرمائیل ذلك خیرٌ.

**قوله:** فِیْهِ اِلْتِفَاتٌ یعنی دَ ظاهرتقاضا لعلکم تذکرون وو مګر په کلام کښې یئ دَ ثقل دفع کولودَپاره دَحاضرنه دَ غیبت طرف ته التفات اوکړو.

**قوله:** ینزع حال داحال حکائی دې چې ستاسودَ والدینو سابقه حالت بیانوی څکه چې نزع لباس دَ إخراج نه اول وو مطلب دا چې ینزع دا ابویکم نه حال دې نه چې صفت، څکه چې ینزع جمله نکره کیدودَ وجې نه دَ ابویکم صفت نه شی واقع کیدې په دې وجه ابویکم نه ئی حال اوګرځولو.

**قوله:** عَلٰی مَعْنَی الْقِسْطِ هم دَدې قسط په محل باندې عطف دې لهذا دعطف جمله علی المفرد اعتراض نه واقع کیږی.

**قوله:** مَا یَسْتُرُعَوْرَتَکُمْ یعنی حال وئیلوسره محل مراددې لهذا اوس به داشبه نه راځی چې اخذ زینت ممکن نه دې.

**قوله**: عِنْدَ الصَّلٰوةِ په دې کښې اشاره ده چې مسجد يادولوسره مايفعل فى المسجد مراد دې يعنى حال ونيلوسره محل مراددې.

**[اياتونه: ٣٢-٣٩]**

{قُلْ} إنكارًا عَلَيْهِمْ {مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللّٰهِ الَّتِي أَخْرَجَ لِعِبَادِهِ} مِنَ اللِّبَاس {وَالطَّيِّبَات} الْمُسْتَلَذَات {مِنَ الرِّزْقِ قُلْ هِيَ لِلَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا} بِالِاسْتِحْقَاقِ وَإِنْ شَارَكَهُمْ فِيهَا غَيْرهمْ {خَالِصَةً} خَاصَّة بِهِمْ بِالرَّفْعِ وَالنَّصْب حَال {يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ} نُبَيِّنهَا مِثْل ذٰلِكَ التَّفْصِيل {لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ} يَتَدَبَّرُونَ فَإِنَّهُمْ الْمُنْتَفِعُونَ بِهَا {قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ} الْكَبَائِر كَالزِّنَا {مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ} أَيْ جَهْرهَا وَسِرّهَا {وَالْإِثْمَ} الْمَعْصِيَة {وَالْبَغْيَ} عَلَى النَّاس {بِغَيْرِ الْحَقِّ} وَهُوَ الظُّلْم {وَأَنْ تُشْرِكُوا بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ} بِإِشْرَاكِهِ {سُلْطَانًا} حُجَّة {وَأَنْ تَقُولُوا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ} مِنْ تَحْرِيم مَا لَمْ يُحَرِّم وَغَيْره {وَلِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ} مُدَّة {فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ} عَنْهُ {سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ} عَلَيْهِ {يَا بَنِي آدَمَ إِمَّا} فِيهِ إِدْغَام نُون إِنْ الشَّرْطِيَّة فِي مَا الْمَزِيدَة {يَأْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِنْكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِي فَمَنِ اتَّقَى} الشِّرْك {وَأَصْلَحَ} عَمَله {فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ} فِي الْآخِرَة {وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُوا} تَكَبَّرُوا {عَنْهَا} فَلَمْ يؤمنوا بها {أُولٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ} {فَمَنْ} أَيْ لَا أَحَد {أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا} بِنِسْبَةِ الشَّرِيك وَالْوَلَد إِلَيْهِ {أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ} الْقُرْآن {أُولٰئِكَ يَنَالُهُمْ} يُصِيبهُمْ {نَصِيبُهُمْ} حَظّهمْ {مِنَ الْكِتَابِ} مِمَّا كُتِبَ لَهُمْ فِي اللَّوْح الْمَحْفُوظ مِنَ الرِّزْق وَالْأَجَل وَغَيْر ذٰلِكَ {حَتّٰى إِذَا جَاءَتْهُمْ رُسُلُنَا} أَيِ الْمَلَائِكَة {يَتَوَفَّوْنَهُمْ قَالُوا} لَهُمْ تَبْكِيتًا {أَيْنَ مَا كُنْتُمْ تَدْعُونَ} تَعْبُدُونَ {مِنْ دُونِ اللّٰهِ قَالُوا ضَلُّوا} غَابُوا {عَنَّا} فَلَمْ نَرَهُمْ {وَشَهِدُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ} عند الموت {أَنَّهُمْ كَانُوا كَافِرِينَ} {قَالَ} تَعَالَى لَهُمْ يَوْم الْقِيَامَة {ادْخُلُوا فِي} جُمْلَة {أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ فِي النَّارِ} مُتَعَلِّق بِادْخُلُوا {كُلَّمَا دَخَلَتْ أُمَّةٌ} النَّار {لَعَنَتْ أُخْتَهَا} الَّتِي قَبْلهَا لِضَلَالِهَا بِهَا {حَتّٰى إِذَا ادَّارَكُوا} تَلَاحَقُوا {فِيهَا جَمِيعًا قَالَتْ أُخْرَاهُمْ} وَهُمُ الْأَتْبَاع {لِأُولَاهُمْ} أَيْ لِأَجْلِهِمْ وَهُمُ الْمَتْبُوعُونَ {رَبَّنَا هٰؤُلَاءِ أَضَلُّونَا فَآتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا} مضاعفا {مِنَ النَّارِ قَالَ} تَعَالَى {لِكُلٍّ} مِنْكُمْ وَمِنْهُمْ {ضِعْفٌ} عَذَاب مضاعف {وَلٰكِنْ لَا تَعْلَمُونَ} بِالْيَاءِ وَالتَّاء مَا لِكُلِّ فَرِيق {وَقَالَتْ أُولَاهُمْ لِأُخْرَاهُمْ فَمَا كَانَ لَكُمْ عَلَيْنَا مِنْ فَضْلٍ} لِأَنَّكُمْ لَمْ تَكْفُرُوا بِسَبَبِنَا فَنَحْنُ وانتم سواء قال تعالى لهم {فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْسِبُونَ}

**ترجمه**: (اې محمد ﷺ) دَ انكارپه توګه دوی ته ووايه چې دَ الله تعالى دَ زينت لباس كوم چې الله تعالى دَخپلو بنديګانودَ پاره پيداكړو او په رزق كښې پاک صفا خوندناك څيزونه چا حرام كړى دى؟ تاسو ووايئ چې دا څيزونه په استحقاقى توګه باندې خو په دنياوى ژوندكښې دَايمان والودَپاره دى اګرچې غيرمؤمن هم په دې كښې شريك شى، حال دادې چې دا څيزونه به دَقيامت په ورځ دَ مؤمنانودَپاره خاص وى (خَالِصَةً) په رفع سره دې اودَ حال كيدودَ وجې نه

نصب هم دي، مونږ هم دغه شان آياتونه دَ غوراوفكر كونكودَپاره ښكاره ښكاره بيانوو څكه چې هم دغه خلق ددې نه فائده اخلي. ته ورته اووايه چې زمارب خو صرف فواحش لوئي ګناهونه مثلاً زنا حرام كړې ده كه هغه په ښكاره باندې وي اوكه په پټه شوې وي اوهره يوه ګناه اوږ په خلقو باندې په ناحقه ظلم كول (يې حرام كړي دي) (اودبغي نه مراد) ظلم دې اوداخبره يې (حرام كړې ده) چې تاسودالله تعالى سره څه داسې څيزشريک كړئ دكومَ شرک چې الله تعالى څه سند نازل كړې نه دې اودا چې تاسو دَالله تعالى طرف ته داسې څه خبره منسوب كړئ كومه چې تاسو نه پيژنئې داسې څيز حرامول كوم چې هغه نه دې حرام كړې وغيره وغيره اودَهرقوم دَپاره (دَمهلت) يوه موده مقرره ده. بيا چې كله هغه موده راشي نويوساعت به هم روستو كيدې نه شي او نه به وړاندې كيدې شي (يعني يوه لمحه تقديم اوتاخيرنه وي) اې دَ آدم عليه السلام اولادا (يادلرئې) (إمّا)كښې د نون شرطيه په ما زائده كښې ادغام دې كه تاسو ته هم تاسونه يوداسې رسول راشي چې تاسوته زما آياتونه اوروي نوچې كوم سړې دَ شرك نه بچ شي اودَ خپل عمل اصلاح اوكړي نودَهغه دَپاره نه څه ويره شته اونه به هغه په آخرت كښې غمګين كيږي او كوم خلق چې زمونږ آياتونه دروغ ګڼړي اودَهغې په مقابله كښې كبركوي چې په هغې ايمان نه راوړي هم دغه به دوزخيان وي هميشه هميشه به په هغې كښې وي. دَهغه چانه لوئې ظالم څوک كيدې شي چې د الله تعالى طرف ته دشريك او دَ ولد نسبت كولوسره په الله تعالى باندې بهتان اولګوي يادَهغه آياتونونه قرآن دروغ اوګڼړي، هيڅوك نشته، ددغه خلقو په نصيب څه چې ليږلي په كتاب (لوح محفوظ)كښې دي هغه په هغوي ته ملاؤشي (يعني) په لوح محفوظ كښې چې كوم رزق او عمر وغيره ليكلې دې هغه به هغوي ته ملاؤشي، تردې چې كله زمونږ ليږلي شوې فرښتې دَهغوي دَروح قبض كولودَ پاره راشي نوهغوي لاجواب كولودَپاره به هغوي به وائي چې چرته لاړل هغه چاچې تاسوالله تعالى پريخودوسره بندګی كوله؟ دوي به وائي هغه ټولو مونږ پريخودو غائب شو مونږ هغوي وينو اودَمرګ په وخت به هغوي دَخپل كفر اقرار اوكړي الله تعالى به هغوي ته دَ قيامت په ورځ فرمائي من جمله دَ پيريانو اوانسانانودَهغه امتونونه كوم چې سابق كښې تيرشوي دي په دوزخ كښې داخل شئي (فى النار)هغه ادخلوا متعلق دې كوم وخت چې يوجماعت په دوزخ كښې داخليږي دَ خپل ځان په شان جماعت باندې به لعنت كوي دَهغوي دوي ګمراه كولو دَوجې نه، تردې چې كله ټول په دوزخ كښې داخل شي نورروستوراتلونكي (يعني) اتباع كونكی به دَ ړومبنوخلقوپاره كښې وائي اوهغه به متبوعين وي. اې زمونږپروردګار دې خلقو مونږ ګمراه كړي وو دوي ته دَدوزخ دبل عذاب وركړه الله تعالى به فرمائي تاسو ته او دوي ټولو ته به دبل عذاب وي خوتاسو ته خبرنشته چې كوم فريق ته څومره عذاب دې؟ (تعلمون) په ياء او تاء سره دې او ړومبنی خلق به روستونوخلقوته وائي چې تاسو ته په مونږ باندې هيڅ فوقيت نشته څكه چې تاسو زمونږ په وجه كفر نه دې كړې لهذا مونږ اوتاسو برابريو. الله

تعالی به فرمائی نوتاسو هم دَ خپلو کړو مزه او څکئ.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** انکـارًا عَلَيهِم، په دې کښې اشاره ده چې مَنْ حَرَّمَ کښې استفهام انکاری دې.

**قوله:** مِنَ اللِّبَاسِ دې سره اشاره اوکړې شوه چې زينة نه ذريعه دَ زينت مراد دې.

**قوله:** بالرَّفع، خالصة کښې دوه قراءتونه دی رفع اونصب، دَ رفع په صورت کښې به د مبتداء خبر ثانی وی تقدیری عبارت به داوی هی ثابتة للذين آمنوا فی الحيوة الدنيا خالصةً يوم القيامة او نصب به دَحال کیدودَ وجې نه وی، تقدیری عبارت به داسې وی انها ثابتة للذين آمنوا حال کونها خالصة لهم يوم القيامة، ثابته دَ ظرف دضمیر مستترنه حال دې.

**قوله:** بِغَيْرِ الحَقِّ په دادَ البغی تاکید دې گنی ظلم خووی ناحق.

**قوله:** جملة په دې کښې اشاره ده چې فی أمم، جارمجرور، د ادخلوا سره متعلق نه دې بلکه د کائنين محذوف سره دی او سره دَ ادخلوا دضمیرنه حال دې.

**قوله:** لِضَلَالِهَا بِهَا ضلالها کښې ضمیر دَ أمة طرف او بها ضمیرد اخلت طرف ته راجع دې.

**قوله:** تلاحقوا په دې کښې اشاره ده چې اذارکوا دباب تفاعل نه دې، تاء په دال سره بدله کړې شو دَ تسکین نه پس دال په دال کښې غام اوکړې شو اودَې په شروع کښې همزه دَوصل داخل کړې شو.

**قوله:** لأجلهم په دې کښې اشاره ده چې دَ لِأُولٰهُم لام دَاجل دَپاره دې نه چې دَ قالت صله څکه چې خطاب الله تعالی سره دې نه چې هغوی سره، لهذا دااعتراض ختم شو چې لام کله دَ قول صله واقع کیږی نودَې مدخول دَ قول مخاطب وی حالانکه هؤلاء او أضلونا دواړه دَ غائب صیغې دَدې نفی کوی.

**قوله:** مـالکـُلٍّ فَرِيْقٍ الخ دادَ یعلمون مفعول دې.

**قوله:** فَذُوْقُوا الْعَذَابَ، یاخودادَ رؤساؤ کلام دې یا دَالله تعالی کلام دې.

**[ایاتونه: ٤٠-٤٧]**

---

{إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُوا} تكبروا {عَنْهَا} فلم يؤمنوا بها {لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ} إذا عرج بأرواحهم إليها بعد الموت فيهبط بها إلى سجين بخلاف المؤمن فتفتح له ويصعد بروحه إلى السماء السابعة كما ورد في حديث {وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى يَلِجَ} يدخل {الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ} ثقب الإبرة وهو غير ممكن فكذا دخولهم {وَكَذَلِكَ} الجزاء {نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ} بالكفر {لَهُمْ مِنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ} فراش {وَمِنْ فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ} أغطية من النار جمع غاشية وتنوينه عوض من الياء المحذوفة {وكذلك نجزي الظالمين} {والذين آمنوا وعملوا الصالحات} مبتدأ وقوله {لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا} طاقتها من العمل

اعتِرَاض بَيْنه وَبَيْن خَبَره وَهُوَ {أُولَٰئِكَ أَصحاب الجنة هم فيها خالدون} {ونزعنا ما في صدورهم من غل} حقد كَانَ بَيْنهمْ فِي الدُّنْيَا {تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمْ} تَحت قُصُورهمْ {الْأَنْهَارُ وَقَالُوا} عِنْد الِاسْتِقْرَار فِي مَنَازِلهمْ {الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَانَا لِهَٰذَا} الْعَمَل الَّذِي هَذَا جَزَاؤُهُ {وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَا أَنْ هَدَانَا اللَّهُ} حَذَفَ جَوَاب لَوْلَا لِدَلَالَةِ مَا قَبْله عَلَيْهِ {لَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ وَنُودُوا أَنْ} مُخَفَّفَة أَيْ أَنَّهُ أَوْ مفسرة فِي الْمَوَاضِع الْخَمسة {تلكم الجنة أورثتموها بما كنتم تعملون} {وَنَادَىٰ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ أَصْحَابَ النَّارِ} تَقْرِيرًا أَوْ تَبْكِيتًا {أَنْ قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا} مِنْ الثَّوَاب {حقا فهل وجدتم ما وعد} كم {رَبُّكُمْ} مِنْ الْعَذَاب {حَقًّا قَالُوا نَعَمْ فَأَذَّنَ مُؤَذِّنٌ} نَادَى مُنَادٍ {بَيْنَهُمْ} بَيْن الْفَرِيقَيْنِ أَسْمَعَهُمْ {أن لعنة الله على الظالمين} {الَّذِينَ يَصُدُّونَ} النَّاس {عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ} دِينه {ويبغونها} اي يطلبون السبيل {عوجا} معوجة {وهم بالآخرة كافرون} {وَبَيْنَهُمَا} أَيْ أَصْحَاب الْجَنَّة وَالنَّار {حِجَابٌ} حَاجِز قِيلَ هُوَ سُور الْأَعْرَاف {وَعَلَى الْأَعْرَافِ} وَهُوَ سُور الْجَنَّة {رِجَالٌ} اسْتَوَتْ حَسَنَاتهمْ وَسَيِّئَاتهمْ كَمَا فِي الْحَدِيث {يَعْرِفُونَ كُلًّا} مِنْ أَهْل الْجَنَّة وَالنَّار {بِسِيمَاهُمْ} بِعَلَامَتِهِمْ وَهِيَ بَيَاض الْوُجُوه لِلْمُؤْمِنِينَ وَسَوَادهَا لِلْكَافِرِينَ لِرُؤْيَتِهِمْ لَهُمْ إذْ مَوْضِعهمْ عَالٍ {ونادوا أصحاب الجنة أن سلام عليكم} قال تعالى {لَمْ يَدْخُلُوهَا} أَيْ أَصْحَاب الْأَعْرَاف الْجَنَّة {وَهُمْ يَطْمَعُونَ} فِي دُخُولهَا قَالَ الْحَسَن لَمْ يُطْمِعهُمْ إلَّا لِكَرَامَةٍ يُرِيدهَا بِهِمْ وَرَوَى الْحَاكِم عَنْ حُذَيْفَة قَالَ بَيْنَمَا هُمْ كَذَلِكَ إذْ طَلَعَ عَلَيْهِمْ رَبّك فَقَالَ قُومُوا اُدْخُلُوا الْجَنَّة فَقَدْ غفرت لكم {وَإِذَا صُرِفَتْ أَبْصَارُهُمْ} أَيْ أَصْحَاب الْأَعْرَاف {تِلْقَاءَ} جِهَة {أَصْحَابِ النَّارِ قَالُوا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا} فِي النَّار {مع القوم الظالمين}

ترجمه: يقين اوكړئ چې كوموخلقو زمونږ آياتونه دروغ اوګڼل اودهغې په مقابله كښې ئې سركشي اوكړه چې په هغې باندې ئې ايمان رانوړو، اوكله چې دمرګ په وخت دهغوى روحونه دآسمان طرف ته اوړلې شى نودهغې دپاره به دآسمان دروازې نه شى كولاوولې بلكه هغه به سجين كښې وركوزولې شى په خلاف دَ مؤمنانو چې دهغوى دپاره به دروازې كولاوولى شى اودهغوى روحونه به داووم آسمان طرف ته خيژولې شى لكه چې په حديث كښې راغلى دى اوهغه خلق به هيڅ كله په جنت كښې داخل نه شى تردې چې اوښ دَ ستنې په سوم كښې ورداخل شى اودا ناممكن ده، دغه شان دهغوى (په جنت كښې) داخليدل هم ناممكن دى دَ كفرمجرمانوته مونږ هم داسې سزا وركوو دهغوى دپاره به دَ دوزخ د اوور توليانې او بسترې وى (غَوَاش) په معنى دَ اور تورشك غَوَاش دَ غاشيةٌ جمع ده دَدې تنوين دَ ياء محذوف په عوض كښې ده مونږ ظالمانوته هم داسې سزا وركوو اوكوموخلقو چې ايمان راوړو اونيک عمل ئې اوكړو (الصلحت) مبتداء ده او لانكلف نفسًا إلَّا وُسْعَهَا دَدې خبردې اومونږ يونفس ته دهغه دَ طاقت يعنى دَعمل د قوت نه زيات مكلف نه جوړوو داجمله دمبتداء او خبر په مينځ كښې جمله معترضه ده او هغه خبر أولئك أصحب الجنة الخ دې هم دغه خلق جنتيان دى او هم په دې

کښې به دَهمیشه همیشه دَپاره وي. دَهغوي په زړونو کښې دَ یوبل خلاف چې په دنیاکښې چې خیرې وې یعنې دَهغوي په مینځ کښې چې کومه کینه وې مونږ به هغه لرې کړو هغوئ یعنې دَهغوي دَمحلونو لاندې به نهرونه جاري وي په خپلو کورونو کښې دَ اوسیدونه پس به هغوي وائي دَالله تعالى په لاکهونو شکر دې چې هغه مونږته دَدې عمل توفیق راکړو داهم دَهغې بدله ده او مونږ به دغې ته کله هم رسیدلې نه وو که چرې الله تعالى مونږ نه رسولو دَماقبل دَ دلالت دَ وجې نه دَ لَوْلاَ جواب حذف کړې شو واقعي زمونږ دَ رب پیغمبران په حق سره راغلي وو، اوهغوي ته به په چغو سره اووئیلې شي أن مخففه دې أنّهُ یا پنځوواړوځایونو کښې أن مفسره دې دا جنت دَ کوم چې تاسو وارثان جوړکړې شوي ئې ستاسو دَاعمالو په بدله کښې دي اهل جنت دَ دوزخیانو نه اقرار کولو او هغوئ لاجواب کولو په توګه به وائي مونږ سره زمونږ رب دَ ثواب چې کومه وعده کړې وه مونږ خو هغه حق اولیدله، تاسو سره ستاسو رب چې دَعذاب کومه وعده کړې وه تاسو هم هغه دَ واقعه مطابق اولیدله؟ نوهغوي به جواب ورکړي او بیا به یو آواز کونکې دَ دواړو فریقو په مینځ کښې آواز اولګوي وائي به (یعنې) هغوي ته به ئې واوروي چې لعنت دې وي په هغه ظالمانو باندې چې خلق به ئې دَالله تعالى دَدین نه منع کول او په دین کښې به ئې کوګوالې لټولو اوهغه خلق دَآخرت هم منکر وو اودَ اهل جنت او اهل نار دواړو په مینځ کښې به یوه پرده وي، وئیلې شوي دي چې هغه به دَاعراف دیوال وي او په اعراف چې دَ جنت دیوال دې په هغې به ډیر خلق وي دَ کومونه به نیکئ او بدئ برابروي لکه چې په حدیث کښې وارد شوي دي او هغوئ به هریوجنتي او دوزخي دَهغوي دَعلامت نه پیژني اوهغه علامت به دَ مؤمنانودَ پاره دَ مخ سپینوالې وي اودکافرانودَپاره به دَمخ توروالې وي. دَ اهل اعراف دَهغوي دَ لیدلودَ وجې ځکه چې هغوي به په اوچت ځائې وي او اهل جنت ته به اهل اعراف آوازونه اوکړي په تاسو دې سلام وي الله تعالى فرمائي دغه وخته پورې به دا اهل اعراف جنت کښې نه وي داخل شوي اوهغوي به په جنت کښې دَداخلیدو په طمع وي. حضرت حسن بصري رحمه الله وائي چې دَدوي په زړونو کښې به امید صرف په دې وجه وي چې الله تعالى به هغوي سره دَ کرامت (احسان) معامله کولواراده اوکړي اوحاکم رحمه الله دَ حذیفه رضي الله عنه نه روایت کړې دې فرمائي چې دغه خلق به هم په دې حال کښې وي چې ناڅاپي به ستا رب په هغوي باندې تجلي اوفرمائي ورته به اوفرمائي چې پاڅئ جنت کښې داخل شئ ماتاسوټول معاف کړئ اوکله چې دَ اصحاب اعراف نظر په اهل نار باندې پریوځي نوعرض به اوکړي اې زمونږ ربه مونږ دې ظالمانو سره مه شاملوله.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** تنوينهُ عِوَضٌ عن الياء دادَ یوسوال جواب دې.

**سوال:** غَوَاشٍ غیرمنصرف دې په دې تنوین نه داخلیږي اودلته تنوین داخل دې؟

**جواب:** داد سیبویه په نیزدې لهذا هیڅ اعتراض نشته، دلیل د دفع دادې چې په غیر منصرف باندې تنوین تمکن داخلول منع دی نه چې تنوین عوض.

**سوال:** غواشٍ فی الحال د جمع منتهی الجموع صیغه نه ده لهذا دا غیر منصرف کیدې نه شي.

**جواب:** غواش اګرچې فی الحال جمع منتهی الجموع صیغه نه ده مګر په اصل کښې د تعلیل نه وړاندې د جمع منتهی الجموع صیغه وه او غیر منصرف کیدل په تعلیل باندې مقدم دی لهذا د تعلیل نه وړاندې حالت معتبروی.

**قوله:** حُذِفَ جَوَابُ لولا تقدیر عبارت به داوی لولا هدایة الله تعالی لنا موجودة لشقینا وما کنا مهتدین.

**قوله:** أومفَسِّرَةٌ: **سوال:** أنْ مفسره د پاره ماقبل کښې د قول کیدل ضروری دی کوم چې دلته موجود نه دې؟

**جواب:** قول یا د قول هم معنی کیدل ضروری دی اودلته نودُوْا د قول هم معنی موجود دې لهذا هیڅ اعتراض پاتې نه شو.

**قوله:** فی المَوَاضِعِ الخَمْسَةِ، په دې کښې ړومبې أن تلکم الجنة دې او آخری أنْ أفیضوا دې.

**قوله:** لم یَدْخُلُوهَا دا د نَادَوْا د ضمیر نه حال دې.

**[ایاتونه:۴۸-۸۲]**

{وَنَادَى أَصْحَابُ الْأَعْرَافِ رِجَالًا} مِنْ أَصْحَاب النَّار {يَعْرِفُونَهُمْ بِسِيمَاهُمْ قَالُوا مَا أَغْنَى عَنْكُمْ} مِنَ النَّار {جَمْعُكُمْ} الْمَال أَوْ كَثْرَتكُمْ {وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ} أَيْ وَاسْتِكْبَاركُمْ عَنْ الْإِيمَان وَيَقُولُونَ لَهُمْ مُشِيرِينَ إلَى ضُعَفَاء الْمُسْلِمِينَ {أَهَؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللَّهُ بِرَحْمَةٍ} قَدْ قِيلَ لَهُمْ {ادْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَا أَنْتُمْ تَحْزَنُونَ} وَقُرِئَ أُدْخِلُوا بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ وَدَخَلُوا فَجُمْلَة النَّفْي حَال أَيْ مَقُولًا لهم ذلك {وَنَادَى أَصْحَابُ النَّارِ أَصْحَابَ الْجَنَّةِ أَنْ أَفِيضُوا عَلَيْنَا مِنَ الْمَاءِ أَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ} مِنْ الطَّعَام {قَالُوا إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَهُمَا} مَنَعَهُمَا {عَلَى الْكَافِرِينَ} {الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَهُمْ لَهْوًا وَلَعِبًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا فَالْيَوْمَ نَنْسَاهُمْ} نَتْرُكهُمْ فِي النَّار {كَمَا نَسُوا لِقَاءَ يَوْمِهِمْ هَذَا} بِتَرْكِهِمْ الْعَمَل لَهُ {وَمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا يَجْحَدُونَ} أَيْ وَكَمَا جَحَدُوا {وَلَقَدْ جِئْنَاهُمْ} أَيْ أَهْل مَكَّة {بِكِتَابٍ} قُرْآن {فَصَّلْنَاهُ} بَيَّنَّاهُ بِالْأَخْبَارِ وَالْوَعْد وَالْوَعِيد {عَلَى عِلْمٍ} حَال أَيْ عَالِمِينَ بِمَا فُصِّلَ فِيهِ {هُدًى} حَال مِنْ الْهَاء {وَرَحْمَةً لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ} بِهِ {هَلْ يَنْظُرُونَ} مَا يَنْتَظِرُونَ {إِلَّا تَأْوِيلَهُ} عَاقِبَة مَا فِيهِ {يَوْمَ يَأْتِي تَأْوِيلُهُ} هُوَ يَوْم الْقِيَامَة {يَقُولُ الَّذِينَ نَسُوهُ مِنْ قَبْلُ} تَرَكُوا الْإِيمَان بِهِ {قَدْ جَاءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ فَهَلْ لَنَا مِنْ شُفَعَاءَ فَيَشْفَعُوا لَنَا أَوْ} هَلْ {نُرَدُّ} إلَى الدُّنْيَا {فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ} نُوَحِّد اللَّه وَنَتْرُك الشِّرْك فَيُقَال لهم لا قال تعالى {قَدْ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ} إذْ صَارُوا إلَى الْهَلَاك {وَضَلَّ} ذَهَبَ {عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ} مِنْ دعوى الشريك

ترجمه: او اهل اعراف به دَ دوزخيانو نه لوئي لوئي خلقو کوم چې به دَهغوی دَ علامتونو نه پيژني آوازکولوسره اووائي (سوال به ترې اوکړی) چې ستاسو مال جمع کول يا ستاسو اکثريت اوستاسو ايمان نه تکبرکول دَ اور نه بچ کولوکښې څه پکارراغلل؟ او (اهل اعراف به ضعيفو مسلمانانو طرف ته اشاره کولوسره دوزخيانوته وائي آيادا اهل جنت هم هغه خلق نه دی دَچا متعلق چې تاسو قسمونه خوړلوسره وئيلی وو چې دوی ته به الله تعالی دَ رحمت هيڅ حصه نه ملاويږی؟ دوی ته وئيلی شوی دی چې جنت کښې داخل شئی په داسې حال کښې چې ستاسو دَپاره نه څه ويره شته اونه غم أُدْخُلُوْا،دَ مجهول په صيغې سره اودَخَلوا (ماضی معروف سره هم لوستلې شوې دې او (دواړه) منفيه جملې دَمقولاً دتقديرسره حال دی، حال دادې چې دا خبره هغوی ته اووئيلې شوه او دوزخيان به جنتيانوته په چغوسره وائی په لږوشان اوبو سره په مونږ هم څه کرم اوکړئی، کوم رزق چې تاسو ته الله تعالی دَخوراک دَپاره درکړې دې دَهغې نه لږ شان زمونږ طرف ته هم راتوې کړئی نوهغوی به جواب ورکړی دا دواړه څيزونه الله تعالی دَ کافرانودَپاره حرام (منع) کړی دی کومو خلقو چې خپل دين لوبې توقې جوړې کړې وې اوکوم چې دنياوی ژوند په فريب کښې اخته کړی وو نن به مونږ هم هغوی هيرکړو (يعنی) مونږ به هغوی په دوزخ کښې ورداخلولوسره پرېږدو لکه څنګه چې هغوی دَملاقات دَپاره عمل ترک کولوسره دَ دغه ورځې ملاقات هيرکړې وو اولکه څنګه چې به ئې زمونږ دَآياتونوانکارکولو، يعنی څنګه چې هغوی انکارکړې وو اومونږ اهل مکه ته داسې کتاب (يعنی) قرآن اورسولو په کوم کښې چې اخبار او وعدې اووعيدو مونږپه ښکاره ښکاره بيان کړل حال دادې کوم چې په دې کښې په ښکاره ښکاره بيان کړې شوی دی مونږ دَهغې پيژندونکې يو حال دادې چې هغه کتاب هدايت دې. هدىً دفصّلناهُ ضمير مفعولی نه حال دې او هغه په دې (قرآن) باندې ايمان راوړونکودَپاره رحمت دې، دغه خلقوته دَ څه انتظاردې نه صرف په قرآن کښې دَ بيان کړې شوی انجام انتظارنشته په کومه ورځ چې به دَدې آخری نتيجه راشی هغه به دَ قيامت ورځ وی کومو خلقوچې دا دَ اول نه هيره کړې وه يعنی په دې باندې ئی ايمان ساتل ترک کړې وو په هغه ورځ به داسې وائی واقعی زمونږ دَ رب رسولانو رښتونې خبرې راوړې وې نواوس څوک زمونږ سفارشی شته يا آيامونږ بيا دنياته واپس کيدلې شو دې دَپاره چې مونږ دَ هغه اعمالو خلاف کوم چې مونږ کول نور (نيک) اعمال اوکړو (يعنی) دَالله تعالی دَتوحيد قائل شو او شرک پرېږدو نوهغوی ته به اووئيلې شی بيشکه دغه خلقو خپل ځان پخپله په نقصان کښې واچولو کله چې هغوی دهلاکت طرف ته روان شو دَ شرک دَ دعوی کومې خبرې چې دغه خلقو جوړې کړې وې دَ هغوی نه غائب شوې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: رِجَالًا مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ، أی الذين كانوا عُظماء فی الدنيا فيما دونهم، يا أباجهل بن هشام ويا

ولهذين مغيرة وياملان وياملان وهم في النار، اصحاب اعراف به دغه خلق نوم په نوم رابلی ورته به وائی تاسو خو په دنیاکښې دَ قوم مشران ګڼړلې شوئی ستاسو ډلې اومال اودولت اوهغه شان اوشوکت څه شو؟ په کوم چې ستاسو ډیرفخراوغرور وو، نن دَهغې نه هیڅ هم ستاسو په کار رانغلل.

**قوله:** أغنى عنكم، ما استفهام توبيخی ده، اى اىُّ شئٍ أغنى، اوما نافيه هم کيدې شی يعنی دَهغې نه هيڅ ستاسو په کار رانغلل.

**قوله:** استكبارًا په دې کښې اشاره ده چې په ماكنتم کښې ما مصدريه ده لهذا دَعدم عائد شبه ختمه شوه اوبعض حضراتو دَ استكبارًا مطلب لوئی ګڼړل مراد کړې دې اوبعضو اعراض کول علامه سيوطی رحمه الله دويمه معنی مراد اخستې ده.

**قوله:** يقولون لهم، په دې کښې يئ اشاره اوکړه چې أهؤلاء الذين الخ داهم دَاهل اعراف مقوله ده.

**قوله:** بالبناء للمفعول: يعنی دَ باب افعال نه ماضی مجهول اودَخلوا (ن) نه ماضی معروف صيغه دهَرَدَ ادواړه قراءتونه شاذ دی دکوم طرف ته چې يئ قُرئ وئيلوسره اشاره کړې ده، دَدې دواړو قراءتونو په صحت کښې دَ قول دَ تقدير ضرورت نشته ځکه چې بغيردَتاويل نه به خبرواقع شی. (فيه مافيه)

**قوله:** مَنَعَهما، دحَرَّمَهُما، تفسير مَنَعَهما سره کولوکښې يئ اشاره اوکړه چې حرّم په معنی مَنَعَ دې ځکه چې دَحرام اوحلال محل دنيا ده نه چې آخرت.

**قوله:** نَتْرُكُهُمْ: په دې کښې اشاره ده چې دنسيان نه دَدې لازمی معنی يعنی ترك مراد دې ځکه چې الله تعالی دَپاره نسيان محال دې.

**قوله:** أی وكما جحدوا، دَدې اضافې مقصد دَيوسوال مقدرجواب دې.

**سوال:** د وماكانوابآيتنا يجحدون، عطف په كما نسوالقاء باندې صحيح نه دې ځکه چې معطوف عليه ماضی اومعطوف مضارع ده.

**جواب:** مضارع باندې چې کله كان داخل شی نوماضی جوړيږی لهذا عطف صحيح دې.

**قوله:** عَاقِبَةَ مَافِيه: دفيه ضمير مرجع قران دې يعنی اوس هغوی ته صرف په قرآن کښې د ذکرشوې وعدواو وعيدونو دَانجام دَ صداقت انتظاردې.

[اياتوله: ۵۴-۵۸]

{إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ} مِنْ أَيَّامِ الدُّنْيَا أَيْ فِي قَدْرِهَا لِأَنَّهُ لَمْ يَكُنْ ثَمَّ شَمْس وَلَوْ شَاءَ خَلَقَهُنَّ فِي لَمْحَة وَالْعُدُول عَنْهُ لِتَعْلِيمِ خَلْقه التَّثَبُّت {ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ} هُوَ فِي اللُّغَة

سرير المُلك استواء يليق به {يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ} مُخففًا ومُشددًا أي يغطي كُلًّا منهما بالآخر {يَطْلُبُهُ} يَطلب كُلّ منهما بالآخر طلبًا {حَثِيثًا} سريعًا {وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ} بالنّصب عطفًا على السّماوات والرّفع مُبتدأ خبره {مُسَخَّرَاتٍ} مُذلّلات {بِأَمْرِهِ} بقدرته {أَلَا لَهُ الْخَلْقُ} جميعًا {وَالْأَمْرُ} كُلّه {تَبَارَكَ} تعاظم {اللَّهُ رَبُّ} مالك {العالمين} {ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا} حال تذللا {وَخُفْيَةً} سرًّا {إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ} في الدُّعاء بالتّشدّق ورفع الصوت {وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ} بالشّرك والمعاصي {بَعْدَ إِصْلَاحِهَا} ببعث الرُّسل {وَادْعُوهُ خَوْفًا} من عقابه {وَطَمَعًا} في رحمته {إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِنَ الْمُحْسِنِينَ} المُطيعين وتذكير قريب المُخبر به عن رحمته لإضافتها إلى الله {وَهُوَ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ} أي مُتفرّقة قُدام المطر وفي قراءة بسكون الشّين تخفيفًا وفي أخرى بسكونها وفتح النّون مصدرًا وفي أخرى بسكونها وضمّ المُوحّدة بدل النّون أي مُبشّرًا ومُفرد الأولى نُشور كرسول والأخيرة بشير {حَتَّى إِذَا أَقَلَّتْ} حملت الرّياح {سَحَابًا ثِقَالًا} بالمطر {سُقْنَاهُ} أي السّحاب وفيه التفات عن الغيبة {لِبَلَدٍ مَيِّتٍ} لا نبات به أي لإحيائها {فَأَنْزَلْنَا بِهِ} بالبلد {الْمَاءَ فَأَخْرَجْنَا بِهِ} بالماء {مِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ كَذَلِكَ} الإخراج {نُخْرِجُ الْمَوْتَى} من قُبورهم بالإحياء {لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ} فتؤمنون {وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ} العذب التّراب {يَخْرُجُ نَبَاتُهُ} حسنًا {بِإِذْنِ رَبِّهِ} هذا مثل للمُؤمن يسمع الموعظة فينتفع بها {وَالَّذِي خَبُثَ} تُرابه {لَا يَخْرُجُ} نباته {إِلَّا نَكِدًا} عسرًا بمشقّة وهذا مثل للكافر {كَذَلِكَ} كما بيّنا ما ذُكر {نُصَرِّفُ} نُبيّن {الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَشْكُرُونَ} الله فيؤمنون

---

**ترجمه:** په حقيقت كښې ستاسو رب هم الله تعالى دې چاچې آسمانونه اوزمكه دَ دنيا دَ ورځو دَ اندازې په اعتبارسره په شپږو ورځوكښې پيداكړل ځكه چې هغه وخت نمر نه وو اوكه هغه غوښتل نو په يوه لمحه كښې به ئې پيداكړى وو او په يوه لمحه كښې نه پيداكول خلقوته دَ تادئى نه كولودَتعليم وركولودَپاره دى. بيا(په خپل) تخت شاهى باندې جلوه فرماشو (عرش) په لغت كښې تخت شاهى ته وائى او په تخت باندې جلوه فرمائى نه مراددَهغه دَ شان سره مناسب جلوه ئى اوفرمائيله، هغه شپه ورځ يوبل داسې پټوى چې په دې كښې هريوبل پسې شاته په منډه روان وى چاچې نمر سپوږمئى اوستورى پيداكړل كوم چې دَهغه دَ حكم تابع دى (په دريوارو باندې) نصب دې سموات باندې عطف كولوسره، او رفع ده مبتداء كيدودَوجې خبردَدې مسخراتٌ، خبرداراوسئ! ټول مخلوق هم دَهغه دى اوټول دَهغه امردې، الله تعالى دَلوئې بركت والادې چې دَټولوجهانونوپروردګاردې تاسو خپل رب په ژړا ژړا پټ پټ رابلئ بيشكه الله تعالى بې احتياطئ سره په زوره زوره په دعاكښې دَ حدنه تجاوزكونكى نه خوښوى او دَ شرك اوګناه په ذريعه په زمكه كښې فساد مه خورونئ، دَ رسول دَ بعثت په ذريعه دَهغې دَ اصلاح كولونه پس، دَهغه د سزا اود رحمت په اميداو ويرې سره هغه رابلئ، بيشكه دَالله تعالى رحمت نيكانوحكم منونكوخلقوته نيزدې دې او (لفظ) قريب كوم چې دَ رحمت مخبربه دې دَ

الله تعالى طرف ته دَ رحمت دَ اضافت دَ وجې نه مذکر راوړلې شوې دې او هغه الله تعالى دې چې هواګانې دَ خپل رحمت نه وړاندې وړاندې دَ زېرى سره لېږى يعنى دَ باران نه وړاندې وړاندې خورې، او په يوقرآءت کښې دَ شين په سکون سره دَ تخفيف په توګه او دويم قراءت کښې دَ شين په سکون اود نون فتحې سره په توګه دَمصدر اودريم قراءت کښې شين په سکون او په ځائې دَ نون دَ باء په ضمې سره يعنى خوشخبرى ورکونکې اودَ رومبى مفرد نُشُور په وزن دَ رسول دې اودَدويم بشيرٌ دې اوبياچې کله هواګانې دَاوبونه ډکې اوريځې اوچتوى نوموږدغه اوريځې دَ يومړې (اوچې) زمکې طرف ته ورشړو په دې کښې دَ غيبت نه التفات دې په کوم چې څه شينکې يا وابنه وغيره نه وى، دَهغې دَ ژوندئى کولو (شنه)کولودَپاره، بياموږ په دې زمکه کښې اوبه راوروو بياموږ دَ دغه اوبوپه ذريعه هرقسم ميوې راوباسو، هم دغه شان به موږ مړى ژوندى کولو سره دَ قبرونونه راوباسو دې دَپاره چې تاسو سبق حاصل کړئى اوايمان راوړئى اوکومه زمکه چې ښه وى (شور نه وى) نودَهغې نه دَ خپل رب په حکم سره ښه پيداوار کيږى دادَمومن مثال دې چې هغه نصيحت اورى بيادَهغې نه نفع اوچتوى اودکومې زمکې خاوره چې خرابه وى دَهغې نه دَ خراب پيداوارنه علاوه هيڅ نه حاصليږى (اوهغه هم) په ډيره خوارئى سره، اودادَ کافرمثال دې دغه شان څنګه چې موږ مذکوره مثال بيان کړو دَ الله تعالى شکر اداکونکو قوموندَپاره مثالونه بيانوؤ نوهغوى ايمان راوړى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** اسْتِوَاءً يَلِيقُ بِه، په دې کښې اشاره ده چې استوٰى على العرش دَ متشابهاتو نه دې دَدې حقيقى مراد هَم الله تعالى بهترپيژنى، يُغشى، أى يغطى، خوريدل پټول، هم دې نه دې غَشِيَتْهُ الحُمّى هغه له تبه راغله.

**قوله:** حثيثًا، داد حثٌ نه مشتق دې اوداد طلبًا مصدرمحذوف صفت دې.

**قوله:** بالتشدُّقِ، أى إظهار الفصاحة بالتكلف، تَشَدُّق، په تکلف سره فصاحت ښکاره کولودَپاره وښکى کولا وول، تَشَدَّقَ بالکلام وفيه، بغيردَاحتياط نه هرقسم خبرې کول.

**قوله:** وَتَذْكِيرُ قَرِيبٍ الْمُخْبَرِبِهِ عَنْ رَحْمَةٍ لِاضَافَتِهَا إِلَى اللهِ، دَمذکوره عبارت اضافه دَ يوسوال جواب دې.

**سوال:** رحمة الله، إنَّ اسم دې او قريبٌ دَدې خبردې، اسم مؤنث دې اوخبرمذکردې په دواړوکښې مطابقت نشته قرينة پکاردى؟

**جواب:** رحمة الله، کښې مضاف اليه يعنى دَ لفظ الله د رعايت دَ وجې نه مذکر راوړلې شوې دې يعنى مضاف ته ئې دَمضاف اليه حکم ورکړې دې، نوروَ لغت او اعراب اماماتودَدې مختلف جوابونه ورکړى دى په هغې کښې يوڅو دى:

① زجاج رحمه الله وئيلي دی چې رحمة دَ معافئ اوعفواو غفران په معنی کښې دَ کيدودَ وجې دَ رحم په معنی کښې دې نحاس رحمه الله دا تاويل خوښ کړې دې. ② نضربن شميل رحمه الله وئيلي دی چې رحمة مصدر په معنی په ترحم دې. ③ اخفش سعيد رحمه الله وئيلي دی چې رحمة نه مطر مراد دې. ④ بعض حضراتو وئيلي دی چې رحمة چونکه مؤنث غيرحقيقي دې لهذا مذکراومؤنث دواړه شان استعماليدې شي. (فتح القدير شوکاني)

**قوله:** أَقَلَّتْ، أي حملت ورفعت دَدې ماخذ اشتقاق إقلال دې.

**قوله:** نَكِدًا، أي الذي لا خير فيه، أوالذي اشتدّ وعسّر.

**قوله:** ثقالا: **سوال:** ثقالاً جمع راوړلوڅه مطلب دې؟

**جواب:** دَدې دپاره چې سحابًا معنیً دَ سحابة جمع ده ځکه چې په معنی کښې دَ سحائب دې.

**[اياتوله:۵۹-٦٤]**

{لَقَدْ} جَوَاب قَسَم مَحْذُوف {أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَى قَوْمِهِ فَقَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ} بِالْجَرّ صِفَة لِإِلَهٍ وَالرَّفْع بَدَل مِنْ مَحَلّه {إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ} إنْ عَبَدْتُمْ غَيْره {عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ} هُوَ يَوْم الْقِيَامَة {قَالَ الْمَلَأُ} الْأَشْرَاف {مِنْ قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ} بَيِّن {قَالَ يَا قَوْمِ لَيْسَ بِي ضَلَالَةٌ} هِيَ أَعَمّ مِنْ الضَّلَال فَنَفْيهَا أَبْلَغ مِنْ نَفْيه {ولكني رسول من رب العالمين} {أُبَلِّغُكُمْ} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد {رِسَالَاتِ رَبِّي وَأَنْصَحُ} أُرِيد الخير {لكم وأعلم من الله ما لا تعلمون} {أَ} كَذَّبْتُمْ {وَعَجِبْتُمْ أَنْ جَاءَكُمْ ذِكْرٌ} مَوْعِظَة {مِنْ رَبِّكُمْ عَلَى} لِسَان {رَجُلٍ مِنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ} الْعَذَاب إنْ لَمْ تُؤْمِنُوا {وَلِتَتَّقُوا} اللَّه {وَلَعَلَّكُمْ ترحمون} بِهَا {فَكَذَّبُوهُ فَأَنْجَيْنَاهُ وَالَّذِينَ مَعَهُ} مِنْ الْغَرَق {فِي الْفُلْكِ} السَّفِينَة {وَأَغْرَقْنَا الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا} بِالطُّوفَانِ {إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا عَمِينَ} عَنْ الْحَقّ

**ترجمه:** قسميه خبره ده چې مونږ حضرت نوح علیه السلام دَهغه دَ قوم طرف ته اوليږلو هغه اووئيل چې اې زماقومه تاسودَ الله تعالی بندګی کوئی دَهغه نه علاوه بل څوک ستاسو معبودنشته (لَقَدْ) دَ قسم محذوف جواب دې (غيره) په جرسره دَ اله صفت دې او رفع دَ (اله) دَ محل نه دبدل کيدودَ وجې نه ده که چرې تاسو دَهغه نه علاوه دَ بل چا بندګی کوئی نوماسره ستاسو په حق کښې دَ لوئې ورځې دَ عذاب ويره ده اوهغه لويه ورځ دَ قيامت ورځ ده، دَهغه دَقوم سردارانو اووئيل مونږ تا په ښکاره(ګمراهی)غلطئی باندې وينو، هغه جواب ورکړو زه په هيڅ قسم ګمراهئی کښې نه يم، ضلالت دَضلال نه عام دې، دَضلالت نفی دَضلال دَنفی نه أبلغ ده بلکه زه دَ رب العالمين رسول يم، تاسوته دَخپل پروردګارپيغام دررسوم(أبلغ)په تخفيف او تشديدسره دې، او ستاسو خيرخواهی کوم يعنی ستاسو ښيګړه غواړم اوماته دَالله تعالی دَطرف نه هغه څه معلوم دی کوم چې تاسو ته معلوم نه دی، آيا تاسوتکذيب کوئی اوآيا تاسوته په دې خبره باندې

حیرانیاده چې تاسو له ستاسو د رب د طرف نه هم ستاسو د یو سړی په ذریعه نصیحت راغلو دې دپاره چې تاسو د عذاب نه اوویروی که چرې تاسو ایمان رانوړودې دپاره چې د الله (د عذاب) نه اوویریږئی او چې د تقوی د وجې نه په تاسو رحم اوکړې شی مګر هغه خلقو د هغه هم تکذیب کولو نوموږ حضرت نوح عليه السلام او هغه خلق کوم چې د هغه سره په کشتئی کښې وو د ډوبیدو نه بچ کړل او کوموخلقوچې زموږ آیاتونه دروغ اوګڼړل موږ هغوی د طوفان په ذریعه غرق کړل یقیناً هغه خلق د حق نه ړانده وو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** جواب قسم محذوف، په دې اضافې سره یې اشاره اوکړه چې په لَقَدْ کښې لام په جواب قسم باندې داخل دې.

**قوله:** وَالرفع بَدَلٌ مِنْ مَحَلِه تقدیرد عبارت دادې مالکم الهٌ من زائده دې الهٌ مبتداء اولکم خبرمقدم دې.

**قوله:** هِيَ اَعَمُّ مِنَ الضَّلَالِ فَنَفْيُهَا اَبْلَغُ مِنْ نَفْيِه، د حضرت نوح عليه السلام قوم إنا لنراك في ضلل مبين وئیلو سره د حضرت نوح عليه السلام طرف ته د هرقسم ضلالت نسبت اوکړو، د دې په جواب کښې حضرت نوح عليه السلام ليس بى ضلالة، وئیلوسره د هرقسم ګمراهئ نفی اوکړه اونه صرف دا چې د هر قسم ګمراهئ نفی ئې اوکړه بلکه ولكنى رسول من رب العالمين وئیلو سره یې دا دعویٰ هم اوکړه چې د رب العالمین د طرف نه د عزت اوشرافت د ټولونه په لویه مرتبه د رسالت باندې فائزیم. اَلضَّلَالَةُ اَعَمُّ مِنَ الضَّلَالِ، ځکه چې ضلالت په وحدت غیرمعینه باندې دلالت کوی اود فرد غیرمعین نفی عام ده په خلاف د ضلال چې دامصدردې کوم واحد اوتثنیه جمع ته شامل دې. د مصدرپه نفی سره دا ضروری نه دی چې یقینی طور سره د عام نفی اوشی، مطلب دادې چې د ضلالة نفی د ضلال نفی لره مستلزم ده ولابالعکس، ځکه چې د عام نفی د خاص نفی لره مستلزم وی نه چې د دې عکس اولیس بی ضلالة، نکره د تحت النفی د وجې نه د عموم فائده ورکوی.

**قوله:** بِهَا، ای بالتقوی.

**[ایاتوله:۶۵-۷۲]**

{و} أرسلنا {إِلَى عَادٍ} الأولى {أَخَاهُمْ هُودًا قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّه} وحدوه {مَا لَكُمْ مِنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ أَفَلَا تَتَّقُونَ} تخافونه فتؤمنون {قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ} جهالة {وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ} في رسالتك {قَالَ يَا قَوْمِ لَيْسَ بِي سَفَاهَةٌ وَلَٰكِنِّي رَسُولٌ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ} {أُبَلِّغُكُمْ رِسَالَاتِ رَبِّي وَأَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ أَمِينٌ} مامون على الرسالة {أَوَعَجِبْتُمْ أَنْ جَاءَكُمْ ذِكْرٌ مِنْ رَبِّكُمْ عَلَىٰ} لسان {رَجُلٍ مِنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ} في الأرض {مِنْ بَعْدِ قَوْمِ نُوحٍ وَزَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَسْطَةً} قوة وطولا وكان

طولهم مائة ذراع وقصيرهم ستين {فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللّٰهِ} نعمه {لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ} تفوزون {قَالُوا أَجِئْتَنَا لِنَعْبُدَ اللّٰهَ وَحْدَهُ وَنَذَرَ} نترك {مَا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُنَا فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا} به من العذاب {إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ} في قولك {قَالَ قَدْ وَقَعَ} وجب {عَلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ رِجْسٌ} عذاب {وَغَضَبٌ أَتُجَادِلُونَنِي فِي أَسْمَاءٍ سَمَّيْتُمُوهَا} اي سميتم بها {أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ} اصناما تعبدونها {مَا نَزَّلَ اللّٰهُ بِهَا} اي بعبادتها {مِنْ سُلْطَانٍ} حجة وبرهان {فَانْتَظِرُوا} العذاب {إِنِّي مَعَكُمْ مِنَ الْمُنْتَظِرِينَ} ذلكم بتكذيبكم لي فارسلت عليهم الريح العقيم {فَأَنْجَيْنَاهُ} اي هودا {وَالَّذِينَ مَعَهُ} من المؤمنين {بِرَحْمَةٍ مِنَّا وَقَطَعْنَا دَابِرَ} القوم {الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا} اي استاصلناهم {وَمَا كَانُوا مُؤْمِنِينَ} عطف على كذبوا

**ترجمه:** او مونږ دَعاد اولې طرف ته دَهغوئ رور حضرت هود علیه السلام اولیږلو هغه اووئیل اې زما قومه دَالله تعالی بندګی اوکړئ (یعني) دَهغه دَتوحید اقرار اوکړئ دَهغه نه سوا ستاسو هیڅوک معبود نشته آیا تاسو دَهغه نه نه ویرېږئ چې ایمان راوړئ، دَهغه دَ قوم کافرانو سردارانو اووئیل مونږ تا په حماقت او جهالت کښې مبتلا وینو او مونږ تا دَ رسالت په دعویٰ کښې دروغژن ګنړو، هغه جواب ورکړو اې زما قومه زه لږ شان هم په حماقت کښې اخته نه یم زه خو دَ رب العالمین دَطرف نه رالیږلې شوې رسول یم زه تاسو ته دَخپل رب پیغام دررسوم (ابلغکم) کښې تخفیف او تشدید دواړه قراءتونه دی او ستاسو رښتونې خیرخواه یم دَ رسالت باره کښې امین یم، آیا تاسو ته په دې خبره کښې حیرانتیا کیږی چې ستاسو دَ پروردګار نصیحت تاسو له هم تاسو نه دَیوسړی په ذریعه راغلې دې دې دَپاره چې تاسو خبرکړی اودا خبره یاد ساتئ چې په دنیا کښې دَ قوم نوح علیه السلام نه پس یې تاسو (دَهغه) جانشین جوړکړی یئې او په دول دال کښې یې تاسو جسامت هم زیات درکړو یعنی دَ لوئی قدوالا نی جوړکړئی او طاقت ئی درکړو، په هغوی کښې دَتولونه لوړسړې سل لاسه وو او دَتولونه ټیټ سړې شپیته لاسه وو دَ الله تعالی نعمتونه یادکړئ چې تاسو کامیاب شئ، هغوی جواب ورکړو چې آیا ته مونږ له دَدې دَپاره راغلې ئې چې یو اځې هم دَ یو الله عبادت اوکړو او هغه څه پرېږدو دَکوم عبادت چې زمونږ پلارانو اونیکونو کړې دې، که چرې ته په خپله خبره کښې رښتونې ئې نو هغه عذاب راوړه دَکوم چې ته مونږ ته دهمکی راکوې هغه اووئیل بس ده اوس به ستاسو دَپاسه دَ رب عذاب او غضب راغې تاسو ماسره دَهغه نومونو په باره کښې جنګ جګړې کوئې چې تاسو او ستاسو پلارانو اونیکونو دَ ځان نه جوړکړی دی یعنی هغه بتان دَ کومو چې تاسو عبادت کوئی دَکوم باره کښې چې الله تعالی نه څه سند رالیږلې دې اونه څه دلیل، بس ده تاسو هم انتظارکوئی او زه هم تاسو سره انتظارکونکو کښې شامل یم، ستاسو زه دروغژن ګڼړلو دَ وجې نو په هغوی باندې بې فائدې هوا (سیلئ) اوچلولې شوه، چنانچې مونږ هود علیه السلام او هغه مؤمنان کوم چې هغه سره وو په خپل رحمت سره بچ کړل او مونږ دَ هغه خلقو دَ جرړې اوویستل، کومو چې زمونږ ایاتونه دروغ اوګڼړل او هغوی ایمان راوړونکی نه وو دَ دې په کذبوا باندې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** أَرْسَلنا: په دې کښې اشاره ده چې دَ وَاِلٰی عَـادٍعطف په نوحًـا الی قومه باندې دې اوداد عطف قصه علی القصه دَ قبیل نه دې.

**قوله:** اَلْاُوْلٰی، دَعاد صفت الاولی، راوړلوسره يې اشاره اوکړه چې عادثانیه مرادنه دی ځکه چې عادثانیه دَحضرت صالح علیه السلام دَ قوم نوم دې.

**قوله:** اخـاهم هُوْدًا، هودًااخـاهم نه بدل دې کوموخلقوچې عاد د محلی (حق) نوګرځولې دې هغه دې ته منصرف وائی اودَځوك يې چې د قبيلې نوم ګرځوی هغه دې ته دَتانيث اوعلميت دَ وجې نه غیرمنصرف وائی. او په حقیقت کښې دَ قوم عاد دَ جداکبرنوم دې، سلسله نسب ئی داسې ده عادبن عوص بن ارم بن سام بن نوح.

**سوال:** دَحضرت نوح علیه السلام په واقعه کښې فقال یاقوم، دفاء سره يې اوونیل اودلته قال بغیردَ فاء اوونیل په دې کښې څه نکته ده؟

**جواب:** حضرت نوح علیه السلام خپل قوم ته دَالله تعالی طرف ته دعوت ورکولوکښې بغیردَ سستئی او توقف مسلسل لګیا وو ځکه چې دَحضرت نوح علیه السلام قول قال رب انی دعوت قومی لیلاً ونهارًانه معلومیږی، لهذا دَهغې دَپاره فاء تعقیبیه راوړل مناسب دی دَحضرت هود علیه السلام دا صورت حال نه وو په دې وجه دلته فاء ترك کړې شوه.

**قوله:** من العَذَاب دادَ عائد محذوف بیان اوتَعِدُنَاجمله کیدوسره صله ده، اوصله چې کله جمله وی نوعائدَ ضروری وی، مفسرعلام بِهِ وئیلوسره عائد ښکاره کړو من العذاب هم دَدې ضمیر بیان دې.

**قوله:** وَجَبَ: **سوال:** دَ وَقَعَ تفسیرپه وَجَبَ سره په کوم مصلحت سره کړې شوې دې؟

**جواب:** دې دَپاره چې دَ الله تعالی په خبرکښې کذب لازم رانه شی ځکه چې هغه وخته پورې عذاب نه وو واقع شوې.

**قوله:** سَمَّيْتُمُوْهَا: **سوال:** سَمَّيْتُمُوْهَا کښې دَ اسماء دَپاره اسماء کیدل لازم راځی ځکه چې هَا ضمیر دَاسماء طرف ته راجع دې مطلب به داشی چې تاسو دَ نومونو نومونه کیخودل حالانکه دا يوبې معنې خبره ده اوکله چې په هَاباندې باء داخله شی کوو نودا اعتراض به نه کیږی ځکه چې دَ ها ضمیر به اسماء طرف ته راجع شی او د سَمَّيْتُمْ مفعول به مقدر شی ای سَمَّيْتُمْ مسمیات تلك الأسماء بها.

**[اياتونه: ۷۳ - ۸٤]**

{و} أرْسَلْنَا {إِلَىٰ ثَمُودَ} بِتَرْكِ الصَّرْف مُرَادًا بِهِ القَبِيلَة {أَخَاهُمْ صَالِحًا قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ قَدْ جَاءَتْكُمْ بَيِّنَةٌ} مُعْجِزَة {مِنْ رَبِّكُمْ} عَلَى صِدْقِي {هَٰذِهِ نَاقَةُ اللَّهِ لَكُمْ آيَةً} حَال عَامِلهَا مَعْنَى

الإشارة وَكَانُوا سَأَلُوهُ أَنْ يُخرجها لَهُمْ مِنْ صَخْرَة عَيَّنُوهَا {فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللَّهِ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ} بعقرٍ أَوْ ضرب {فيأخذكم عذاب أليم} {وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ} فِي الأَرْض {مِنْ بَعْدِ عَادٍ وَبَوَّأَكُمْ} أَسْكَنَكُمْ {فِي الْأَرْضِ تَتَّخِذُونَ مِنْ سُهُولِهَا قُصُورًا} تَسْكُنُونَهَا فِي الصَّيْف {وَتَنْحِتُونَ الْجِبَالَ بُيُوتًا} تَسْكُنُونَهَا فِي الشِّتَاء وَنَصَبَهُ عَلَى الحال المقدرة {فاذكروا آلاء الله ولا تعثوا في الأرض مفسدين} {قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِنْ قَوْمِهِ} تكبّرُوا عَنِ الإِيمَان بِهِ {لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِمَنْ آمَنَ مِنْهُمْ} أَيْ مِنْ قَوْمه بَدَل مِمَّا قَبْله بِإِعَادَةِ الجَار {أَتَعْلَمُونَ أَنَّ صَالِحًا مُرْسَلٌ مِنْ رَبِّهِ} إليكم {قالوا} نعم {إنا بما أرسل به مؤمنون} {قال الذين استكبروا إنا بالذي آمنتم به كافرون} وَكَانَتْ النَّاقَة لَهَا يَوْم فِي الْمَاء وَلَهُمْ يَوْم فَمَلُّوا ذَلِكَ {فَعَقَرُوا النَّاقَةَ} عَقَرَهَا قُدَار بِأَمْرِهِمْ بِأَنْ قَتَلَهَا بِالسَّيْفِ {وَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ وَقَالُوا يَا صَالِحُ ائْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا} به من العذاب على قتلها {إن كنت من المرسلين} {فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ} الزَّلْزَلَة الشَّدِيدَة مِنَ الأَرْض وَالصَّيْحَة مِنَ السَّمَاء {فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جَاثِمِينَ} بَارِكِينَ عَلَى الرُّكَب ميتين {فتولى} أعرض صالح {عنهم وقال يا قوم لقد أبلغتكم رسالة ربي ونصحت لكم ولكن لا تحبون الناصحين} {و} اُذْكُرْ {لُوطًا} وَيُبْدَل مِنْهُ {إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ أَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ} أَيْ أَدْبَار الرِّجَال {مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِنَ الْعَالَمِينَ} الإِنس والجن {أئنكم} بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيل الثَّانِيَة وَإِدْخَال الأَلِف بَيْنَهُمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ وَفِي قِرَاءَة إِنَّكُمْ {لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِنْ دُونِ النِّسَاءِ بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ مُسْرِفُونَ} مُتَجَاوِزُونَ الْحَلَال إِلَى الْحَرَام {وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَنْ قَالُوا أَخْرِجُوهُمْ} أَيْ لُوطًا وَأَتْبَاعه {مِنْ قَرْيَتِكُمْ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ} مِنْ أَدْبَار الرِّجَال {فَأَنْجَيْنَاهُ وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ كَانَتْ مِنَ الْغَابِرِينَ} الْبَاقِينَ فِي الْعَذَاب {وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَطَرًا} هُوَ حِجَارَة السِّجِّيل فَأَهْلَكَتْهُمْ {فانظر كيف كان عاقبة المجرمين}

ترجمه: اومونږ دَ قوم ثمود طرف ته دَهغوئ رور صالح عليه السلام اوليږلو كه چرې دَ قبيلې نوم وى نوغير منصرف، هغه اوفرمائيل اې زما قومه دَالله تعالى بندګئ اوكړئ دَهغه نه سوابل څوک معبود نشته، زما په صداقت باندې ستاسو دَ رب دَ طرف نه واضحه دليل، معجزه راغلې ده، دا اوښه دَ الله تعالى ده (آية) حال دې دَدې عامل دَ اسم اشاره معنى (أشير) دې هغوى دَحضرت صالح عليه السلام نه دَ يوخاص كانړى (غر) نه كوم چې هغوى متعين كړې وو (دَ اوښې) راويستو مطالبه كړې وه، پس هغه پرېږدئ چې دَالله په زمكه كښې خوراک كوى ګرځى په خراب نيت قتل او وهلو په اراده سره دې ته لاس هم مه اوړئ داسې نه وى چې تاسو دردناک عذاب راګير كړى اوتاسو هغه وخت ياد كړئ كوم وخت چې الله تعالى تاسو دَعاديانو نه پس دَ زمكې مالكان جوړ كړى وئ اوتاسو ته ئې په زمكه باندې دَ اوسيدو ځائ دركړې وو نودَهغه په هواره زمكه به تاسو ښكلى محلونه جوړول دَ ګرمئ په موسم كښې به تاسو په هغې كښې اوسيدلئ اودَ غرونو په تراشلو سره به تاسو مكانات جوړول چې په يخ موسم كښې به تاسو په هغې كښې سكونت اختيارولو. (بيوتًا) دَ حال مقدره په توګه منصوب دې نودَالله تعالى نعمتو نه

یادکړئ دَهغه په زمکه کښې فسادمه خوروئ، دَهغه دَ قوم کبرژنو سردارانو چاچې په صالح علیه السلام باندې دایمان په مقابله کښې کبراوکړو دکمزورې طبقې دَهغه خلقو نه ئې تپوس اوکړو چې ایمان ئې راوړې وو (آمن منهم) دَ جار اعادې سره، ماقبل یعنی د لِلَّذِينَ استضعفوا، نه بدل دې آیا تاسو واقعی دا پیژنئ چې صالح علیه السلام ستاسو طرف ته دَ خپل رب پیغمبردې؟ هغوی جواب ورکړو بیشکه په کوم پیغام سره چې هغه رالیږلې شوې دې په هغې باندې مونږ ایمان لرو، تکبرکونکو اووئیل کوم چې تاسو منلې دې مونږ خو دَ هغې منکریو اودا دَدې دپاره چې یوه ورځ به دَ اوښې دَ اوبوڅکلو وار وو اویوه ورځ دَهغوی (دَ څناورو) دپاره وه هغوی دَدې نه تنگ شو نوهغوی دغه اوښه مړه کړه، دَ قوم په وینا باندې قدار نومې سړی دا اووژله یعنی دا ئې په توره باندې قتل کړه اوپه پوره سرکشئ سره ئې دَ خپل رب دَ حکم خلاف ورزی اوکړه او صالح علیه السلام ته ئې اووئیل اې صالح دَدې په قتل چې به تادَ کوم عذاب دهمکی ورکوله هغه راوله که چرې ته واقعی دَ پیغمبرانو نه ئې آخر هغوی دَ یوتباه کونکې دَ زمکې سختې زلزلې او آسمانی چغې راگیرکړل اوهغوی په خپلو کورونو کښې پرمخې پراته پاتې شو یعنی دَ زنگونو په طرف مړه شو او صالح علیه السلام دَهغوی دکلی نه په وتو سره اووئیل اې زما قومه ما دَخپل رب پیغام تاسو ته اورسولو اوما ستاسو ډیره خیرخواهی اوکړه لیکن تاسو خیرخواهی کونکی نه خوښه وئ، اودَ لوط علیه السلام ذکر اوکړه چې مونږ هغه پیغمبر جوړکړې لیگلې دَ اذکرلوطا نه اذقال بدل دې اوداخبره یاده کړئ کوم وخت چې هغه خپل قوم ته اووئیل چې تاسو داسې دَ بې حیایئ کارونه کوئ یعنی چې سړو سره هم جنس پرستی کوئ چې په دنیاکښې تاسو نه مخکښې په پیریانو اوانسانانو کښې چاهم نه دی کړی آیا تاسو ښځې پریږدئ او دَ سړو نه خپل شهوت پوره کوئ. (ءانکم) کښې دَدواړو همزاؤ تحقیق او د دویمې تسهیل سره اودَدواړو په مینځ کښې په دواړو صورتونو کښې الف داخلولو سره حقیقت دادې چې تاسو دَ حلال نه دَحرام طرف ته تجاوز کولو سره دَحدنه تیریدونکی خلق یئ، دَهغه قوم سره دَدې نه علاوه بل هیڅ جواب نه وو چې هغوی اووئیل دې (یعنی) لوط علیه السلام اودَ ده اتباع کونکی دَ دې کلی نه اوباسئ دې، د سړو سره د هم جنسئ په باره کښې ډیرځان پاک گڼړی، آخر مونږ لوط علیه السلام اودَهغه دکور والابغیر دَ هغه دَ بی بی چې هغه په شاته پاتې کیدونکو کښې وه بچ کولو سره اوویستل (یعنی) هغه په عذاب کښې گیریدونکو کښې وه بیا مونږ په هغوی باندې یوخاص قسم باران اوورولو چې په هغې کښې هغه کودکانړی سره ملاؤشوی کانړی وو اودَهغې په ذریعه مو هغوی هلاك کړل نو غور اوکړه چې دَ دغه مجرمانو څه انجام شو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: وإلى ثمود اخاهم صالحا، دَدې عطف په ماقبل باندې دعطف قصه على القصه دَ قبیل نه دې ثمود دَیوې قبیلې نوم دې کوم چې دَهغوی دَجداکبر په نوم باندې دې، په دې وجه

ثمود غیر منصرف دې. د دوئ نسب داسې دې، ثمود بن عاد بن ارم بن شالخ بن أر قحشذ بن سام بن نوح د صالح، اخاهم عطف بیان دې. دَحضرت صالح شجرهٔ نسب داسې دې صالح بن عبیدبن آسف بن ماشح بن عبید بن حاذربن ثمود، کوموخلقوچې ثمود دَ قبیلې نوم گرځولې دې هغوی دا دَ علمیت اوتانیث دَ وجې نه غیرمنصرف لوستلې دې اوکوموخلقو چې د سرې نوم وئیلې هغوی دې ته منصرف وائي.

**قوله:** هٰذِهٖ نَاقَةُ الله، جمله مستانفه ده مقصددَمعجزې دکیفیت بیان کول دی، لکه چې اووئیلې شو هذهالبینة؟، جواب ورکړې شو هذهناقةالله.

**قوله:** حَالٌ عَامِلُهَا معنى الإشارة آيَةً ناقة، نه حال دی دَدې عامل هٰذه اشیرُ په معنی کښې دې.

**قوله:** سُهُولِهَا، سهول دَ سَهْلٌ جمع ده نرمې زمکې ته وائي.

**قوله:** نَصْبُه عَلَى الحَالِ المُقَدَّرَةِ، بيوتًا تنحتون نه حال مقدره دې، يعنی تاسو غرونه څکه تراشئ چې ستاسودپاره په دې کښې اوسیدل مقدرشوی دی. په دې وجه چې تراشل په سکونت اختیارولوباندې مقدم دې، حالانکه دَحال ذوالحال زمانه هم یوه وی.

**قوله:** تعثَوا، (س) عِثِیٌ او عُثِیٌ نه جمع مذکرحاصر تاسو فساداوکړئ.

**قوله:** الملأ، اسم جمع معرف باللام (ج) املاءُسردار لوئی خلق.

**قوله:** بِأَمْرِهِمْ، دا اضافه دې سوال جواب دې چې قتل کونکې قدار نومې يوسړې وو او عقروا کښې دَ قتل نسبت دَ پوره قوم طرف ته شوې دې جواب دادې چې دا اسناد مجازی دې چونکه دَ قدار په قتل ټول قوم متفق وو په دې وجه دَ پوره قوم طرف ته دَ قتل نسب اوکړې شو.

**قوله:** هوحِجَارَةُ السِّجِّيْلِ، هغه کانړې په کوم کښې چې څه قدرې دَخاورې ملاوټ وی کوم ته چې کود کانړې وئیلې شی وئیلې شی چې دادَ سنگ گل معرب دې.

**[اياتوله: ۸۵-۸۷]**

{و} أرسَلْنَا {إِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ قَدْ جَاءَتْكُمْ بَيِّنَةٌ} مُعجزة {مِنْ رَبِّكُمْ} عَلَى صِدقِي {فَأَوْفُوا} أتِمُّوا {الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا} تَنقِصُوا {النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ} بِالكُفرِ وَالمَعَاصِي {بَعْدَ إِصْلَاحِهَا} بِبَعثِ الرُّسُلِ {ذَٰلِكُمْ} المَذكُور {خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ} مُرِيدِي الإِيمَان فَبَادِرُوا إِلَيهِ {وَلَا تَقْعُدُوا بِكُلِّ صِرَاطٍ} طَرِيق {تُوعِدُونَ} تُخَوِّفُونَ النَّاس بِأَخذِ ثِيَابِهِمْ أَوْ المَكس مِنْهُمْ {وَتَصُدُّونَ} تَصرِفُونَ {عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ} دِينه {مَنْ آمَنَ بِهِ} بِتَوَعُّدِكُمْ إِيَّاهُ بِالقَتلِ {وَتَبْغُونَهَا} تَطلُبُونَ الطَّرِيق {عِوَجًا} مُعوَجّة {وَاذْكُرُوا إِذْ كُنْتُمْ قَلِيلًا فَكَثَّرَكُمْ وَانْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِينَ} قَبلَكُمْ بِتَكذِيبِ رُسُلِهِمْ أَيْ آخِر أَمرِهِمْ مِنَ الهَلَاك {وَإِنْ كَانَ طَائِفَةٌ مِنْكُمْ آمَنُوا بِالَّذِي

أُرْسِلْتُ بِهِ وَطَآئِفَةٌ لَّمْ يُؤْمِنُوا} بِهِ {فَاصْبِرُوا} انْتَظِرُوا {حَتَّىٰ يَحْكُمَ اللَّهُ بَيْنَنَا} وَبَيْنَكُمْ بِإِنْجَاءِ الْمُحِقِّ وَإِهْلَاكِ الْمُبْطِلِ {وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ} أَعْدَلُهُمْ

**ترجمه:** او مونږ دَمدین طرف ته دهغوئ رور شعیب عليه السلام اولیږلو هغه اووئیل اې زما قومه تاسو دَالله تعالی عبادت اوکړئی دَهغه نه بغیر ستاسو بل څوک معبود نشته تاسو ته زما دَ صداقت ستاسودَ پروردګاردَ طرف نه دَمعجزې په شکل کښې واضحه دلیل راغلې دې تاسو ناپ تول پوره پوره کوئی خلقو ته څیزونه کم مه ورکوئی، او رسولان لیږلو سره دَزمکې د اصلاح کولو نه پس دَ کفر او ګناه په ذریعه په زمکه کښې فساد مه خورئی هم په دې مذکور کښې ستاسو دَپاره خیر دې که چرې ستاسو دَ ایمان اراده وی نو دَهغې طرف ته تادی اوکړئی او تاسو په لارو کښې دې دپاره مه کینئ چې دَخلقونه دَهغوی کپړې واخلئ یا دَهغوی نه ټیکس وصولولو سره ویروئی او دَ الله تعالی په دین باندې یقین لرونکو له دقتل دهمکیانې ورکولو سره دَ الله تعالی دَ دین نه مه منع کوئی او په دې لارکښې کوګوالې مه لټوئی هغه زمانه یاده کړئی کوم وخت چې تاسو لږشان وئی الله تعالی تاسو دیر کړئی، او سترګې کولاؤ کړئی اوګورئی چې تاسو نه وړاندې دَ رسولانو تکذیب کولو سره دَ فساد خورونکو څه حشر شو یعنی دَهغوی انجام هلاکت شو او که چرې یوه ډله په تاسو کښې په هغه څه په څه چې څه رالیږلې شوې یم ایمان راوړو او یوې ډلې ایمان رانوړو نو تاسو انتظار کوئی تر دې چې الله تعالی حق پرستو ته نجات ورکړې او باطل پرسست هلاک کړی او زمونږ او ستاسو په مینځ کښې فیصله اوکړی هم هغه دَ ټولو نه بهتره فیصله کونکې دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** مدین، یا مدیان دَحضرت ابراهیم دَدریمې بی بی قطورا نه دَ ابراهیم عليه السلام خوئی دې دادَ بنی اسرائیلو نه دی څکه چې دَ بنی اسرائیلو سلسله دَحضرت ابراهیم عليه السلام نمسې یعقوب بن اسحاق عليه السلام نه ده. د حضرت یعقوب عليه السلام یو نوم اسرائیل هم وودې وجې نه دَهغه اولاد ته بنی اسرائیل وائی، مدین دَ یوبنار نوم دې اودَ مدیان اولاد ته هم بنی مدین وئیلې شی، دَحضرت شعیب عليه السلام تعلق هم دَدغه قوم سره دې، حضرت شعیب عليه السلام دَحضرت موسی عليه السلام سخر وو حضرت موسیٰ عليه السلام دَ مصرنه هجرت اوکړو مدین ته اورسید وحضرت شعیب عليه السلام سره ئی قیام اوکړو او لس کاله موده ئی هلته تیره کړه، په دې دوران کښې دَ حضرت شعیب عليه السلام لورسره دَ حضرت موسیٰ عليه السلام واده اوشو.

**قوله:** مُرِيدِي الإِيمَانِ دادَ یو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** دَحضرت شعیب عليه السلام مخاطب مؤمنان نه وونودوی ته دَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ دماضی په صیغې سره ولې خطاب اوکړو؟

**جواب:** دَ جواب حاصل دادي چې چونکه حرف شرط هم دَماضي صيغه دَ ماضي نه نه شي ويستلې په دې وجه دَمبدى لفظ مقدر اومنلې شودَدې دَپارچې معنى صحيح شي، مطلب دادې چې که سُتاسو دَايمان راوړلواراده ده نودَ دغه مذکوره کارونونه منع شئ.

**قوله:** فَبَادِرُوْاالیه په دې کښې اشاره ده چې إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِيْنَ (دَ شرط) جزاء محذوف ده نه چې ماقبل جمله جزاء ده. (ترويح الارواح)

**قوله:** المكس، خراج، تيکس، عشر، المكاس،العشار، عشروصول کونکې.

**پاره نمبر ۹ [قَالَ الْمَلَأُ]**

**[ایاتونه:۸۸-۹۳]**

{قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِنْ قَوْمِهِ} عَنِ الإِيمَانِ {لَنُخْرِجَنَّكَ يَا شُعَيْبُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَكَ مِنْ قَرْيَتِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ} تَرْجِعُنَّ {فِي مِلَّتِنَا} دِينِنَا وَغَلَّبُوا فِي الْخِطَابِ الْجَمْعَ عَلَى الْوَاحِدِ لِأَنَّ شُعَيْبًا لَمْ يَكُنْ فِي مِلَّتِهِمْ قَطُّ وعلى نحوه اجاب {قَالَ أَ} نعود فيها {ولوكُنَّا كَارِهِينَ} لَهَا اسْتِفْهَام إِنْكَار {قَدِ افْتَرَيْنَا عَلَى اللَّهِ كَذِبًا إِنْ عُدْنَا في ملتكم بعد إذ نجانا الله مِنْهَا وَمَا يَكُون} يَنْبَغِي {لَنَا أَنْ نَعُودَ فِيهَا إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّنَا} ذَلِكَ فَيَخْذُلَنَا {وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا} أَيْ وَسِعَ عِلْمه كُلَّ شَيْء وَمِنْهُ حَالِي وَحَالكُمْ {عَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْنَا رَبَّنَا افْتَحْ} أحْكُمْ {بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَأَنْتَ خَيْرُ الْفَاتِحِينَ} الْحَاكِمِينَ {وَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ} أَيْ قَالَ بعضهم لبعض {لئن} لام قسم {اتبعتم شعيبا إنكم إذا لخاسرون} {فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ} الزَّلْزَلَة الشَّدِيدَة {فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جَاثِمِينَ} بَارِكِين عَلَى الرُّكَب مَيِّتِينَ {الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا} مُبْتَدَأ خَبَره {كَأَنْ} مُخَفَّفَة وَاسْمهَا مَحْذُوف أَيْ كَأَنَّهُمْ {لَمْ يَغْنَوْا} يُقِيمُوا {فِيهَا} فِي دِيَارهمْ {الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَانُوا هُمُ الْخَاسِرِينَ} التَّأْكِيد بِإِعَادَةِ الْمَوْصُول وَغَيْره لِلرَّدِّ عَلَيْهِمْ فِي قَوْلهمْ السَّابِق {فَتَوَلَّى} أَعْرَضَ {عَنْهُمْ وَقَالَ يَا قَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَاتِ رَبِّي وَنَصَحْتُ لَكُمْ} فَلَمْ تُؤْمِنُوا {فكيف آسى} احزن {على قوم كافرين} اسْتِفْهَام بِمَعْنَى النَّفْي

**ترجمه:** دَحضرت شعيب عليه السلام دَ قوم سردارانو کوموچې دَايمان په مقابله کښې تکبراوکړو اووئيل اې شعيب مونږ تا اوهغه خلق چې تاسره ئې ايمان راوړلې دې دَخپل کلي نه به خامخا اوباسو إلاّ دا چې ته زمونږ دين (مذهب) تاسو واپس راشئ په خطاب کښې ئې جمع ته په واحدباندې غلبه ورکړې ده ځکه چې حضرت شعيب عليه السلام دَهغوی په دين باندې هيڅ کله نه وو اوهم دا (تغليب الجمع على الواحد) په توګه حضرت شعيب عليه السلام هم په جواب کښې اوفرمائيل آيا مونږ هغه دين طرف ته واپس راؤګرځوسره دَدې چې مونږ هغه ناخوښه کوو(دا)استفهام انکاری دې والله که چرې ستاسو دين ته واپس راغلو نومونږ په الله تعالى باندې دَ دروغو تهمت اولګولوپس دَهغې نه چې الله تعالى مونږ ته دَدې نه خلاصې راکړو، هيڅ کله زمونږ دَپاره جائزنه دی

چې مونږ ستاسو دين ته واپس راشو إلاّ دا چې زمونږ پروردګار الله تعالى ته دا منظورووى چې هغه مونږ رسوا کړى زمونږ دَرب علم خو هر يوشى ته محيط دې هم په دې کښې زمونږ او ستاسو حال هم شامل دې، مونږ هم په الله تعالى باندې بهروسه ساتو اې زمونږ پروردګار ته زمونږ او زمونږ دَ قوم په مينځ کښې صحيح فيصله اوکړې او ته دَټولونه بهتر فيصله کونکې ئې، دَ شعيب عليه السلام دَ قوم کافرانو سردارانو اووئيل يعنى په خپل مينځ کښې ئې يوبل ته اووئيل قسم دې که چرې تاسو دَ شعيب عليه السلام خبره اومنله نو تاسو به لوئى نقصان سره مخ شئ نو هغوى يوې سختې زلزلې راونيول نو هغوى په خپلو کورونو کښې پرمخې پراته پاتې شو (يعنى) دَ زنګونو په طرف مړه پراته پاتې شو (الذين كذبوا شعيبًا) مبتداء دې او كان الخ دَدې خبر دې كان مخففه دې او دَدې اسم محذوف دې أى كأنهم چاچې دَ حضرت شعيب عليه السلام تكذيب كړې وو هغوى په نقصان كښې پريوتل دَ موصول وغيره اعاده كولو سره تاكيد دې دَهغوى دَ سابقه قول دَ ترديد دَپاره، هغه وخت شعيب عليه السلام مخ واړولو لاړو او هغوى او فرمائيل اې زما قومه ما دَ خپل رب پيغام تاسو ته رسولې دې او ما ستاسو خيرخواهى کړې ده بيا هم تاسو ايمان رانوړو او س زه په کافرانو خلقو باندې څنګه افسوس اوکړم چې (قبول دحق نه) منکر دى استفهام په معنى دَنفى دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** وَغَلَّبُوا فِي الخِطَابِ الجمع على الوَاحِدِ، دا دَ يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** سوال دادې چې دَ قوم شعيب عليه السلام دَ سردارانو قول أَوْلَتَعُوْدُنَّ نه معلوميږى چې حضرت شعيب عليه السلام دَ نبوت دَ دعوىٰ نه وړاندې دَ خپل قوم په مذهب باندې وو څکه چې عود سابقه حالت ته راګرځيدو ته وائى حالانکه دَنبى نه دکفر صدور محال دې؟.

**جواب:** دَ جواب حاصل دادې چې په حضرت شعيب عليه السلام باندې کومو خلقو ايمان راوړې وو هغوى دَ ايمان راوړو نه مخکښې په خپل قومى مذهب بت پرستئ باندې وو په دې وجه دَهغوى په اعتبار سره دَقوم سردارانو تغليبًا حضرت شعيب عليه السلام هم دهغوى سره شريك کړو او دَ لَتَعُوْدُنَّ جمع صيغه ئى استعمال کړه ګنى دَ شعيب عليه السلام نه هيڅ کله دکفر صدور نه دې شوې.

**قوله:** وَعَلى نَحْوِهِ أَجَابَ دا هم دَ يو مقدر سوال جواب دې سوال دادې چې حضرت شعيب عليه السلام إن عدنا او فرمائيل پخپله ئى اقرار اوکړو چې هغه پخپله هم دَ قوم په مذهب باندې وو؟ دَدې جواب مفسر علام وعلى نحوه أجاب وئيلو سره ورکړې دې مطلب دا چې څنګه دَ قوم سردارانو حضرت شعيب عليه السلام تغليبًا په قوم کښې شاملولو سره لتعودنّ وئيلى وو هم دغه شان حضرت شعيب عليه السلام هم تغليبًا إنْ عُدنا او فرمائيل.

**قوله:** فَيَخْذُلَنَا: په دې کښې اشاره ده چې د يَّشاء مفعول محذوف دې او هغه خذلان دې نه

چه مطلق شئ.

**قوله**: أي وسع علمه: په دې کښې اشاره ده چه علمًا دَ فاعل نه منقول شوې دې او تمیز دې.

**قوله**: التَّاكِيْدُ بِإِعَادَةِ الْمَوْصُوْلِ په دې عبارت کښې ئې دا شبه لرې کړې چې اَلَّذِیْنَ کَذَّبُوْا شُعَیْبًا وئیلو په ځائې أَنَّهُمْ کَانُوْا هُمُ الْخٰسِرِیْنَ وئیلې وې نو ډیره به بهتره وه دَ اعاده موصول ضرورت نه وو ضمیر کافی وو، دَ جواب حاصل دادې چې دَ هغوی صفت دَ کفر دَ تاکید دَ پاره دَ موصول اعاده کړې شوې ده، په ضمیر کښې به دا خبره نه وه.

**قوله**: وَغَيْرِهِ لِلرَّدِّ عَلَيْهِمْ فِي قَوْلِهِمُ السَّابِقِ، یعنی دَ موصول په اعادې سره دَ هغوی د صفت د کفر تاکید شوې دې دغه شان دَ سابقه جملې په شان دا جمله هم مستقل او اسمیه راوړلو سره دَ سابقه جملې دَ مضمون نور تاکید اوشو.

**[ایاتونه: ۹۴ - ۹۹]**

{وَمَا أَرْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ مِنْ نَبِيٍّ} . فَكَذَّبُوْهُ {إِلا أَخذنَا} عاقبنا {أهلها بِالْبَأْسَاءِ} بشدة الفقر {وَالضَّرَّاءِ} المرض {لَعَلَّهُمْ يَضَّرَّعُونَ} يتذللون فيؤمنون {ثُمَّ بَدَّلْنَا} أعطيناهم {مَكَانَ السَّيِّئَةِ} العذاب {الْحَسَنَةَ} الغنى والصحة {حَتَّى عَفَوْا} كثروا {وَقَالُوا} كفرا للنعمة {قَدْ مَسَّ آبَاءَنَا الضَّرَّاءُ وَالسَّرَّاءُ} كما مسنا وهذه عادة الدهر وليست بعقوبة من الله فكونوا على ما انتم عليه قال تعالى {فَأَخَذْنَاهُمْ} بالعذاب {بَغْتَةً} فجأة {وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ} بوقت مجيئه قبله {وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرَى} المكذبين {آمَنُوا} بالله ورسلهم {وَاتَّقَوْا} الكفر والمعاصي {لَفَتَحْنَا} بالتخفيف والتشديد {عَلَيْهِمْ بَرَكَاتٍ مِنَ السَّمَاءِ} بالمطر {وَالْأَرْضِ} بالنبات {وَلَكِنْ كَذَّبُوا} الرسل {فَأَخَذْنَاهُمْ} عاقبناهم {بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ} {أَفَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَى} المكذبون {أَنْ يَأْتِيَهُمْ بَأْسُنَا} عذابنا {بَيَاتًا} ليلا {وَهُمْ نَائِمُونَ} غافلون عنه {أَوَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَى أَنْ يَأْتِيَهُمْ بَأْسُنَا ضُحًى} نهارا {وَهُمْ يَلْعَبُونَ} {أَفَأَمِنُوا مَكْرَ اللَّهِ} استدراجه اياهم بالنعمة وأخذهم بغتة {فَلَا يَأْمَنُ مَكْرَ اللَّهِ إِلَّا الْقَوْمُ الْخَاسِرُونَ}

**ترجمه**: او کله داسې نه دی شوی چې مونږ یو کلی ته نبی لیږلې وی او هغوی دَ هغه تکذیب کړې وی مګر دا چې دَ هغه کلی او سیدونکی مونږ دَ محتاجئی په سختئ او دَ مرض په تکلیف کښې راګیر کړې نه وی دې دپاره چې هغوی عاجزی اوکړی او ایمان راوړی، بیا مونږ دَ هغوی بدحالی عذاب په خوشحالئ دَ غنی او صحت سره بدله کړه تردې چې دَ هغوی ښه ترقی اوشوه (یعنی دَ هغوی په ځان او مال کښې زیاتوالې اوشو) او دَ نعمت ناشکری کولو سره ئې اووئیل چې ځنګه په مونږ راغلی دی دغه شان زمونږ په مشرانو هم ښې بدې راغلی دی دَ زمانې هم دغه دستور دې دا دَ الله تعالی دَ طرف نه سزا نه ده لهذا په کوم مذهب چې تاسو یئې هم په هغې باندې قائم او سیږئ الله تعالی اوفرمائیل نو مونږ هغوی ناڅاپه راوینول هغوی ته دَ دې

دَ راتلودَ اول نه خبر هم اونه شو اوکه چرې تکذیب کونکی دکلی خلق په الله اودَهغه په رسول باندې ایمان راوړلې اودکفراوگناه نه ئې ځان ساتلې وی نوموږبه په هغوی دَآسمان دَ باران په صورت کښې اودَ زمکې دَ شینکی (راتوکیدو) په شکل کښې دَ برکتونو دروازې کولاو کړې وی (لفتحنا)په تخفیف اوتشدیدسره دې مگر هغوی رسولان دروغ اوگنړل نوموږ دَهغوی دَ عمل دَوجې نه هغوی رااونیول، آیا بیاهم دَ دغه کلوتکذیب کونکی اوسیدونکی دَدې خبرې نه په امن کښې شو چې زموږعذاب په هغوی باندې دَ شپې راشی اوهغوی اوده وی (یعنی) غافل وی اوآیا دَدغه کلوخلق دَدې خبرې نه بې فکره شو چې په هغوی زموږعذاب دَ ورځې راشی اوهغوی په لوبوکښې مشغول وی آیا داخلق دَالله تعالی دَ چال (یعنی) دَ نعمت په ذریعه وخت په وخت نیول اود ناڅاپی رانیولونه بې ویرې شوی دی، نودَالله تعالی دَچال نه بغیردَ هغه چانه څوک بې ویرې نه شو چې څوک تاوان اوچتونکی دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: وَمَآأَرْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ داجمله مستانفه ده دَ مخصوص امتونو واقعات بیانولونه پس دَدې ځائی نه دَالله تعالی عام عادت اوعام دستور بیانولې شی.

قوله: يَضَّرَّعُونَ په اصل کښې تاء په ضادبدله کړې شو اودَ ضادپه ضادکښې ادغام اوکړې شو يَضَّرَّعُونَ شو.

قوله: إِسْتِدْرَاجَهُ أَيَّاهم استدراج یوکار وار په وار کول دَمکر معنی دهوکه ، فریب دې دَالله تعالی طرف ته دَدې نسب کول صحیح نه دی، دلته دَ مکر نه استدراج بالاستعاره مراد دې یعنی وارپه واردَ نعمت اوصحت په ذریعه هغوی ته مهلت ورکولوسره گیرول چې کوم کس راگیرولې شی هغه ته احساس نه وی.

قوله: عَفَوْا (ن) عَفْوٌ ډیرول ماضی جمع مذکرغائب، دَدې معنی دکمیدلوهم راځی دادَاضدادنه دې، عَفَوْا، کثروا نموا فی انفسهم واموالهم یقال عفا النبات، وعفا الشحم والوبر إذا کثرت ویقال، عفا، کثر، وعفا: درس هومن أسماء الأضداد. (اعراب القرآن للدرویش)

قوله: البأس او بؤس غریبی اولگه، ضرٌّ او ضرّاء بدنی تکلیف مرض دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه هم دغه نقل دی.

[ایاتونه: ۱۰۰-۱۰۷]

{أولم يَهْدِ} يَتَبَيَّن {لِلَّذِينَ يَرِثُونَ الْأَرْضَ} بالسُّكْنَى {مِنْ بَعْدِ} هلاك {أَهْلِهَا أَنْ} فاعل مُخَفَّفَة وَاسْمهَا مَحْذُوف اي أنَّهُ {لَوْ نَشَاءُ أَصَبْنَاهُمْ} بالعَذَاب {بِذُنُوبِهِمْ} كَمَا أَصَبْنَا مَنْ قَبْلهمْ وَالْهَمْزَة فِي الْمَوَاضِع الْأَرْبَعَة لِلتَّوْبِيخ وَالْفَاء وَالْوَاو الدَّاخِلَة عَلَيْهِمَا لِلْعَطْفِ وَفِي قِرَاءَة بِسُكُونِ الْوَاو فِي الموضع الأول عطفا بأو {وَ} نحن {نَطْبَعُ} نَخْتِم {عَلَى قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ} الْمَوْعِظَة سماع تدبر {تِلْكَ الْقُرَى}

الَّتِي مَرَّ ذِكرهَا {نَقُصُّ عَلَيْكَ} يَا مُحَمَّد {مِنْ أَنْبَائِهَا} اَخْبَار اَهْلهَا {وَلَقَدْ جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ} الْمُعْجِزَات الظَّاهِرَات {فَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا} عِند مَجِيئِهِمْ {بِمَا كَذَّبُوا} كَفَرُوا بِهِ {مِنْ قَبْلُ} قَبْل مَجِيئِهِمْ بَلْ اسْتَمَرُّوا عَلَى الكفر {كذلك} الطبع {يطبع الله على قلوب الكافرين} {وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِمْ} أَيْ النَّاس {مِنْ عَهْدٍ} أَيْ وَفَاء بِعَهْدِهِمْ يَوْم أَخذ الْمِيثَاق {وَإِنْ} مخففة {وجدنا أكثرهم لفاسقين} {ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ} أَيْ الرُّسُل الْمَذْكُورِينَ {موسى بآياتنا} التسع {إلى فرعون وملإه} قومه {فَظَلَمُوا} كَفَرُوا {بِهَا فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِينَ} بِالْكُفْرِ مِنْ إهْلَاكهمْ {وَقَالَ مُوسَى يَا فِرْعَوْن إنِّي رَسُول مِنْ رب العالمين} إليك فكذبه فقال انا {حَقِيقٌ} جَدِير {عَلَى أَنْ} أَيْ بِأَنْ {لَا أَقُولَ عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقَّ} وَفِي قِرَاءَة بِتَشْدِيدِ الْيَاء فَحَقِيق مُبْتَدَأ خَبَره أَنْ وَمَا بَعْده {قَدْ جِئْتُكُمْ بِبَيِّنَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ فَأَرْسِلْ مَعِيَ} إلَى الشَّام {بَنِي إِسْرَائِيلَ} وَكَانَ اسْتَعْبَدَهُمْ {قَالَ} فِرْعَوْن لَهُ {إِنْ كُنْتَ جِئْتَ بِآيَةٍ} عَلَى دَعْوَاك {فَأْتِ بِهَا إِنْ كُنْتَ مِنَ الصادقين} فيها {فَأَلْقَى عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُبِينٌ} حيّة عظيمة {وَنَزَعَ يَدَهُ} أَخْرَجَهَا مِنْ جَيْبه {فَإِذَا هِيَ بَيْضَاءُ} ذَات شُعَاع {لِلنَّاظِرِينَ} خِلَاف مَا كَانَتْ عَلَيْهِ مِنْ الْأُدْمَة

**ترجمه:** اوآیا په هغه خلقوچې دَزمکې دَسابقه مالکانودَ هلاکت نه پس دَ سکونت په اعتبار سره دَزمکې وارثان جوړشو داخبره واضحه نه شوه چې که چرې مونږ اوغواړو نوهغوی به دهغویٔ دَ ګناهونو په سبب په عذاب کښې راګیرکړو اَن دَ خپل مابعد (لونشاءُ سره دَ يَهْدِ فاعل دې اواَن مخففه عن الثقیله دې اود(اَن) اسم محذوف دې تقدیری عبارت اَنَّهُ دې څنګه چې مونږ دَهغوی نه وړاندې خلق نیولی وو همزه په څلورو واړو ځایونوکښې دَتوبیخ دَپاره ده اوکوم فاء او واؤ چې په دې باندې داخل دې دَعطف دَپاره دی په یوقراءت کښې دَ واؤ په سکون سره دې په ړومبی ځائی کښې دَ اَوْ په ذریعه دَعطف کولوسره اودَهغوی په زړونوباندې مهر(بندیز)اولګووچې هغوی نصیحت دَ غور اوفکرپه خیال سره وانوریدې شی، اې محمد ﷺ دَ مذکوره ښاریو دَ اوسیدونکو څه واقعات مونږ تاته اوروو دَهغوی رسولانو هغوله ښکاره ښکاره معجزې راوړې وې مګردکوم څیزچې هغوی دَ اول نه انکار اوکړو بیادَهغه څیزدَ راتلونه پس دَهغه څیزمنونکی نه وو بلکه هغوی دَهغې نه هم انکارکولو، الله تعالی هم دغه شان دکافرانو په زړونوباندې مهر لګوی اوپه اکثروخلقو کښې مونږ دَ عهد(خیال) نه ساتل اوموندل یعنی دَ یوم میثاق دَ ورځې د عهدپوره والې اونه لیدلو اومونږ اکثر خلق دَحدنه تجاوز کونکی اواوموندل. اِنْ مخففه عن الثقیله دې دَ مذکوره رسولانونه پس مونږ حضرت موسی علیه السلام ته زمونږ نهه نخښې ورکړې اودَ فرعون اودَهغه دَ قوم سردارانوله مواولیږلو نوهغه خلقو دَهغې نه انکار اوکړو نوته ګوره چې دَ کفردَ وجې نه دَدغه مفسدانو څه انجام شو (یعنی) دَهغوی هلاکت، موسی علیه السلام اوفرمائیل اې فرعون زه دَ رب العالمین دَ طرف نه ستاطرف ته رالیږلې شوې یم مګرفرعون دَحضرت موسی علیه السلام تکذیب اوکړو نوموسی علیه السلام اووئیل

زمادَپاره هم دغه مناسب دی چې بغیردَ رښتیاؤنه دَالله تعالی طرف ته څه خبره منسوب نه کړم او په یو قراءت کښې دَعَلی په ځائی عَلَیَّ په تشدید سره دې په دې صورت کښې به حقیق مبتداء وی او اَن اودَدې مابعد دَدې خبر، ما تاسوله ستاسودَرب دَطرف نه یولوئی دلیل راوړې دې ته بنی اسرائیل ماسره شام ته اولیږه او (فرعون) هغوی غلامان جوړ کړی وو، فرعون اووئیل چې که تا په خپله دعوی باندې څه دلیل راوړې وی نوپیش یې کړه که چرې ته په خپله دعوی کښې رښتونې ئې نوموسی علیه السلام خپله همسا اوغورزوله نوهغه ناڅاپی یوه لویه اژدهاجوړه شوه او موسی علیه السلام (په گریوان کښې خپل لاس ورکړو) چې راوئې ویستلو نوهغه ناڅاپی دَکتونکو په نظرکښې دَخپل غنم رنگی په ځائی روښانه پرقیدونکی وو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: يَتَبَيَّنَ: سوال:** دَيَهْدِ صله لام نه راځی دلته په لِلَّذِيْنَ کښې دَ يَهْدِ صله لام استعمال شوې دې.

**جواب:** مفسرعلام دَ يَهْدِ تفسیرپه يَتَبَيَّنَ سره کولوکښې هم دَدې شبهې جواب ورکړو یعنی يَهْدِدَ يَتَبَيَّنَ په معنی کښې دې اودَيَتَبَيَّنَ صله لام راځی.

**قوله: بِالسُّكْنٰى : سوال:** لفظ سکنی دَ اضافه کولوڅه مقصد دې؟

**جواب:** چونکه دَ ملك تحقق صرف دَ سابق قوم په هلاکت سره نه کیږی ددې دپاره سکونت اوقبضه ضروری ده هم دې طرف ته اشاره کولودَپاره مفسرعلام دَلفظ سکنی اضافه کړې ده.

**قوله: اَنْ فَاعِلٌ** اَن دخپل مابعدسره دَ يَهْدِ فاعل دې يَهْدِ په نون سره هم لوستلې شوې دې دَنون دَ قراءت په صورت کښې به الله تعالی فاعل وی اودَ يَهْدِ مفعول به اَنْ لَّوْ نَشَآءُ اَصَبْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ شی، ای اَنَّ الشان هوهذا، او يَهْدِ دَ یاء دَ قرآءت په صورت کښې فاعل، اَنْ لَّوْ نَشَآءُ اَصَبْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ دې. (تسهیل) اَنْ مخففه عن الثقیله دې دَدې اسم ةُ ضمیر شان محذوف دې ای اَنَّهُ او جمله لَوْنَشَاءُ دَدې خبر، اَنْ او دَدې مابعد دَ يَهْدِ فاعل دې اوداهم جائزدی چې دَ يَهْدِ فاعل په دې کښې ضمیر مستتروی اودَدې ضمیرمرجع به هغه وی کوم چې دَ سیاق کلام نه مفهوم وی. ای اَوَلَمْ يَهْدِ ماجری للامم السابقة، په دې صورت کښې به اَن اودَدې مابعد په تاویل دمصدر په محل کښې دمفعول دې، په رومبی صورت کښې به تقدیری عبارت دا شی اَوَلَمْ يَهْدِ الله ويبين للوارثين ماٰلهم وعاقبة امر هم اصابتنا اِيَّاهم بذنوبهم ويكون المفعول به محذوفاً كما قدرناه، اودویم صورت کښې به تقدیر عبارت داشی اَوَلَمْ يُبَيِّن لهم وضح الله ماجری للامم اصابتنا اِيَّاهم لونشاء ذلك.

**قوله: اَلْوَاوُ الدَّاخِلَةُ عَلَيْهَا لِلْعَطْفِ:**

**سوال:** دَهمزه استفهام په حرف عطف باندې داخليدل منع دی؟.
**جواب:** ممانعت په عطف مفردعلى المفرد كښې دې نه چې په عطف جمله على الجمله كښې ځكه چې جمله بعد الجمله كلام مستانف وی.

**[ایاتوله:۱۰۸-۱۲۶]**

{قَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ إِنَّ هَٰذَا لَسَاحِرٌ عَلِيمٌ} فَائِقٌ فِي عِلْمِ السِّحْرِ وَفِي الشُّعَرَاءِ أَنَّهُ مِنْ قَوْلِ فِرْعَوْنَ نَفْسِهِ فَكَأَنَّهُمْ قَالُوهُ مَعَهُ عَلَى سَبِيلِ التَّشَاوُرِ {يريد ان يخرجكم من أرضكم فماذا تأمرون} {قَالُوا أَرْجِهْ وَأَخَاهُ} أَخِّرْ أَمْرَهُمَا {وَأَرْسِلْ فِي الْمَدَائِنِ حَاشِرِينَ} جَامِعِينَ {يَأْتُوكَ بِكُلِّ سَاحِرٍ} وَفِي قِرَاءَةٍ سَحَّارٍ {عَلِيمٍ} يَفْضُلُ مُوسَى فِي عِلْمِ السِّحْرِ فَجَمَعُوا {وجاء السحرة فرعون قالوا ائن} بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيلِ الثَّانِيَةِ وَإِدْخَالِ أَلِفٍ بَيْنَهُمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ {لنا لأجرا إن كنا نحن الغالبين} {قال نعم وإنكم لمن المقربين} {قَالُوا يَا مُوسَى إِمَّا أَنْ تُلْقِيَ} عَصَاكَ {وَإِمَّا أَنْ نَكُونَ نَحْنُ الْمُلْقِينَ} مَا مَعَنَا {قَالَ أَلْقُوا} أَمْرٌ لِلْإِذْنِ بِتَقْدِيمِ إِلْقَائِهِمْ تَوَصُّلًا بِهِ إِلَى إِظْهَارِ الْحَقِّ {فَلَمَّا أَلْقَوْا} حِبَالَهُمْ وَعِصِيَّهُمْ {سَحَرُوا أَعْيُنَ النَّاسِ} صَرَفُوهَا عَنْ حَقِيقَةِ إِدْرَاكِهَا {وَاسْتَرْهَبُوهُمْ} خَوَّفُوهُمْ حَيْثُ خَيَّلُوهَا حَيَّاتٍ تَسْعَى {وجاءوا بسحر عظيم} {وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ أَنْ أَلْقِ عَصَاكَ فَإِذَا هِيَ تَلْقَفُ} بِحَذْفِ إِحْدَى التَّاءَيْنِ فِي الْأَصْلِ تَبْتَلِعُ {مَا يَأْفِكُونَ} يَقْلِبُونَ بِتَمْوِيهِهِمْ {فَوَقَعَ الْحَقُّ} ثَبَتَ وَظَهَرَ {وَبَطَلَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} مِنَ السِّحْرِ {فَغُلِبُوا} أَيْ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُ {هُنَالِكَ وَانْقَلَبُوا صَاغِرِينَ} صَارُوا ذَلِيلِينَ {وألقى السحرة ساجدين} {قالوا آمنا برب العالمين} {رَبِّ مُوسَىٰ وَهَارُونَ} لِعِلْمِهِمْ بِأَنَّ مَا شَاهَدُوهُ مِنَ الْعَصَا لَا يَتَأَتَّى بِالسِّحْرِ {قال فرعون آمنتم} بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَإِبْدَالِ الثَّانِيَةِ أَلِفًا {بِهِ} بِمُوسَى {قَبْلَ أَنْ آذَنَ} أَنَا {لَكُمْ إِنَّ هَٰذَا} الَّذِي صَنَعْتُمُوهُ {لَمَكْرٌ مَكَرْتُمُوهُ فِي الْمَدِينَةِ لِتُخْرِجُوا مِنْهَا أَهْلَهَا فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ} مَا يَنَالُكُمْ مِنِّي {لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ مِنْ خِلَافٍ} أَيْ يَدَ كُلِّ وَاحِدٍ الْيُمْنَى وَرِجْلَهُ الْيُسْرَى {ثم لأصلبنكم أجمعين} {قَالُوا إِنَّا إِلَىٰ رَبِّنَا} بَعْدَ مَوْتِنَا بِأَيِّ وَجْهٍ كَانَ {مُنْقَلِبُونَ} رَاجِعُونَ فِي الْآخِرَةِ {وَمَا تَنْقِمُ} تُنْكِرُ {مِنَّا إِلَّا أَنْ آمَنَّا بِآيَاتِ رَبِّنَا لَمَّا جَاءَتْنَا رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا} عِنْدَ فِعْلِ مَا تَوَعَّدَنَا بِهِ لِئَلَّا نَرْجِعَ كُفَّارًا {وتوفنا مسلمين}

**ترجمه:** دَ فرعون په قوم کښې چې کوم خلق سرداران وو هغوی اووئیل چې واقعی دا سړې لوئی ماهرجادوگردې يعنى دسحرپه علم کښې ماهردې او په سورت الشعراء کښې داقول دَفرعون طرف ته منسوب دې نوکیدې شی چې خلقو فرعون سره دَ مشورې په توگه وئیلی وی دَدې مقصدخودادې چې تاسو ستاسودَ ملک نه بهراوباسی نوتاسو خلق څه مشوره ورکوئی؟ هغوی مشوره ورکړه چې ته ده ته اوده رور ته مهلت ورکړه يعنى (في الحال) دَهغوی معامله روستوکړه او په ښارونوکښې جمع کوکی هرکاران اولیږئی چې هغوی تاله هرماهر جادوگر راولی حاضرئی کړی او په یو قراءت کښې سحّاردې په علم سحرکښې چې کوم

فوقیت لري نو هغوی را جمع شو، هغه جادوګر فرعون له راغلل او عرض ئې اوکړو که چرې مونږ غالب راغلونو آیا مونږ ته به څه لویه صله (انعام) ملاویږي (فرعون) اووئیل او تاسو به په مقربینو کښې شامل کړې شئ (جادوګرو) موسی علیه السلام ته اووئیل اې موسی (همسا) ته وړاندې غورځوې یا څه چې مونږ سره دي مونږ هغه اوغورځوو، موسی علیه السلام جواب ورکړو چې هم تاسوئې اوغورزوئې ﴿اَلْقُوْا﴾ امرهغوئ ته دغورځولو د اجازت دپاره دې دې دپاره چې وړاندې غورزول د حق د اظهار وسیله جوړه شي (داامرد حکم دپاره نه دې) کوم وخت چې هغوی خپلې رسئي اولرګي اوغورزول نود خلقو نظربندي ئې اوکړه یعني حقیقت باندې د پوهیدلو نه یئ بند کړل اوهغوی ئې اویرول یعني هغوی ئې داسې اوویرول چې هغوی (دغه لرګي او رسئي) منډې وهونکي ماران اوګنړل (دغه شان) هغوی یولوئې جادوپیش کړو، اومونږ موسی علیه السلام ته حکم ورکړوچې ته هم خپله همسا اوغورزوه نوناڅاپي هغې د جادوجوړشوي څیزونه تیرول شروع کړه (تلقفُ) په اصل کښې د یوتاء په حذف سره دې په معنی د ژوندی تیرولو ﴿مَا يَأْفِكُوْنَ﴾ مراد څه چې هغوی د لاس صفائي پیش کوله حق ثابت اوښکاره شو اوکوم جادوی چې هغوی پیش کړې وو هغه لاړو. فرعون اودهغه قوم هم په موقع باندې ماتې اوخوړلواو (ښه) ذلیل واپس شو یعني ښه (ذلیل اوخوار) شو او جادګرپه سجده پریوتل (جادوګرو) اووئیل مونږپه رب العالمین باندې ایمان راوړو کوم چې د موسی علیه السلام او هارون علیه السلام هم رب دې هغوی ته دَدې خبرې دَعلم کیدو د وجې نه څه چې هغوی د حضرت موسی علیه السلام په همساکښې مشاهده کړو هغه د جادو په ذریعه ممکن نه وو، فرعون اووئیل آیا تاسو زما دَاجازت نه بغیرپه موسی علیه السلام باندې ایمان راوړو بیشکه دا یوپټ سازش وو کوم ته چې تاسو په دې ښارکښې عملي جامه واغوسته دې دپاره چې تاسو د ښار اوسیدونکي دَدې ځائې نه بې دخل کړئې ښه اوس به تاسو ته ډیره زر هغه نتیجه معلومه شي کومه چې زما د طرف نه ښکاره کیدونکې ده، زه به ستاسو خپې لاسونه د مخالف طرف نه کټ کړم یعني د هریوښې لاس اوګسه خپه بیابه تاسو ټول په سولئ کړم، هغوی جواب ورکړو بهرحال زمونږ دَمرګ نه پس په کوم حال کښې چې هم وی دَخپل رب طرف ته په آخرت کښې واپس کیدل دی یو اوته چې په کومه خبره زمونږ نه انتقام اخستل غواړې هغه دَدې نه سوا هیڅ هم نه دی چې زمونږ د رب نخښې کله چې زمونږ مخې ته راغلې (واضحه شوې) نو مونږ هغه اومنلې اې زمونږ ربه ته په مونږ باندې دَصبر فیضان اوکړه کله (چې فرعون) خپلې درکې ته عملي جامه اغوندي دې دپاره چې مونږ دکفرحالت ته واپس نه شو اومونږ ته (د دنیانه) په داسې حال کښې اوچت کړې چې مونږ حکم منونکي یو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** علیٰ سَبِیْلِ التَّشَاوُرِ دَدې اضافې مقصد د سورت الشعراء اودَدې ځائې په مضمون کښې تطبیق ورکولو سره تعارض لرې کول دی. اٰمرامرها،اٰی لاتعجل فی قتله.

**قوله:** مَامَعَنَا په دې کښې اشاره ده چې دَ الملتين مفعول محذوف دې.
**قوله:** تَوَسُّلاً داددې سوال جواب دې چې سحر يوممنوع وناخوښه کړې شوې څيز دې حضرت موسىٰ ﷺ ولې دَدې حکم ورکړو؟ دَجواب حاصل دادې چې دا امر نه دَ ادب په توګه دې او نه د په توګه بلکه داامر دَاجازت دَپاره دې اودَدې اجازت مقصد هم دادې چې دَدې په ذريعه دَ باطل ابطال اودَ حق اظهار اوشي، يأفكون، دا إفك (ض) نه جمع مذکرغائب دې يعنی واپس کيدل، الافك صرف الشيء عن جهه.
**قوله:** أَرْجِهْ دا دَ إرجاء نه واحدمذکرحاضر صيغه ده هغه ته مهلت ورکړه په دې کښې ہُ ضميرمفعولی دې چې موسىٰ ﷺ ته راجع دې.

**[اياتونه: ۱۲۷ - ۱۲۹]**

{وَقَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ} لَهُ {أَتَذَرُ} تترك {مُوسَى وَقَوْمَهُ لِيُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ} بالدُّعاءِ إلى مُخالَفتك {وَيَذَرَكَ وَآلِهَتَكَ} وَكَانَ صَنَعَ لَهُمْ أَصْنَامًا صِغَارًا يَعْبُدُونَهَا وَقَالَ أَنَا رَبُّكُمْ وَرَبُّهَا وَلِذَا قَالَ أَنَا رَبُّكُمُ الأَعْلَى {قَالَ سَنُقَتِّلُ} بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيفِ {أَبْنَاءَهُمْ} الْمَوْلُودِينَ {وَنَسْتَحْيِي} نَسْتَبْقِي {نِسَاءَهُمْ} كَفِعْلِنَا بِهِمْ مِنْ قَبْلُ {وَإِنَّا فَوْقَهُمْ قَاهِرُونَ} قَادِرُونَ فَفَعَلُوا بِهِمْ ذَلِكَ فَشَكَا بَنُو إِسْرَائِيلَ {قَالَ مُوسَى لِقَوْمِهِ اسْتَعِينُوا بِاللَّهِ وَاصْبِرُوا} عَلَى أَذَاهُمْ {إِنَّ الْأَرْضَ لِلَّهِ يُورِثُهَا} يُعْطِيهَا {مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَالْعَاقِبَةُ} الْمَحْمُودَةُ {لِلْمُتَّقِينَ} اللهَ {قَالُوا أُوذِينَا مِنْ قَبْلِ أَنْ تَأْتِيَنَا وَمِنْ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا قَالَ عَسَى رَبُّكُمْ أَنْ يُهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ} فيها

**ترجمه:** دَ فرعون دَ قوم سردارانو فرعون ته اووئيل آيا ته به موسىٰ ﷺ اودَهغه قوم داسې پريږدې چې ستادَ مخالفت دعوت ورکولوسره په ملک کښې فسادخورکړی اوتا اوستامعبودان پريږدی دَهغوئ دَپاره ئې واړه بتان جوړکړی ووچې دَهغې به هغوئ عبادت کولو اوفرعون دَدې خبرې دعوی کونکې ووچې زه ستاسوهم رب يم او اودَ دغه بتانو هم، اوهم په دې وجه هغه اووئيل چې زه ستاسو لوئی خدائی يم، فرعون اووئيل چې زه به دَهغوی ځامن قتل کوم (سَنُقَتِّلُ) تشديد اوتخفيف سره دې اودَهغوی ښځې به ژوندئی پريږدم لکه څنګه چې مونږ هغوی سره دغه شان مخکښې هم کړی دی اويقينًا مونږ په هغوی قدرت لرو، فرعون هغوی سره هم دغه معامله اوکړه نوبنی اسرائيلوشکايت اوکړو موسىٰ ﷺ خپل قوم ته اووئيل دَالله تعالى نه امداد غواړئې اودَدوی په تکليفونورسولوصبرکوئې زمکه دَالله تعالى ملک دې اوهغه چې خپلو بنديګانوکښې چالره غواړی وارث به ئې جوړکړی، وربه ئې کړی، او بهترانجام دَ الله تعالى نه دَ ويريدونکودې، دَ موسىٰ ﷺ دَ قوم خلقو اووئيل ستاسو دَ راتلونه وړاندې به هم مونږ تنګولې شو اوستاسو دَ راتلو نه پس هم مونږ تنګوی، موسىٰ ﷺ

او وئیل چې هغه وخت نیزدې دې چې ستاسو رب به ستاسو دښمن هلاک کړي او تاسو به په زمکه کښې خلیفه جوړ کړي بیا به تاسو گوري چې تاسو په زمکه کښې څنګه عمل کوئی؟

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** وَيَذَرَكَ دَ دې عطف په يُفْسِدُوْا باندې دې په أَتَذَرُ موسى کښې استفهام انکاری دې مقصد فرعون لره دَ موسى عليه السلام او دَ هغه دَ قوم خلاف راؤچتول دی او وَيَذَرَكَ کښې واؤ معیت دَپاره دې او يَذَرَكَ دَ واؤنه پس دَ أَن مقدره دَ وجې نه منصوب دې جواب دَاستفهام کیدو دَ وجې نه.

**قوله:** يَذَرَكَ، يَذَرُ، وَذَرَ نه مضارع واحد مذکرغائب دا په اصل کښې يَوْذِرُ وو (ض) دَمضارع عمومی تلفظ (س) نه کولې شی په معنی د پریخودلو.

**[ایاتونه: ۱۳۰-۱۴۱]**

---

{وَلَقَدْ أَخَذْنَا آلَ فِرْعَوْنَ بِالسِّنِينَ} بِالْقَحْطِ {وَنَقْصٍ مِنَ الثَّمَرَاتِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ} يَتَّعِظُونَ فَيُؤْمِنُونَ {فَإِذَا جَاءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ} الْخِصْبُ وَالْغِنَى {قَالُوا لَنَا هَذِهِ} أَيْ نَسْتَحِقُّهَا وَلَمْ يَشْكُرُوا عَلَيْهَا {وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ} جَدْب وَبَلَاء {يَطَّيَّرُوا} يَتَشَاءَمُوا {بِمُوسَى وَمَنْ مَعَهُ} مِنَ الْمُؤْمِنِينَ {أَلَا إِنَّمَا طَائِرُهُمْ} شُؤْمُهُمْ {عِنْدَ اللَّهِ} يَأْتِيهِمْ بِهِ {وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ} أَنَّ مَا يُصِيبُهُمْ مِنْ عِنْدِه {وَقَالُوا} لِمُوسَى {مَهْمَا تَأْتِنَا بِهِ مِنْ آيَةٍ لِتَسْحَرَنَا بِهَا فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ} فَدَعَا عليهم {فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ} وَهُوَ مَاء دَخَلَ بُيُوتَهُمْ وَوَصَلَ إِلَى حُلُوقِ الْجَالِسِينَ سَبْعَةَ أَيَّام {وَالْجَرَادَ} فَأَكَلَ زَرْعَهُمْ وَثِمَارَهُمْ كَذَلِكَ {وَالْقُمَّلَ} السُّوس أَوْ نَوْع مِنَ الْقُرَاد فَتَتَبَّعَ مَا تَرَكَهُ الْجَرَاد {وَالضَّفَادِعَ} فَمَلَأَتْ بُيُوتَهُمْ وَطَعَامَهُمْ {وَالدَّمَ} فِي مِيَاهِهِمْ {آيَاتٍ مُفَصَّلَاتٍ} مُبَيَّنَات {فَاسْتَكْبَرُوا} عَنِ الْإِيمَان بِهَا {وَكَانُوا قَوْمًا مُجْرِمِينَ} {وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ الرِّجْزُ} الْعَذَاب {قَالُوا يَا مُوسَى ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ} مِنْ كَشْفِ الْعَذَابِ عَنَّا إِنْ آمَنَّا {لَئِنْ} لَام قَسَم {كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِي إِسْرَائِيلَ} {فَلَمَّا كَشَفْنَا} بِدُعَاءِ مُوسَى {عَنْهُمُ الرِّجْزَ إِلَى أَجَلٍ هُمْ بَالِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنْكُثُونَ} يَنْقُضُونَ عَهْدَهُمْ وَيُصِرُّونَ عَلَى كُفْرِهِمْ {فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَاهُمْ فِي الْيَمِّ} الْبَحْر الْمِلْح {بِأَنَّهُمْ} بِسَبَبِ أَنَّهُمْ {كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا عَنْهَا غَافِلِينَ} لَا يَتَدَبَّرُونَهَا {وَأَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِينَ كَانُوا يُسْتَضْعَفُونَ} بِالِاسْتِعْبَادِ وَهُمْ بَنُو إِسْرَائِيل {مَشَارِقَ الْأَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا} بِالْمَاءِ وَالشَّجَر صِفَة لِلْأَرْضِ وَهِيَ الشَّام {وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ الْحُسْنَى} وَهِيَ قَوْله تَعَالَى {وَنُرِيدُ أَنْ نَمُنَّ عَلَى الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْأَرْضِ} الخ {عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ بِمَا صَبَرُوا} عَلَى أَذَى عَدُوِّهِمْ {وَدَمَّرْنَا} أَهْلَكْنَا {مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُ} مِنَ الْعِمَارَة {وَمَا كَانُوا يَعْرِشُونَ} بِكَسْرِ الرَّاءِ وَضَمِّهَا يَرْفَعُونَ مِنَ الْبُنْيَان {وَجَاوَزْنَا} عَبَرْنَا {بِبَنِي إِسْرَائِيلَ الْبَحْرَ فَأَتَوْا} فَمَرُّوا {عَلَى قَوْمٍ يَعْكُفُونَ} بِضَمِّ الْكَاف وَكَسْرِهَا {عَلَى أَصْنَامٍ لَهُمْ} يُقِيمُونَ عَلَى عِبَادَتِهَا {قَالُوا يَا مُوسَى اجْعَلْ لَنَا إِلَهًا} صَنَمًا نَعْبُدُهُ {كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ} حَيْثُ قَابَلْتُمْ نِعْمَة

{قَالَ أَغَيْرَ اللَّهِ أَبْغِيكُمْ} ... {إن هؤلاء متبر} هالك {ما هم فيه وباطل ما كانوا يعملون} اللّٰه عَلَيْكُمْ بِمَا قُلْتُمُوهُ
إِلٰهًا} مَعْبُودًا وَأَصله أَبْغِي لَكُمْ {وَهُوَ فَضَّلَكُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ} فِي زَمَانِكُمْ بِمَا ذَكَرَهُ فِي قَوله {وَ} اذْكُرُوا
{إِذْ أَنْجَيْنَاكُمْ} وَفِي قِرَاءَة أَنْجَاكُمْ {مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ} يُكَلِّفُونَكُمْ وَيُذِيقُونَكُمْ {سُوءَ الْعَذَابِ}
أشده وهو {يقتلون أبناءكم ويستحيون} يستبقون {نساءكم وَفِي ذٰلِكُمْ} الْإِنْجَاء أَوْ الْعَذَاب {بَلَاءٌ}
إِنْعَام أَوْ ابْتِلَاء {مِنْ رَبِّكُمْ عَظِيمٌ} أَفَلَا تَتَّعِظُونَ فَتَنْتَهُوا عَمَّا قُلْتُمْ

ترجمه: مونږ دَفرعون خلق په قحط اود پيداوار په کمی کښې (دَ خوکالوپورې) راګير کړل دي دَپاره چې هغوی نصيحت قبول کړی اوايمان راوړی، (مګرحال دا وو) چې کله به دَخوشحالۍ آبادئی او مالدارئی زمانه راغله نووئيل به ئی مونږ هم دَدې حقداريو او په دې به ئی دَالله تعالی شکرنه کولو، اوکله چې به په هغوی باندې بدحالی او اوچ کالی او دَمصيبت زمانه راتله نو په موسی عليه السلام اودَهغه په مؤمنانوملګروبه ئی دَ سپيره والی الزام لګولو (حالانکه حقيقت خودادې چې دَهغوی نحوست دالله تعالی سره دې هم دَهغه دَطرف نه راځی خو په دوی کښې اکثرخلق دَدې نه ناخبره وو چې څه راځی نوهم دَالله تعالی دَطرف نه راځی، هغوی موسی عليه السلام ته اووئيل چې زمونږ دَمسحورکولودَپاره هرڅنګه نخښې راوړې مونږ ستادَ خبرې يقين کونکی نه يو، موسی عليه السلام دَهغوی دَپاره خيرې اوکړې نومونږ په هغوی باندې طوفان راوليږلو او هغه دومره زياتې اوبه وې چې دَهغوی په کورونوکښې داخل شوې او دَ ناست خلقو دَ مرئی پورې اورسيدلې، اودا صورت حال تر اووه ورځوپورې وو. او ملخان مو راوليږل چې دَهغوی فصلونه اوميوې ئی اوخوړلې اوسپګې مو اوليږلې يا مراد دَ کونوپه شان څه قسم دي مطلب داچې دَ ملخانونه څه پاتې شو نو هغه سپګو صفاکړل اوچيندخې مو راوليږلې چې دَهغوی کورونه او خوراکونه ترې ډک شو اودَهغوی په اوبوکښې مو دَ وينې ګډوالې اوکړو (دا ټولې) ښکاره ښکاره معجزې وې په دغه معجزو باندې دَايمان راوړلونه يې ډډه اوکړه اوداخووهم مجرمان خلق، اوکله چې به په دوی باندې مصيبت نازليدلو نووئيل به ئی اې موسی عليه السلام ته زمونږدَپاره دَ خپل رب نه دَهغه عهد په ذريعه دکوم چې هغه تاسره عهد کړې دې چې که مونږايمان راوړو نومونږ نه مصيبت اخوا کړی دعااوکړئی لئن کښې لام دَ قسم دَپاره دې که چرې ته زمونږ نه دامصيبت اخواکړې نو مونږ به په تاباندې ضرور ايمان راوړو او خامخابه بنی اسرائيل تاسره اوليږو، اوکله چې به مونږ دَ موسی عليه السلام په دعاسره دَيومحدود وخت پورې په کوم کښې چې به هغوی ته دغه عذاب رسيدونکې وو دَ رسيدونه پس اخوا کولونو زربه ئی خپل عهد ماتولو او په خپل کفربه ولاړوو بيا مونږ دَهغوی نه انتقام واخستونومونږ هغوی په دريائې شورکښې غرق کړل په دې وجه چې هغوی به زمونږآياتونه دروغ ګڼړل اودَهغې نه به ئی غفلت کولو يعنی په هغې کښې به ئی غوراوفکرنه کولو اودَهغوی په ځائی مونږ هغه خلق کوم چې

کمزوري کړې شوي وو يعنى غلامان جوړکړې شوي وو هغه بنى اسرائيل وو دَهغه زمکې دَ مشرق نه تر مغرب پورې وارثان جوړکړل کومه چې مونږ دَ اوبواو ونوپه ذريعه دَ برکتونونه ډکه کړې وه (الَّتِيْ بَارَكْنَا فِيْهَا) دَ ارض صفت دې اوهغه دَ شام ملك دې، دغه شان دَ بنى اسرائيلوپه حق کښې ستادَ رب وعده دَ خير دَهغوى دَ دښمن په تکليف رسولوباندې دَ صبر په وجه پوره شوه. اوهغه وعده دَ الله تعالى قول وَنُرِيْدُ اَنْ نَّمُنَّ عَلَى الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوا الخ دې، فرعون اودَهغه قوم چې اوچت اولوړ عمارتونه جوړکړى وو هغه مونږ بربادکړل، (يعرشون) دَ راء په کسرې او ضمې سره اوچت عمارتونه جوړول، اومونږ بنى اسرائيل دَ درياب نه پورې ويستل نودَ هغوى په يوداسې قوم باندې تيريدل اوشو چې خپلو يوڅو بتانوسره انختې وو (يعكفون) دکاف په ضمې اوکسرې سره، يعنى دَهغې په عبادت باندې کلك ولاړوو وئى وئيل اې موسى عليه السلام زمونږ دَپاره هم يوداسې معبود (يعنى) بت جوړکړه دَ کوم چې مونږبندگى اوکړو لکه څنگه چې دَدې خلقو دى، موسى عليه السلام اوفرمائيل تاسو خلق دلوې جهالت خبرې کوئى څکه چې تاسو په خپل څان باندې دَ نعمتونو په صله کښې داسې خبرې کوئى، داخلق چې په کوم کارکښې اخته دى هغه به يقينًا تباه کړې شى اوڅه چې کوى هغه سراسر باطل دى، موسى عليه السلام اووئيل(آيا) ولې زه ستاسودَپاره دَ الله تعالى نه بغيرېل څوک معبود اولټوم، دَ (أبغيكم) اصل أبغى لكم وو حالانکه هغه هم الله تعالى دې چا چې تاسو ته دَخپلې زمانې په قومونو باندې فضيلت درکړې دې کوم (فضيلت) چې په خپل قول وَاِذْ اَنْجَيْنٰكُمْ کښې ذکر کړې دې او(الله تعالى فرمائى)هغه وخت يادکړئى کوم وخت چې مونږ تاسو ته دفرعونيانونه خلاصې درکړو او په يوقراءت کښې أنجاكم دې چې تاسو ئى په تکليف کښې اخته کړى وئى او تاسوته ئى دَ خراب عذاب (خوند) درڅکلو اوهغه دا وو چې ستاسو څامن به ئى قتلول او ستاسو ښځې به ئى ژوندئى پريخودلې او په دې نجات يا عذاب کښې ستاسو دَ رب دَ طرف نه امتحان انعام عظيم دې يا ابتلاء ده دې آيا تاسو نصيحت نه حاصلوئى چې دَ دغه خبرونه منع شئ کومې چې تاسواوکړې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** سِنِيْنَ، دَ سَنَةٌ جمع ده، کال، قحط، اوچ کالى.

**قوله:** نَسْتَحِقُّهَا مونږ دَدې مستحق يو په دې کښې اشاره ده چې په لَنَا هٰذِهٖ کښې لام دَاستحقاق دې.

**قوله:** مَهْمَا ددې اصل ماما مکرر وو ړومبې ما شرطيه او دويمه دَتاکيددَپاره، دَثقل ختمولودَپاره دَړومبى الف په هاء سره بدل کړې شو مَهْمَاشو.

**قوله:** يَتَشَاءَمُوْنَ، د يطيّروا تفسيرپه يتشاءمون سره کولوکښې يئ اشاره اوکړه چې يتطيّرد طيران نه ماخوذ نه دې بلکه دتَطيُّرٌ نه ماخوذ دې، دَدې دوه معنې راځى نصيب که

دَخیروی اوکه دَشر، یعنی خوش نصیبی اوبدنصیبی دواړو معنوکښې استعمالیږی، دویمه معنی یئ دَ تشاؤم ده دَدې معنی دَ نحوست ده مفسرعلام ﷫تفسیر په تشاؤم سره کولو کښې دَ معنی تعین اوکړو.

**قوله:** هُمْ بَالِغُوهُ الغرای إلی نهایة من الزمان.

**قوله:** إذاهم دا دَ لَمَّا جواب دې.

**قوله:** عَبَرنا، داددې سوال جواب دې چې په جَاوَزَ صله باء نه راځی ځکه چې جاوز متعدی بنفسه دې حالانکه دلته باء صله راغلې ده. جواب دادې چې جَاوَزَ دعَبَرَ معنی لره متضمن دې لهذا دَدې صله باء راوړل صحیح شو.

**قوله:** هو: هُو مقدرمنلوسره یئ اشاره اوکړه چې یقتلون جمله مستانفه ده په ماقبل باندې دَدې عطف صحیح نه دې.

**[ایاتونه: ۱٤۲ - ۱٤۷]**

{وَوَاعَدْنَا} بِأَلِفٍ وَدُونِهَا {مُوسَى ثَلَاثِينَ لَيْلَةً} نُكَلِّمُهُ عِنْد انْتِهَائِهَا بِأَنْ يَصُومهَا وَهِيَ ذُو الْقَعْدَة فَصَامَهَا فَلَمَّا تَمَّتْ أَنْكَرَ خُلُوف فَمه فَاسْتَاكَ فَأَمَرَهُ اللّٰه بِعَشَرَةٍ أُخْرَى لِيُكَلِّمهُ بِخُلُوفِ فَمه كَمَا قَالَ تَعَالَى {وَأَتْمَمْنَاهَا بِعَشْرٍ} مِنْ ذِي الْحِجَّة {فَتَمَّ مِيقَاتُ رَبِّهِ} وَقْت وَعْده بِكَلَامِهِ إِيَّاهُ {أَرْبَعِينَ} حَال {لَيْلَةً} تَمْيِيز {وَقَالَ مُوسَى لِأَخِيهِ هَارُونَ} عِنْد ذَهَابه إِلَى الْجَبَل لِلْمُنَاجَاةِ {اخْلُفْنِي} كُنْ خَلِيفَتِي {فِي قَوْمِي وَأَصْلِحْ} أَمْرهمْ {وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ الْمُفْسِدِينَ} بِمُوَافَقَتِهِمْ عَلَى الْمَعَاصِي {وَلَمَّا جَاءَ مُوسَى لِمِيقَاتِنَا} أَيْ لِلْوَقْتِ الَّذِي وَعَدْنَاهُ بِالْكَلَامِ فِيهِ {وَكَلَّمَهُ رَبُّهُ} بِلَا وَاسِطَة كَلَامًا سَمِعَهُ مِنْ كُلّ جِهَة {قَالَ رَبِّ أَرِنِي} نَفْسك {أَنْظُرْ إِلَيْكَ قَالَ لَنْ تَرَانِي} أَيْ لَا تَقْدِر عَلَى رُؤْيَتِي وَالتَّعْبِير بِهِ دُون لَنْ أُرَى يُفِيد إِمْكَان رُؤْيَته تَعَالَى {وَلَكِنِ انْظُرْ إِلَى الْجَبَلِ} الَّذِي هُوَ أَقْوَى مِنْك {فَإِنِ اسْتَقَرَّ} ثَبَتَ {مَكَانَهُ فَسَوْفَ تَرَانِي} أَيْ تَثْبُت لِرُؤْيَتِي وَإِلَّا فَلَا طَاقَة لَك {فَلَمَّا تَجَلَّى رَبُّهُ} أَيْ ظَهَرَ مِنْ نُوره قَدْر نِصْف أُنْمُلَة الْخِنْصَر كَمَا فِي حَدِيث صَحَّحَهُ الْحَاكِم {لِلْجَبَلِ جَعَلَهُ دَكًّا} بِالْقَصْرِ وَالْمَدّ أَيْ مَدْكُوكًا مُسْتَوِيًا بِالْأَرْضِ {وَخَرَّ مُوسَى صَعِقًا} مَغْشِيًّا عَلَيْهِ لِهَوْلِ مَا رَأَى {فَلَمَّا أَفَاقَ قَالَ سُبْحَانَكَ} تَنْزِيهًا لَك {تُبْتُ إِلَيْكَ} مِنْ سُؤَال مَا لَمْ أُؤْمَر بِهِ {وَأَنَا أَوَّلُ الْمُؤْمِنِينَ} فِي زَمَانِي {قَالَ} تَعَالَى لَهُ {يَا مُوسَى إِنِّي اصْطَفَيْتُكَ} اخْتَرْتُك {عَلَى النَّاسِ} أَهْل زَمَانك {بِرِسَالَاتِي} بِالْجَمْعِ وَالْإِفْرَاد {وَبِكَلَامِي} أَيْ تَكْلِيمِي إِيَّاكَ {فَخُذْ مَا آتَيْتُكَ} مِنَ الْفَضْل {وَكُنْ مِنَ الشَّاكِرِينَ} لِأَنْعُمِي {وَكَتَبْنَا لَهُ فِي الْأَلْوَاحِ} أَيْ أَلْوَاح التَّوْرَاة وَكَانَتْ مِنْ سِدْر الْجَنَّة أَوْ زَبَرْجَد أَوْ زُمُرُّد سَبْعَة أَوْ عَشَرَة {مِنْ كُلِّ شَيْءٍ} يَحْتَاج إِلَيْهِ فِي الدِّين {مَوْعِظَةً وَتَفْصِيلًا} تَبْيِينًا {لِكُلِّ شَيْءٍ} بَدَل مِنَ الْجَار وَالْمَجْرُور قَبْله {فَخُذْهَا} قَبْله قُلْنَا مُقَدَّرًا {بِقُوَّةٍ} بِجِدّ وَاجْتِهَاد {وَأْمُرْ قَوْمَكَ يَأْخُذُوا بِأَحْسَنِهَا سَأُرِيكُمْ دَارَ الْفَاسِقِينَ} فِرْعَوْن وَأَتْبَاعه وَهِيَ مِصْر لِتَعْتَبِرُوا بِهِم {سَأَصْرِفُ عَنْ آيَاتِيَ} دَلَائِل قُدْرَتِي مِنَ الْمَصْنُوعَات

وَغيْرِهَا {الَّذِينَ يَتَكَبَّرُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ} بِأَنْ أَخْذَلهمْ فَلا يَتَكَبَّرُونَ فِيهَا {وَإِنْ يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَا يُؤْمِنُوا بِهَا وَإِنْ يَرَوْا سَبِيلَ} طَرِيق {الرُّشْدِ} الْهُدَى الَّذِي جَاءَ مِنْ عِنْدِ اللهِ {لَا يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا} يَسْلُكُوهُ {وَإِنْ يَرَوْا سَبِيلَ الْغَيِّ} الضَّلال {يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا ذَٰلِكَ} الصَّرْف {بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا عَنْهَا غَافِلِينَ} تقدم مثله {وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَلِقَاءِ الْآخِرَةِ} الْبَعْث وَغَيْره {حَبِطَتْ} بَطَلَتْ {أَعْمَالُهُمْ} مَا عَمِلُوهُ فِي الدُّنْيَا مِنْ خَيْرٍ كَصِلَةِ رَحِم وَصَدَقَة فَلا ثَوَاب لَهُمْ لِعَدَمِ شَرْطه {هَلْ} مَا {يُجْزَوْنَ إِلَّا} جَزَاء {مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} مِنَ التَّكْذِيب وَالْمَعَاصِي

ترجمه: اومونږ موسی علیه السلام سره دَ دیرشو شپو وعده اوکړه چې دَدې مودې پوره کیدونه پس به هغه ده سره کلام کوی (وَاعَدْنَا) په الف سره او بغیرد الف نه (وعدنا) په دې توګه چې موسیٰ علیه السلام په دغه موده کښې روژه اوساتی اودا د ذوالقعده میاشت وه، حضرت موسیٰ علیه السلام دَدغه مودې روژې اوساتلې کله چې (دیرش ورځې) پوره شوې، نوحضرت موسیٰ علیه السلام ته دَخپلې خلې دَ بوئی کرکه محسوس شوه نوهغه مسواك اوکړو نوالله تعالی دَنورو لسو ورځوحکم اوکړو چې موسیٰ علیه السلام دَ خلې د بوئی سره دالله سره کلام اوکړی لکه چې الله تعالی اوفرمائیل اومونږ دَ دغه دیرشو ورځومودہ دَ ذی الحجه نورو لسو ورځوسره پوره کړه نو دَالله تعالی سره دَ کلام کولودَهغه دَ رب دَ وعدې څلویښتوشپو موده پوره شوه، أربعين (دميقات) نه حال دې لَيلة تميز دې په غرباندې د مناجات له تللوپه وخت کښې حضرت موسی علیه السلام خپل رور هارون علیه السلام ته اوفرمائیل زما په قوم کښې زمادَ جانشینۍ فرائض پوره کوه او دَهغوی دَمعاملاتو اصلاح کوه او په معاصی کښې موافقت کولوسره دَ مفسدانو اتباع مه کوه اوکله چې موسی علیه السلام زمونږ په مقرروخت یعنی په هغه وخت کوم چې مونږ د هغه سره دکلام کولو دَپاره مقرر کړې وو راغلو اودَهغه رب هغه سره بلاواسطه کلام اوکړو داسې کلام چې دَهرطرف نه به اوریدلې شو نو(موسی علیه السلام) عرض اوکړو اې زما پروردګار ته ماته خپل دیدار اوکړه دې دَپاره چې تااووینم، ارشاد اوشو چې ته ما هیڅ کله نه شې لیدلې یعنی ته زما دَ لیدلو طاقت نه لرې دَ (لَنْ تراني) تعبیردَ الله تعالی دَ امکان رؤیت فائده ورکوی نه چې لَنْ أرى لیکن ته دغه غرته ګوره چې تانه ډیر قوی دې که هغه په خپل ځائی باندې پاتې شو نو ته به ما اولیدلې شې یعنی ته به زمادَ دیداردَپاره ثابت پاتې شې ګنی په تاکښې دَدې طاقت نشته، کله چې دَهغه رب په غرباندې تجلی اوفرمائیله یعنی دهغه نور دَ کچې ګوتې دَ نیم بند هومره ظاهرشو لکه چې په حدیث کښې دی (او) حاکم دا (حدیث) صحیح ګرځولې دې نو هغه غرېې ذره ذره کړو (دَكًا) په قصر اومد سره دې یعنی چوری چوری یې کړو زمکې سره یې یوشان کړو او موسی علیه السلام چې څه اولیدل دَهغې دَ خطرناکۍ د وجې بې هوشه پریوتلو بیاچې کله موسی علیه السلام په هوش کښې راغلو نو عرض ئې اوکړوستادَ پاره (دَهرنقص) نه پاکوالې

دې زه دهرداسې سوال کولونه د کوم چې ماته حکم نه دې راکړې شوې تاته توبه کوم او زه دخپلې زمانې د اول ایمان والونه یم الله تعالی موسی ﷺ ته ارشاد اوفرمائیلو اې موسی ماته ستاپه زمانه کښې په ټولوخلقوکښې دخپل رسالت او کلام کولودپاره منتخب کړې ئې (رسالاتي) د جمع اوافرادسره دې یعنی زما تاسره کلام کولودپاره، نوکوم څه چې ماتاته دخپل فضل نه درکړی دی هغه واخله اوزمادنعمتونو شکراداکړه اوموږ موسی ﷺ دپاره د تورات په یو څو تختوکښې چې د جنت د بیرې د ونې یا زبرجد یا زمرد اووه یالس وې هرقسم نصیحت دکوم چې په دین کښې ضرورت وی اودهرڅیزتفصیل اولیکلو (موعظة او تفصیلاً) دخپل ماقبل جارمجرور د (محل) نه بدل دې (مونږ اووئیل) دا په پوره طاقت او کوشش سره اونیسه (فخذها) نه وړاندې قلنا مقدر دې اوخپل قوم ته حکم اوکړه چې ددې ښه (یعنی د عزیمت) احکام کلک اونیسئ زه به ډیر زر دحد نه تجاوزکونکو (یعنی) دفرعون اود هغه داتباع کونکوکور دراوښایم اوهغه مصردې دې دپاره چې تاسو دهغې نه عبرت حاصل کړئی په خپلو ایاتونو مصنوعات وغیره د خپل قدرت دلائلو داسې خلق لرې ساتم چې په زمکه کښې ناحق کبرکوی په داسې توګه چې زه به هغوی ذلیل کړم بیابه هغوی په دغه دلائلوکښې غور اوفکر اونه کړې شی اوکه چرې هغوی ټولې نخښې اووینی بیابه هم په دې باندې ایمان رانوړی اوکه چرې هغوی د هدایت طریقه اوګوری چې دالله تعالی د طرف نه راغلې ده نوهغوی دا نه خپلوی یعنی په دې به تګ اونه کړی اوکه د ګمراهئ لار اوګوری نوهغه خپله کړی اودا لرې کول ددې وجې نه دی چې هغوی زمونږ آیاتونه دروغ اوګنړل اوهغوی ددې نه غافل وو هم ددې په شان آیت وړاندې تیرشوې دې اوهغه خلق چاچې زمونږ آیاتونه او دآخرت ملاقات یعنی بعث وغیره دروغ اوګنړلو نودهغوی په دنیاکښې کړې شوې اعمال د نیکئ مثلاً صله رحمی اوصدقه بې ځایه لاړل هغوی ته به هیڅ اجرنه ملاویږی ددې د شرط مفقودکیدودوجې نه هغوی ته به هم هغه څه سزا ورکولې شی کوم څه چې هغوی کول تکذیب او معاصی وغیره.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** بِالِفٍ وَدُوْنِهَا، کله چې په الف سره وی نوباب مفاعله به وی وَوٰاعدنا کښې واؤ استینافیه دې کلام مستانف دې سورت بقره کښې چې کوم وَاِذْ وٰعَدنا موسیٰ اربعین لیلة فرمائیلې شوې وو دادهغې تفصیل دې واعدناموسیٰ فعل بافاعل اومفعول به دې او ثلثین مفعول به ثانی دې دثلثین مضاف محذوف دې تقدیردادې تمام ثلثین لیلةً، لیلةً تمیز دې د اَتممناها عطف په واعدناباندې دې.

**قوله:** وَقْتُ وَعْدِهٖ، دمیقات تفسیرپه وخت سره کولوکښې یې اشاره اوکړه چې د میقات نه

حال دي.

قوله: وقال موسى لاخيه هارون واؤ ترتيب اوتعقيب دپاره نه دي ځکه چې مذکوره مقوله جبل د تللونه وړاندې ده.

قوله: بكلامه إياه دا د يو سوال مقدر جواب دي.

سوال: سوال دادې چې ميقات ربه نه معلوميږي چې د رب وخت حالانکه د رب څه وخت نشته دي.

جواب: د جواب حاصل دادې چې مضاف محذوف دي تقديري عبارت دادې وقت كلامه اياه.

قوله: حال تقدير عبارت به داشي فتم بالغا هذا العدد لهذا د حمل دعدم صحت اعتراض ختم شو.

قوله: من كل جهة د دې اضافې مقصد كلام قديم اوكلاحادث كښې فرق بيانول دي چې د كلام حادث د پاره جهت وي او د كلام قديم د پاره نه وي ځکه چې د قديم څه متعين جهت نه وي هغه همه جهت وي.

قوله: نفسك، په دې كښې اشاره ده چې د أرني مفعول ثاني محذوف دي لهذا د فعل قلب په يو مفعول باندې اقتصار لازميږي.

قوله: والتعبير به دون لن أري يفيد إمكان رؤيته تعالى، د دې عبارت د اضافې مقصد داخودل دي چې لن تراني، او لن أرى كښې څه فرق دي؟ فرق دادې چې لن تراني د الله تعالى د رؤيت په امكان باندې دلالت كوي ځکه چې د لن تراني نه معلوميږي چې د عدم رؤيت علت په رائي كښې دې نه چې په مرئي كښې اوهغه علت عدم قوت اوعدم صلاحيت دي اوكه د لن تراني په ځائې لن أرى وي نو مطلب به داوي چې د عدم رويت علت په مرئي كښې دي د رائي عدم صلاحيت په صلاحيت او عدم قوت په قوت سره بدلولې شو ځکه چې رائي ممكن اوحادث دي اوممكن اوحادث تصرف قبلوي، په خلاف د مرئي چې هغه د قديم كيدو د وجې نه تصرف نه قبلوي.

قوله: مدكوكا په دې كښې اشاره ده چې دكا مصدر د مركوكا په معنى كښې دي لهذا د دكا حمل په جبل باندې صحيح دي.

قوله: تكليمي إياك، د دې مقصد تخصيص بيانول دي ځکه چې مطلق كلام حضرت موسى عليه السلام سره خاص نه دي.

قوله: بدل من الجار والمجرور قبله، يعني موعظة د تفصيلاً من كل شئ دمحل نه بدل دي ځکه چې من كل شئ د كتبنا مفعول دي د كوم د وجې نه چې محلاً منصوب دي.

**قوله**: بأحسنها، يعنى په عزيمت باندې عمل لازم اونيسئى نه چې په رخصت، مطلب دادې چې په تورات كښې عزيمت، رخصت ، مباح، فرض، واجب ټول دي مګر تاسو په رخصت باندې دعمل كولو په ځائى په عزيمت باندې عمل اوكړئ، مثلاً صبر ، تحمل ، معافى كول وغيره.

**قوله**: ذلك، مبتداء او بأنهم دَدې خبردې.

**[اياتوله:۱٤٨ - ۱٥۱]**

{وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوسَى مِنْ بَعْدِهِ} أَيْ بَعْد ذَهَابه إِلَى الْمُنَاجَاة {مِنْ حُلِيِّهِمْ} الَّذِي اسْتَعَارُوهُ مِنْ قَوْم فِرْعَوْن بِعِلَّةِ عُرْس فَبَقِيَ عِنْدهمْ {عِجْلًا} صَاغَهُ لَهُمْ مِنْهُ السَّامِرِيّ {جَسَدًا} بَدَل لَحْمًا وَدَمًا {لَهُ خُوَار} أَيْ صَوْت يُسْمَع انْقَلَبَ كَذَلِكَ بِوَضْعِ التُّرَاب الَّذِي أَخَذَهُ مِنْ حَافِر فَرَس جِبْرِيل فِي فَمه فَإِنَّ أَثَره الْحَيَاة فِيمَا يُوضَع فِيهِ وَمَفْعُول اتَّخَذَ الثَّانِي مَحْذُوف أَيْ إِلَهًا {أَلَمْ يَرَوْا أَنَّهُ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا يَهْدِيهِمْ سَبِيلًا} فَكَيْفَ يُتَّخَذ إِلَهًا {اتَّخَذُوهُ} إِلَهًا {وَكَانُوا ظَالِمِينَ} بِاتِّخَاذِهِ {وَلَمَّا سُقِطَ فِي أَيْدِيهِمْ} أَيْ نَدِمُوا عَلَى عِبَادَته {وَرَأَوْا} عَلِمُوا {أَنَّهُمْ قَدْ ضَلُّوا} بِهَا وَذَلِكَ بَعْد رُجُوع مُوسَى {قَالُوا لَئِنْ لَمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا وَيَغْفِرْ لَنَا} بِالْيَاءِ وَالتَّاء فِيهِمَا {لنكونن من الخاسرين} {وَلَمَّا رَجَعَ مُوسَى إِلَى قَوْمه غَضْبَان} مِنْ جِهَتهمْ {أَسِفًا} شَدِيد الْحُزْن {قَالَ بِئْسَمَا} أَيْ بئس خلافة {خلفتموني} ها {مِنْ بَعْدِي} خِلَافَتكُمْ هَذِهِ حَيْثُ أَشْرَكْتُمْ {أَعَجِلْتُمْ أَمْرَ رَبِّكُمْ وَأَلْقَى الْأَلْوَاح} أَلْوَاح التَّوْرَاة غَضَبًا لِرَبِّهِ فَتَكَسَّرَتْ {وَأَخَذَ بِرَأْسِ أَخِيهِ} أَيْ بِشَعْرِهِ بِيَمِينِهِ وَلِحْيَته بِشِمَالِهِ {يَجُرُّهُ إِلَيْهِ} غَضَبًا {قَالَ} يا {ابْنَ أُمَّ} بِكَسْرِ الْمِيم وَفَتْحهَا أَرَادَ أُمِّي وَذِكْرهَا أَعْطَف لِقَلْبِهِ {إِنَّ الْقَوْم اسْتَضْعَفُونِي وَكَادُوا} قَارَبُوا {يَقْتُلُونَنِي فَلَا تُشْمِت} تُفْرِح {بِي الْأَعْدَاء} بِإِهَانَتِك إِيَّايَ {وَلَا تَجْعَلنِي مَعَ الْقَوْم الظَّالِمِينَ} بِعِبَادَةِ الْعِجْل فِي الْمُؤَاخَذَة {قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي} مَا صَنَعْت بِأَخِي {وَلِأَخِي} أَشْرَكَهُ فِي الدُّعَاء إِرْضَاء لَهُ وَدَفْعًا للشماتة به {وأدخلنا في رحمتك وأنت أرحم الراحمين}

**ترجمه**: او دَموسى عليه السلام قوم (بني اسرائيل) دَموسى عليه السلام دَمناجات دَپاره د تللو نه پس دهغه د سرو زرو كالو كوم چې هغوئ دَفرعون دَ قوم (قبطيانو) نه دَ واده په بهانه قرض اخستې وو بياهغه هم ددوئ سره پاتې شوى وو دَ غوښې او دځرمن (وينې) سخى يوه وانچې (معبود) سامرى دَهغوى دَپاره دَهغه كالونه جوړكړو، جَسَدًا، د عجلاً نه بدل دې په معنى كښې دَ غوښې اووينې دې دَهغه دَ غوائى په شان آواز ووكوم چې به اوريدې.شو دا شان قلب ماهيت دَ هغه وانچې په خله كښې دَهغه خاورې اچولو وچې نه راغلې ووكومه چې سامرى دَحضرت جبرائيل عليه السلام دَ آس دَ قدم دَلاندې نه اخستې وه دَ دغه خاورې اثر ژوندون به په هرهغه شى باندې ښكاره كيدلو په كوم كښې چې به هغه اچولې شوه، د اتخذمفعول محذوف دې او هغه إلهًا دې، آياهغوى ته نه ښكارى چې هغه نه دوى سره خبرې

کوی؟ نه په څه معامله کښې دَهغوی رهنمائی کوی داځنګه معبود جوړولې شی خوبیاهم هغوی دامعبود جوړکړو، دې لره معبود جوړولوسره ئې ډیردَبې انصافئ کاراوکړو اوکوم وخت چې هغوی دَ سخې په بندګئ باندې خپیمانه شو اودَهغوی په پوهه کښې راغله چې هغوی په حقیقت کښې دَدې وجې نه ګمراه شوی دی اودا دَموسیٰ عليه السلام دَ واپس راتلونه پس اوشو، نوونئ وئیل که زمونږ رب په مونږ باندې رحم اونه کړو اومونږ ئې معاف نه کړو نومونږ به یقیناً دَ تاوانیانو نه شو.

او (بل طرف ته) چې کله موسیٰ عليه السلام په هغوئ باندې غصه شو او د سخت غم نه ډک خپل قوم طرف ته واپس شو نوهغوی ته ئې اوفرمائیل تاسو خلقوزمانه پس ډیره خرابه جانشینی اوکړه ستاسو داجانشینئ چې تاسو په شرك کښې اخته شوئ ولې تاسو نه دومره صبراونه شوچې دخپل رب دَحکم انتظارموکړې وې؟ او په تادئې سره ئې تختئ یوطرف ته کیخودې (یعنې) دَالله تعالى دَپاره په غصه کښې یئ دَ تورات تختئ (یوطرف ته کیخودې) چې ماتې شوې اودَ خپل رورد سر ویښته په ښی لاس سره اودَهغه ږیره یئ په ګس لاس اونیوله او په غصه کښې ئې خپل طرف ته راښکلو (هارون عليه السلام) اووئیل اې زما روره دې خلقو زه کمزورې اولیدلم (یعنې زه ئې دباؤکړم) اونیزدې وه چې زه ئې قتل کړې وې، نوته دَخپل طرف نه زما توهین کولوسره دښمنانوته په ماباندې دَخنداکولوموقع مه ورکوه، اومادَ سخې عبادت کولودَ وجې نه په مواخذه کښې په ظالمانوخلقو کښې مه شمیره، (موسیٰ عليه السلام) اووئیل اې زما ربه کوم څه چې ما خپل رور سره اوکړل دامعاف کړه اوزما رور هم معاف کړه، په دعاکښې یئ خپل رور خوشحاله کولواو دَ دښمن خوشحالی لرې کولودَپاره شریك کړو، او مونږ دواړه په خپل رحمت کښې داخل کړه اوته دَتولو رحم کونکونه زیات رحم کونکې ئې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** حُلِيِّهِمْ، حُلِيٌّ،دَحَلْیٌ جمع ده لکه ثُدِيٌّ دَ ثَدْيٌ جمع ده، حُلِيٌّ په اصل کښې حُلُوْيٌ وو، واؤ او یاء په یوځائې جمع شو ساکن واؤ ئې یاء کړو اودَیاء په یاء کښې ادغام اوکړې شو، اودَ یاء د رعایت د وجې دَ لام ضمې په کسرې سره بدله کړې شو، حُلِيٌّ شو.

**قوله:** صَاغَهُ لهم السامريُّ، سامریُّ دَصاغ فاعل دې اوهُ ضمیرد عجلاً طرف ته راجع دې دَلهم ضمیردَ قوم طرف ته راجع دې اودَ منه ضمیر دَ سرو زرو کالوطرف ته راجع دې، مطلب دادې چې سامری دَ سرو زرو دَکالونه دَبنی اسرائیلو دَپاره یوسخې جوړکړو.

**تنبیه:** دَجلالین په نسخو کښې صَاغَهُ په ځائې صَاغَهُمْ دې کومه چې دَقلم غلطی معلومیږی.

**قوله:** جسدًا،بَدَلٌ: **سوال:** عجلاًدَ جسدًا بدل راوړلو څه ضرورت پیښ شو؟

**جواب:** په دې بدل سره ئې شبه لرې کړه چې کیدې شی چې عجل نقش على الحائط په توګه سره جوړ کړې وی اوکله چې دَدې بدل جسدًا راغلونومعلومه شوه چې دَانځې ئې جوړه

کړي وه په دیوال باندې نقش نه.

**قوله:** لحمًا ودمًا په دې کښې اشاره ده چې دا سخې دَ حقیقی سخی په شان دَ غوښې څرمن او وینې وغیره نه مرکب وو (خودا تفسیر مرجوح دې)

**قوله:** وَمَفْعُوْلُ اتَّخَذَ الثَّانِي مَحْذُوْفٌ اي اِلٰهًا په دې کښې اشاره ده چې اتخذ په معنی صَنَعَ نه دې چې په یو مفعول باندې اقتصار جائزوی ځکه چې مطلق صنم هغه دَ معبود جوړولو بغیر دَ مذکوره سزا مستحق کیدې نه شو، لهذا دَ اخذ مفعول ثانی کوم چې الٰهًا دې محذوف دې.

**قوله:** اي نَدِمُوْا، ولَمَّا سُقِطَ فِيْ اَيْدِيْهِمْ، په محاوره کښې دَدې معنی دَ خپیمانه کیدو ده، سُقِطَ فِيْ اَيْدِيْهِمْ، اي ندموا (جوهری) تَقُوْلُ العرب لکل نادم علی امر، قد سُقِطَ فِيْ يَدَيْهِ (معالم)

**قوله:** بِئْسَ خلافة دا بِئْسَ کښې دَمَا نکره تمیز دې.

**قوله:** خَلَفْتُمُوْنِيْ هَا: سوال: ها مقدر منلو څه ضرورت دې؟

**جواب:** دادَدې شبهې جواب دې چې مَا موصوله یا موصوفه ده او خلفتموني دَدې صله یا صفت دې حالانکه صله او صفت چې کله جمله وی نو دَ عائد موجود کیدل ضروری وی، هَا، مقدر منلو سره یې اشاره اوکړه چې عائد محذوف دې.

**قوله:** خِلَافَتُكُمْ هٰذِهٖ دا مخصوص بالذم محذوف دې.

**قوله:** غضبًا لربّه: دادَ ممنوع غضب نه اعتذار دې. یعنی مطلقًا غضب ممنوع دې مګر دَ الله تعالی دَپاره عداوت محبوب دې. وئیلې شی الحب فی الله والبغض فی الله هم دَ الله تعالی دَپاره محبت او هم دَ الله تعالی دَپاره عداوت.

**قوله:** ذِكْرُهَا اَعْطَفُ لِقَلْبِهٖ، داددې سوال جواب دې چې د ماښ اُمّ نه معلومیږی، چې حضرت هارون علیه السلام دَ حضرت موسیٰ علیه السلام خپل رور نه دې حالانکه دواړه خپل رونړه دی، دَدې جواب دادې چې دَ مور خوئی وئیل زړه ډیرنرمونکې دې په نسبت دَدې په عکس یعنی په ماښ ام کښې ډیر شفقت او نیزدیکت معلومیږی په نسبت دَماښ اب.

**[ایاتوله: ۱۵۲ - ۱۵۷]**

قال تعالی {إِنَّ الَّذِينَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ} إلٰهًا {سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ} عَذَاب {مِّن رَّبِّهِمْ وَذِلَّةٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا} فعذبوا بالأمر بقتل أنفسهم وضربت عليهم الذلة إلى يوم القيامة {وَكَذَٰلِكَ} كما جزيناهم {نَجْزِي الْمُفْتَرِينَ} على الله بالإشراك وغيره {وَالَّذِينَ عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ ثُمَّ تَابُوا} رجعوا عنها {مِن بَعْدِهَا وَآمَنُوا} بالله {إِنَّ رَبَّكَ مِن بَعْدِهَا} أي التوبة {لَغَفُورٌ} لهم {رَّحِيمٌ} بهم {وَلَمَّا سَكَتَ} سكن {عَن مُّوسَى الْغَضَبُ أَخَذَ الْأَلْوَاحَ} التي ألقاها {وَفِي نُسْخَتِهَا} أي ما نسخ فيها أي كتب {هُدًى} من الضلالة {وَرَحْمَةٌ لِّلَّذِينَ هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُونَ} يخافون وأدخل اللام على المفعول لتقدمه {وَاخْتَارَ مُوسَىٰ قَوْمَهُ} أي

من قومه {سَبْعِينَ رَجُلًا} مِمَّنْ لَمْ يَعْبُدُوا الْعِجْل بِأَمْرِهِ تَعَالَى {لِمِيقَاتِنَا} أيْ لِلْوَقْتِ الَّذِي وَعَدْنَاهُ بِإِتْيَانِهِمْ فِيهِ لِيَعْتَذِرُوا مِنْ عِبَادَة أَصْحَابِهِمُ الْعِجْل فَخَرَجَ بِهِمْ {فلما أخذتهم الرجفة} الزلزلة الشديدة قال بن عبَّاس لِأَنَّهُمْ لَمْ يُزَايِلُوا قَوْمَهُمْ حِين عَبَدُوا الْعِجْل قَالَ وَهُمْ غَيْر الَّذِينَ سَأَلُوا الرُّؤْيَة وَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَة {قَالَ} مُوسَى {رَبِّ لَوْ شِئْتَ أهلكتهم من قبل} اي قبل خروجي بهم ليعاين بنو إسرائيل ذلك ولا يتهموني {وإياي أَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ السُّفَهَاءُ مِنَّا} استفهام استعطاف اي لا تعذبنا بذنب غيرنا {إِنْ} مَا {هِيَ} أيْ الْفِتْنَة الَّتِي وَقَعَ فِيهَا السُّفَهَاء {إِلَّا فِتْنَتُكَ} ابتلاؤك {تُضِلُّ بِهَا مَنْ تَشَاءُ} إضلاله {وَتَهْدِي مَنْ تَشَاءُ} هدايته {أَنْتَ وَلِيُّنَا} متولي امورنا {فاغفر لنا وارحمنا وأنت خير الغافرين} {وَاكْتُبْ} أوجب {لَنَا فِي هَذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ} حَسَنَة {إِنَّا هُدْنَا} تُبْنَا {إِلَيْكَ قَالَ} تعالى {عَذَابِي أُصِيبُ بِهِ مَنْ أَشَاءُ} تعذيبه {وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ} عَمَّتْ {كُلَّ شَيْءٍ} في الدنيا {فسأكتبها} في الآخرة {للذين يتقون ويؤتون الزكاة والذين هم بآياتنا يؤمنون} {الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ} مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {الَّذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ} بِاسْمِهِ وَصِفَته {يَأْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَاهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ} مِمَّا حُرِّمَ فِي شَرْعهمْ {وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ} مِنْ الْمَيْتَة وَنَحْوهَا {وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ} ثِقَلهمْ {وَالْأَغْلَالَ} الشدائد {التي كانت عليهم} كقتل النفس من التوبة وقطع اثر النجاسة {فالذين آمنوا به} منهم {وعزروه} ووقروه {ونصروه واتبعوا النور الذي أنزل معه} اي القرآن {أولئك هم المفلحون}

ترجمه: بیشکه کوم خلقو چې سخې معبود جوړ کړو په هغوی باندې به د هغوی د رب د طرف نه غضب عذاب او ذلت هم په دنیاوی ژوندون کښې پریوځی، چنانچې خپل ځانونه په خپله قتل کولو حکم سره په عذاب کښې اخته کړې شو او د قیامته پورې په هغوی باندې ذلت مسلط کړې شو او څنګه چې مونږ هغوی ته سزا ورکړه هم دغه شان د شرك وغیره په ذریعه په الله تعالى باندې افتراء کونکو ته مونږ سزا ورکوو او کوم خلقو چې بدعملونه اوکړل بیا هغوی د د بدعملونو نه پس بدعملونه منع شو او په الله تعالى باندې یې ایمان راوړو بیشکه ستارب د دغه توبې نه پس د هغوی معاف کونکې او په هغوی رحم کونکې دې او کله چې د موسى علیه السلام غصه یخه شوه نو هغه تختې راوچتې کړې کومې چې یې غورزولې وې د کومو په تحریر کښې یعنی چې په هغې کښې کوم لیکلې شوې وو د ګمراهئی نه هدایت وو د هغه خلقو د پاره چې د خپل رب نه ویریږی او په مفعول (لربهم) باندې یې لام داخل کړودې د مقدم کیدو د وجې نه او موسى علیه السلام د خپل قوم نه د الله تعالى په حکم د هغه خلقونه چې د سخی عبادت ئې نه دوکړې اویا کسان منتخب کړل دې د پاره چې هغوی زمونږ مقرر کړې شوې په هغه وخت حاضرشی کوم وخت چې هغوی ته د راتلو د پاره وئیلې شی دې د پاره چې د خپلو ملګرو د سخی په عبادت باندې معذرت اوکړی، چنانچه هغه خلق د حضرت موسى علیه السلام سره روان شو او کله چې هغه خلق یو سختې زلزلې راګیر کړل، حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی د دې وجه

هم داوه چې دَهغوئ قوم دَ سخی عبادت کړې وو نودغه خلقود هغوی سره تعلق نه وو پریخودې (هغوی سره یوځائې اوسیدل) او (حضرت ابن عباس ﷠ اوفرمائیل دادَهغه خلقو نه علاوه دی چاچې دَالله تعالی دَ لیدلومطالبه کړې وه اوهغوی دَ تندر ګرز راګیرکړی وو نو موسی ﷷ اوویئیل اې زما پروردګار که چرې تاغوښتل نودوی اوزه دې دَاول نه یعنی دَ دوی زما سره دَ وتلونه وړاندې هلاک کولې شو دې دَپاره چې بنی اسرائیلو دَدوی دَهلاکت پخپله مشاهده کړې وه او په مابانديې يئ تهمت نه لګولو آیا ته مونږپه هغه قصور باندې کوم چې زمونږ یوڅو پوهانوکړې دې مونږ ټول هلاک کوې؟ استفهام دَ رحمت دَ طلب پاره دې یعنی دَ نورو دَ قصوردَ وجې نه مونږ مه هلاکوه، داخوستادَ طرف نه ازمیښت وو په کوم چې تا ناپوهه مبتلا کړل، دَدې په ذریعه چې ته څوک ګمراه کول غواړې ګمراه ئې کړه اودَ چادَ پاره چې هدایت غواړې هدایت ورکړې زمونږ ولی (کارساز)خوهم ته ئې نومونږ معاف کړه او په مونږ باندې رحم اوکړه ته دَ ټولونه لوئې معافی کونکې ئې اوزمونږ دَپاره په دې دنیاکښې ښیګړه مقدرکړه او په آخرت کښې هم نیکی مقدر کړه مونږ ستاطرف ته رجوع اوکړه، الله تعالی ارشاد اوفرمائیلو چې زماعذاب به هر هغه کس ته رسی چاته چې زه عذاب ورکول غواړم اوزما رحمت په دنیاکښې په هریوڅیز راخور دې او دابه زه په آخرت کښې صرف دَهغه خلقو په حق کښې مقدرکړم څوک چې پرهیزګاری اختیاروی زکوة ورکوی او زمونږ په آیاتونو باندې ایمان راوړی. (دارحمت دَهغه خلقوحصه ده) څوک چې د رسول نبی امی محمد ﷺ تابعداری اختیاره کړی دَچاذکرچې هغوی سره په تورات اوانجیل کښې دَهغه دَنوم اوصفت سره لیکلې شوې دې اوچې هغوی ته به امر بالمعروف کوی اوهغوی دَ بدو نه منع کوی دَهغوی دَپاره پاک څیزونه حلالوی کوم چې دَهغوی په شریعت کښې حرام کړې شوی دی او په هغوی باندې خبیث څیزونه حراموی (مثلاً مردار وغیره اودَهغوی نه دَ هغوی بوجونه کوزوی (کوم چې په هغوی باندې بارشوی وو) اوبندشونه کولاووی په کوم کښې چې هغوی راګیرشوی وو لکه دَتوبې دَپاره خپل ځان قتلول اودَ نجاست اثر(یعنی مقام نجاست) پرې کول لهذا کوموخلقو چې دَهغوی نه په دې ایمان راوړی اودَ هغه حمایت اونصرت اوکړی اودَدې قرآن دنورتابعداری اوکړی کوم چې دهغه سره نازل کړې شوې دې هم هغه نجات موندونکی دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** مانُسِخَ فیها، په دې کښې اشاره ده چې مصدر په دمعنی مفعول دې لکه خطبة په معنی مخطوب لهذا معنی صحیح ده.

**قوله:** کُتِبَ، دَدې لفظ اضافه دتعیین معنی دَپاره ده ځکه چې دَنسخ متعددمعانی راځی مثلاً اوچتول، ورانول، بدلول، نقل کول دلته دَ لیکلوپه معنی کښې دې.

**قوله:** وَاُدْخِلَ اللامُ عَلَی المَفْعُوْلِ، دادَ یوسوال مقدرجواب دې، سوال دادې چې رَهَبَ

متعدی بنفسه وی لهذا دَدې په مفعول باندې دَ لام داخلولو ضرورت نه وی حالانکه دلته دَدې په مفعول باندې کوم چې لِرَبِّهِمْ دې لام داخل دې. دَ جواب حاصل دادې چې دَفعل مفعول چې کله په فعل باندې مقدم شی نو فعل په عمل کښې ضعیف کیږی هم دَدې وجې نه دَدې په مفعول باندې لام داخلولې شی. (ترویح الارواح)

قوله: مِنْ قَوْمِه، دادَ یو اعتراض جواب دې.

اعتراض: دادې چې اِخْتَارَ لازم دې نه چې متعدی بنفسه، او اختار قَوْمَهُ کښې متعدی بنفسه استعمال شوې دې. مِن قومه وئیلو سره بېځ دَدې جواب ورکړو چې دادَ حذف او ایصال دَقبیل نه دې. حرف جر حذف کولو سره فعل د قوم سره متصل کړې شو اودا طریقه چې په یو څو افعالو کښې اوریدلې شوې ده هم دَدې نه اختارَ، اَمَرَ، زَوَّجَ، استغفر، صَدَّقَ، عَادَ انما دی.

قوله: وَاِيَّايَ، دَدې عطف دَ اَهْلَكْتَهُمْ په هم ضمیر باندې دې.

قوله: تُبنا، مفسر علام دَ هُدْنَا تفسیر په تُبنا سره کولو کښې دا اوخودل چې هُدْنَا دهادَ يَهُوْدُ نه مشتق دې دَ کوم معنی چې رجوع کول اوتوبه کول دی نه چې د هدی یهدی هدایة نه په معنی دلالت کول، لارخودنه کول.

قوله: اَلَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ په دې کښې درې ترکیبونه دی، ① الذین یتبعون مبتداء، یامرهم ددې خبر ② الذین یتبعون دمبتداء مقدر خبروی تقدیری عبارت به داشی هم الذین یتبعون ③ الذین یتبعون د الذین یتقون نه بدل کل وی.

[ایاتونه: ۱۵۸-۱۶۲]

{قُلْ} خِطَاب لِلنَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {يَا أَيُّهَا النَّاس إِنِّي رَسُول اللّٰه إِلَيْكُمْ جَمِيعًا الَّذِي لَهُ مُلْك السَّمَاوَات وَالْأَرْض لَا إِلٰه إِلَّا هُوَ يُحْيِي وَيُمِيت فَآمِنُوا بِاللّٰهِ وَرَسُوله النَّبِيّ الْأُمِّيّ الَّذِي يُؤْمِن بِاللّٰهِ وَكَلِمَاته} الْقُرْآن {وَاتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ} تَرْشُدُونَ {وَمِنْ قَوْم مُوسَى أُمَّة} جَمَاعَة {يَهْدُونَ} النَّاس {بِالْحَقِّ وَبِهِ يَعْدِلُونَ} فِي الْحُكْم {وَقَطَّعْنَاهُمْ} فَرَّقْنَا بَنِي إِسْرَائِيل {اثْنَتَيْ عَشْرَة} حَال {أَسْبَاطًا} بَدَل مِنْهُ أَيْ قَبَائِل {أُمَمًا} بَدَل مِمَّا قَبْله {وَأَوْحَيْنَا إِلَى مُوسَى إِذْ اسْتَسْقَاهُ قَوْمه} فِي التِّيه {أَنْ اضْرِبْ بِعَصَاك الْحَجَر} فَضَرَبَهُ {فَانْبَجَسَتْ} انْفَجَرَتْ {مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَة عَيْنًا} بِعَدَدِ الْأَسْبَاط {قَدْ عَلِمَ كُلّ أُنَاس} سِبْط مِنْهُمْ {مَشْرَبهمْ وَظَلَّلْنَا عَلَيْهِمْ الْغَمَام} فِي التِّيه مِنْ حَرّ الشَّمْس {وَأَنْزَلْنَا عَلَيْهِمْ الْمَنّ وَالسَّلْوَى} هُمَا التَّرَنْجَبِين وَالطَّيْر السُّمَانَى بِتَخْفِيفِ الْمِيم وَالْقَصْر وَقُلْنَا لَهُمْ {كُلُوا مِنْ طَيِّبَات مَا رَزَقْنَاكُمْ وَمَا ظَلَمُونَا وَلٰكِنْ كَانُوا أَنْفُسهمْ يَظْلِمُونَ} {وَ} اذْكُرْ {إِذْ قِيلَ لَهُمْ اسْكُنُوا هٰذِهِ الْقَرْيَة} بَيْت الْمَقْدِس {وَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ وَقُولُوا} أَمْرنَا {حِطَّة وَادْخُلُوا الْبَاب} أَيْ بَاب الْقَرْيَة {سُجَّدًا} سُجُود انْحِنَاء {نَغْفِر} بِالنُّونِ وَالتَّاء مَبْنِيًّا لِلْمَفْعُولِ {لَكُمْ خَطِيئَاتكُمْ سَنَزِيدُ الْمُحْسِنِينَ} بِالطَّاعَةِ ثَوَابًا {فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ قَوْلًا غَيْر الَّذِي قِيلَ

هُمْ} فَقَالُوا حَبَّةٌ فِي شَعْرَةٍ وَدَخَلُوا يَزْحَفُونَ عَلَى أَسْتَاهِهِمْ {فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِجْزًا} عَذَابًا {مِنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا يَظْلِمُونَ}

ترجمه: ته ورته اووايه دا نبي ﷺ ته خطاب دې اې خلقو زه تاسو ټولو طرف ته دَهغه الله تعالى رالېږلې شوې يم دَ چا بادشاهي چې په ټولو آسمانونو او زمکو کښې ده دَهغه نه بغير بل څوک معبود نشته هم هغه مړه کول کوي ژوندي کوي نو په الله تعالى باندې ايمان راوړئ او دَهغه په رسول نبي امي باندې، څوک چې په الله تعالى باندې او دَهغه په کلماتو قرآن باندې ايمان لري او دَهغه تابعداري اوکړئ دې دَپاره چې تاسو په هدايت شئ. او دَ موسى ﷺ په قوم کښې يو جماعت داسې هم دې چې دَحق مطابق دَ خلقو لارخودنه کوي او هم دَدې مطابق په فيصله کښې انصاف کوي او مونږ بني اسرائيل په دولسو حصو کښې تقسيمولو سره دولس قبيلې جوړې کړې (اثنتي عشرة) حال دې او (أسباطا) دَ (اثنتي) نه بدل دې اسباط په معنى دَ قبائل دې. (أممًا) دَماقبل نه بدل دې (يعني دبدل نه بدل دې) او کله چې دَموسى ﷺ قوم په ميدان تيه کښې دَ موسى ﷺ نه اوبه اوغوښتې نو مونږ موسى ﷺ ته حکم ورکړو چې خپله همسا باندې کاڼړې اووهه هغه په همسا کاڼړې اووهلو نو زر دَهغې نه دولس چينې دَ قوم دَ شمير مطابق راووتلې. هرې قبيلې دَ خپلو اوبو څکلو ځائي متعين کړو په مقام تيه کښې د نمردَ گرمئ نه د بچ کيدو دَپاره مونږه هغوى باندې دَاوريځو سورې اوکړو او مونږ دَهغوى دَپاره من او سلوىٰ رانازل کړل او هغه ترنجبين او مرزان وو او مونږ هغوى ته اووئيل پاک صفا څيزونه خورئ کوم چې مونږ تاسو ته درکړې دي ليکن هغوى زمونږ هيڅ نقصان اونه کړو بلکه هم پخپله ئې دَخپل ځان نقصان کولو، او هغه وخت يادکړه کوم وخت چې هغوى ته اووئيلې شو چې دې کلي بيت المقدس ته لاړشئ (او هلته) اوسيږئ او هلته دَخپلې خوښې مطابق څه چې غواړئ خورئ او څکئ او دا وينا کوئ چې زمونږ توبه ده او دکلي په دروازه کښې په ټيټه ټيټه داخل شئ مونږ به ستاسو غلطيانې معاف کړو. (نغفر) نون سره دې او دَمجهول په صورت کښې تاء سره دې او دَ ثواب دَپاره دَاطاعت په ذريعه نيکه رويه لرونکوته به مونږ نور زيات ورکړو ليکن په هغوى کښې ظالمانو چا ته چې دا خبره خودلې شوې وه په بله خبره بدله کړه نو حَبَّةٌ فِي شعيرة وئيل ئې شروع کړه (او دَ سرښکته کولو سره داخليدلو په ځائې) په کوناټو باندې راښکونکې داخل شو نو مونږ په هغوى باندې دَهغوى دَ ظلم په وجه آسماني عذاب راولېگلو.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

قوله: إِلَيْكُمْ جَمِيعًا، جميعًا دَ اليكم ضمير نه حال دې.

قوله: لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ دا لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ سره بدل دې.

قوله: أَسْبَاطًا بَدَلٌ، أسباطا، اثنتي عشرة سره بدل دې نه چې تميز لکه چې بعضو وئيلي دي ځکه چې دَ لسو نه پورته تميز مفرد راځي.

قوله: فضربه، دې کښې اشاره ده چې کلام کښې اختصار دې مطلب دادې چې الله څنګه ئې په کانړی باندې همسا وهلو حکم ورکړو نو فوراً حضرت موسی ﷺ په همسا کانړی اووهلو.

قوله: سبطا منهم، دَدې اضافه مقصد دا شبه لرې کول دی چې قد علم کل اناس نه معلومیږی چې دَ بنی اسرائیل دَ هریو کس دَپاره چینه راوتې وه اوهریوکس خپله چینه متعین کړې وه حالانکه دا صورت نه و، جواب دادې چې اناس نه دَ بنی اسرائیلو دولس قبیلې مرادی دی چې هرې قبیلې خپله چینه متعین کړه.

قوله: وقلنا لهم، که چرې دا جمله محذوف اونه منلې شی نو بلاوجه التفات من التکلم الی الغیبت به لازم راځی حالانکه دَدې هیڅ ضرورت نشته دَدې التفات نه دَ بچ کیدلو دَپاره قلنا لهم محذوف منلې دې.

قوله: امرنا، امرنا اضافه دَ یوسوال مقدر جواب دې.

سوال: دادې چې دَقال مقوله جمله وی مګر دلته حطة مفرد دې دَدې څه تاویل کیدې شی؟

جواب: حطة مبتداء محذوف خبردې، مبتداء خبرسره ملاؤشوه جمله کیدوسره مقوله ده لهذا اوس هیڅ اعتراض نشته، مګردلته دَدې خبرې خیال ساتنې چې امرنا مقدر منلو په ځائې مسئلتنا مقدرکیدل پکاردی څکه چې امرنا مقدر منلو په صورت کښې تقدیری عبارت داسې دې امرنا ان نحط فی هذه القریة دَدې ترجمه به شی زمونږ کار په دغه قریه یعنی کلی کښې داخلیدل دی وراندې دَمغفرت ذکر دې حالانکه دَ کلی داخلیدل او مغفرت خپلوکښې څه جوړنه معلومیږی، بهتربه وه چې امرنا مقدرمنلوپه ځائې مسئلتنا مقدر منلې وې نو په دې صورت کښې به تقدیر عبارت مسئلتنا حطة وې. الله تعالی بنی اسرائیلو ته حکم ورکړو چې تاسو دَ شام په ملك کښې دَمعافئی درخواست کولوسره په عاجزئی او سربښکته داخل شئی نومونږ به ستاسو خطاء معاف کړو مګر بنی اسرائیلو داهدایت اونه منلو اودَالله تعالی خودلې شوې خبرې ئې بدلې کړې حطة په ځائې حبة فی شعیرة اوکړو اودَسربښکته کولوسره داخلیدوپه ځائې په کوناتوباندې راښکونکې داخل شو.

قوله: بالتاء مبنیا المفعول یعنی تغفر کښې یوقراءت تغفر مجهول صیغې سره هم دې مګر په دې صورت کښې حطیئتکم نائب فاعل کیدودَ وجې نه مرفوع وی.

قوله: یزحفون (ف) په مزه مزه په کوناتو باندې ورخوئیدل.

قوله: استاههم، استاة، دَ سة جمع کوناتو ته وائی.

قوله: فبدل الذین ظلموا منهم دَ بدلون مطلب دې دَیوپه ځائې باندې بل کیخودل، دَ

بدلون دپاره دّدوو کیدل ضروری دی په دې کښې به یومتروك وی اودویم ماخوذ کوم چې متروك وی په هغې باندې باء داخله وی او په ماخوذ باندې باء داخل نه وی. یاداسې اووایه چې لفظ بَدَّلَ دّدوو طرف ته متعدی وی دّ یوطرف ته دّ باء په ذریعه او دّدویم طرف ته بغیردّ باء، په کوم چې باء داخلیږی هغه متروك وی او دویم ماخوذ، دّدې نه معلومه شوه چې په کلام کښې حذف دې، تقدیری عبارت دا دې فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا بِالَّذِی قِيْلَ لَهُمْ قَوْلًا غَيْرَ الَّذِی.

[اياتوله: ۱۶۳ - ۱۷۱]

{وَاسْأَلْهُمْ} يَا مُحَمَّد تَوْبِيخًا {عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ} مُجَاوِرَةَ بَحْرِ الْقُلْزُمِ وَهِيَ أَيْلَة مَا وَقَعَ بِأَهْلِهَا {إِذْ يَعْدُونَ} يَعْتَدُونَ {فِي السَّبْتِ} بِصَيْدِ السَّمَكِ الْمَأْمُورِينَ بِتَرْكِهِ فِيهِ {إِذْ} ظَرْف لِيَعْدُونَ {تَأْتِيهِمْ حِيتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا} ظَاهِرَة عَلَى الْمَاء {وَيَوْمَ لَا يَسْبِتُونَ} لَا يُعَظِّمُونَ السَّبْت أَيْ سَائِر الْأَيَّام {لَا تَأْتِيهِمْ} ابْتِلَاء مِنَ اللهِ {كَذَلِكَ نَبْلُوهُمْ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ} وَلَمَّا صَادُوا السَّمَك افْتَرَقَتْ الْقَرْيَة أَثْلَاثًا ثُلُث صَادُوا مَعَهُمْ وَثُلُث نَهَوْهُمْ وَثُلُث أَمْسَكُوا عَنِ الصَّيْد وَالنَّهْي {وَإِذْ} عَطْف عَلَى إِذْ قَبْله {قَالَتْ أُمَّةٌ مِنْهُمْ} لِمَ تَصِدْ وَلَمْ تَنْهَ لِمَنْ نَهَى {لِمَ تَعِظُونَ قَوْمًا اللهُ مُهْلِكُهُمْ أَوْ مُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا قَالُوا} مَوْعِظَتنَا {مَعْذِرَةً} نَعْتَذِر بِهَا {إِلَى رَبِّكُمْ} لِئَلَّا نُنْسَب إِلَى تَقْصِير فِي تَرْك النَّهْي {وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ} الصَّيْد {فَلَمَّا نَسُوا} تَرَكُوا {مَا ذُكِّرُوا} وُعِظُوا {بِهِ} فَلَمْ يَرْجِعُوا {أَنْجَيْنَا الَّذِينَ يَنْهَوْنَ عَنِ السُّوءِ وَأَخَذْنَا الَّذِينَ ظَلَمُوا} بِالِاعْتِدَاءِ {بِعَذَابٍ بَئِيسٍ} شَدِيد {بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ} {فَلَمَّا عَتَوْا} تَكَبَّرُوا {عَنْ} تَرْك {مَا نُهُوا عَنْهُ قُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ} صَاغِرِينَ فَكَانُوهَا وَهَذَا تَفْصِيل لِمَا قَبْله قَالَ ابْن عَبَّاس مَا أَدْرِي مَا فَعَلَ بِالْفِرْقَةِ السَّاكِتَة وَقَالَ عِكْرِمَة لَمْ تُهْلَك لِأَنَّهَا كَرِهَتْ مَا فَعَلُوهُ وَقَالَتْ لِمَ تَعِظُونَ إلخ وَرَوَى الْحَاكِم عَن ابْن عَبَّاس أَنَّهُ رَجَعَ إِلَيْهِ وَأَعْجَبَهُ {وَإِذْ تَأَذَّنَ} أَعْلَمَ {رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ} أَيْ الْيَهُود {إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَنْ يَسُومُهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ} بِالذُّلِّ وَأَخْذ الْجِزْيَة فَبَعَثَ عَلَيْهِمْ سُلَيْمَان وَبَعْده بُخْتُنَصَّر فَقَتَلَهُمْ وَسَبَاهُمْ وَضَرَبَ عَلَيْهِمْ الْجِزْيَة فَكَانُوا يُؤَدُّونَهَا إِلَى الْمَجُوس إِلَى أَنْ بُعِثَ نَبِيّنَا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَرَبَهَا عَلَيْهِمْ {إِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيعُ الْعِقَابِ} لِمَنْ عَصَاهُ {وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ} لِأَهْلِ طَاعَته {رَحِيمٌ} بِهِمْ {وَقَطَّعْنَاهُمْ} فَرَّقْنَاهُمْ {فِي الْأَرْضِ أُمَمًا} فِرَقًا {مِنْهُمُ الصَّالِحُونَ وَمِنْهُمْ} نَاس {دُونَ ذَلِكَ} الْكُفَّار وَالْفَاسِقُونَ {وَبَلَوْنَاهُمْ بِالْحَسَنَاتِ} بِالنِّعَمِ {وَالسَّيِّئَاتِ} النِّقَم {لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ} عَنْ فِسْقِهِمْ {فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَرِثُوا الْكِتَابَ} التَّوْرَاة عَنْ آبَائِهِمْ {يَأْخُذُونَ عَرَضَ هَذَا الْأَدْنَى} أَيْ حُطَام هَذَا الشَّيْء الدَّنِيء أَيْ الدُّنْيَا مِنْ حَلَال وَحَرَام {وَيَقُولُونَ سَيُغْفَرُ لَنَا} مَا فَعَلْنَاهُ {وَإِنْ يَأْتِهِمْ عَرَضٌ مِثْلُهُ يَأْخُذُوهُ} الْجُمْلَة حَال أَيْ يَرْجُونَ الْمَغْفِرَة وَهُمْ عَائِدُونَ إِلَى مَا فَعَلُوهُ مُصِرُّونَ عَلَيْهِ وَلَيْسَ فِي التَّوْرَاة وَعْد الْمَغْفِرَة مَعَ الْإِصْرَار {أَلَمْ يُؤْخَذْ} اسْتِفْهَام تَقْرِير {عَلَيْهِمْ مِيثَاقُ الْكِتَابِ} الْإِضَافَة بِمَعْنَى فِي {أَنْ لَا يَقُولُوا عَلَى اللهِ

{إِلَّا الْحَقَّ وَدَرَسُوا} عطف على يؤخذ قرأوا {مَا فِيهِ} فلِمَ كذبوا عليه بنسبة المغفرة إليه مع الإصرار {وَالدَّارُ الْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يَتَّقُونَ} الحرام {أَفَلَا يَعْقِلُونَ} بالياء والتاء انها خير فيؤثرونها على الدنيا {وَالَّذِينَ يُمَسِّكُونَ} بالتشديد والتخفيف {بِالْكِتَابِ} منهم {وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ} كعبد الله بن سلام وأصحابه {إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُصْلِحِينَ} الجملة خبر الذين وفيه وضع الظاهر موضع المضمر اي أجرهم {وَ} اذكر {إِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ} رفعناه من أصله {فَوْقَهُمْ كَأَنَّهُ ظُلَّةٌ وَظَنُّوا} ايقنوا {أَنَّهُ وَاقِعٌ بِهِمْ} ساقط عليهم بوعد الله اياهم بوقوعه ان لم يقبلوا أحكام التوراة وكانوا أبوها لثقلها فقبلوا وقلنا لهم {خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم بِقُوَّةٍ} بجد واجتهاد {وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ} بالعمل به {لعلكم تتقون}

**ترجمه:** اې محمد ﷺ تاسو دوی نه دَدغه کلي باره کښې تپوس اوکړه کوم چې بحرقلزم سره نیزدې واقع وو چې دَ هغې په اوسیدونکو باندې څه تیرشو؟ اوهغه کلي آیله وو کوم وخت چې هغوی دَهفتې په ورځ دکبانو په ښکارکولو کښې دَحدنه تجاوزکولو. حالانکه په دغه ورځ په ښکار نه کولوباندې ماموروو او کبان به دَهفتې په ورځ ښه ډیرډیر دَ اوبوسر ته راتلل، اِذْ، دَيَعْدُوْنَ ظرف دې اودَ هفتې نه علاوه ورځوکښې دکوموچې به هغوی دَهفتې دَ ورځې په شان تعظیم نه کولو یعنی دهفتې نه علاوه په باقی ورځوکښې به دَالله تعالی دَ طرف نه دَ ازمیښت په توګه نه راتلل، دَحد نه تجاوزکونکوموږ داسې ازمیښت کوو، اوکوم وخت چې هغوی دَ هفتې په ورځ دَ کبانوښکار اوکړو نوهغه کلي په دریودلوکښې تقسیم شو په دوی کښې دریمه حصه هغوی سره ښکار اوکړو او په دریوکښې یوې حصې هغوی منع کول او بلې دریمې حصې نه ښکارکولو او نه ئې (ښکارکونکي) منع کول، اوکله چې دَدوی نه دغه ډلې کومې چې نه ښکاراوکړواونه ئې (نور) منع کړل هغه خلقوته اووئیل چاچې منع کول تاسودوی ته ولې نصیحت کوئې؟ څوک چې الله تعالی هلاک کونکې دې یاهغوی ته سخت عذاب ورکونکې دې اِذْ دَماقبل په اِذْباندې معطوف دې نوهغوی جواب ورکړو زمونږ نصیحت دَعذرخواهئې دَپاره دې کوم چې به مونږ ستاسو دَ رب په وړاندې پیش کوو دې دَپاره چې دَترك نهی کوتاهی زمونږ طرف ته منسوب نه کړې شی اودې دَپاره چې هغوی دَښکار نه منع شی، آخرکارچې هغوی دغه نصیحتونه بالکل په خیال کښې رانه وستل کوم چې هغوی ته کړې شوې وو نوهغوی منع نه شو نومونږ هغه خلق بچ کړل چاچې دَ بدئې نه منع کوله اومونږ هغه خلق چاچې تعدی کولوسره ظلم اوکړو په سخت عذاب کښې راګیرکړل ځکه چې هغوی حکم نه منلو. بیا چې هغوی په منهی عنه ترک باندې سرکشی اوخودله نومونږ هغوی ته اووئیل ذلیل بیزوګان شئې نوهغوی بیزوګان شو اودادَماقبل تفصیل دې. (یعنی فَلَمَّاکښې فاء تفصیلیه ده نه چې تعقیبیه) حضرت ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمائیل زه نه وایم چې خاموشي اختیارونکی ډلې سره څه معامله اوشوه؟ اوعکرمه رحمه الله وئیلی هغوی نه دی

هلاك كړې شوې څكه چې هغوی دتعدی كونكوفعل ناخوښه كړو اوونى وقيل لمَ تعظون قومًا الخ اوحاكم ﷺ دَ ابن عباس ﷺ روايت كړې دې چې حضرت ابن عباس ﷺ دَ توقف نه پس دَحاكم دَ قول طرف ته رجوع اوكړه اودائى خوښ كړو. اوياددساتئى كوم وخت چې ستاسو رب اعلان اوكړو چې هغه به په دې يهودو باندې دَ قيامت پورې داسې خلق مسلط كوى چې هغوى باندې به دَ ذلت سره تيكس(جزيه)لګولوسره په سخت عذاب كښې راګيره وى چنانچې په هغوى باندې سليمان ﷺ مسلط كړې شواودَهغې نه پس بخت نصر نوهغه دوى قتل كړل اوقيدئى كړل او په هغوى باندې (جزيه) تيكس اولګولو كوم چې به هغوى مجوسيانوته وركولوتردې چې زمونږ نبى محمد ﷺ مبعوث كړې شو نوحضورپاك هم په دوى باندې جزيه مقرركړه يقينًا ستارب نافرمانى كونكوته په سزاوركولو كښې تيز دې اودَاهل طاعت دَپاره غفور اورحيم هم دې، اومونږ هغوى دَ زمكې ټكړې كولوسره مختلف ډلې جوړكړل په هغوى كښې څه نيكان شو اوڅه دَدې برعكس كافران فاسقان شو، اومونږ هغوى دَ نعمت اونقمت په ذريعه په ښه او خرابوحالاتوسره په امتحان كښې ازميښت كړل دې دَپاره چې هغوى دَخپل فسق نه منع شى بيادَ وراندې خلقو نه داسې ناخلف جانشين شو چې دَخپلو پلارانونه دكتاب (يعنى) د تورات وارثان شو چې هغوى دَ دې فانى دنيا فائدې راغونډوى يعنى دَدې وركړې شوې دنياسپك څيزونه كه هغه حلال وى كه حرام (راغونډوى) اووائى چې زمونږ حركتونه معاف كړې شى اوكه هم دغه شان دَدنيا سامان بيا مخې ته راشى نو بيا هغه هم اخلى. اويَقُولُونَ الخ جمله حاليه ده يعنى حال دا چې هغوى دَمغفرت اميدهم لرى سره دَدې چې هغوى دَخپلو حركتونو بار بار اعاده كوى او په هغې باندې اصراركوى او په تورات كښې اصرار كولوسره دَمغفرت هيڅ وعده نشته، ولې دَهغوى نه دكتاب عهدنه دې اخستې شوې استفهام تقريرى دې اضافت په معنى د ﺵ دې. چې هغوى دَالله تعالى په باره كښې هم هغه خبره اوكړى كومه چې حق وى (او آيا) دَهغوى په كتابونو كښې چې څه دى هغه ئى نه دى لوستلې دَ دَرَسُوْا عطف په يوخذ باندې دې نو بياسره دَاصرار نه دَهغه طرف ته دَمغفرت نسبت كولوسره بهتان ولې ترى اوكوردآخرت خو دَحرامو نه دَبچ كيدونكودَپاره بهتردې ولې هغوى په دې نه پوهيږى چې دار آخرت بهتردې، په ياء اوتاء سره چې آخرت ته په دنيا باندې ترجيح وركړى اوهغه خلق چې دَهغوى نه ئى كتاب مضبوط نيولې دې (مسكون) په تشديد او تخفيف سره دې اودَ مونځ پابندى كوى لكه چې عبدالله بن سلام اودَهغه ملګرى يقينًا مونږ به دَ نيكانوخلقو اجرنه ضائع كوو. دا جمله دَالذين خبردې او په دې كښې دَ ضميريه ځائى اسم ظاهر راوړلې شوې دې اى اجرهم او هغه وخت ياد كړه كوم وخت چې مونږ غرد بيخ نه راوچت كړو اودَهغوى دَپاسه موداسې راخوركړې وو لكه چې هغه چهترئى ده او هغوى دَدې

خبرې يقين کړې وو چې دابه دهغوى دپاسه راپريوځى، دالله تعالى دهغوى سره دا دې (غږ) په (هغوى باندې) د ورغورزولو دوعدې دوجې نه، که چرې هغوى دتورات احکام قبول نه کړې او هغوى ددې (احکامو) دسختوالى (مشکل) کيدو دوجې نه (د قبلولو نه) انکار کړې وو نو هغوى (هغه وخت) قبول کړو او مونږ هغوى ته وئيلى وو کوم کتاب چې مونږ تاسو ته درکوو دا کلک اونيسئ يعنى په کوشش او محنت سره اوځه چې په دې کښې ليکلى دى هغه په عملى توګه سره يادساتئ اميد دې چې تاسو به (دغلطې لارې نه) بچ شئ.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

قوله: وَاسْئَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ، حضور پاك ته چونکه دکلى والو حالات معلوم وو په دې وجه سوال دعلم دپاره کولو څه مقصد نشته په دې وجه دا سوال سوال دتوبيخ او تقريع او ګرځولې شو.

قوله: حَاضِرَةَ الْبَحْرِ اى بجوار البحر، ددغه کلى باره کښې مختلف اقوال دى بعضو أيلة وئيلى دى او بعضو طبريه، او بعضو مدين او بعض ايليا او وئيلې شوى دى چې په شام کښې د سمندر غاړه مراد ده، وئيلى شى كنتُ بحضرة الدار اى بقربها. (فتح القدير شوكانى)

قوله: شُرَّعًا دا د شارع جمع ده معنى يې ده ښکاره کيدل.

قوله: مَوْعِظَتُنَا، دا د يو سوال مقدر جواب دې. سوال دادې چې مَعْذِرَةً د قَالُوا مقوله ده او د مقوله جمله کيدل ضرورى وى حالانکه معذرة مفرد دې ددې ئى دا جواب ورکړو چې دا د قالوا مقوله نه ده بلکه دمبتداء محذوف خبر دې او هغه موعظتنا دې او دا د معذرةُ د رفع د قرات په صورت کښې دې او د نصب په صورت کښې به د فعل محذوف مفعول له وى تقديرى عبارت به دا شى عظناهم معذرة اى ليعذرة.

قوله: وهذا تفصيل: دا د يو سوال مقدر جواب دې. سوال دادې چې فَلَمَّا عَتَوْا باندې فاء داخليدو نه معلوميږى چې الله تعالى هغوى ته اول سزا ورکړه مګر هغوى بيا هم سرکشى اوکړه دهغې په سزا کښې ئى هغوى د بيزوګانو په شکل کړل حالانکه هغوى ته هم دغه دمسخ يو عذاب ورکړې شو ددې نه علاوه بل هيڅ عذاب نه دې ورکړې شوې او فَلَمَّا کښې فاء د تفصيل ده نه چې د تعقيب.

قوله: أُمَمًا: ياخو د قطعنا د ضمير نه حال دې يا د قطعنا مفعول ثانى دې.

قوله: نَاسٌ منهم خبر مقدم دې دون ذلك د موصوف محذوف صفت دې او هغه مبتداء ده. تقديرى عبارت دا سې دې ومنهم ناسٌ قوم دون ذلك.

قوله: الْجُمْلَةُ حَالٌ وَانْ يأتهم عرض مثله يأخذوه، دا جمله د يقولون د ضمير نه حال دې او يقولون په معنى د يعتقدون دې.

[ایاتونه:۱۷۲ - ۱۸۱]

{وَ} اذكُرْ {إِذْ} حِين {أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ} بَدَل اشْتِمَال مِمَّا قبله بإعادة الجار {ذريتهم} بِأَنْ أَخْرَجَ بَعْضهمْ مِنْ صُلْب بَعْض مِنْ صُلْب آدم نَسْلًا بَعْد نَسْل كَنَحْوِ مَا يَتَوَالَدُونَ كَالذَّرِّ بِنُعْمَانَ يَوْم عَرَفَة وَنَصَبَ لَهُمْ دَلَائِل عَلَى رُبُوبِيَّته وَرَكَّبَ فِيهِمْ عَقْلًا {وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ} قَالَ {أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى} انت ربنا {شهدنا} بذلك والإشهاد ل {أَنْ} لا {يَقُولُوا} بِالْيَاءِ وَالتَّاء فِي الْمَوْضِعَيْنِ أَيْ الْكُفَّار {يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَذَا} التوحيد {غافلين} لا نعرفه {أَوْ يقولوا إِنَّمَا أَشْرَكَ آبَاؤُنَا مِنْ قَبْلُ} أَيْ قَبْلَنَا {وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِنْ بَعْدِهِمْ} فَاقْتَدَيْنَا بِهِمْ {أَفَتُهْلِكُنَا} تُعَذِّبنَا {بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُونَ} مِنْ آبَائِنَا بِتَأْسِيسِ الشِّرْك الْمَعْنَى لَا يُمْكِنهُمْ الِاحْتِجَاج بِذَلِكَ مَعَ إشْهَادهمْ عَلَى أَنْفُسهمْ بِالتَّوْحِيدِ وَالتَّذْكِير بِهِ عَلَى لِسَان صَاحِب الْمُعْجِزَة قَائِم مَقَام ذِكْره فِي النفوس {وَكَذَلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَات} نُبَيِّنهَا مِثْل مَا بَيَّنَّا الْمِيثَاق لِيَتَدَبَّرُوهَا {وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ} عَنْ كُفْرهمْ {وَاتْلُ} يَا مُحَمَّد {عَلَيْهِمْ} أَيْ الْيَهُود {نَبَأَ} خَبَر {الَّذِي آتَيْنَاهُ آيَاتِنَا فَانْسَلَخَ مِنْهَا} خَرَجَ بِكُفْرِهِ كَمَا تَخْرُج الْحَيَّة مِنْ جِلْدهَا وَهُوَ بلعم بن بَاعُورَاءَ مِنْ عُلَمَاء بَنِي إسْرَائِيل سُئِلَ أَنْ يَدْعُو عَلَى مُوسَى وَأُهْدِيَ إلَيْهِ شَيْء فَدَعَا فَانْقَلَبَ عَلَيْهِ وَانْدَلَعَ لِسَانه عَلَى صدره {فأتبعه الشيطان} فادركه فصار قرينه {فكان من الغاوين} {وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنَاهُ} إلَى مَنَازِل الْعُلَمَاء {بِهَا} بِأَنْ نُوَفِّقهُ لِلْعَمَلِ {وَلَكِنَّهُ أَخْلَدَ} سَكَنَ {إلَى الْأَرْض} أَيْ الدُّنْيَا وَمَالَ إلَيْهَا {وَاتَّبَعَ هَوَاهُ} فِي دُعَائِهِ إلَيْهَا فَوَضَعْنَاهُ {فَمَثَله} صِفَته {كَمَثَلِ الْكَلْب إنْ تَحْمِل عَلَيْهِ} بِالطَّرْدِ وَالزَّجْر {يَلْهَث} يَدْلَع لِسَانه {أَوْ} إنْ {تَتْرُكهُ يَلْهَث} وَلَيْسَ غَيْره مِنْ الْحَيَوَان كَذَلِكَ وَجُمْلَتَا الشَّرْط حَال أَيْ لَاهِثًا ذَلِيلًا بِكُلِّ حَال وَالْقَصْد التَّشْبِيه فِي الْوَضْع وَالْخِسَّة بِقَرِينَةِ الْفَاء الْمُشْعِرَة بِتَرْتِيبِ مَا بَعْدهَا عَلَى مَا قَبْلهَا مِنْ الْمَيْل إلَى الدُّنْيَا وَاتِّبَاع الْهَوَى وَبِقَرِينَةِ قَوْله {ذَلِكَ} الْمَثَل {مَثَل الْقَوْم الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا فَاقْصُصْ الْقَصَص} عَلَى الْيَهُود {لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ} يَتَدَبَّرُونَ فِيهَا فَيُؤْمِنُونَ {سَاءَ} بِئْسَ {مَثَلًا الْقَوْم} أَيْ مَثَل الْقَوْم {الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَأَنْفُسهمْ كَانُوا يَظْلِمُونَ} بِالتَّكْذِيبِ {من يهد الله فهو المهتدى ومن يضلل فأولئك هم الخاسرون} {وَلَقَدْ ذَرَأْنَا} خَلَقْنَا {لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِنْ الْجِنّ وَالْإِنْس لَهُمْ قُلُوب لَا يَفْقَهُونَ بِهَا} الْحَقّ {وَلَهُمْ أَعْيُن لَا يُبْصِرُونَ بِهَا} دَلَائِل قُدْرَة اللَّه بَصَر اعْتِبَار {وَلَهُمْ آذَان لَا يَسْمَعُونَ بِهَا} الْآيَات وَالْمَوَاعِظ سَمَاع تَدَبُّر وَاتِّعَاظ {أُولَئِكَ كَالْأَنْعَامِ} فِي عَدَم الْفِقْه وَالْبَصَر وَالِاسْتِمَاع {بَلْ هُمْ أَضَلّ} مِنْ الْأَنْعَام لِأَنَّهَا تَطْلُب مَنَافِعهَا وَتَهْرُب مِنْ مَضَارّهَا وَهَؤُلَاءِ يُقْدِمُونَ عَلَى النَّار معاندة {أولئك هم الغافلون} {وَلِلَّهِ الْأَسْمَاء الْحُسْنَى} التِّسْعَة وَالتِّسْعُونَ الْوَارِد بِهَا الْحَدِيث وَالْحُسْنَى مُؤَنَّث الْأَحْسَن {فَادْعُوهُ} سَمُّوهُ {بِهَا وَذَرُوا} اُتْرُكُوا {الَّذِينَ يُلْحِدُونَ} مِنْ أَلْحَدَ وَلَحَدَ يَمِيلُونَ عَنْ الْحَقّ {فِي أَسْمَائِهِ} حَيْثُ اشْتَقُّوا منها اسماء لآلهتهم كاللات مِنْ اللَّه وَالْعُزَّى مِنْ الْعَزِيز وَمَنَاة مِنْ الْمَنَّان {سَيُجْزَوْنَ} فِي الْآخِرَة جَزَاء {مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} وَهَذَا قَبْل الْأَمْر بِالْقِتَالِ {وَمِمَّنْ خَلَقْنَا أُمَّة يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِ يَعْدِلُونَ} هُمْ أُمَّة مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا فِي حَدِيث

ترجمه: او یاد کړه هغه وخت چې کوم وخت ستا رب دَاولاد آدم دَ شاګانو نه دَهغوئ اولاد راوېستلو مِنۡ ظُهُوۡرِهِمۡ دَخپل ماقبل (مَنۡ بَنِیۡٓ اٰدَمَ)نه په اعادې دَجارسره بدل دې په داسې توګه چې په وادئ نعمان کښې دَعرفې په ورځ بعض دَ بعضو دشا نه دصلب آدم نه دَ میږو په شکل کښې راوویستل نسلاً بعدنسلٍ دَهغې مطابق چې څنګه به پیدا کیږی او په خپل ربوبیت باندې دَهغوی دَپاره دلائل قائم کړل او په هغوی کښې ئې عقل ترتیب کړو، او پخپله ئې هم هغوی په هغوی باندې ګواه جوړ کړل (الله) او فرمائیل آیا زه ستاسو رب نه یم؟ نو ټولو جواب ورکړو بیشکه ته زمونږه رب ئې اودا دَ ګواه کولو کار مونږ څکه اوکړو دې دَپاره چې تاسوْ دَ قیامت په ورځ داسې اونه وایئ چې مونږ خو دَدغه توحید نه ناخبره وو یعنی مونږ ته دَدې علم نه وو، یادا وئیل شروع نه کړئ چې شرک خوزمونږ نه وړاندې زمونږ پلارانوکړې وو دوارو خایونوکښې په یاء اوتاء سره (دَیاء په صورت کښې به) کافران مراد وی او مونږ خو روستو دَهغوی دَاولاد نه پیدا شو دَ کوم په وجه چې مونږ دَهغوی اقتداء اوکړه ولې ته مونږ ته دَهغوی دَ قصور په بدله کښې سزا راکوې چې زمونږه دَ پلارانو نه غلط کارو خلقو دَ شرک بنیاد کیخود و اوکړی یئ وو، مطلب دادې چې هغوی په خپل ذات باندې ګواه جوړولو نه پس دَدې قسم احتجاج به ممکن نه وی او صاحب دَ معجزې (حضرت نبی ﷺ) په ژبه یاداشت ورکول پخپله هم دَ هغوی په زړونو کښې دَ یاد پاتې کیدو په څائی دی او مونږ هم دغه شان واضحه نخښې بیانوو لکه څنګه چې مونږ عهد الست بیان کړو دې دَپاره چې دا خلق په هغې کښې غور اوفکر اوکړی چې دَ کفر نه منع شی. اې محمد ﷺ یهودو ته دَهغه سړی خبر واوروه چاته چې مونږ خپلې نخښې (کرامتونه) ورکړې وۆ نو هغه کفردَ وجې نه دَ هغه کراماتونه اووتلو لکه څنګه چې مار دَخپل پټ نه اوځی او هغه دَبنی اسرائیلو دَ علماؤنه بلعم بن باعور وو. ده ته درخواست اوکړې شو چې حضرت موسی ﷺ اودَهغه ملګروته بد دعا اوکړه اوده ته څه هدیه هم ورکړې شوه نو هغه بددعا اوکړه خو هغه خیرې هم په هغه باندې راؤګرځیدې اودَهغه ژبه راووتله اودَهغه په سینه باندې زوړندشوه، بیا شیطان هغه پسې شو هغه ئې رالاندې کړو او دَهغه دوستت جوړشو نو هغه په لارخطاکونکو (ګمراهانو) کښې شامل شو، که چرې مونږ غوښتل نو دَدغه آیاتونو په ذریعه به مونږ هغه ته اعلی درجات ورکړې وو په داسې طریقه چې هغه ته به مودَعمل توفیق ورکړې وې مګر هغه دپستئ یعنی ددنیاطرف ته ټیټ شو اودَهغې طرف ته مائل شو اودَ خواهشاتوطرف ته رابللو کښې ئې دَخپل خواهش تابعداری اوکړه نو مونږ هم هغه پست(ذلیل) کړو نو دَهغه مثال دَهغه سپی په شان دې چې که چرې ته دَ شړلو په ذریعه په هغه سختی کوې نو هغه ژبه راوویستې وی او که چرې پریږدئ نو بیائې هم ژبه راویستې وی، دَ سپی نه علاوه په بل څناور کښې داخاصیت نشته

اودواړه شرطيه جملې حال دی. يعنی لاهثًا ذليلا، حال دادې چې هغه ژبه زوړند کړې په هرحال کښې ذليل دې او مقصد په پستی او ذلت کښې تشبيه ورکول دی (او) قرينه فاء ده کوم چې مشعر دې دَخپل مابعد په ماقبل باندې کوم چې دَدنيا طرف ته دَميلان اوخواهش اتباع ده، دَمرتب کيدو دَوجې نه دَهغه قول ذلك المثل په قرينې سره، دامثال دې دَهغه خلقو چاچې زمونږ آياتونه دروغ ګڼړلی دی نوتاسو يهودو ته قصې واؤروئی چې په هغې کښې غور او فکراوکړی او ايمان راوړی، اودَهغه خلقو مثال چاچې زمونږ آياتونه دروغ ګڼړلی خراب مثال دې هغه خلق دَ تکذيب په وجه هم خپل نقصان کوی الله تعالی چې چاته هدايت کوی هم هغه خلق هدايت يافته دی اوڅوک چې بې لارې کړی هم هغه دَ تاوانيانو نه دی اودا حقيقت دې چې مونږ ډير پيريان اوانسانان دَ دوزخ دَپاره پيداکړی دی دَهغوی داسې زړونه دی چې په هغې سره دَ حق پيژندګلونه کوی اودَهغوی سترګې دی خو په هغې سره دَالله تعالی دَ قدرت دلائل دَ عبرت په نظرسره نه ګوری اودَ هغوی غوږونه شته خو دَهغې په ذريعه آياتونه اونصيحتونه دَتدبر اونصيحت دَپاره نه اوری داخلق په نه پوهيدو کښې نه کتوکښې اونه په اوريدو کښې دَ ځناورو په شان دی بلکه دَهغې نه هم زيات خراب دی ځکه چې ځناور دَ خپلې فائدې څيز طلب کوی اودَ تکليف رسونکو څيزونونه (لرې) تختی اوداخلق خو دَعناد دَ وجې نه دوزخ طرف ته وړوړاندې کيږی. داهغه خلق دی چې په غفلت کښې پراته دی اودَ الله تعالی يوکم سل ښکلې نومونه دی کوم چې په حديث کښې واردشوی دی حُسنیٰ دَ اَحْسَنُ مؤنث دې لهذا هغه په هم دغه نومونوسره رابلئی اوهغه خلق پريږدئی چې دَ الله تعالی په نومونوکښې کوږوالې (الحاد)اختياروی دا دَ اَلْحَدَ او لَحَدَ نه مشتق دې په داسې توګه چې هغوی دَالله تعالی نومونونه دَ خپلو معبودانو نومونه جوړکړی دی مثلاً لات دَالله نه، العزی دَعزيز نه اومنات دَ منان نه، ډيرزر به هغوئ په آخرت کښې دهغه څه بدله اوموموی څه چې هغوی کول، داحکم دَ جهاددَ حکم نه وړاندې دې اوزمونږ په مخلوق کښې يوجماعت داسې هم دې چې دَحق مطابق هدايت اوهم دَحق مطابق انصاف کوی اوهغه دَمحمد ﷺ امت دې لکه چې په حديث کښې راغلی دی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: بَدَلُ اشتمالٍ مما قبله،يعنی من ظهورهم، دبنی آدَمَ نه بدل الاشتمال دې داقول دکواشی په اتباع کښې دې، صاحب کشاف وئيلی دی چې بدل البعض عن الكل دې اوهم دغه ظاهردی، لکه چې ضربت زيدًا ظهرَہ ته چابدل الاشتمال نه دی وئيلی، تقديری عبارت به داسې شی وَاِذْاَخَذَرَبُّكَ من ظهوربنی آدم.

قوله: مَنْ صُلْبٍ بَعْضٍ مِنْ صُلْبِ آدَمَ. من صلب بعض موصوف دې اومن صلب آدم بنی

صفت دې يعنى راوويستلو اولاد دَ صلب بعض نه كوم چې صلب آدم دې.

قوله: نسلاً بعد نسلٍ، يعنى هم په دې ترتيب سره په دنياكښې ظهوركيدونكې وو، يعنى اول ئې دَحضرت آدم عليه السلام دَ شانه دَ آدم عليه السلام بلاواسطه ذريت راوويستلو اوبيا بېړ دَ ذريت آدم دَ شانه دَهغوى اولاد راوويستلو.

قوله: قَالَ، لفظ قال ئې دَدې وجې نه مقدرمنلې دې چې بلاضرورت التفات عن الغيبت الى التكلم لازم نشى.

قوله: أَلَسْتُ رَبُّنَا، دااضافه دَ يوسوال مقدرجواب دې چې بلى دَ قالو مقولې ده اودَ مقوله دَ پاره جمله كيدل ضرورى دى حالانكه بلى (حرف) مقوله واقع ده، جواب دادې چې په عبارت كښې حذف دې. تقديرى عبارت دادې بلى أنت ربنا لهذا اوس هيڅ اشكال پاتې نه شو.

قوله: والاشهَادُ، لاشهَادُ اودَلام په تقدير سره ئې اشاره اوكړه چې أن تقولوا، دَ شهدنا مفعول له دې. (تسهيل)

قوله: شَهِدْنَا، په دې كښې درې احتمالات دى ① داچې دَ ملائكه كلام وى كومې چې الله تعالى دَ ذريت آدم په اقراربانديې ګواه جوړې كړې، په دې صورت كښې به وقف په بلى باندې وى. ② داهم احتمال دې چې دَ ذريت كلام وى په دې صورت كښې به معنى داوى مونږ دَدې اقرار اوكړو، ګواهى وركړه، په دې صورت كښې به په بلى باندې وقف صحيح نه وى بلكه په شهدنا باندې به موقف وى. ③ دَالله تعالى كلام وى، أى شهدنا على إقراركم كراهة أن تقولوا، أولئلا تقولوا يعنى مونږ تاسو نه څكه اقرار واخستو دې دَپاره چې تاسو دَ لاعلمئ عذر اونه كړې شئ يادا خبره مو ناخوښه كړه چې تاسو دَلاعلمئ عذر اوكړئ.

قوله: المَعْنى لايُمْكِنُهُمُ الاحْتِجَاجُ بذلك مطلب دادې چې دَ ذريت آدم نه اقرار اخستلو نه پس به هغوى سره دَ لاعلمئ او غفلت عذرباقى پاتې نه شى اودابه نه شى وئيلې، يا إله العالمين دَدې عهداوميثاق باره كښې مونږ ته هيڅ علم نه وو دَ كوم دَ وجې نه چې مونږ په غفلت كښې پاتې شو.

قوله: وَالتَّذْكِيْرُبه عَلى لِسَانِ صَاحِبِ المُعْجِزَةِ قَائِمٌ مَقَامَ ذِكْرِه فى النُّفُوْسِ دا عبارت دَ يوسوال مقدرجواب دې،

سوال: دادې چې دَ ازل په ورځ اخستې شوې اقرار دنياته دَراتلونه پس لنامنسا شو اوس چاته هم عهد أَلَسْتُ يادنه دې نودَداسې عهدد څه فائده چې دَسره يادنه وى او نه دَدې وجې نه مواخذه كول پكاردى.

جواب: داهيركړې شوې عهد الست ديادولودَپاره خو انبياء كرام مبعوث كولې شى چې

بار بار ئی دَدې عهد یاد ګیرنه کړې ده، لهذا اوس دَ عدم مواخذه څه وجه نشته دې.

**قوله:** اَلتَّذْكِيْرُ مُبْتَدَاءٌ ده او قائمقام ذكره في النفوس دَدې خبر دې.

**قوله:** سَكَنَ په دې کښې اشاره ده چې أَخْلَدَ د خلود نه مشتق نه دې دَ کوم معنی چې دوام یعنی همیشه والې دې بلکه أَخْلَدَ په معنی دَ مائل دې، أَخْلَدَ إِلَى الأَرْضِ أي مال إليها.

**قوله:** في دعائه إليها أي دعاء الهوى إياه، یعنی دَنفس خواهش بلعم دَدنیا طرف ته راوبللو په دې کښې مصدر مضاف فاعل ته دې.

**قوله:** فَوَضَعْنَاهُ، اى ذللناه.

**قوله:** أَوْإِنْ تَتْرُكْهُ، په بعض نسخو کښې إِنْ پاتې شوې دې کوم چې دَ کاتب سهو ده. مفسر علام إِنْ مقدر منلو سره اشاره اوکړه چې دَدې عطف په تحمل باندې دې نه چې لِن تحمل باندې لهذا دَتترکه جزم ښکاره شو.

**قوله:** جُمْلَتَا الشَّرْطِ حَالٌ، یعنی معطوف او معطوف علیه دواړه جملې حال دی، مطلب دادې چې سپې په هر حال کښې لاهث وی که دَ شدت حالت وی او که دَ راحت.

[ایاتونه: ۱۸۲ - ۱۸۸]

{وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا} الْقُرْآن مِنْ أَهْل مَكَّة {سنستدرجهم} نأخذهم قليلا قليلا {من حيث لا يعلمون} {وَأُمْلِي لَهُمْ} أمهلهم {إِنَّ كَيْدِي مَتِينٌ} شَدِيد لا يطاق {أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا} فَيَعْلَمُوا {مَا بِصَاحِبِهِمْ} مُحَمَّد صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {مِنْ جِنَّةٍ} جُنُون {إِنْ} مَا {هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ مُبِينٌ} بَيِّن الْإِنْذَار {أولم ينظروا في ملكوت} ملك {السماوات وَالْأَرْض وَ} فِي {مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ} بَيَان لِمَا فَيَسْتَدِلُّوا بِهِ عَلَى قُدْرَة صَانِعه وَوَحْدَانِيّته {و} فِي {أَنْ} أَيْ أَنَّهُ {عَسَى أَنْ يَكُونَ قَدِ اقْتَرَبَ} قَرُبَ {أَجَلُهُمْ} فَيَمُوتُوا كُفَّارًا فَيَصِيرُوا إِلَى النَّار فَيُبَادِرُوا إِلَى الإِيمان {فبأي حديث بعده} أي القرآن {يؤمنون} {مَنْ يُضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهُ وَيَذَرُهُمْ} بِالْيَاءِ وَالنُّون مَعَ الرَّفْع اسْتِئْنَافًا وَالْجَزْم عَطْفًا عَلَى مَحَلّ مَا بَعْد الْفَاء {فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ} يَتَرَدَّدُونَ تَحَيُّرًا {يَسْأَلُونَكَ} أَيْ أَهْل مَكَّة {عَنِ السَّاعَةِ} الْقِيَامَة {أَيَّانَ} مَتَى {مُرْسَاهَا قُلْ} لَهُمْ {إِنَّمَا عِلْمُهَا} مَتَى تَكُون {عِنْدَ رَبِّي لَا يُجَلِّيهَا} يُظْهِرهَا {لِوَقْتِهَا} اللَّام بِمَعْنَى فِي {إِلَّا هُوَ ثَقُلَتْ} عَظُمَتْ {فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} عَلَى أَهْلهَا لِهَوْلِهَا {لَا تَأْتِيكُمْ إِلَّا بَغْتَةً} فَجْأَة {يَسْأَلُونَكَ كَأَنَّكَ حَفِيٌّ} مُبَالِغ فِي السُّؤَال {عَنْهَا} حَتَّى عَلِمْتهَا {قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ} تَأْكِيد {وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ} أَنَّ عِلْمهَا عِنْده تعالى {قُلْ لَا أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا} أَجْلِبهُ {وَلَا ضَرًّا} أدفعه {إِلَّا مَا شَاءَ اللّٰهُ وَلَوْ كُنْتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ} مَا غَابَ عَنِّي {لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوءُ} مِنْ فَقْر وَغَيْره لِاحْتِرَازِي عَنْهُ بِاجْتِنَابِ الْمَضَارّ {إِنْ} مَا {أَنَا إِلَّا نَذِيرٌ} بِالنَّارِ لِلْكَافِرِينَ {وَبَشِيرٌ} بِالْجَنَّةِ {لقوم يؤمنون}]

ترجمه: دَاهل مکه نه چې کوموخلقو زمونږ آیاتونه یعنی قرآن دروغ اوګڼړلو مونږ هغوی وار په وار په ګرفت کښې اخلو په داسې طریقه چې هغوی ته پته هم نه لګی اوهغوی ته زه مهلت ورکوم بیشکه زما تدبیرډیرمضبوط دې دَ کوم په چا کښې هیڅ طاقت نشته، آیادې خلقوغوراونه کړو؟ چې پوهه شوې وې چې دَهغوی ملګرې محمد ﷺ ته هیڅ یوقسم جنون نشته هغه خوصرف صفا صفاویرونکې دې ولې دغه خلقو دَ زمکې اوآسمان په عالم کښې اوپه (نورو) څیزونوکښې کوم چې الله تعالی پیداکړی دی (من شئ) دَمابیان دې، چې دَهغې دَ جوړونکی په قدرت اودَهغه په وحدانیت باندې استدلال کړې وې او په دې خبره کښې چې ممکن دی چې دَهغوی دَ مرګ وخت نیزدې راغلې وی اوهغوی هم دکفر په حالت کښې مړه شی او اور ته به اورسی. لهذا دَایمان طرف ته وړاندې کیدل پکاردی. بیابه دَ قرآن په څائی په کومه خبره ایمان راوړی. څوک چې الله تعالی ګمراه کړی هغه هیڅوک په لارنه شی راوستې اوالله تعالی هغوی دَهغوی په ګمراهئ کښې په حیرانتیاسره حیران پریږدی، دَیاء اونون په صورت کښې دَاستیناف په توګه په رفع سره، او په جزم سره دَ مابعدالفاء په محل باندې دَعطف دَ وجې نه، اهل مکه ستاسه دَ قیامت په باره کښې سوال کوی چې دابه کله واقع کیږی؟ ته هغوی ته اووایه چې قیامت به کله واقع کیږی، دَدې علم صرف هم زما رب سره دې، هغه دَهغې په خپل وخت باندې هم هغه ښکاره کولې شی هغه به دَآسمانونو او زمکې والوباندې دَهغې دَخطرناک کیدو دَ وجې ډیر درندوخت وی، هغه (قیامت) به په تاسو ناڅاپی راشی، داخلق دَقیامت متعلق تانه داسې سوال کوی لکه چې تادَهغې تحقیق کړې دې تردې چې تاته دَهغې علم اوشو، ته ورته اووایه چې ددې علم صرف هم الله تعالی سره دې داتاکید دې لیکن اکثر خلق نه پوهیږی چې ددې علم صرف الله تعالی سره دې. ته ورته اووایه چې زه پخپله دَخپل ذات دَپاره دَ څه نفع چې زه یې حاصله کړې شم اختیارنه لرم اونه دَنقصان چې هغه لرې کړې شم مګرصرف هم دومره څومره چې الله تعالی غواړی. که چرې مادَ غیبوخبرې پیژندلې نومابه ډیرې منافع راجمع کړې وې اوماته به دَفقر وغیره هیڅ تکلیف نه رارسیدلو زما دَهغې نقصان نه دَ بچ کیدلودَ وجې دَ مضر څیزونونه د اجتناب په سبب، زه خو کافران دَ اور نه ویرونکې یم اواهل ایمان ته دَ جنت زیرې ورکونکې یم.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: نَأخذُ، دَنَسْتَدْرِجُ تفسیر په نَأخذُ سره دکولو کښې یې مراد دی معنی طرف ته اشاره اوکړه، دَاستدراج لغوی معنی ده درجه په درجه ختل، (الاستصعاد درجةً بعددرجةٍ) چونکه دکافرانودَپاره څه اصعادنشته څکه دَدې نه مرادی معنی مراد ده، یعنی وار په وار ګرفت کښې اخلې.

قوله: لَهُمْ، دا اضافه هم دَمرادی معنی بیانولودَپاره ده. څکه چې دَأملی معنی

دَ إملاء كولو ده كومه چې دلته مراد نه ده.

**قوله:** فَيَعْلَمُوْن داد یوسوال جواب دي.

**سوال:** فيعلمون مقدرمنلو څه ضرورت پيښ شو؟

**جواب:** فيعلمون مقدر منلو سره يې اشاره اوكړه چې مابِصَاحِبِهِمْ د يَعلمون مقدرمفعول دي نه چې دَ يتفكروا ځكه چې يتفكروا، لازم دي دي ته دَمفعول ضرورت نشته حالانكه مفعول موجود دي. لهذا اعتراض ختم شو چې يتفكروا مفعول طرف ته متعدي نه دي.

**قوله:** جُنُوْنٌ، دَجنة تفسيريه جنون سره كولوكښې يې اشاره اوكړه چې دَ جنة نه جن قوم مراد نه دي ځكه چې داد كافرانو په جواب كښې واقع دي كافرانوبه وئيل إنّ صاحكم لمجنون كه دَ جنة نه قوم جن (جنات) مراد واخستې شي نو په سوال اوجواب كښې به مطابقت پاتې نه شي.

**قوله:** وفي دَدې تقدير مقصددي خبري ته اشاره ده چې دَماخلق الله عطف په ملكوت باندې دي نه چې په قريب (الأرض) باندې ځكه چې په دې صورت كښې به معنى صحيح نه وي.

**قوله:** أي أنَّهُ په دې تقدير كښې اشاره ده چې أنْ مخففه عن الثقيله دي نه چې مصدريه لكه چې دَبعض حضراتو دا خيال دي ځكه چې أنْ مصدريه په افعال غيرمتصرفه باندې نه داخليږي ځكه چې دهغې مصادر نه وي.

**قوله:** فَيَنْبَادَرُوْا: دا دَ أوَلَمْ ينظروا جواب كيدودَ وجې نه مجزوم دي.

**قوله:** مع الرَّفعِ استِيْنَافًا، أي وهويذرهم.

**قوله:** وبِالجَزْمِ عَطْفًا عَلَى مَحَلِّ مَابَعْدَ الفَاءِ دا په نذرهم كښې دويم تركيب ته اشاره ده. په نذر كښې دوه اعراب دی رفع په وجه دَ استيناف او جزم په سبب دَ جواب نهي، لاهادي له جواب شرط كيدودَ وجې نه محلاً مجزوم دي.

**سوال:** په محل باندې يې عطف كړو په لفظ باندې يې عطف نه دي كړي دَدې څه وجه ده؟

**جواب:** دَدې دَپاره چې په دې صورت كښې دَفعل په اسم باندې عطف لازم راځي كوم چې مستحسن نه دي، تقديري عبارت دا دي من يضلل الله فلاهديه أحد ويذرهم.

**قوله:** مُرْسٰهَا، إرْسَاءٌ نه مصدرميمي دي په معنى دَ استقرار او اثبات، مجرد رَسَا، بمعنى لنګه رست السفينة أي وقفت عن الجرى.

**قوله:** حَفِيٌّ په سوال كښې مبالغه كونكې يعنى دَمسئلې بيخ ته دررسيد وكوشش كونكې، خوك چې داسې مبالغه كوى هغه دَ حقيقت حال نه واقف كيږي اوهم دَدې نه إحفاء الشارب دي.

[ایاتوله:۱۸۹-۲۰٦]

{هُوَ} أيْ اللّه {الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ} أيْ آدم {وَجَعَلَ} خَلَقَ {مِنْهَا زَوْجَهَا} حَوَّاء {لِيَسْكُنَ إلَيْهَا} وَيَأْلَفهَا {فَلَمَّا تَغَشَّاهَا} جَامَعَهَا {حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيفًا} هُوَ النُّطْفَة {فَمَرَّتْ بِهِ} ذَهَبَتْ وَجَاءَتْ لِخِفَّتِهِ {فَلَمَّا أَثْقَلَتْ} بِكِبَرِ الْوَلَد فِي بَطْنهَا وَأَشْفَقَا أَنْ يَكُون بَهِيمَة {دَعَوَا اللَّهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ آتَيْتَنَا} وَلَدًا {صَالِحًا} سَوِيًّا {لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ} لَك عَلَيْهِ {فَلَمَّا آتَاهُمَا} وَلَدًا {صَالِحًا جَعَلَا لَهُ شُرَكَاءَ} وَفِي قِرَاءَة بِكَسْرِ الشِّين وَالتَّنْوِين أيْ شَرِيكًا {فِيمَا آتَاهُمَا} بِتَسْمِيَتِهِ عَبْد الْحَارِث وَلَا يَنْبَغِي أَنْ يَكُون عَبْدًا إلَّا لِلّٰهِ وَلَيْسَ بِإِشْرَاكٍ فِي الْعُبُودِيَّة لِعِصْمَةِ آدَم وَرَوَى سَمُرَة عَنْ النَّبِيّ صَلَّى اللّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا وَلَدَتْ حَوَّاء طَافَ بِهَا إبْلِيس وَكَانَ لَا يَعِيش لَهَا وَلَد فَقَالَ سَمِّيهِ عَبْد الْحَارِث فَإِنَّهُ يَعِيش فَسَمَّتْهُ فَعَاشَ فَكَانَ ذَلِكَ مِنْ وَحْي الشَّيْطَان وَأَمْره رَوَاهُ الْحَاكِم وَقَالَ صَحِيح وَالتِّرْمِذِيّ وَقَالَ حَسَن غَرِيب {فَتَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ} أيْ أَهْل مَكَّة بِهِ مِنْ الْأَصْنَام وَالْجُمْلَة مُسَبَّبَة عَطْف عَلَى خَلَقَكُمْ وَمَا بَيْنهمَا اعتراض {أيشركون} به في العبادة {ما لا يخلق شيئا وهم يخلقون} {وَلَا يَسْتَطِيعُونَ لَهُمْ} أيْ لِعَابِدِيهِمْ {نَصْرًا وَلَا أَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُونَ} بِمَنْعِهَا مِمَّنْ أَرَادَ بِهِمْ سُوءًا مِنْ كَسْر أَوْ غَيْره وَالِاسْتِفْهَام لِلتَّوْبِيخِ {وَإِنْ تَدْعُوهُمْ} أيْ الْأَصْنَام {إِلَى الْهُدَى لَا يَتَّبِعُوكُمْ} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد {سَوَاءٌ عَلَيْكُمْ أَدَعَوْتُمُوهُمْ} إلَيْهِ {أَمْ أَنْتُمْ صَامِتُونَ} عَنْ دُعَائِهِمْ لَا يَتَّبِعُوهُ لعدم سماعهم {إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ} تَعْبُدُونَ {مِنْ دُونِ اللَّهِ عِبَادٌ} مَمْلُوكَة {أَمْثَالُكُمْ فَادْعُوهُمْ فَلْيَسْتَجِيبُوا لَكُمْ} دُعَاءَكُمْ {إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فِي أَنَّهَا آلِهَة ثُمَّ بين غاية عجزهم وفضل عابديهم عليهم فقال {ألهم أرجل يمشون بها أم} بل أ {لهم أيد} جمع يد {يبطشون بها أم} بل أ {لهم آذان يسمعون بها} استِفْهَام إنْكَارِيّ أيْ لَيْسَ لَهُمْ شَيْء مِنْ ذَلِكَ مِمَّا هُوَ لَكُمْ فَكَيْفَ تَعْبُدُونَهُمْ وَأَنْتُمْ أَتَمّ حَالًا مِنْهُمْ {قُلْ} لَهُمْ يَا مُحَمَّد {ادعوا شركاءكم} إلى هلاكي {ثم كيدون فلا تنظرون} تمهلون فإني لا أبالي بكم {إن وليي اللّه} مُتَوَلِّي أُمُورِي {الَّذِي نَزَّلَ الْكِتَابَ} الْقُرْآن {وهو يتولى الصالحين} {وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَكُمْ وَلَا أَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُونَ} فَكَيْفَ أُبَالِي بِهِمْ {وَإِنْ تَدْعُوهُمْ} أيْ الْأَصْنَام {إِلَى الْهُدَى لَا يَسْمَعُوا وَتَرَاهُمْ} أيْ الْأَصْنَام يَا مُحَمَّد {يَنْظُرُونَ إليك} اي يقابلونك كالناظر {وهم لا يبصرون} {خُذِ الْعَفْوَ} الْيُسْر مِنْ أَخْلَاق النَّاس وَلَا تَبْحَث عَنْهَا {وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ} بِالْمَعْرُوفِ {وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِينَ} فَلَا تُقَابِلهُمْ بِسَفَهِهِمْ {وَإِمَّا} فِيهِ إدْغَام نُون إنْ الشَّرْطِيَّة فِي مَا الْمَزِيدَة {يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَانِ نَزْغٌ} أيْ إنْ يَصْرِفك عَمَّا أُمِرْت بِهِ صَارِف {فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ} جَوَاب الشَّرْط وَجَوَاب الْأَمْر مَحْذُوف أيْ يَدْفَعهُ عَنْك {إِنَّهُ سَمِيعٌ} لِلْقَوْلِ {عَلِيمٌ} بِالْفِعْلِ {إِنَّ الَّذِينَ اتَّقَوْا إِذَا مَسَّهُمْ} أَصَابَهُمْ {طَيْفٌ} وَفِي قِرَاءَة طَائِف أيْ شَيْء أَلَمَّ بِهِمْ {مِنَ الشَّيْطَانِ تَذَكَّرُوا} عِقَاب اللّه وَثَوَابه {فَإِذَا هُمْ مُبْصِرُونَ} الْحَقّ مِنْ غَيْره فَيَرْجِعُونَ {وَإِخْوَانُهُمْ} أيْ إخْوَان الشَّيَاطِين مِنْ الْكُفَّار {يَمُدُّونَهُمْ} أيْ الشَّيَاطِين {فِي الْغَيِّ ثُمَّ} هُمْ {لَا يُقْصِرُونَ} يَكُفُّونَ عَنْهُ بِالتَّبَصُّر كَمَا تَبَصَّرَ الْمُتَّقُونَ {وَإِذَا لَمْ تَأْتِهِمْ} أيْ أَهْل مَكَّة {بِآيَةٍ} مِمَّا اقْتَرَحُوا

{قَالُوا لَوْلَا} هلا {اجْتَبَيْتَهَا} انشأتها من قبل نفسك {قُلْ} لهم {إِنَّمَا أَتَّبِعُ مَا يُوحَى إِلَيَّ مِن رَّبِّي} وَلَيْسَ لِي أَنْ آتِيَ مِنْ عِنْدِ نَفْسِي بِشَيْءٍ {هَذَا} القرآن {بصائر} حجج {من ربكم وهدى ورحمة لقوم يؤمنون} {وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا} عَنْ الْكَلَام {لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ} نَزَلَتْ فِي تَرْك الْكَلَام فِي الْخُطْبَة وَعُبِّرَ عَنْهَا بِالْقُرْآنِ لِاشْتِمَالِهَا عَلَيْهِ وَقِيلَ فِي قِرَاءَة الْقُرْآن مُطْلَقًا {وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ} أَيْ سِرًّا {تَضَرُّعًا} تَذَلُّلًا {وَخِيفَةً} خَوْفًا مِنْهُ {و} فَوْق السِّرّ {دُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ} أَيْ قَصْدًا بَيْنهمَا {بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ} أَوَائِل النَّهَار وَأَوَاخِره {وَلَا تَكُن مِّنَ الْغَافِلِينَ} عَنْ ذِكْر اللَّه {إِنَّ الَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ} أَيْ الْمَلَائِكَة {لَا يَسْتَكْبِرُونَ} يَتَكَبَّرُونَ {عَنْ عِبَادَتِهِ وَيُسَبِّحُونَهُ} يُنَزِّهُونَهُ عَمَّا لَا يَلِيق بِهِ {وَلَهُ يَسْجُدُونَ} أَيْ يَخُصُّونَهُ بالخضوع والعبادة فكونوا مثلهم

**ترجمه:** هغه يعنی هم الله تعالی دی چی تاسوئی دَ یونفس یعنی حضرت آدم علیه السلام نه پیدا کړئی اوهم دَ دغه نفس نه ئی دَ هغه جوړه بی بی حواء پیدا کړه دی دَ پاره چی په هغی سره سکون حاصل کړی اود هغی سره محبت اوکړی چنانچی په هغی راخورشو یعنی هغی سره ئی مجامعت اوکړو. نو دَ هغی سپک غوندی حمل شو. هغوی په دی خبره اوویریدل چی دغه (حمل) چرته څه ځناورنه وی نو هغوی خپل رب الله تعالی نه دعا اوغوښتله که چری ته مونږ ته نیک صحیح سالم بچی راکړی نومونږ به په هغی باندی ستا شکرګذاریو، نوچی کله الله تعالی هغوی ته صحیح سالم اولاد ورکړونو دوارو (بی بی) دَ (الله تعالی) دَ ورکړی شوی بچی نوم عبدالحارث کیخودو سره دَ الله تعالی شریک اوګرځولو اوپه یوقراءت کښی دَ شین په کسری سره اودکاف په تنوین سره دی (شرکًا) دی حالانکه دا قطعًا صحیح نه دی چی دَ الله تعالی نه علاوه دَ چا بنده وی، اودا (شرك فی التسمیه دی) شرك فی العبادت نه دی. دَ حضرت آدم علیه السلام معصوم کیدو دَ وجی او (حضرت) سمره رضی الله عنه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کړی دی چی حضورپاك صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل کوم وخت چی دَ حواء بی بی بچی پیدا شو نو ابلیس هغوی له چکری وهل شروع کړی اودَ حواء بی بی بچی به ژوندی نه پاتی کیدو ابلیس هغی ته اووئیل چی ته دَ ده نوم عبدالحارث کیږده نودی به ژوندی پاتی شی. نو حضرت حواء دَ هغه نوم (عبدالحارث) کیخودو نوبچی ژوندی پاتی شو اودا هرڅه دَ شیطان په اشاره اودَ هغه په حکم سره اوشو. دا حاکم روایت کړی دی او دی ته ئی صحیح وئیلی دی اوترمذی ورته حسن غریب وئیلی دی. پس الله تعالی دَ اهل مکه دَ هغه سره دَ بتانو دَ شریک کولونه پاك دی. او (فتعلی الله عما یشرکون) جمله مسببه ده اوپه خلقکم باندی عطف ده او دَ دواړوپه مینځ کښی جمله معترضه ده آیا هغوی په عبادت کښی دَ هغه (داسی) شریک ګرځوی چی هیڅ نه شی پیدا کولی اوهغه پخپله مخلوق دی اوهغوی دَ خپل عبادت کونکو دَ هیڅ قسم امداد نه شی کولی اونه خپل ځان پخپله بچ کولی شی دَ هغه سری نه چی په بدنیتنی

سره دَهغوی دَ ماتولو وغيره اراده اوکړی. او استفهام دَتوبيخ دَپاره دے اوکه تاسو بتان دَ هدايت (لارخودنې) دَپاره رابلې نوهغوی به ستاسو خبره نه منی (يتبعوکم) په تشديد اوتخفيف سره دے ستاسودَپاره برابر دی چې تاسوهغوئ دَ لارخودنې دَپاره رابلئ اوکه نه ئې رابلئ دَهغوی دَ نه اوريدو دَ وجې نه ستاسو په آواز به غوږ نه خوزوی. دَالله تعالی پريخودوسره چې تاسو دَ چابندگی کوئی هغه هم ستاسو په شان مخلوق دے نوتاسو هغوی ته آواز کولوسره اوگورئی هغوی له پکاردی چې ستاسو په آوازباندې جواب درکړی، که چرې تاسو په خپله وعده کښې رښتونی يئې چې دا معبودان دی بيا دَ بتانو ډيره زياته عاجزی او دَهغوی دَ عبادت کونکو په هغوی باندې فضيلت بيانولوسره فرمائی آيا دَ دوی خپې شته چې په هغې تگ اوکړې شی؟ يادَ دوی لاسونه شته چې په هغې نيول اوکړی؟ ابن دَ بد جمع ده يادَ دوی سترگې شته په کوم سره چې هغوی ليدل اوکړې شی يادَدوی غوږونه شته چې په هغې سره واوريدې شی؟ (په دې ټولو ځايونو کښې) استفهام انکاری دے يعنی په ذکرشوو څيزونوکښې هغوی سره يوهم نشته کوم چې تاسو سره دی نوبياتاسو په کوم بنيادَهغوی بندگی کوئی حالانکه تاسودَهغوی نه دَ حالت په اعتبارسره (بهرحال) بهتر يئ. اې محمد ﷺ دوی ته اووايه زمادَ هلاکت دَپاره خپل شريکان راوُغوارئی بيا زماباره کښې تدبيراوکړئی او ماته مهلت مه راکوئی زه ستاسو هيڅ پرواه نه کوم بيشکه زما امدادی الله تعالی دے چاچې کتاب (يعنی) قرآن نازل کړو اوهغه په خپله نگرانئ کښې دَ نيکانوخلقو حفاظت کوی اودَ چاچې تاسو الله تعالی پريخودوسره بندگی کوئی هغه ستاسو امداد نه شی کولې اونه هغوی په خپل امدادباندې قادر دی، نوزه ولې دَهغوی پرواه اوکړم؟ اوکه چرې تاسو بتان دَ لارخودنې دَپاره رابلئ نوهغوی نه اوری. او اې محمد ﷺ که چرې ته دې بتانوته اوگورې نو داسې به معلوميږی چې هغه ستا طرف ته گوری يعنی دَ کتونکوپه شان ستا په مخامخ دی حالانکه هغوی هيڅ نه شی ليدلې ته معافی اختيارکړه (يعنی) دَ خلقو دَ اخلاقو باره کښې دَ آسانئ نه کار واخله (دَهغوی دَ عيبونو) په لټون کښې مه پريوځه اودَ نيکوحکم کوه اودَ جاهلانونه ځان ډډې ته کړه اودَهغوی دَ بيوقوفتوب مقابله مه کوه اوکه چرې دَ شيطان دَ طرف نه څه وسوسه راشی يعنی که تادَ ماموربه نه څوك اړونکې اړوی نودَالله تعالی پناه غواړه. (إمّا) په مازائده کښې دَنون شرطيه ادغام دے. (فاستعذبالله) جواب شرط دے. او جواب امر محذوف دے اوهغه يَدْفعه عنكَ دے بيشکه هغه دَ خبرې اوريدونکې اودَعمل ليدونکې دے بيشکه کوم خلق چې دَالله تعالی نه ويريږی کله چې دَ شيطان دَطرف نه هغوی ته خطره مخې ته کيږی نوهغوی دَالله تعالی سزا اوثواب رايادوی او په يوقراءت کښې دَ طيف په ځائی طائف دے يعنی که دَ شيطان دَ طرف نه څه وسوسه راځی نوهغوی زر حق او ناحق ته گوری (يعنی په دواړو کښې فرق کوی) نوهغوی دَ دغه وسوسې نه منع کيږی، او دَ کافرانونه چې څوك دَ شيطان ملگری دی نوشيطانان هغوی

په گمراهئ کښې راکاږي بيا هغوئ (دشيطان ملګرى) دغه ګمراهئ نه سترګې کهولاويدو يعنى دَ پوهيدلو نه باوجود نه منع کيږي لکه چې متقى دَ نظرنه کاراخلى اوکوم وخت چې تاسو دَ اهل مکه په مخکښې دَهغوى تجويزکړې شوې (فرمائشى) معجزې رانوړې نو وائى تادَخپل طرف نه دا معجزه ولې رانوړه؟ ته هغوى ته اووايه چې زه خو صرف دَهغه حکم اتباع کوم چې ماله زما دَ رب دَ طرف نه راليږلې شى زما په اختيارکښې نه دى چې زه دَخپل ځان نه ئې راوړلې شم. دا قرآن دَ خلقو دَپاره ستاسودَ رب دَ طرف نه دلائل دى او هدايت دې او رحمت دې دَايمان راوړونکودَپاره اوکوم وخت چې قرآن لوستلې کيږي نودا په غورسره اورئى او خبرې اترې مه کوئى چپ کينئ دې دَپاره چې په تاسورحم اوکړې شى. دا آيت دَخطبې په وخت دَ خبرو نه کولو باره کښې نازل شوې دې او خطبه ئى په قرآن سره څکه تعبيرکړې ده چې خطبه په قرآن باندې مشتمل وى او وئيلى شوى دى چې مطلقًا دَ قرآن په باره کښې نازل شوې دې او (اې مخاطب) خپل رب پټ پټ په عاجزئى سره او دَالله تعالى نه په ويره سره يادوه يعنى دَ ژبې لاندې نه پاس اوجهرفى الکلام نه لاندې، يعنى دَ پټ او ښکاره په مينځ کښې اراده کولوسره سحرماښام يعنى په اول ورځ کښې او په آخرد ورځ کښې اودَالله تعالى دَ ذکرنه غفلت کونکوکښې مه کيږه، بيشکه هغه دمخلوق يعنى کوم چې ستا رب سره دې دَهغه دَ عبادت نه تکبرنه کوى اوکوم څيزچې دَهغه دَ شان لائق نه دې دَهغې نه دَهغه پاکى بيانوى اودَهغه دَپاره سجده کوى يعنى دَعاجزئى اوعبادت دَپاره هغه خالص کوى نوتاسوهم دَهغوى په شان شئ.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** وَجَعَلَ مِنْهَا، ضمير مجرور دنفس طرف ته راجع دې په اعتبار دَ لفظ اودَ لِيَسْكُنَ ضميرهم دَ نفس طرف ته راجع دې په اعتباردَمعنې، اومراد د نفس نه آدم ﷺ دې.

**قوله:** وفى قِرَاءَةٍ بِكَسْرِالشِّيْنِ والتَّنْوِيْنِ اي شَرِيْكًا، دا په شرکاء کښې دَدويم قرامت بيان دې شرکاء دَ شريك جمع ده مګر مرادهم مفرددې دَدې قرينه دويم قرامت او هغه شِرکًا دې دَ شين په کسرې او راء په سکون او دکاف په تنوين سره.

**قوله:** اي شريکا،دَدې اضافې مقصدداخودل دى چې شِرکًا مصدرد اسم فاعل شريکا په معنى کښې دې دې دَپاره چې حمل صحيح شى.

**قوله:** جَعَلاَلَهُ،په جَعَلاَ کښې ضميردَ تثنيه چا ته راجع دې؟ بعض مفسرين دې طرف ته تلى دى چې دَآدم اوحواء طرف ته راجع دې، ليکن محقق قوله دادې چې د بنى آدم نه هرنفس او زوج نفس مراددې. دَبعض تابعينونه هم دغه قول نقل دې. قال الحسن وقتادة الضمير في جعلا عائد إلى النفس وزوجه من ولد آدم لا إلى آدم وحوا، (جصاص) جعل الزوج والزوجة شركاء (كبير عن القفال) امام رازى ﷫ دَ قفال په حواله سره ليکلى دى چې دا قصه دَ تمثيل په توګه دَ

مشركانو عام حالت بيانوى اودا تفسير ډيرخوښ كړې شوې دې. هذا جوابٌ فى غاية الصحة والسداد (كبير) اومحققينودا هم وئيلى دى چې په آيت كښې ضميرد آدم او حواء طرف ته راجع كولوځه تائيدنه دقرآن نه ملاويږى او نه د حديث صحيح نه اوداسې قصې د پيغمبرانو لائق نه دى. (بحر، بيضاوى)

قوله: بِتَسْمِيَتِه: أى بتسمية الولد، حارث بتسمية شركاء په معنى د شريك متعلق دې.

قوله: وَلَيْسَ بِإِشْرَاكٍ فِى الْعُبُوْدِيَّةِ لِعِصْمَةِ آدَمَ ددې اضافې مقصد د انبياء كرامو د عصمت دفاع ده.

قوله: الْعُبُوْدِيَّةِ، ډير بهتربه وې چې العبودية په ځائى العبادة يا معبودية نى فرمائيلې دې (حاشيه جلالين)

قوله: أَهْلُ مَكَّةَ، په دې كښې ددې خبرې تائيد دې چې د جَعَلَا مرجع آدم او حواء نه دى بلكه هرنفس او دهغه زوج دې. اوددې قرينه دالله تعالى قول فتعالى الله عما يشركون دې، يشركون صغيه يئ جمع سره راوړې ده حالانكه آدم او حواء جمع نه دى.

قوله: والجُمْلَةُ مُسَبَّبَةٌ، يعنى فتعالى الله عما يشركون ددې عطف په خَلَقَكُم من نفس واحدة باندې دې. معطوف عليه د معطوف سبب دې يعنى كوم څيزونه چې تاسو دهغه شريك ګرځوئى هغه دهغې نه لوئى دې ځكه چې هغه تاسو پيدا كړى نى او مخلوق دخالق شريك كيدې نه شى لكه چې په دې كښې د فاء تعقيبيه فائدې ته اشاره ده اوپه مينځ كښې جمله معترضه ده.

قوله: يُقَابِلُوْنَكَ په دې كښې اشاره ده چې كلام د تشبيه په توګه دې، لهذا اوس به دا اعتراض نه وى چې د اصنامو نه ليدل ممكن نه دى.

قوله: طَيْفٌ، دې نه داهم احتمال دې چې طَيْف، طيفًا نه اسم فاعل وى اى طاف به الخيال طائف وسوسه خطره.

قوله: أَلْمُّ بِهِمْ أى مسّ بهم.

# [۸] سورة الأنفال

## مدنية او الا واذ يمكر بك الايات السبع فمكية خمس اوست اوسبع وسبعون اية

سورت انفال مدنی دی مگر دَ واذ يمكر بك نه اووه آياتونه مکی دی ۷۵ یا ۷۶ یا ۷۷ آياتونه دی.

### [اياتونه: ۱-۸]

بسم الله الرحمن الرحيم لَمَّا اخْتَلَفَ الْمُسْلِمُونَ فِي غَنَائِمِ بَدْرٍ فَقَالَ الشُّبَّان هِيَ لَنَا لِأَنَّا بَاشَرْنَا الْقِتَال وَقَالَ الشُّيُوخ كُنَّا رِدْءًا لَكُمْ تَحْت الرَّايَات وَلَوْ انْكَشَفْتُمْ لَفِئْتُمْ إِلَيْنَا فَلَا تَسْتَأْثِرُوا بِهَا فَنَزَلَ {يَسْأَلُونَكَ} يَا مُحَمَّد {عَنِ الْأَنْفَالِ} الْغَنَائِم لِمَنْ هِيَ {قُلْ} لَهُمْ {الْأَنْفَالُ لِلَّهِ} يَجْعَلهَا حَيْثُ شَاءَ {وَالرَّسُولِ} يَقْسِمهَا بِأَمْرِ اللَّه فَقَسَمَهَا صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنهمْ عَلَى السَّوَاء رَوَاهُ الْحَاكِم فِي الْمُسْتَدْرَك {فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَصْلِحُوا ذَاتَ بَيْنِكُمْ} أَيْ حَقِيقَة مَا بَيْنكُمْ بِالْمَوَدَّةِ وَتَرْك النِّزَاع {وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ} حَقًّا {إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ} الْكَامِلُونَ الْإِيمَان {الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ} أَيْ وَعِيده {وَجِلَتْ} خَافَتْ {قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا} تَصْدِيقًا {وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ} بِهِ يَثِقُونَ لَا بِغَيْرِهِ {الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَاةَ} يَأْتُونَ بِهَا بِحُقُوقِهَا {وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ} أَعْطَيْنَاهُمْ {يُنْفِقُونَ} فِي طَاعَة اللَّه {أُولَئِكَ} الْمَوْصُوفُونَ بِمَا ذُكِرَ {هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا} صِدْقًا بِلَا شَكّ {لَهُمْ دَرَجَاتٌ} مَنَازِل فِي الْجَنَّة {عِنْدَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ} فِي الجنة {كَمَا أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ} مُتَعَلِّق بِأَخْرَجَ {وَإِنَّ فَرِيقًا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ لَكَارِهُونَ} الْخُرُوج وَالْجُمْلَة حَال مِنْ كَاف أَخْرَجَكَ وَكَمَا خَبَر مُبْتَدَأ مَحْذُوف أَيْ هَذِهِ الْحَال فِي كَرَاهَتهمْ لَهَا مِثْل إِخْرَاجك فِي حَال كَرَاهَتهمْ وَقَدْ كَانَ خَيْرًا لَهُمْ فَكَذَلِكَ أَيْضًا وَذَلِكَ أَنَّ أَبَا سُفْيَان قَدِمَ بِعِيرٍ مِنَ الشَّام فَخَرَجَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابه لِيَغْنَمُوهَا فَعَلِمَتْ قُرَيْش فَخَرَجَ أَبُو جَهْل وَمُقَاتِلُو مَكَّة لِيَذُبُّوا عَنْهَا وَهُمُ النَّفِير وَأَخَذَ أَبُو سُفْيَان بِالْعِيرِ طَرِيق السَّاحِل فَنَجَتْ فَقِيلَ لِأَبِي جَهْل ارْجِعْ فَأَبَى وَسَارَ إِلَى بَدْر فَشَاوَرَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصْحَابه وَقَالَ إِنَّ اللَّه وَعَدَنِي إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ فَوَافَقُوهُ عَلَى قِتَال النَّفِير وَكَرِهَ بَعْضهمْ ذَلِكَ وَقَالُوا لَمْ نَسْتَعِدّ له كما قال تعالى {يجادلونك في الحق} القتال {بعد ما تبين} ظهر لهم {كأنما يساقون إلى الموت وهم ينظرون} إليه عيانا في كراهتهم له {و} اذْكُرْ {إِذْ يَعِدُكُمُ اللَّهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ} الْعِير أَوْ النَّفِير {أَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّونَ} تُرِيدُونَ {أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ} أَيْ الْبَأْس وَالسِّلَاح وَهِيَ الْعِير {تَكُونُ لَكُمْ} لِقِلَّةِ عَدَدهَا وَمَدَدهَا بِخِلَافِ النَّفِير {وَيُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُحِقَّ الْحَقَّ} يظهره {بكلماته} السابقة بظهور الإسلام {ويقطع دابر الكافرين} آخِرهمْ بِالِاسْتِئْصَالِ فَأَمَرَكُمْ بِقِتَالِ النَّفِير {لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ} يَمْحَق {الْبَاطِلَ} الْكُفْر {وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُونَ} الْمُشْرِكُونَ ذَلِكَ اذْكُرْ {إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ} تَطْلُبُونَ مِنْهُ الْغَوْث بِالنَّصْرِ عَلَيْهِمْ {فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي} أَيْ بِأَنِّي {مُمِدُّكُمْ} مُعِينكُمْ {بِأَلْفٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ} مُتَتَابِعِينَ يُرْدِف بَعْضهمْ بَعْضًا وَعَدَهُمْ بِهَا أَوَّلًا ثُمَّ صَارَتْ ثَلَاثَة آلَاف ثُمَّ خَمْسَة كَمَا فِي آل عِمْرَان وَقُرِئَ بِآلُفٍ كَأَفْلُس جَمْع {وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ} أَيْ الْإِمْدَاد {إِلَّا بُشْرَى ولتطمئن به قلوبكم وما النصر إلا من عند الله إن الله عزيز حكيم}

ترجمه: زه شروع کوم په نوم دَ الله چې ډير مهربان او ډير رحم کونکې دې کله چې دَ بدر مال غنيمت د (تقسيم) په باره کښې په مسلمانانو کښې اختلاف پيدا شو ځوانانو اووئيل دا زمونږ حق دې ځکه چې مونږ نيغ په نيغه جنگ کړې دې او بوډاگانو اووئيل دَ جهنډو لاندې مونږ ستاسو امداديان وو که چرې (الله دې نه کړی) تاسو ماتې خوړلې وه نو تاسو به هم مونږ ته واپس راتلئ لهذا تاسو دَ مال غنيمت دَترجيح دعوىٰ مه کوئی. اې محمد ﷺ خلق تا نه دَ مال غنيمت په باره کښې سوال کوی چې دَدې مستحق څوك دی ته هغوی ته اووايه چې مال غنيمت دَ الله تعالى او دَهغه دَ رسول دې هغه چې چاله غواړی ورديې کړی. چنانچې رسول الله ﷺ هغه مال دَغنيمت په ځوانانو اوبوډاگانو کښې برابر تقسيم کړو. دا حاکم په مستدرك کښې روايت کړی دی تاسو خلق دَالله تعالى نه اوويرېږئ او دَخپل مينځ تعلقات صحيح کړئ اودَ الله تعالى اودَهغه دَ رسول تابعداری اوکړئ که چرې تاسو رښتونی مؤمنان يئې کامل اهل ايمان خو هم هغه خلق دی کوم وخت چې دَهغوی په وړاندې دَالله تعالى دَ وعيد ذکر کولې شی نو دَهغوی زړونه دَ ويرې نه لړزېږی او کله چې دَهغوی په وړاندې دالله تعالى آياتونه لوستلې شی نو دَهغوئ په تصديق کښې اضافه کيږی او هغوی هم په خپل رب باندې توکل کوی يعنی په هغه باندې اعتماد کوی نه چې دَهغه نه علاوه په بل چا باندې څوک چې مونځ قائموی يعنی مونځ دَهغې دَ حقوقو سره اداکوی او کوم (مال) چې مونږ هغوی ته ورکړې دې دَهغې نه دَالله تعالى په اطاعت کښې خرچ کوی هم دغه شان خلق څوك چې په مذکوره صفاتو سره متصف وی بيشکه رښتونی مؤمنان دی دَهغوی دَپاره په جنت کښې دَهغوی د رب سره لوئی مرتبې دی او مغفرت دې او په جنت کښې بهترين رزق دې (په مال غنيمت کښې چې کوم اختلاف دې هغه هم داسې دې) لکه څنگه چې ستا رب تا له کور (مدينې) په نه حق سره اوويستې (بِالحق) دَ أَخرَجَ سره دې او واقعه ده چې دَمؤمنانو يو جماعت دا وتل سخت گڼړل جمله د أَخرَجَ دضمير کاف نه حال دې او دَکَمَا هذِهٖ مبتداء محذوف خبر دې يعنی دَ مال غنيمت موجوده حالت په کراهت کښې هم داسې دې لکه چې دَهغوی (دَمدينې) نه دَ وتلو حالت، اولکه څنگه چې دغه (وتلو) کښې دَهغوی دَپاره خير وو دغه شان په دې کښې هم خير دې اودَهغوی دا (دمدينې) نه وتل هغه وخت اوشو کوم وخت چې ابوسفيان تجارتی قافلې سره دَشام نه اووتلو، نو حضورپاك اودَهغه صحابه کرام ﷺ د دې (قافلې) دَ مال غنيمت دَ اخستلو دَپاره اووتل، دَدې (کاروانئ) خبر قريشو ته اوشو نو ابوجهل اودَمکې جنگ باز خلق راووتل دې دَپاره چې دَ تجارتی قافلې حفاظت اوکړی اودا جنگی لښکر وو. او ابوسفيان تجارتی قافله دَ سمندردَ غاړې په لار اوويستله او (تجارتی) قافله بچ اووتله. ابوجهل ته اووئيلې شو چې واپس شه مگر هغه انکار اوکړو اودَ بدر طرف ته روان شو. بل طرف ته رسول الله ﷺ صحابه کرامو سره مشوره اوکړه او حضورپاك اوفرمائيل الله

تعالى ماسره دَ دوو جماعتونونه دَ يووعده كړې ده لهذا اكثرو جنګي لښكر سره د مقابلې كولو دپاره متفق شو اوځه خلقو دا رائې ناخوښه كړه اوعذرئې دا پيش كړو چې مونږ ددې دپاره تيارې نه دي كړې لكه چې الله تعالى اوفرمائيل تاسوسره داخلق دَحق يعنى جنګ په باره كښې جګړې كوى پس دَهغې نه چې دَ دې حق كيدل په هغوى باندې ښكاره شوى دى لكه چې هغوى دَمرګ طرفته په راښكلوسره بوتلې شى حال دا چې هغوى مرګ ښه په ښكاره سترګو وينى دَهغوى دَ جنګ نه خوښولودَوجې نه، اوهغه وخت ياد كړئى كوم وخت چې الله تعالى تاسو سره په دوو جماعتون عيراونفير (تجارتى قافله او جنګي لښكر) نه دَيووعده كړې وه چې په هغوى كښې به يو جماعت ستاسو په لاس راځى وو اوتاسو دا غوښتل چې تاسو ته كمزورې جماعت ملاؤشى دَهغوى دَ شمير او وسلو دَ كموالى دَ وجې نه يعنى بغيرقوت اوبغيروسلووالا جماعت اوهغه تجارتى قافله وه په خلاف دَ جنګي لښكر، مګر دَالله تعالى اراده دا وه چې دَخپلوسابقه خبرو په ذريعه حق ښكاره كړى اسلام ته غلبه وركړى اودكافرانو جرړه بالكل پرې كړى، لهذا تاسو ته ئې دَ جنګي لښكرسره دَ جنګ كولوحكم دركړو دې دپاره چې هغه حق محقق كړى او باطل كفرختم كړى سره ددې چې مشركان دا ناخوښه ګڼړى اوهغه وخت يادكړئى كوم وخت چې تاسو خپل رب ته فرياد كولو يعنى دَالله تعالى نه په مشركانوباندې امداد غوښتلو نوالله تعالى تاسو ته جواب دركړو چې زه به مسلسل دَ زرو فرښتوسره ستاسوامدادكوم چې مسلسل راروانې وې اول ئې هغوى سره دَ زرو وعده اوكړه بيادَ دريو زرو اوبيا د پنځو زرو لكه چې په سورت آل عمران كښې دى او(الَف) اَلْفُ لوستلې شوې دې لكه چې دَ فَلْسٌ جمع اَفْلُسٌ ده اودَ دې امداد الله تعالى د خوشخبرئى په توګه خبروركړو او دې دپاره چې ستاسو زړونه مطمئن شى اوامدادخو صرف هم دَالله تعالى دَ طرف نه وى يقيناً الله تعالى زبردست او دانادې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** سورة الانفال په تركيب اضافى مبتداء ده. دَ دې دوه خبرونه دى اول مَدَنِيَّةٌ او دويم خَمْسٌ الخ مبتداء او خبرمستثنى منه او إلا حرف استثنى ويمكريك مستثنى، اوَ د بيان اختلاف دپاره دې اګرچې دَسورت په عنوان كښې اووه آياتونوته مكى وئيلې شوى دى مګر صحيح خبره داده چې پوره سورت مدنى دې.

**قوله:** عَنِ الْاَنْفَالِ، اَنْفَال د نَفَل په وزن دَ سَبَبٌ جمع ده په معنى د زائد، اوپه سكون فاء سره هم وئيلې شوې دې دَدې معنى هم زائد ده. مال غنيمت چونكه دَ سابقه امتونودپاره حلال نه وو صرف دَدې امت دپاره دَ خصوصيت په توګه حلال كړې شوى دى په دې وجه په نفل سره تعبير كړې شو.

سوال: يسئلونك عن الأنفال، كښې دَيسئلونك صله عَنْ راوړلې شوې دې حالانكه دا فعل متعدی بنفسه دې لکه چې وئیلی سألتُ زيداً مالاً.

جواب: كه چرې سوال د تعيين اوتوضيح دَپاره وی نوسوال په متعدی په عَنْ سره وی اوكه چرې په معنی دَ طلب وی نومتعدی بنفسه به وی. کوم خلق چې دلته سوال دَ طلب دَپاره منی هغوئ عن زائده گرځوی.

قوله: لو انكشفتم، اى انهزمتم والتشرتم، كه چرې تاسو ماتې خوړلو او خواره واره شو.

قوله: فلاتتشاجروا، اى فلا تختاروا، یعنی ستاسودَ بیان کړې شوی دلیل دَ وجې نه تاسوته ترجیح نه شي درکولې دَ ایثارمعنی ده ترجیح ورکول، مال غنیمت ته دنفل وئیلویو وجه داهم ده چې دَ جهاد اصل مقصد اعلاء كلمة الله دې اوحصول مال شئ زائد دې.

قوله: لَمْنْ هِيَ په دې کښې اشاره ده چې د مال غنیمت حکم معلومول مقصوددی نه چې دَهغې ذات ځکه چې ذات ټولوته معلوم دې.

قوله: اي حَقِيْقَةَ مَا بَيْنَكُمْ: دادَذات بينكم تفسيردې په دې کښې داخودلی شوی دی چې ذات په معنی د حقیقت دې او بين په معنی د وصل دې او دَ لغت مطابق دې، په خلاف دَدې چې چاحال يا حالت اخستې دې ځکه چې دامعنی د لغت اواستعمال دَدواړوخلاف ده.

حاصل معنی داده كونوا مجتمعين على أمر الله ورسوله بالمواساة والمساعدة فيما رزقكم الله.

قوله: الكاملون دَدې قيددَ اضافي مقصددَ يوسوال مقدرجواب دې.

سوال: الله تعالى إنما کلمه حصر سره فرمائيلی دی چې مؤمن هم هغه دې دَچاپه ورانديې چې دَالله تعالى ذکر اوكړې شي نودَهغوی زړونه دَ الله تعالى دَ ويرې نه لړزيږی نوداسې كسان خو به ډيرکم وی.

جواب: دادَ كامل مؤمن صفت دې نه چې دَ مطلق مؤمن.

قوله: تصديقاً، دَدې اضافي مقصددَ يوسوال جواب دې.

سوال: دادې چې ستاسو مسلك دې چې په ايمان كښې کمې زياتې نه راځی حالانكه زادتهم ايماناً نه معلوميږی چې په ايمان كښې کمې زياتې راځی.

جواب: دَ جواب حاصل دادې چې دلته دَايمان نه مراد تصديق او اطمينان قلب ده او په دې کښې کمې زياتې راځی.

قوله: به يثقون لا بغيره دَدې اضافي مقصدد تقدیم متعلق دَ فائدې بيانول دی کوم چې حصردې يعنی هم په الله تعالى باندې بهروسه کوی نه چې په غيرباندې.

قوله: الخروج، اى خروجك وخروجهم داهم دَ يوسوال مقدرجواب دې. سوال دادې چې حال كله

جمله وی نو په هغې کښې دٙعائد کيدل ضروری وی حالانکه دلته هيڅ عائدنشته. جواب حاصل دادې چې تقديرد عبارت خروجك وخروجهم دې لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته.

**قوله**: كما، خبرمبتداء محذوف الخ، دٙدې جملې مقصدپه دوارو جملوکښې مشابهت بيانول دی يعنی دٙ مال غنيمت په تقسيم باندې دٙ ناخوښئ اظهار هم داسې دې لکه چې خروج إلى النفير (لښکر) طرف ته وتل ناخوښه وو حالانکه څنګه چې دٙهغوی په حق کښې خروج بهتروو هم دغه شان دٙمال غنيمت په تقسيم کښې هم خيردې.

**قوله**: عَدَدُهَا، أي أسمائها.

**قوله**: بألفٍ يعنی اٙلْفٌ په الف سره يعنی اٙلْفٌ هم لوستلې شوې دې په الف باندې مداوپه لام باندې ضمه په وزن دٙ اَفْلُسٌ يعنی څنګه چې دٙ فَلْسٌ جمع اَفْلُسٌ راځی دغه شان دٙ اٙلْفٌ جمع اٙلُفٌ راځی دٙالُفٌ اصل أَأْلُفٌ وو دويم همزه په الف سره بدل کړې شو نو اٙلُفٌ شو.

[اياتونه:۱۱-۱۹]

اذكر {إِذْ يُغَشِّيكُمُ النُّعَاسَ أَمَنَةً} أمنًا مِمَّا حصلَ لكُمْ مِنَ الْخَوْف {مِّنْهُ} تَعَالَى {وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَاءِ مَاءً لِّيُطَهِّرَكُم بِهِ} مِنَ الأَحْدَاث وَالْجَنَابَات {وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَانِ} وَسَوَسَته إِلَيْكُمْ بِأَنَّكُمْ لَوْ كُنْتُمْ عَلَى الْحَق مَا كُنْتُمْ ظَمْاى مُحْدِثِينَ وَالْمُشْرِكُونَ عَلَى الْمَاء {وَلِيَرْبِطَ} يَحْبس {عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ} بِالْيَقِينِ وَالصَّبْر {وَيُثَبِّتَ بِهِ الْأَقْدَامَ} أَنْ تَسُوخ فِي الرَّمْل {إِذْ يُوحِي رَبُّكَ إِلَى الْمَلَائِكَةِ} الَّذِينَ أَمَدَّ بِهِمْ الْمُسْلِمِينَ {أَنِّي} أَيْ بِأَنِّي {مَعَكُمْ} بِالْعَوْنِ وَالنَّصْر {فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا} بِالْإِعَانَةِ وَالتَّبْشِير {سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ} الْخَوْف {فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ} أَيْ الرُّءُوس {وَاضْرِبُوا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ} أَيْ أَطْرَاف الْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ فَكَانَ الرَّجُل يَقْصِد ضَرْب رَقَبَة الْكَافِر فَتَسْقُط قَبْل أَنْ يَصِل إِلَيْهِ سَيْفه وَرَمَاهُمْ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَبْضَةٍ مِنَ الْحَصَى فَلَمْ يَبْقَ مُشْرِك إِلَّا دَخَلَ فِي عَيْنَيْهِ مِنْهَا شَيْء فَهُزِمُوا {ذَٰلِكَ} الْعَذَاب الْوَاقِع بِهِمْ {بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا} خَالَفُوا {اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَمَن يُشَاقِقِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ} لَهُ {ذَٰلِكُمْ} الْعَذَاب {فَذُوقُوهُ} أَيُّهَا الْكُفَّار فِي الدُّنْيَا {وَأَنَّ لِلْكَافِرِينَ} فِي الْآخِرَة {عَذَابَ النَّارِ} {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا زَحْفًا} أَيْ مُجْتَمِعِينَ كَأَنَّهُمْ لِكَثْرَتِهِمْ يَزْحَفُونَ {فَلَا تُوَلُّوهُمُ الْأَدْبَارَ} منهزمين {وَمَن يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ} أَيْ يَوْم لِقَائِهِمْ {دُبُرَهُ إِلَّا مُتَحَرِّفًا} مُنْعَطِفًا {لِّقِتَالٍ} بِأَنْ يُرِيهِمْ الْفَرَّة مَكِيدَة وَهُوَ يُرِيد الْكَرَّة {أَوْ مُتَحَيِّزًا} مُنْضَمًّا {إِلَىٰ فِئَةٍ} جَمَاعَة مِنَ الْمُسْلِمِينَ يَسْتَنْجِد بِهَا {فَقَدْ بَاءَ} رَجَعَ {بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ} الْمَرْجِع هِيَ وَهَذَا مَخْصُوص بِمَا إِذَا لَمْ يَزِدْ الْكُفَّار عَلَى الضِّعْف {فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ} بِبَدْرٍ بِقُوَّتِكُمْ {وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ} بِنَصْرِهِ إِيَّاكُمْ {وَمَا رَمَيْتَ} يَا مُحَمَّد أَعْيُن الْقَوْم {إِذْ رَمَيْتَ} بِالْحَصَى لِأَنَّ كَفًّا مِنَ الْحَصَى لَا يَمْلَأ عُيُون الْجَيْش الْكَثِير بِرَمْيَةِ بَشَر {وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ} بِإِيصَالِ ذَلِكَ إِلَيْهِمْ فعل ذلك لِيَقْهَر الْكَافِرِينَ {وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً} عَطَاء {حَسَنًا} هُوَ الْغَنِيمَة

{إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ} لِأَقْوَالِهِمْ {عليم} باحوالهم{ذَٰلِكُمْ} الإبلاء حق {وَأَنَّ اللَّهَ مُوهِنُ} مُضعِف {كيد الكافرين} {إِن تَسْتَفْتِحُوا} أيها الكفار إن تطلبوا الفتح أي القضاء حيث قال أبو جهل منكم اللهم أينا كان أقطع للرحم وأتانا بما لا نعرف فأحنه الغداة أي أهلكه {فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ} القضاء بهلاك من هو كذلك وهو أبو جهل ومن قتل معه دون النبي صلى الله عليه وسلم والمؤمنين {وَإِن تَنتَهُوا} عن الكفر والحرب {فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَإِن تَعُودُوا} لقتال النبي صلى الله عليه وسلم {نَعُدْ} لنصره عليكم {وَلَن تُغْنِيَ} تدفع {عَنكُمْ فِئَتُكُمْ} جماعاتكم {شَيْئًا وَلَوْ كَثُرَتْ وَأَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ} بكسر إن استئنافا وفتحها على تقدير اللام

---

ترجمه: هغه وخت یادکړه کوم وخت چې الله تعالی په خپله مهربانۍ باندې هغه ویره کومه چې ستاسومخې ته وه دخوب د جوتې په مشکل کښې په تاسو سکون او تسلی راوسته اودآسمان نه ئې ستاسودپاره اوبه نازل کړې دې د پاره چې تاسودَ حدث اصغر او اوحدث اکبرنه پاک کړی اوتاسونه هغه شیطانی وسوسه لرې کړی که چرې تاسو په حق باندې وئی نو په تاسوبه (داسې) تنده اوبې طهارتی نه وه او مشرکان به په اوبوباندې قابض نه وې اودې دپاره چې ستاسو زړونه په یقین اوصبرسره مضبوط کړی اودې دپاره چې دَ باران په ذریعه ستاسو قدمونه کلک کړی چې په شګه کښې نه خنبیږی (اوهغه وخت یادکړئی) کوم وخت چې ستارب هغه فرښتوته وئیلې وو دَ کوموپه ذریعه چې ئې دَ مسلمانانو امدادکړې وو اوپه نصرت سره زه تاسو سره یم (او) آئی په اصل کښې بالی دې تاسو اهل ایمان په امداد او زیری سره ثابت قدم اوساتئ زه دکافرانو په زړونو کښې هم اوس ویره اچوم اوتاسو دَهغوی په ستونویعنی سرونو باندې وارونه اوکړئی اودَهغوی په اندام اندام باندې ګزار اوکړئی یعنی دَ لاسونواو پښو طرفونه . چنانچه (مسلمانان) سړی به دَ کافر په سټ باندې دَ وارکولواراده کوله نودَهغوی توره به دَ کافر سټ ته دَ رسیدونه وړاندې دَ هغه (تن دَسر نه جداکیدوسره) پریوتلواوحضورپاك دَهغوی طرف ته یوموټې خاوره اوویشتله چې دَهغې څه نه څه حصه دهرمشرك سترګوته رسیدلې وه اومشرکانوته شکست اوشو ، داعذاب کوم چې په هغوی باندې واقع شو دَدې وجې نه چې هغوی دَ الله تعالی اودَهغه دَ رسول مخالفت اوکړو اوڅوک چې دَالله تعالی اودَهغه دَ رسول ﷺ مخالفت کوی نوالله تعالی دډیر سخت دې عذاب ورکوونکئ دهغه دَپاره، داعذاب دې، نوای کافرانوهم په دنیاکښې دَ دغه عذاب مزه اوڅکئ اویقینی خبره ده چې دکافرانودَپاره په آخرت کښې عذاب مقرردې. اې ایمان والوکله چې تاسو کافرانوسره په جنګ کښې مخامخ شئ حال دا چې هغوی دَخپل کثرت دَ وجې نه په مزه مزه شاته کیږی نوبیاهم دَهغوی نه ماتې خوړلوسره په شامه تختئ اوکوم کس چې دَ مقابلې په ورځ دَهغوی طرف ته شاکړې اوتختی مکردا چې دَ جنګی چال په توګه وی په داسې توګه چې هغوی

ته دَ چال په توګه دا ښکاره کړي چې ګنې تختې اوحال دا چې واپس تاوېدو سره دَ حملې کولو اراده لري یا دَ مسلمانانو دَ جماعت سره إمداد اخستلو دپاره دَ یوځائې کیدو په توګه وي نوهغه دَدغه (وعید) نه مستثنی دی (ددې نه علاوه) چاچې دداسې اوکړل هغه دَالله تعالی غضب اخستلو سره واپس شو دَهغه مقام دوزخ دې اودَ هغه دَ اوسیدو ځائې ډیرخراب دې اودا هغه صورت سره خاص دې چې دکافرانو (تعداد) دَمسلمانانو په مقابله کښې دَ ډبل نه زیات نه وي (حقیقت دادې) چې په جنګ بدر کښې تاسو هغوی لره په خپل طاقت سره نه دی قتل کړي لیکن الله تعالی ستاسو امداد اوکولو سره هغوی لره قتل کړل او اې محمد ﷺ دَ قوم په سترګو کښې تاته دی غورزولی کوم وخت چې تا کودکانړي اوغورزول ځکه چې یوانساني موټې کودکانړي دَ یولوئې لښکرسترګې نه شي ډکولې لیکن دغه قوت کانړي دَهغوی سترګوته رسول په حقیقت کښې الله تعالی غورزولی دی اوهغه داځکه اوکړل چې کافران مغلوب کړي اودې دَپاره چې مسلمانانوته دَخپل طرف نه بهترصله ورکړي اوهغه (مال دَ غنیمت دې. یقینًا الله تعالی دَدوي دخبرو اورېدونکې اودَهغوی احوال پیژندونکې دې اودا ورکړه دَ صلې حق ده اوالله تعالی دکافرانوچالونه کمزورې کونکې دې اې کافرانوکه چرې تاسو دَ فتح فیصله غوارئې ځکه چې په تاسو کښې ابوجهل وئیلی وو اې الله په مونږ کښې چې ځوك زیات تعلق (صله رحمي) پرېخودونکې وی اومونږ له ئې داسې څیزراوړلې وی کوم چې مونږ نه پیژنو نوهغه خو ته صبا هلاك کړې نوتاسوله فیصله راغله هغه چاله هلاك کولو سره ځوك چې داسې دی اوهغه هم ابوجهل دې اوهغه دی کوم چې هغه سره قتل کړې شو نه چې محمد ﷺ اومؤمنان، اوکه چرې تاسو دکفراوجنګ نه منع شئ نوداستاسودَپاره بهترده اوکه تاسود نبی سره دَ جنګ کولواعاده کوئې نومونږ به په تاسوباندې دَهغه دَ فتح اعاده اوکړو اُوستاسو دا ګنړه به ستاسو هیڅ په کاررانه شی که هرڅومره زیات وی اوبیشکه الله تعالی دَ ایمان والوسره دې د إنَّ کسرې سره د استیناف په صورت کښې اودَ فتحې سره دَلام دَتقدیر په صورت کښې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** اِذْ يُغَشِّيْكُمْ دا اُذکر فعل ظرف دې یاسابق اِذْ يَعِدُكُمْ نه بدل دې.

**قوله:** اَمَنًا، دَ اَمَنَة تفسیر په اَمَنًا سره کولوېئ کښې اشاره اوکړه چې اَمَنَةً مصدر دې. يقال اَمِنَ اَمْنًا وأَمَانًا نه چې جمع لکه چې بعض حضراتو وئیلی دی او اَمَنَةً يُغَشِّيْكُمْ مفعول له هم کیدې شی، یعنی الله تعالی ستاسودَسکون دَپاره په تاسو باندې د خوب جوټې راولې.

**قوله:** مِنْهُ ضمیر الله طرف ته راجع دې.

**قوله:** ان تُسْتَوجُوا اي مِن اَن تَرجُوا، اي تدخل.

**قوله**: لَهُ: **سوال**: مفسرعلام لَهُ ولې مقدرا ومنلو؟

**جواب**: مَنْ مبتداء متضمن دې معنى د شرط لره او يشاقق الله ورسوله فان الله شديد العقاب، جمله د مبتداء خبر دې، اوخبرچې كله جمله وى نو ضميرعائد ضرورى وى كوم چې دلته نشته، هم دَدې دَپاره مفسرعلام دَ لَهُ ضمير مقدرمنلې دې.

**قوله**: العَذَابُ،ذلكم مبتداء، العذاب دَدې خبرمحذوف، مفسرعلام العذابُ محذوف منلوسره هم دې طرف ته اشاره كړې دد، او اسم اشاره ذالكم دَمبتداء محذوف خبرهم ګرځولې شى اى العذاب ذالكم، لهذا ذالكم فذوقوهُ، كښې دَ انشاء دخبر واقع كيدو اعتراض ختم شو.

**قوله**: فذوقُوه، فاء شرطيه ده، ذوقوهُ، دشرط محذوف جزاء ده أى إن كان كذلك فذوقوهُ.

**قوله**: وَاَنَّ الكفرين، دَدې عطف په ذلكَ دې، اود واعلموا مقدردَ وجې نه منصوب هم كيدې شى.

**قوله**: زَحْفًا (ف) مصدردې دَ رش دَ وجې نه په مزه مزه تلل، دَ ماشوم په شان ورخوئيدل.

**قوله**: مُتَحَرِّفًا، متعطفًا، واپس حمله كول، (الى الكرّبعدالفرّ).

**قوله**: مُتَحَيِّزًا، د(تفعّل) نه اسم فاعل، واپس خپل جماعت طرف ته راتلونكې دې دَپاره دَ ملګرونه امدادواخلى دوباره حمله اوكړې شى، اصل ماده حوزٌ ده.

**قوله**: يَسْتَنجِدُوْا، استنجاد مددطلب كول.

**قوله**: هِيَ مخصوص بالذم دې.

**قوله**: فَلَمْ تَقْتُلُوهم، فاء جزائيه دا جزاء شرط محذوف ده تقديرى عبارت دادې إن افتخرتم بقتلهم فأنتم لم تقتلوهم. .

**قوله**: لِيُبْلِيَ، أى يعطى الله تعالى المؤمنين إعطاء حسنًا.

**قوله**: حَقٌّ په دې كښې اشاره ده چې ذالكم الابلاء مبتداء ده حَقٌّ يې خبرمحذوف دې.

**[اياتونه:۲۰-۲۸]**

{يأيها الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَه وَلَا تَوَلَّوْا} تعرضوا {عَنْهُ} بمُخَالَفَةِ أَمْرِه {وَأَنْتُمْ تَسْمَعُونَ} القُرْآن والمواعظ {وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ قَالُوا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ} سَمَاع تَدَبُّر وَاتِّعَاظ وَهُمُ الْمُنَافِقُونَ أَوْ المشركون {إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِنْدَ اللَّهِ الصُّمُّ} عَنْ سَمَاع الْحَق {الْبُكْمُ} عَنِ النُّطْق بِهِ {الَّذِينَ لا يعقلون} {وَلَوْ عَلِمَ اللَّهُ فِيهِمْ خَيْرًا} صَلَاحًا بِسَمَاعِ الْحَق {لَأَسْمَعَهُمْ} سَمَاع تَفَهُّم {وَلَوْ أَسْمَعَهُمْ} فَرْضًا وَقَدْ عَلِمَ أَنْ لَا خَيْر فِيهِمْ {لَتَوَلَّوْا} عَنْهُ {وَهُمْ مُعْرِضُونَ} عَنْ قَبُوله عِنَادًا وَجُحُودًا {يأيها الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ} بِالطَّاعَةِ {إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ} مِنْ أَمْر الدِّين لِأَنَّهُ سَبَب الْحَيَاة الأَبَدِيَّة {وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِه} فَلَا يَسْتَطِيع أَنْ يُؤْمِن أَوْ يَكْفُر إِلَّا بِإِرَادَتِهِ {وَأَنَّهُ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ} فيجازيكم باعمالكم {وَاتَّقُوا فِتْنَةً}

إنْ أَصَابَتْكُمْ {لَا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْكُمْ خَاصَّة} بل تعمهم وغيرهم واتقاؤهم بِإِنْكَارِ مُوجِبِهَا مِنَ الْمُنْكَر {وَاعْلَمُوا أَنَّ اللهَ شَدِيدُ الْعِقَاب} لِمَنْ خَالَفَهُ {وَاذْكُرُوا إِذْ أَنْتُمْ قَلِيلٌ مُسْتَضْعَفُونَ فِي الْأَرْض} أرْض مَكَّة {تَخَافُونَ أَنْ يَتَخَطَّفَكُمُ النَّاس} يَأْخذكُمْ الْكُفَّار بِسُرْعَةٍ {فَآوَاكُمْ} إلَى الْمَدِينَة {وَأَيَّدَكُمْ} قَوَّاكُمْ {بِنَصْرِهِ} يَوْم بَدْر بِالْمَلَائِكَةِ {وَرَزَقَكُمْ مِنَ الطَّيِّبَات} الْغَنَائِم {لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُون} نِعَمه وَنَزَلَ فِي أَبِي لُبَابَة مَرْوَان بْن عَبْد الْمُنْذِر وَقَدْ بَعَثَهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إلَى بَنِي قُرَيْظَة لِيَنْزِلُوا عَلَى حُكْمه فَاسْتَشَارُوهُ فَأَشَارَ إلَيْهِمْ أَنَّهُ الذَّبْح لِأَنَّ عِيَاله وَمَاله فِيهِم {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَخُونُوا اللهَ وَالرَّسُولَ وَ} لا {تَخُونُوا أَمَانَاتِكُمْ} مَا ائْتُمِنْتُمْ عَلَيْهِ مِنَ الدين وغيره {وأنتم تعلمون} {وَاعْلَمُوا أَنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَة} لَكُمْ صَادَّة عَنْ أُمُور الْآخِرَة {وَأَنَّ اللهَ عِنْدَهُ أَجْرٌ عَظِيم} فلا تفوتوه بِمُرَاعَاةِ الْأَمْوَال وَالْأَوْلَاد وَالْخِيَانَة لِأَجْلِهِمْ

**ترجمه:** اې ایمان والو دَ الله تعالی اودَ هغه دَ رسول ﷺ اطاعت کوئی اودَ هغه دَ حکم مخالفت کولو سره دَ هغې نه مخ مه اړوئی حالانکه تاسو قرآن اونصیحت اورئی اودَ هغه خلقو په شان مه کیږئی چاچې اووئیل مونږ واوریده حالانکه هغوی دغوراو فکراو دَنصیحت حاصلولو په توګه نه اوری اوهغه منافقان اومشرکان دی. یقیناً دَ الله تعالی په نیز بدترین قسم ساه لرونکی خلق هغه دی چې دَحق اوریدونه کاڼه اوحق وئیلونه ګونګیان دی چې دَ عقل نه کارنه اخلی که چرې الله تعالی په هغوی کښې دَحق خبرې دَ اوریدو صلاحیت موندلو نو هغه به ضرور هغوئ ته دَ حق خبرې د اوریدو توفیق ورکولو اوکه چرې (دَصلاحیت نه بغیر) فرض کړه هغوی ته نی اوروليې اودَ هغه په علم کښې داخبره شته چې په هغوی کښې څه خیرنشته نوهغوی به دَ دې دَ قبلولونه دعناد یا د انکارد وجې نه مخ اړولو. اې ایمان والوتاسو دَالله تعالی اودَ هغه دَرسول په آواز باندې په اطاعت سره لبیک اووایئ کوم وخت چې هغه تاسو ددین داسې امرطرف ته رابلی چې تاسو ته ژوندرکونکې دې څکه چې دا دَ همیشه ژوندون سبب دې او ښه پوهه شئ چې الله تعالی دَ سړی اودَهغه دَ زړه په مینځ کښې حائل دې لهذا دَ چاطاقت نشته چې دَهغه دَ ارادې نه بغیر ایمان راوړلې شی یاکفراوکړې شی، اوهم دَ هغه طرف ته به تاسو جمع کولې شئ نو هغه به تاسو ته ستاسودَ عملونو بدله درکړی، اودَهغه فتنې نه بچ شئ که چرې هغه په تاسو راغله نودَهغې مصیبت به په تاسو کښې صرف ظالمانوپورې محدودپاتې نه شی بلکه هغوی اودَهغوی نه علاوه به هم راګیرکړی اودَ دغه فتنې نه دَ بچ کیدلو صورت دادې چې دمُنْکَر (بدئی) په سبب باندې نکیر اوکړئی (یعنی نهی عن المنکرکوئی) او په دې څان پوهه کړئی چې الله تعالی دهغه مخالفت کونکوته سخته سزا ورکونکې دې هغه وخت یادکړئی کوم وخت چې تاسو دَ مکې په زمکه کښې په ډیرکم شمیرکښې وئی او کمزورې به ګڼړلې شوئی او تاسو به ویریدلئ چې مونږ خلق (یعنی) کافران اوچت نه کړی (یعنی هلاك نه کړی) نوالله تاسو ته په مدینه کښې دَ اوسیدو څائی درکړو اوتاسوته یې د بدر په موقع دَ ملائکوپه ذریعه په

نصرت کولو سره تقویت درکړو او تاسو ته دَ غنیمت دَمال په ذریعه حلال رزق درکړو دې دَپاره چې تاسو دَهغه دَ نعمت شکر اداکړئ او (راتلونکې آیت) دَ ابولبابه بن منذر په باره کښې نازل شو کوم وخت چې هغه نبی ﷺ دَ بنی قریظه طرف ته لیږلې وو (دې دَپاره چې بنی قریظه) دَ قلعه نه په راکوزیدو باندې تیارکړی نو (بنی قریظه) دَ ابی لبابه نه مشوره اوغوښتله نو هغه اشاره اوکړه چې ستاسو انجام ذبح کیدل دی (دَ دغه راز دَ ښکاره کولو وجه دا وه) چې دَهغه بال بچ او مال هغوئ سره وو. اې ایمان والو تاسو دَالله تعالی او دَهغه دَ رسول ﷺ سره خیانت مه کوئ او نه تاسو په هغه امانتونوکښې خیانت کوئ په څه چې تاسو امانتدار جوړکړې شوی یئې که هغه دَدین خبره وی اوکه دَدې نه علاوه وی، حال دادې چې تاسو هغه پیژنئ او ښه پوهه شئ چې ستاسو بال بچ او مالونه ستاسو دَپاره فتنه (امتحان) دې کوم چې دَ آخرت دَ کارونو نه تاسو منع کونکې دی. اویقینًا الله تعالی سره لوئی اجردې لهذا دا دَمال او اولاد او دَهغوی دَپاره خیانت کولو دَ وجې مه ضائع کوئ.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** تُعْرِضُوْا، دَ تَوَلَّوْتفسیرپه تُعْرِضُوْا سره کولو کښې یئ اشاره اوکړه چې تَوَلَّوْ په حذف دتاء سره مضارع ده نه چې ماضی، لهذا دا اعتراض ختم شو چې په ماضی بلاتکرار دَ لا داخلیدل جائزنه دی.

**قوله:** لَايَعْقِلُوْنَ أی الحق.

**قوله:** قدعَلِمَ أَنْ لَّأَ خَيْرَفِيهِم دَدې اضافې مقصد دَیواعتراض جواب کول دی اعتراض دادې چې په مذکوره آیت کښې یئ د قیاس اقترانی نه استدلال کړې دې دَ کوم نتیجه چېدا راوځی لوعلم الله فیهم خیرًالتولّوا او دامحال دې.

**قیاس اقترانی:** لَوْعَلِمَ اللهُ فِیهِم خیرًا لَأَسْمَعَهُمْ وَلَوْ أَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوْ، نتیجه به راوځی لوعلم الله خیرًالتولّوا یعنی که په دوی کښې دَالله په علم کښې څه خیروې نوهغوی به ضرور اعراض کولو، وهذا محال.

**جواب:** دَ صحیح نتیجې دَپاره دَحداوسط متحدکیدل ضروری دی که چرې حد اوسط مختلف وی نونتیجه به صحیح نه اوځی دلته حداوسط مختلف دې څکه چې دَ اول اسماع نه سماع فهم الموجب للهداية مراددې او دَدویم اسماع نه اسماع مجرد مراد ده.

**قوله:** إِنْ اصابَتْكُمْ، دَدې عبارت اضافه کولو سره یئ اشاره اوکړه چې لاتصیبنّ الذین الخ دَ شرط محذوف جواب دې او دا په هغه خلقو ردهم دې کوموچې وئیلی دی لاتصیبنّ دَفتنة صفت دې.

[ایاتونه: ۲۹ - ۳۸]

وَنَزَلَ فِي توبته {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تَتَّقُوا اللَّهَ} بِالْإِنَابَةِ وَغَيْرِهَا {يَجْعَلْ لَكُمْ فُرْقَانًا} بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ مَا تَخَافُونَ فَتَنْجُونَ {وَيُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ} ذُنُوبَكُمْ {وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ} {وَ} اُذْكُرْ يَا مُحَمَّدُ {إِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا} وَقَدْ اجْتَمَعُوا لِلْمُشَاوَرَةِ فِي شَأْنِكَ بِدَارِ النَّدْوَةِ {لِيُثْبِتُوكَ} يُوثِقُوكَ وَيَحْبِسُوكَ {أَوْ يَقْتُلُوكَ} كُلُّهُمْ قِتْلَةَ رَجُلٍ وَاحِدٍ {أَوْ يُخْرِجُوكَ} مِنْ مَكَّةَ {وَيَمْكُرُونَ} بِكَ {وَيَمْكُرُ اللَّهُ} بِهِمْ بِتَدْبِيرِ أَمْرِكَ بِأَنْ أَوْحَى إِلَيْكَ مَا دَبَّرُوهُ وَأَمَرَكَ بِالْخُرُوجِ {وَاللَّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ} أَعْلَمُهُمْ بِهِ {وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا} الْقُرْآنُ {قَالُوا قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَاءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هَذَا} قَالَهُ النَّضْرُ بْنُ الْحَارِثِ لِأَنَّهُ كَانَ يَأْتِي الْحِيرَةَ يَتَّجِرُ فَيَشْتَرِي كُتُبَ أَخْبَارِ الْأَعَاجِمِ وَيُحَدِّثُ بِهَا أَهْلَ مَكَّةَ {إِنْ} مَا {هَذَا} الْقُرْآنُ {إِلَّا أَسَاطِيرُ} أَكَاذِيبُ {الْأَوَّلِينَ} {وَإِذْ قَالُوا اللَّهُمَّ إِنْ كَانَ هَذَا} الَّذِي يَقْرَؤُهُ مُحَمَّدٌ {هُوَ الْحَقَّ} الْمُنَزَّلَ {مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ} مُؤْلِمٍ عَلَى إِنْكَارِهِ قَالَهُ النَّضْرُ وَغَيْرُهُ اسْتِهْزَاءً وَإِيهَامًا أَنَّهُ عَلَى بَصِيرَةٍ وَجَزْمٍ بِبُطْلَانِهِ قال تعالى {وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ} بِمَا سَأَلُوهُ {وَأَنْتَ فِيهِمْ} لِأَنَّ الْعَذَابَ إِذَا نَزَلَ عَمَّ وَلَمْ تُعَذَّبْ أُمَّةٌ إِلَّا بَعْدَ خُرُوجِ نَبِيِّهَا وَالْمُؤْمِنِينَ مِنْهَا {وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ} حَيْثُ يَقُولُونَ فِي طَوَافِهِمْ غُفْرَانَكَ غُفْرَانَكَ وَقِيلَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ الْمُسْتَضْعَفُونَ فِيهِمْ كَمَا قَالَ تَعَالَى {لَوْ تَزَيَّلُوا لَعَذَّبْنَا الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا} {وما لهم أ} ن {لا يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ} بِالسَّيْفِ بَعْدَ خُرُوجِكَ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ وَعَلَى الْقَوْلِ الْأَوَّلِ هِيَ نَاسِخَةٌ لِمَا قَبْلَهَا وَقَدْ عَذَّبَهُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَغَيْرِهِ {وَهُمْ يَصُدُّونَ} يَمْنَعُونَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُسْلِمِينَ {عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ} أَنْ يَطُوفُوا بِهِ {وَمَا كَانُوا أَوْلِيَاءَهُ} كَمَا زَعَمُوا {إِنْ} مَا {أَوْلِيَاؤُهُ إِلَّا الْمُتَّقُونَ وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ} أَنْ لَا وِلَايَةَ لَهُمْ عَلَيْهِ {وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ إِلَّا مُكَاءً} صَفِيرًا {وَتَصْدِيَةً} تَصْفِيقًا أَيْ جَعَلُوا ذَلِكَ مَوْضِعَ صَلَاتِهِمُ الَّتِي أُمِرُوا بِهَا {فَذُوقُوا الْعَذَابَ} بِبَدْرٍ {بما كنتم تكفرون} {إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ} فِي حَرْبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {لِيَصُدُّوا عَنْ سبيل الله فسينفقونها ثُمَّ تكون} فِي عَاقِبَةِ الْأَمْرِ {عَلَيْهِمْ حَسْرَةً} نَدَامَةً لِفَوَاتِهَا وَفَوَاتِ مَا قَصَدُوهُ {ثُمَّ يُغْلَبُونَ} فِي الدُّنْيَا {وَالَّذِينَ كَفَرُوا} مِنْهُمْ {إِلَى جَهَنَّمَ} فِي الْآخِرَةِ {يُحْشَرُونَ} يُسَاقُونَ {لِيَمِيزَ} مُتَعَلِّقٌ بِتَكُونُ بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ أَيْ يَفْصِلَ {اللَّهُ الْخَبِيثَ} الْكَافِرَ {مِنَ الطَّيِّبِ} الْمُؤْمِنِ {وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ بَعْضَهُ عَلَى بَعْضٍ فَيَرْكُمَهُ جَمِيعًا} يَجْمَعُهُ مُتَرَاكِمًا بَعْضُهُ عَلَى بَعْضٍ {فيجعله في جهنم أولئك هم الخاسرون}

**ترجمه:** اې ایمان والو که تاسو د الله تعالی نه تقوی اختیار کړئ نو الله تعالی به تاسو ته ستاسو او د هغه څیز په مینځ کښې د کوم نه چې تاسو ویریږئ یو د فیصلې څیز درکړي نو تاسو به نجات بیا مومئ او تاسو نه به ستاسو ګناه لرې کړي او ستاسو ګناهونه به معاف کړي الله د لوئ فضل والا دې او اې محمد ﷺ هغه وخت هم د ذکر کولو قابل دې کوم وخت چې کافرانو ستا خلاف تدبیرونه سوچ کول او ستا باره کښې د مشورې د پاره په دارالندوه کښې جمع

دې دپاره چې تاقید کړي، یعنی تاﺍوتړي او راګیرډې کړي یاټول یوځائی شی شوی وو، دې دپاره چې تاقيد كړي، یا دمکې نه تا اوباسی، هغوی خو ستاباره کښې تدبیرونه کول، او الله تعالی تاقتل کړي، یا دمکې نه تا اوباسی، هغوی خو ستاباره کښې تدبیرونه کول، اوالله تعالی ستا په معامله کښې هغوی سره تدبیرکولوچې هغه دَ وحی په ذریعه دَهغوی دَ تدبیر تاته بې خبر درکړو او تاته دَ (مکې نه) دَ وتلو اجازت درکړو، او الله تعالی بهترین تدبیرکونکې دې (یعنی) دَ تدبیرباره کښې دهغوی نه ډیرپیژندونکې دې، کوم وخت چې هغوی ته زمونږ دَ قرآن آیاتونه اورولې شو نوونیل به ئی او مونږ واورېده که چرته مونږ اوغواړو نومونږ هم داسې خبرې جوړولې شو. داخبره نضربن حارث کړې وه، چونکه هغه به دَ تجارت په سلسله کښې حیره ته تللو اودَ عجمیانودَ تاریخ کتابونه به ئی اخستل او راوړل به ئی اوهغه به ئی اهل مکه ته اورول، داقرآن خو دَ پخوانوخلقو دَ ځان نه جوړې شوې قصې دی. (اوهغه خبره هم یادساتئ) کومه چې هغوی کړې ده اې الله که چرې داځه چې محمد ﷺ لولی ستادَ طرف نه نازل کړې شوې دې نوپه مونږ باندې دآسمان نه کاڼړی راؤوروه یاځه دردناک عذاب په مونږ باندې راوله یعنی دَدې په انکارباندې دردناك عذاب رانازل كړه داخبره نضربن حارث یابل چا دَ مسخرې په توګه کړې وه یادا تاثر ورکولودپاره بې وئیلې وه چې هغه علی وجه البصیرت داخبره کوله یادَ قرآن دَ بطلان یقین لرلوسره وئیلې وه (هغه وخت خو) الله په هغوی باندې دَهغوی مطلوبه عذاب نازلونکې نه وو او کله چې تاسو دَدوی په مینځ کښې موجود وئ ځکه چې عذاب کله نازلیږی نو عمومی وی اوپوامت ته عذاب نه دې ورکړې شوې مګردَهغوی نبی اومؤمنان دَهغه ځائی نه ویستلوسره، اونه دَالله تعالی داقاعده ده چې خلق استغفارکوی اوهغه هغوی ته عذاب ورکړی حال دادې چې هغوی دَ خپل طواف په دوران کښې مونږ هم تانه بخښنه غواړو مونږ تانه مغفرت طلب کوو او وئیلی شوی دی چې مراد هغه کمزوری مسلمانان دی کوم چې په هغوی کښې اوسیدل لکه چې الله تعالی فرمائی ﴿لَوْ تَزَيَّلُوا لَعَذَّبْنَا الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا﴾ یعنی که هغوی دغه ځائی نه اخوا شوې وې نومونږ به دهغوی نه منکرین حق ته دردناك عذاب ورکړې وې، لیکن اوس دستا اودَ ضعیفانو مسلمانانودَ وتلونه پس ولې نه هغوی ته دَالله تعالی دَ تورې په ذریعه دَعذاب مزه ورواڅکی، اول قول (یعنی دکافرانوپه حالت دَاستغفار کولو صورت کښې) دا آیت دَماقبل دَپاره ناسخ دې چنانچې (اهل مکه) ته په بدر وغیره کښې عذاب ورکړې شوحالانکه هغوی نبی ﷺ اومسلمانان په مسجدحرام کښې دَ طواف کولونه منع کوی حالانکه هغوی دَ مسجد حرام (جائز) متولیان نه دی لکه چې دَهغوی دعوی ده دَهغې (جائز) متولې خو صرف اهل تقوی کیدې شی لیکن اکثرخلق داخبره چې هغوی ته په دې باندې ولایت حاصل نه دې، نه پېژنی بیت الله سره دَ هغه خلقو مونځ بس صرف شپیلی وهل او لاسونه پړقول دی یعنی دا عمل هغوی دَ مونځ په ځائی ګرځولې وو په کوم چې هغوی مامور وو اوس دَ بدر

په موقع دَحق نه دَانکار دَ وجې دَعذاب مزه او څکئ بیشکه دا کافران خپل مالونه نبی ﷺ سره په جنګیدو کښې خرچ کوی دې دَپاره چې دَالله تعالی دَلارې نه منع کړی اوس به لا نور خرچ هم کوی بیا به دَدې انجام صرف دَمال ضائع کیدو او مقصد نه حاصلیدو دَ وجې دَهغوی دَپاره پښیمانتیاوی بیا به هغوی په دنیا کښې مغلوب کړې شی او بیا به دا کافران په اخرت کښې دَ دوزخ طرف ته راګیر ولو سره راویستلې شی دې دَپاره چې الله تعالی کافران دَ مسلمانانو نه جدا کړی (لیمیز) په تخفیف او تشدید سره دَتکون متعلق دې او هر قسم ګندګی رایو ځائی کړی بیا دغه ټول په دوزخ کښې او غورزوی هم دغه خلق اصلی تاوانیان دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** بِدَارِ النَّدْوَةِ دار الندوه دَ قریشو جد أبعد قصی بن کلاب جوړه کړې وه.

**قوله:** بِتَدْبِيرِ أَمْرِكَ په دې کښې دې طرف ته اشاره ده چې مکرالله په توګه دَ مجاز مرسل استعمال شوې دې مګر ذکر کولو سره دَدې رد مقصود دې.

**قوله** :وعلى الْقَوْلِ الأَوَّلِ هِيَ نَاسِخَةٌ، لهذا په آیت سابقه او موجوده کښې اوس هیڅ تعارض نشته.

**پاره نمبر ۱۰ [وَاعْلَمُوا]**

**[ایاتونه:۳۸ - ٤٤]**

{قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوا} كَأَبِي سُفْيَان وَأَصْحَابه {إِن يَنتَهُوا} عَنْ الْكُفْر وَقِتَال النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {يُغْفَرْ لَهُم مَّا قَدْ سَلَفَ} مِنْ أَعْمَالهمْ {وَإِن يَعُودُوا} إِلَى قِتَاله {فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْأَوَّلِينَ} أَيْ سُنَّتنَا فِيهِمْ بِالْإِهْلَاكِ فَكَذَا نَفْعَل بِهِمْ {وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ} تُوجَد {فِتْنَةٌ} شِرْك {وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ} وَحْده وَلَا يُعْبَد غَيْره {فَإِنِ انتَهَوْا} عَنْ الْكُفْر {فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ} فَيُجَازِيهِمْ بِهِ {وَإِن تَوَلَّوْا} عَنْ الْإِيمَان {فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَوْلَاكُمْ} نَاصِركُمْ وَمُتَوَلِّي أُمُوركُمْ {نِعْمَ الْمَوْلَىٰ} هُوَ {وَنِعْمَ النَّصِيرُ} أَيْ النَّاصِر لَكُمْ {وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُم} أَخَذْتُمْ مِنْ الْكُفَّار قَهْرًا {مِّن شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ} يَأْمُر فِيهِ بِمَا يَشَاء {وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَىٰ} قَرَابَة النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَنِي هَاشِم وَبَنِي الْمُطَّلِب {وَالْيَتَامَىٰ} أَطْفَال الْمُسْلِمِينَ الَّذِينَ هَلَكَ آبَاؤُهُمْ وَهُمْ فُقَرَاء {وَالْمَسَاكِينِ} ذَوِي الْحَاجَة مِنْ الْمُسْلِمِينَ {وَابْنِ السَّبِيلِ} الْمُنْقَطِع فِي سَفَره مِنْ الْمُسْلِمِينَ أَيْ يَسْتَحِقّهُ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْأَصْنَاف الْأَرْبَعَة عَلَى مَا كَانَ يَقْسِمهُ مِنْ أَنَّ لِكُلٍّ خُمُس الْخُمُس وَالْأَخْمَاس الْأَرْبَعَة الْبَاقِيَة لِلْغَانِمِينَ {إِن كُنتُمْ آمَنتُم بِاللَّهِ} فَاعْلَمُوا ذَلِكَ {وَمَا} عَطْف عَلَى بِاللّٰهِ {أَنزَلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا} مُحَمَّد صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ الْمَلَائِكَة وَالْآيَات {يَوْمَ الْفُرْقَانِ} أَيْ يَوْم بَدْر الْفَارِق بَيْن الْحَقّ وَالْبَاطِل {يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ} الْمُسْلِمُونَ وَالْكُفَّار {وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ} وَمِنْهُ نَصْركُمْ مَعَ قِلَّتكُمْ وَكَثْرَتهمْ {إِذْ} بَدَل مِنْ يَوْم {أَنتُم} كَائِنُونَ {بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا}

الْقُرْبٰى مِنَ الْمَدِيْنَةِ وَهِيَ بِضَمِّ الْعَيْنِ وَكَسْرِهَا جَانِبُ الْوَادِي {وَهُمْ بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوٰى} الْبُعْدٰى مِنْهَا {وَالرَّكْبُ} الْعِيرُ كَائِنُوْنَ بِمَكَانٍ {أَسْفَلَ مِنْكُمْ} مِمَّا يَلِي الْبَحْرَ {وَلَوْ تَوَاعَدْتُّمْ} أَنْتُمْ وَالنَّفِيرُ للقتال {لاختلفتم في الميعاد وَلٰكِنْ} جَمَعَكُمْ بِغَيْرِ مِيعَادٍ {لِيَقْضِيَ اللّٰهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا} فِي عِلْمِهِ وَهُوَ نَصْرُ الإِسْلَامِ ومحق الكفر فعل ذلك {لِيَهْلِكَ} يَكْفُرَ {مَنْ هَلَكَ عَنْ بَيِّنَةٍ} أَيْ بَعْدَ حُجَّةٍ ظَاهِرَةٍ قَامَتْ عَلَيْهِ وَهِيَ نَصْرُ المؤمنين مع قلتهم على الجيش الكثير {ويحيى} يؤمن {من حي عن بينة وإن الله لسميع عليم} اذكر {إِذْ يُرِيكَهُمُ اللّٰهُ فِي مَنَامِكَ} أَيْ نَوْمِكَ {قَلِيْلًا} فَأَخْبَرْتَ بِهِ أَصْحَابَكَ فَسُرُّوا {وَلَوْ أَرَاكَهُمْ كَثِيرًا لَفَشِلْتُمْ} جبنتم {ولتنازعتم} اختلفتم {فِي الْأَمْرِ} أَمْرِ الْقِتَالِ {وَلٰكِنَّ اللّٰهَ سَلَّمَ} كم من الفشل والتنازع {إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ} بِمَا فِي الْقُلُوبِ {وإذ يريكمهم} أَيُّهَا الْمُؤْمِنُوْنَ {إِذِ الْتَقَيْتُمْ فِي أَعْيُنِكُمْ قَلِيْلًا} نَحْوَ سَبْعِينَ أَوْ مِائَةٍ وَهُمْ أَلْفٌ لِتَقْدَمُوا عَلَيْهِمْ {وَيُقَلِّلُكُمْ فِي أَعْيُنِهِمْ} لِيَقْدَمُوا وَلَا يَرْجِعُوا عَنْ قِتَالِكُمْ وَهٰذَا قَبْلَ الْتِحَامِ الْحَرْبِ فَلَمَّا الْتَحَمَ أَرَاهُمْ إِيَّاهُمْ مِثْلَيْهِمْ كَمَا فِي آلِ عِمْرَانَ {لِيَقْضِيَ اللّٰهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا وَإِلَى اللّٰهِ ترجع} تصير {الأمور}

ترجمه: (اې نبي ﷺ) دې کافرانوته مثلاً ابوسفيان او دَهغه ملګروته اووايه چې که اوس هم دوئ دَ کفرنه اودَ نبي ﷺ سره دَ جنګ کولونه منع شي نوچې څه وراندې شوی دی هغه به درته معاف کړې شي اوکه دمخکينئ طريقې اعاده مو اوکړه نو دَ وراندې خلقو په حق کښې قانون نافذشوې دې يعنی دَهغوی دَ هلاکولوزمونږ قانون په هغې کښې جاری شوې دې مونږ به دوئ سره هم داسې اوکړو اوتاسودَهغوی سره دَهغه حده پورې جنګيږئ چې دَهغوی فساد(عقيده) دَ شرک ختمه شي اومکمل دين دَالله تعالی وحده شي اودَهغه دَ غيرېندګی اونه کړې شي اوکه چرې داخلق دَ کفرنه منع شي نودَهغوی دَاعمالوکتونکې الله تعالی دې نوهغه به دَدوی دَاعمالو بدله ورکړي اوکه چرې دَ ايمان نه مخ واړوی نويقين اوکړئ چې الله تعالی هم ستاسو مددګاردې اوستاسوکارسازدې اوهغه بهترين کارسازدې اوستاسو بهترين مددګاردې اوتاسو ته معلوميدل پکاردی چې کوم څه تاسو دَ مال غنيمت په توګه حاصل کړئ يعنی دَ کافرانو نه يئ په جبرسره حاصل کړئ دَهغې پنځمه حصه دَالله تعالی ده په هغې کښې چې هغه څنګه حکم اوکړي او دَ رسول ده، دَ نبي دَ خپلوانوده اوهغه بنی هاشم او (بنی) مطلب دی او دَ يتيمانوده يعنی دَهغه يتيم مسلمانانو بچو ده دکوم پلاران چې وفات شوی وی اوحال دادې چې هغوی حاجتمند هم دی اودَ مسکينانوده يعنی دَ حاجتمندو مسلمانانو ده. اودَمسافرو ده (يعنی) کوم مسلمانان چې دَ سفرکولودَ وجې نه مجبورشوې وی يعنی دَهغې مستحق نبي ﷺ دې اومذکوره څلورواړه قسمونه هم ، هم دَدې مطابق به نبي کريم ﷺ تقسيم کولو په دې طريقه چې دَ هريودَپاره دَخمس پنځمه حصه ده اوباقی څلور خمس دَ مجاهدينودَپاره دی او که چرې تاسو په الله تعالی او په هغه څه باندې

ایمان لرئی کوم چې مونږ خپل بنده محمد ﷺ باندې فرښتې اوآیاتونه دَ فرقان په ورځ نازل کړل په کومه ورځ چې دَمسلمانانو اوکافرانو مقابله اوشوه (یعنی مخامخ شوئ)یعنی دَ بدر په ورځ چې دَحق اوباطل په مینځ کښې فرق کونکې وه نوتاسو (خمس) حق ګنړلوسره ادا کوئی اودَ مَاعطف په الله باندې دې اوالله په هرشی باندې قادر دې هم دغه (مقدور) نه ستاسودَ کموالی باوجود اودَ هغوی دَ کثرت باوجودستاسوغلبه ده کوم وخت چې تاسو دَمدینې دَخوا والا غاړه باندې وئی إذ بومّنه بدل دې او (العُدْوة) دَعین په ضمې اوکسرې سره دې (مراد) دَ وادئی طرف اوهغوی دَمدینې نه لرې غاړه باندې وو او قافله تاسو نه ښکته دَ سمندردَغاړې طرف ته وه اوکه چرې تاسو اوقریشی لښکردَ جنګ دَپاره وخت مقررکولو نویقینًا تاسو به دَ وخت مقرر نه تخلف کولو لیکن ستاسو بغیردَ وخت مقررکولو مقابله اوکړې شوه دې دَپاره چې الله تعالی هغه کار اوکړی دکوم کیدل چې دَهغه په علم کښې فیصله شوې وو اوهغه دَاسلام غلبه اودَ کفرختمول دی، دې دَپاره چې څوک کفراوکړی هغه هلاک شی نوچې هغه داسې ښکاره دلیل سره هلاک شی کوم چې په هغه باندې قائم شوې دې او هغه (دلیل) دَ مؤمنانودَ قلت باوجود (دکافرانو) په لوئی لښکر باندې غلبه حاصلول دی اوکوم چې ژوندی پاتې شی (ایمان راوړی) نو په دلیل سره ژوندې پاتې شی یقینًا الله تعالی اوریدونکې او پیژندونکې دې (اوای نبی) هغه وخت یادکړه چې کوم وخت الله تعالی تاته په خوب کښې دَهغوی تعدادکم ښکاره کولو کوم وخت چې تادَدې خبر خپلو ملګروته ورکړو نوهغوی خوشحاله شو اوکه چرې تاته یې دَ هغوی شمیر زیات خودلونوتاسو همت بیللې وو اوپه جنګ کښې به مو اختلاف شروع کولولیکن الله تعالی تاسو دَهمت بیللو او اختلاف نه بچ کړئی، هغه یقینًا دَ زړونو حال پیژندونکې دې او یاد کړئ هغه وخت اې مؤمنانو کوم وخت چې ستاسو هغوی سره مقابله اوشوه نوالله ستاسو په نظر کښې (دښمن) کم ښکاره کړو اویا یا سل حالانکه هغوی زر وو دې دپاره تاسو مخ په وړاندې ځئی اودجنګ نه مه شاته کیږئی او دا هرڅه دَمقابلې کیدلونه وړاندې اوشو اواوس مقابله شروع شوه نوکافرانوته یې دَ مسلمانانو شمیر دَخپل ځان نه دوچندښکاره کړو لکه چې سورت آل عمران کښې دی دې دَپاره چې کومه خبره کیدونکې وه الله تعالی هغه ښکاره کړی او (آخرکار) ټول معاملات هم دَالله تعالی طرف ته واپس کیږی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** أي سُنَّتُنَا فیهم، په دې کښې اشاره ده چې په سنة الأولین کښې دَمصدر اضافت دَ مفعول طرف ته دې ځکه چې په اصل کښې سنتنافیهم دې.

**قوله:** توجَدُ: دَ تکون تفسیرپه توجد سره کولوکښې یې اشاره اوکړه چې کان تامه دې لهذا دې ته دَ خبر ضرورت نشته.

**قوله:** فَاعْلَمُوا ذلك په دې کښې اشاره ده چې دَ إن شرطيه جزاء محذوف ده او هغه اعلموا ذلك دې دَدې په حذف باندې دَ ماقبل فاعلموا دلالت کوی او بعض حضراتو وئيلی دی فامتثلوا جزاء محذوف ده او هم دغه ډير مناسب دی ځکه چې اوس به مطلب شی إنْ کنتم آمنتم مسئلة الخمس فامتثلوا ذلك ځکه چې په علم کښې خو مؤمن او کافر دواړه برابر دی.

**قوله:** فَأَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهُ، فاء جزائيه ده أَنَّمَا کښې مَا، موصوله متضمن ده معنی د شرط لره او فَأَنَّ لله متضمن ده معنی د جزاء لره. نخعی رحمه الله إنَّ دَهمزې په کسرې سره لوستلې دې نورو په فتحې سره، دې صورت کښې به أنْ اودَدې مابعد مبتداء وی اودَ دې خبربه محذوف وی، تقديری عبارت به داوی، فواجب أنَّ لله خمسه دويم ترکيب داکيدې شی چې خمسُهُ مبتداء دَدې خبر به محذوف وی. أی ثابت.

[اياتونه: ۴۵-۴۸]

{يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً} جَمَاعَة كَافِرَة {فَاثْبُتُوا} لِقِتَالِهِمْ وَلَا تَنْهَزِمُوا {وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيرًا} اُدْعُوهُ بِالنَّصْرِ {لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ} تَفُوزُونَ {وَأَطِيعُوا اللّٰهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا} تَخْتَلِفُوا فِيمَا بَيْنَكُمْ {فَتَفْشَلُوا} تَجْبُنُوا {وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ} قُوَّتُكُمْ وَدَوْلَتُكُمْ {وَاصْبِرُوا إِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصَّابِرِينَ} بِالنَّصْرِ وَالْعَوْن {وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ خَرَجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ} لِيَمْنَعُوا عِيرَهُمْ وَلَمْ يَرْجِعُوا بَعْد نَجَاتهَا {بَطَرًا وَرِئَاءَ النَّاسِ} حَيْثُ قَالُوا لَا نَرْجِع حَتَّى نَشْرَب الْخَمْر وَنَنْحَر الْجَزُور وَتَضْرِب عَلَيْنَا الْقِيَان بِبَدْرٍ فَيَسْمَع ذٰلِكَ النَّاس {وَيَصُدُّونَ} النَّاس {عَنْ سَبِيلِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُونَ} بِالْيَاءِ وَالتَّاء {مُحِيطٌ} عِلْمًا فَيُجَازِيهِمْ بِهِ {وَ} اُذْكُرْ {إِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ} إِبْلِيس {أَعْمَالَهُمْ} بِأَنْ شَجَّعَهُمْ عَلَى لِقَاء الْمُسْلِمِينَ لَمَّا خَافُوا الْخُرُوج مِنْ أَعْدَائِهِمْ بَنِي بَكْر {وَقَالَ} لَهُمْ {لَا غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَإِنِّي جَارٌ لَكُمْ} مِنْ كِنَانَة وَكَانَ أَتَاهُمْ فِي صُورَة سُرَاقَة بْن مَالِك سَيِّد تِلْكَ النَّاحِيَة {فَلَمَّا تَرَاءَتِ} اِلْتَقَتْ {الْفِئَتَانِ} الْمُسْلِمَة وَالْكَافِرَة وَرَأَى الْمَلَائِكَة يَده فِي يَد الْحَارِث بْن هِشَام {نَكَصَ} رَجَعَ {عَلَى عَقِبَيْهِ} هَارِبًا {وَقَالَ} لَمَّا قَالُوا لَهُ أَتَخْذُلُنَا عَلَى هٰذِهِ الْحَال {إِنِّي بَرِيءٌ مِنْكُمْ} مِنْ جِوَارِكُمْ {إِنِّي أَرَى مَا لَا تَرَوْنَ} مِنَ الْمَلَائِكَة {إِنِّي أَخَافُ اللّٰهَ} أن يهلكني {وَاللّٰهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ}

**ترجمه:** اې ايمان والو کله چې ستاسو يو کافر جماعت سره مقابله اوشی (مخامخ شئ) نو دَهغوی سره په جنګ کښې کلک اوسيږئ بزدلی مه ښکاره کوئ او الله تعالی په کثرت سره يادوئې او دَهغه نه دَنصرت دعاکوئې توقع ده چې تاسوته به کاميابی نصيب شی. دَالله تعالی او دَ هغه دَ رسول ﷺ اطاعت کوئې او خپل مينځ کښې اختلاف مه کوئې ګنې په تاسو کښې به کمزوری پيداشی او ستاسو طاقت به ختم شی، ستاسو دبدبه او طاقت به ختم شی ةصبرنه کاراخلئ

يقيناً الله تعالى دَ نصرت او اعانت په ذريعه دصبر كونكو سره دي اودَهغه چا په شان مه كيږئ چې دَ خپلو كورونونه دَخپلې قافلې دَ بچ كولودَپاره غرور كولوسره خلقوته (شان اوسامان خودونكي راوتلې وو اودَ قافلې دَبچ وتلونه پس نه وو راګرځيدلي (كله چې هغوى ته اوئيلې شو واپس لاړشئ) نوهغوى اووئيل مونږ به ترهغه وخته پورې واپس كيږونه تركومې چې (دَ بدر په ميدان كښې) شراب نوشي اونه كړو، او اوښان ذبح نه كړو اوسندروپه ويونكې وينځې ګانې بجانې اونه كړي اوخلق زمونږ دَ بهادرئ تعريف اونه كړي اوهغوى خلق دَالله تعالى دَ لارې نه منع كوي اوكوم څه چې هغوى كوي الله تعالى دَهغې علمي احاطه كړې ده (تعملون) په ياء اوتاء سره دې الله تعالى به دَدې ضرور صله وركړي هغه وخت يادكړئ چې شيطان ابليس دَهغوى په نظرونوكښې دَهغوى اعمال ښائسته كولوسره خودلي وو، داسې چې دَ مسلمانانوسره په مقابله كولوباندې هغوى ته هغه وخت همت وركړو كوم وخت چې هغوى ته دَخپل دښمن بنى بكر دَ بغاوت انديښنه پيداشوه اوهغوى ته ئې اووئيل چې نن په تاسو څوک غالب راتلونكې نشته او كنانه (بني بكر) دَ طرف نه زه ستاسو امدادي يم اوابليس هغوى له دَ دغه علاقې دَ سردارسراقه بن مالك په شكل كښې راغلې وو اوكوم وخت چې ددواړو جماعتونو (يعني) دَ مسلمانانو اوكافرانو مقابله اوشوه او ابليس فرښتې اوليدلې نو په تيتخته اوله خپې واپس شو اودَ ابليس لاس دَ حارث بن هشام په لاس كښې وو اوكله چې مشركانو ابليس ته اووئيل آيا ته مونږ په داسې حالت كښې پريږدې؟ نوابليس جواب وركړو چې زه ستاسودَ امداد كولونه برى (معذور) يم ځكه چې زه فرښتې وينم كومې چې تاسو نه وينئ زه دَالله تعالى نه ويريږم چې هغه به ما هلاك كړي اوالله تعالى ډيره سخته سزاوركونكې دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** فِئَةٌ، فِئة په معنى دجماعت دا اسم جمع دې دَدې لفظًا واحد نشته جمع يې فئاتٌ ده.

**قوله:** قُوّتُكُمْ وَدَوْلَتُكُمْ لفظ ريح دقوة او دولة دَپاره مستعاردې دَوْلَة په معنى دحرب اوغلبې استعماليږي دِوَلٌ دُوْلَة ددال په ضمې سره په معنى د مال، دَدې جمع دُوَلٌ ده دَ دال په ضمې سره.

**قوله:** وَتَضْرِبَ عَلَيْنَا، القِيَانُ ضرب العود والطنبور دوپرئ باجې وهل.

**قوله:** القِيَانُ واحد قَيْنَةٌ الجواري المغنيات ګانې ويونكې وينځې.

**قوله:** بِبَدْرٍ دَدې تعلق سابقه دريواړو افعالوسره دې.

**قوله:** فَيَتَسَامَعَ بذلك أي فيشنوا عليهم بالشجاعة يعني چې دَهغوى دَ بهادرئ تعريف اوكړي.

**[ايا تونه:۴۹-۵۸]**

{إِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ} ضَعْف اعْتِقَاد {غَرَّ هَؤُلَاءِ} أَيِ الْمُسْلِمِينَ {دِينُهُمْ} إِذْ خَرَجُوا مَعَ قِلَّتِهِمْ يُقَاتِلُونَ الْجَمْع الْكَثِير تَوَهُّمًا أَنَّهُمْ يُنْصَرُونَ بِسَبَبِهِ قَالَ تَعَالَى فِي جَوَابِهِمْ {وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ} يَثِق بِهِ يَغْلِب {فَإِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ} غَالِب عَلَى أَمْره {حَكِيمٌ} فِي صُنْعه {وَلَوْ تَرَى} يَا مُحَمَّد {إِذْ يَتَوَفَّى} بِالْيَاءِ وَالتَّاء {الَّذِينَ كَفَرُوا الْمَلَائِكَةُ يَضْرِبُونَ} حَال {وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ} بِمَقَامِع مِنْ حَدِيد {وَ} يَقُولُونَ لَهُمْ {ذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ} أَيِ النَّار وَجَوَاب لَوْ لَرَأَيْت أَمْرًا عَظِيمًا {ذَلِكَ} التَّعْذِيب {بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيكُمْ} عَبَّرَ بِهَا دُون غَيْرهَا لِأَنَّ أَكْثَر الْأَفْعَال تُزَاوَل بِهَا {وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ} أَيْ بِذِي ظُلْم {لِلْعَبِيدِ} فَيُعَذِّبهُمْ بغير ذنب داب هؤلاء {كَدَأْبِ} كَعَادَةِ {آلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ} بِالْعِقَابِ {بِذُنُوبِهِمْ} جُمْلَة كَفَرُوا وَمَا بَعْدهَا مُفَسِّرَة لِمَا قَبْلهَا {إن الله قوي} على ما يريده {شديد العقاب} {ذَلِكَ} أَيْ تَعْذِيب الْكَفَرَة {بِأَنَّ} أَيْ بِسَبَبِ أَنَّ {اللَّهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا نِعْمَةً أَنْعَمَهَا عَلَى قَوْمٍ} مُبَدِّلًا لَهَا بِالنِّقْمَةِ {حَتَّى يُغَيِّرُوا مَا بِأَنْفُسِهِمْ} يُبَدِّلُوا نِعْمَتهمْ كُفْرًا كَتَبْدِيلِ كُفَّار مَكَّة إِطْعَامهمْ مِنْ جُوع وَأَمْنهمْ مِنْ خَوْف وَبَعْث النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِمْ بِالْكُفْرِ وَالصَّدّ عَنْ سَبِيل اللَّه وَقِتَال الْمُؤْمِنِينَ {وان الله سميع عليم} {كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ كَذَّبُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ فَأَهْلَكْنَاهُمْ بِذُنُوبِهِمْ وَأَغْرَقْنَا آلَ فِرْعَوْنَ} قومه معه {وكل} من الأمم المكذبة {كانوا ظالمين} وَنَزَلَ فِي قُرَيْظَة {إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِنْدَ اللَّهِ الَّذِينَ كَفَرُوا فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ} {الَّذِينَ عَاهَدْتَ مِنْهُمْ} أَنْ لَا يُعِينُوا الْمُشْرِكِينَ {ثُمَّ يَنْقُضُونَ عَهْدَهُمْ فِي كُلِّ مَرَّةٍ} عَاهَدُوا فِيهَا {وَهُمْ لَا يَتَّقُونَ} اللَّه فِي غَدْرهمْ {فَإِمَّا} فِيهِ إِدْغَام نُون إِنْ الشَّرْطِيَّة فِي مَا الْمَزِيدَة {تَثْقَفَنَّهُمْ} تجدنهُمْ {فِي الْحَرْبِ فَشَرِّدْ} فَرِّقْ {بِهِمْ مَنْ خَلْفَهُمْ} مِنَ الْمُحَارِبِينَ بِالتَّنْكِيلِ بِهِمْ وَالْعُقُوبَة {لَعَلَّهُمْ} أَيِ الَّذِينَ خَلْفهمْ {يَذَّكَّرُونَ} يتعظون بهم {وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِنْ قَوْمٍ} عَاهَدُوك {خِيَانَةً} فِي عَهْد بِأَمَارَةٍ تَلُوح لَك {فَانْبِذْ} اطْرَحْ عَهْدهمْ {إِلَيْهِمْ عَلَى سَوَاءٍ} حَال أَيْ مُسْتَوِيًا أَنْتَ وَهُمْ فِي الْعِلْم بِنَقْضِ الْعَهْد بِأَنْ تُعْلِمهُمْ به لئلا يتهموك بالغدر {إن الله لا يحب الخائنين}

**ترجمه:** اوكله چې منافقانو او هغه خلق دَ چا په زړونو كښې چې دَ عقيدې دَ ضعف بيمارى لګيدلې وه اووئيل چې دا مسلمانان خوخپل دين كښې په ليونتوب كښې اخته كړى دى څكه چې دَ خپل كم تعداد باوجود ډيرلوئي جماعت سره د جنګيدو دپاره په دې كچې خيال چې دين په وجه به دَ هغوى امداد كيږى راوتلې دى الله تعالى دَ هغوى په جواب كښې اوفرمائيل حالانكه چې څوك په الله تعالى باندې يقين اوكړى نو هغه به غالب وى يقينًا الله تعالى په خپل امر باندې غالب او په خپل صنعت كښې باحكمت دې افسوس اې محمد ﷺ چې تا هغه حالت ليدلې شوكوم وخت چې فرښتې دكافرانو روح قبض كوى (يتوفى) په ياء اوتاء سره دې دَ هغوى په مخونو باندې او دَ هغوى په كوناټو باندې دَ اوسپنې په ستكونو باندې وهى او هغوى ته وائى

په اورکښې دَ سوزیدومزه اوڅکئ اودَ لَوْ جواب لَرَأَيْتَ أَمْرًا عظيمًا محذوف دې دا ستاسو دَهغه اعمالو په سبب دی کوم چې تاسو وړاندې رالیږلی دی په لاسونوباندې نه چې په نورو اندامونوباندې دَدې دَپاره تعبیرکړې دې چې په اکثرو اعمالوکښې دَ لاسونوشرکت وی ګنی الله تعالی په خپلو بندیګانو باندې ظلم کونکې نه دې چې هغوی ته بغیردَ څه قصور سزا ورکړی دامعامله هغوی سره هم هغه شان نه پیښه شوه څنګه چې فرعون سره اودَهغه نه وړاندې خلقو سره پیښه شوې وه چې هغوی دَالله تعالی آیاتونه دَمنلونه انکاراوکړو نوالله تعالی هغوی دګناهونو په سزاکښې راونیول جمله كَفَرُوْا اودَدې مابعددَ دې دَماقبل دَپاره مفسره ده بیشکه الله تعالی دَ خپلې خوښې باره کښې قوی دې اوسخت عذاب والا دې. دا کافرانوته عذاب ورکول دَدې وجې نه اوشوچې دَالله تعالی دا دستور نه دې چې یوقوم باندې دَنعمتونو دَ انعام کولونه پس هغه په تکلیف او زحمت سره بدل کړی ترکومې چې هغه قوم خپل دَعمل لار پخپله بدله نه کړی (یعنی) په خپل ځان باندې دَ نعمتونو مقتضی (شکر) په ناشکرئی سره بدل کړی لکه چې دَ مکې کافرانو بدل کړل (نو الله) دَهغوی دَخیټې موړوالې په اولګه سره اودَهغوی امن په ویره سره اودَ نبی ﷺ بعثت (چې یولوئی نعمت دې) په انکارسره اودَ الله تعالی دَلارې نه منع کولو سره اودَ مؤمنانوسره په جنګ کولوسره (بدل کړل) او بیشکه الله تعالی هرڅه اوریدونکې (او) په هرڅه پوهیدونکې دې. آل فرعون اودَهغوی نه وړاندې خلقو سره چې څه پیښه اوشوه هغه هم دَدغه ضابطه مطابق پیښه شوه چې هغوی دَخپل رب آیاتونه دروغ اوګڼل نومونږ هغوی دَهغوی دَګناه په وجه هلاک کړل اومونږ دَ فرعون قوم سره فرعون ډوب کړو بیشکه دا تکذیب کونکی ټول قومونه ظالمان وو او راتلونکې آیت دَ بنی قریظه په باره کښې نازل شو یقینًا دَ الله تعالی په نیز په زمکه باندې تګ کونکې مخلوق کښې دَ ټولونه ډیر خراب هغه خلق دی چاچې کفر اوکړو اوبیائی ایمان رانوړو (خصوصًا) په هغوی کښې هغه خلق چاسره چې حضورپاک معاهده اوکړه داچې هغوی به دَ مشرکانو امداد نه کوی بیا هغوی بار بار خپله وعده ماتوی کومه چې هغوی تاسره کړې وه اوهغوی په وعده ماتولوکښې دَ الله تعالی ویره نه لری بیا که تاسو په هغوی باندې دَ جنګ په میدان کښې غلبه بیاموموئ نودَهغوی دَعذاب اوسزا په ذریعه داسې خبر واخلئ چې هغه خلق کوم چې هغوی پسې دی دَهغوی نه عبرت حاصل کړی اوکه چرې (اې محمد ﷺ) تاسوته دیو قوم کوم سره چې تاسو معاهده کړې ده دَ داسې علاماتو په ذریعه معلومه شی چې په معاهده کښې دَ خیانت اندیښنه وی نو ته هغوی سره معاهده دَ برابرئی په طریقه ماته کړه (علی سواء) داد نَابِذ او د منبوذ دواړو دحال دې، حال دا چې په نقض عهد کښې د علم په اعتبارسره دواړه برابرشئ (یعنی دَ نقض عهد دواړو ته علم وی)داسې چې تاسو هغوی ته دَ فسخ عهد خبر ورکړئی دې دَپاره چې هغوی تاسو په بدعهدئی متهم نه کړی الله تعالی خیانت کونکی نه خوښوی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: يَغْلِبُ: په دې کښې اشاره ده چې دَ (مَنْ يتوکل) جزاء محذوف ده اوهغه يَغْلِبُ دې په دې حذف باندې روستنۍ جمله فَاِنَّ اللهَ عزيزحکيم دلالت کوی.

قوله: وَلَوْتَرٰى يامحمد ﷺ.

سوال: تَرٰى دَمضارع صيغه ده چې په حال اواستقبال باندې دلالت کوی او اِذ يتوفى، په ماضى دلالت کوی ځکه چې اِذ مضارع دَماضى معنى اړوى لهذا په دواړو جملوکښې منافات دې.

جواب: لَوْ مضارع دَماضى په معنى اړوى لهذا په دواړو جملوکښې څه منافات نشته.

قوله: حال، يعنى يضربون، دملائکة نه بالذين کفروا نه حال دې نه چې صفت.

قوله: مقامِعَ، دَ مِقْمَعَة جمع ده ستڼك، گرز په وزن دَ مِكْنَسَة.

قوله: يقولون لهم په دې کښې دَ يوسوال مقدر جواب طرف ته اشاره ده.

سوال: دَ ذوقوا عطف په يَضْرِبُوْنَ باندې دې او داعطف د انشاء على الخبردې کوم چې مستحسن نه دې. دويم اعتراض دادې چې هم په يوه جمله کښې دغائب اوحاضر اجتماع راځى داهم مستحسن نه دى.

جواب: د ذوقوا نه وړاندې يقولون محذوف دې لکه چې مفسرعلام صراحت کړې دې لهذا دواړه اعتراضات دفع شو. دَ لَوْ جواب يئ دَ تباهئ دعظمت او هيبت ثابتولودپاره حذف کړې دې کوم چې مفسرعلام لَرَأَيتَ امرًا عظيمًا وئيلو سره ښکاره کړې دې.

قوله: دَأْبُ هؤلاء په دې کښې اشاره ده چې کدأب آل فرعون دَمبتداء محذوف خبرکيدو دَ وجې نه په محل دَ رفع کښې دې، لهذا دکلام دَ ناتمام کيدو اعتراض ختم شو او دا اعتراض هم ختم شو چې دلته دَ شبه نه بغير تشبيه لازميږى.

قوله: جُمْلَةُ كَفَرُوْا مُفَسِّرَةٌ لِمَا قَبْلَهَا دا هم دَ يوسوال مقدرجواب دې. سوال دادې چې مسلسل دَ جملې په مينځ کښې وَالذين کفروا من قبلهم دَ کوم مقصد دپاره فاصل راوړلې شو، جواب دادې چې دا دَماقبل جملې تفسيردې لهذا دا فصل بالاجنبى نه دې چې اعتراض واقع شى.

قوله: بِالنِّقْمَةِ دا دَانتقام نه اسم دې.

قوله: اِطْعَامِهِمْ په دې کښې اشاره ده چې مابانفسهم نه مراد انعامات مثلاً خوراك وغيره مراددى نه چې حالات لهذا دا اعتراض ختم شو چې قريش او آل فرعون دپاره حالات مرضيه وو نه چې هغه په حالات نامرضيه سره بدل کړې شو. (ترويح الارواح)

قوله: تَجِدَنَّهُمْ، اى تظفرنّهم وتغلبنّهم.

**قوله:** بِالتَّنْكِيْلِ (تفعيل) عبرتناك سزا وركول.

**قوله:** اَنْتَ وَهُمْ په دې كښې اشاره ده چې مـعـويـّهٔ دا یٰاوستبود (یعني فاعل او مفعول) دواړو نه حال دي.

**[اياتونه:٥٩-٦٤]**

ونزل فيمن افلت يوم بدر {ولاتحسبن} يَا مُحَمَّد {الَّذِينَ كَفَرُوا سَبَقُوا} اللّٰه أيْ فَاتُوهُ {إِنَّهُمْ لَا يُعْجِزُونَ} لَا يَفُوتُونَهُ وَفِي قِرَاءَة بِالتَّحْتَانِيَّةِ فَالْمَفْعُول الْأَوَّل مَحْذُوف أيْ أَنْفُسهمْ وَفِي أُخْرَى بِفَتْحِ إنَّ عَلَى تَقْدِير اللَّام {وَأَعِدُّوا لَهُمْ} لِقِتَالِهِمْ {مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ} قَالَ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ الرَّمْي رَوَاهُ مُسْلِم {وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ} مَصْدَر بِمَعْنَى حَبْسهَا فِي سَبِيل اللّٰه {تُرْهِبُونَ} تُخَوِّفُونَ {بِهِ عَدُوَّ اللّٰهِ وَعَدُوَّكُمْ} أيْ كُفَّار مَكَّة {وَآخَرِينَ مِنْ دُونِهِمْ} أيْ غَيْرهمْ وَهُمْ الْمُنَافِقُونَ أَوْ الْيَهُود {لا تعلمونهم الله يعلمهم وما تنفقوا مِنْ شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ} جَزَاؤُهُ {وَأَنْتُمْ لَا تُظْلَمُونَ} تُنْقَصُونَ مِنْهُ شَيْئًا {وَإِنْ جَنَحُوا} مَالُوا {لِلسَّلْمِ} بِكَسْرِ السِّين وَفَتْحهَا الصلح {فاجنح لها} وعاهدهم وقال بن عَبَّاس هَذَا مَنْسُوخ بِآيَةِ السَّيْف وَقَالَ مُجَاهِد مَخْصُوص بِأَهْلِ الْكِتَاب إذْ نَزَلَتْ فِي بَنِي قُرَيْظَة {وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ} ثِقْ بِهِ {إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ} لِلْقَوْلِ {الْعَلِيمُ} بِالْفِعْلِ {وَإِنْ يُرِيدُوا أَنْ يَخْدَعُوكَ} بِالصُّلْحِ لِيَسْتَعِدُّوا لَك {فَإِنَّ حَسْبَكَ} كَافِيك {اللّٰهُ هُوَ الَّذِي أَيَّدَكَ بنصره وبالمؤمنين} {وألف} جمع {بين قلوبهم} بعد الإحن {ولو أنفقت مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مَا أَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ وَلَكِنَّ اللّٰهَ أَلَّفَ بَيْنَهُمْ} بِقُدْرَتِهِ {إِنَّهُ عَزِيزٌ} غَالِب عَلَى أَمْره {حَكِيمٌ} لَا يخرج شيء عن حكمته {يأيها النَّبِيُّ حَسْبُكَ اللّٰهُ وَ} حَسْبك {مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ}

**ترجمه:** راتلونكې آيت دَ هغه (مشركانو) په باره كښې نازل شو كوم چې دَ بدر په ورځ تختيته كړې وه، اې محمد ﷺ ته هيڅ كله دا مه ګڼره چې دا كافران به دَ الله تعالى (دَنيولو) نه بچ شي دوی الله تعالى نه شي عاجزكولې اونه دَهغه نه بچ وتلې شي او په يوقراءت كښې (لا يَحْسَبَنَّ) ياء تحتانيه سره دَ (يَحْسَبَنَّ) مفعول اول محذوف دې اوهغه اَنْفُسَهُمْ دې اوپه يوقراءت كښې اَنَّهُمْ دهمزې په فتحې اودلام تقديرسره دې. اى لِاَنَّهُمْ اودَهغوی سره دَ جنګ دَپاره پوره طاقت تيار كړئ حضورپاك اوفرمائيل هغه غشې ويشتل دی (رواه مسلم) او (تيار) تړلې شوی اسونه (رباط) مصدر دې په معنی دَالله تعالى په لاركښې بند (ساتلې) كړې شوی (دې دَپاره) چې تاسو دَدې په ذريعه دَالله تعالى اوخپل دښمنان كافران دَ مكې اوويرولې شئ، اودَهغوی نه علاوه نورهم، يعنې دَهغوی غير، اوهغه منافقان اويهود دی كوم چې تاسو نه پيژنئ، الله تعالى هغوی پيژنی څه چې تاسو دَالله تعالى په لاركښې خرچ كوئ تاسو ته به دَهغې پوره پوره اجر اوبدله دركولې شی او په تاسوبه ظلم نه شی كولې چې دَهغه اجر نه څه كم كړې شی او (اې محمد ﷺ) كه چرې دښمن دَ صلح طرف ته مائل شی سِلم دَ سين په كسرې او

فتحې سره، په معنی دَصلح، نوته هم دَهغې دَپاره مائل شه اوهغوی سره معاهده اوکړه، ابن عباس ﷺ اوفرمائیل دا حکم په آیت سیف سره منسوخ دې اومجاهد ﷫ وئیلی دی چې دا آیت اهل کتاب سره مخصوص دې ځکه چې دا دَ بنی قریظه باره کښې نازل شوې دې، او په الله تعالی باندې بهروسه ساته یقیناً هغه خبرې اوریدونکې (او) په کارونوباندې پوهیدونکې دې اوکه چرې هغوئ (صلح سره) دَدهوکې اراده لری دې دَپاره چې هغوی ستادَ مقابلې دَپاره تیاری اوکړې شی نویقیناً ستاسو دَ پاره الله کافی دې هم هغه خودې چې په خپل امداد اودَمؤمنانو په ذریعه ئې ستاتائیداوکړو اودَ عداوت نه پس ئې دَهغوی زړونه یوځائی کړل اوکه تا دَ مخ دَ زمکې ټول دولت هم خرچ کړې وې نوبیا دې هم دَهغوی زړونه نه شو یوځائی کولې لیکن الله تعالی په خپل قدرت باندې دَهغوی زړونه یوځائی کړل بیشکه هغه په خپل حکم باندې غالب او باحکمت دې هیڅ شئ دَ هغه دَحکم نه خارج نه دې اې نبی ستادَ پاره او ستا اتباع کونکو مؤمنانودَپاره الله کافی دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** أَقْلَتَ (افعال) خلاصیدل، پیریخودل، تختیدل، إنفلاة البطن، دَخیټې جاری کیدل (دستونه) انفلات الریح، دَهوا خارجیدل، انفلت الشئ فلتةً، أی بغتةً، ناڅاپی وتل.

**قوله:** لَاتَحْسَبَنَّ (دا رسول الله ﷺ ته خطاب دې متعدی دوؤ مفعولوته دې اول الذین کفروا دې او دویم سَبَقُوْا جمله ده ، الله دسبقوا مفعول دې قرینه دَمقام دَ وجې نه حذف کړې شوې دې کوم چې مفسرعلام ظاهرکړې ده. اوپه یوقراءت کښې تَحْسَبَنَّ یاء سره دې په دې صورت کښې به د یَحْسَبَنَّ مفعول اول محذوف وی، أی لایَحْسِبَنَّ الذین کفروا انفسهم سابقین الله، په یوقراءت کښې أَنَّهُمْ دَ همزه په فتې سره د ې په دې صورت کښې به لام مقدر وی ای لِأَنَّهُمْ،

**قوله:** مصدرٌ رباط الخیل کښې رباط مصدر په معنی مفعول دې ای الخیل المربوط، دَ جهاد دَپاره تیارترلې شوی اسونه، درباطٌ عطف په قوةٌ باندې عطف مصدر علی المصدر دې.

**قوله:** فَاجْنَحْ لَهَا: **سوال:** دَلَهَاضمیرد سِلْمْ طرف ته راجع دې کوم چې مذکردې اوضمیرمؤنث دې ضمیراومرجع کښې مطابقت نشته.

**جواب:** دَ سِلْمْ نقیض یعنی حربٌ اعتبار کولوسره ضمیر مؤنث راوړلې شوې دې حَرْبٌ مؤنث سماعی دې.

**قوله:** كَافِيْكَ، دادَ یوسوال جواب دې.

**سوال:** سوال دادې چې په حَسْبُكَ الله، کښې دَمصدر حمل په ذات باندې لازمیږی کوم چې صحیح نه دې.

**جواب:** مصدر په معنی دَ اسم فاعل دې لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته، مفسرعلام د حُسُكَ تفسيرپه كالمك سره كولو كښې اشاره اوكړه چې مصدر په معنی د اسم فاعل دې.
**قوله:** اَلْاِحْنَ الاِحْنَةُ جمع ده پټه دښمني، كينه، اَحِنَ اَحْنًا(س) پټه دښمني ساتل.

**[ایاتونه:٦٥-٦٩]**

{يأيها النَّبِيّ حَرِّض} حُثّ {الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَال} لِلْكُفَّارِ {إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ} مِنْهُمْ {وَإِنْ يَكُنْ} بِالْيَاءِ وَالتَّاء {مِنْكُمْ مِائَةٌ يَغْلِبُوا أَلْفًا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِأَنَّهُمْ} أَيْ بِسَبَبِ أَنَّهُمْ {قَوْمٌ لَا يَفْقَهُونَ} وَهَذَا خَبَر بِمَعْنَى الْأَمْر أَيْ لِيُقَاتِل الْعِشْرُونَ مِنْكُمْ الْمِائَتَيْنِ وَالْمِائَة الْأَلْف وَيَثْبُتُوا لَهُمْ ثُمَّ نُسِخَ لَمَّا كثروا بقوله {الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا} بِضَمِّ الضَّاد وَفَتْحهَا عَنْ قِتَال عَشْرَة أَمْثَالكُمْ {فَإِنْ يَكُنْ} بِالْيَاءِ وَالتَّاء {مِنْكُمْ مِائَةٌ صابرة يغلبوا مئتين} مِنْهُمْ {وَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ أَلْف يَغْلِبُوا أَلْفَيْنِ بِإِذْنِ اللَّه} بِإِرَادَتِهِ وَهُوَ خَبَر بِمَعْنَى الْأَمْر لِتُقَاتِلُوا مِثْلَيْكُمْ وَتَثْبُتُوا لَهُمْ {وَاللَّه مَعَ الصَّابِرِينَ} بِعَوْنِهِ وَنَزَلَ لَمَّا أَخَذُوا الْفِدَاء مِنْ أَسْرَى بَدْر {مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ تَكُون} بِالتَّاءِ وَالْيَاء {لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِن فِي الْأَرْض} يُبَالِغ فِي قَتْل الْكُفَّار {تُرِيدُونَ} أَيّهَا الْمُؤْمِنُونَ {عَرَض الدُّنْيَا} حُطَامهَا بِأَخْذِ الْفِدَاء {وَاللَّه يُرِيد} لَكُمْ {الْآخِرَة} أَيْ ثَوَابهَا بِقَتْلِهِمْ {وَاللَّه عَزِيز حَكِيم} وَهَذَا مَنْسُوخ بِقَوْلِهِ {فَإِمَّا مَنًّا بَعْد وَإِمَّا فداء} {ولولا كِتَاب مِنَ اللَّه سَبَقَ} بِإِحْلَالِ الْغَنَائِم وَالْأَسْرَى لكم {لمسكم فيما أخذتم} من الفداء {عذاب عظيم} {فكلوا مما غنمتم حلالا طيبا واتقوا الله إن الله غفور رحيم}

**ترجمه:** اې نبی ﷺ مؤمنانوته دکفاروسره دَ جهاد شوق ورکړه که په تاسو کښې شل صبرکونکی وی نو په هغوی کښې به په دوو سوو غالب راځی اوکه چرې په تاسو کښې سل صبرکونکی وی نو په زرو كافرانوباندې به غالب راځی په دې سبب چې هغه ناپوهه خلق دی (یکن) په یاء اوتاء سره دې او داخبرپه معنی دَانشاء دې یعنی تاسونه شلو کسانولره دَهغوی د دوؤ سوو کسانو سره جنګ کول پکاردی اوسلوله دَ زرو سره، اودَهغوی په مقابله کښې ثابت قدم اوسیږئی، بیاچې کله (دَمسلمانانو) شمیرزیات شو نودَالله په قول (اَلْئٰنَ) سره دا منسوخ شو (بنه) اوس الله ستاسو بوج سپکوی هغه ښه پوهیږی چې په تاسو کښې کمزوری ده دَخپل ځان نه لس چندوسره مقابله کولو کښې (ضعفا) دَ ضاد په ضمې او فتحې سره دې، نوکه په تاسو کښې صابرخلق سل وی نودَهغوی په دوو سوو کسانو به دَالله تعالی په حکم غالب راځی داخبر په معنی دَ امر دې یعنی دَخپل ځان نه دوچنده سره مقابله کوئی، اودَهغوی په مقابله کښې ثابت قدم اوسیږئی، الله تعالی د امداد په ذریعه د صبر کونکوسره دې.
(راتلونکې آیت) هغه وخت نازل شو چې کوم وخت دَ بدر دَ قیدیانو فدیه واخستلې شوه دَ یونبی دَپاره دا ښه خبره نه ده چې دَهغه په لاس کښې دې قیدیان وی (یکون) یاء اوتاء سره،

ترکومې چې هغه دښمنان په زمکه کښې په ښه طريقه چقړې نه کړي يعنې دکافرانو په قتل کښې مبالغه اونه کړئ، اې مؤمنانو تاسو فديه اخستلوسره دَدنيا حقيرمال اخستل غواړئ اوالله تعالى ستاسودپاره آخرت يعنى دَ دې ثواب غواړي، او الله تعالى زورآور اوطاقتور دې او دا إِمَّا مَنًّا بعد وإِمَّا فداءً سره منسوخ دې اوکه چرې دَالله تعالى ليک دَ غنائمود حلال کيدو اود قيديانو (فديه) ستاسو دپاره دَ حلال کيدونه وړاندې نه وې ليکلې شوې نوچې کومه فديه تاسو واخستَه دَهغې په وجه به تاسوته لويه سزا درکولې شوه، لهذا کوم مال چې تاسودَغنيمت په توګه اخستې دې هغه خورئ چې هغه حلال اوپاک دې اودَ الله تعالى نه ويريږئ يقينًا الله تعالى معافى کونکې دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** خَبَرٌ بِمَعْنَى الأَمْرِ دادَ يو اعتراض جواب دې.

**اعتراض:** دادې چې مِائَةٌ يَغْلِبُونَ أَلْفًا من الذين كفروا کښې خبرورکړې شوې دې چې سل صبرکونکى مسلمانان په زرو کافرانو باندې غالب راځى اودَ الله تعالى په خبرکښې کذب يعنى خلاف واقعه کيدلو امکان او احتمال نشته حالانکه بعض وخت دَ مساوى کيدو په صورت کښې کافران هم غالب راځى.

**جواب:** خبرپه معنى دَامر دې او په امرکښې دکذب احتمال نه وى.

**قوله:** أَلْئٰنَ خَفَّفَ اللهُ وَعَلِمَ أَنَّ فِيْكُمْ ضُعْفًا، دلته دا سوال پيداکيږى چې علم بالضعف دَ الآن سره مقيد کولونه معلوميږى چې الله تعالى ته علم بالحادث نشته.

**جواب:** دَالله تعالى علم حادث سره بيشکه متعلق دې ليکن قبل الوقوع په دې اعتبارسره چې سَيَقَعُ او واقع کيدونه پس په دې اعتبارسره دې چې بأنه يقع.

**قوله:** الحُطَامُ بالضم، حقير شئ، قليل مال، ذره ذره مات شوې.

**قوله:** اى ثوابها، په حذف دمضاف کښې دَدې سوال جواب دې چې نفس آخرة خودَهريودَپاره ثابت دې بيا يريدلكم الآخرة څه تخصيص دې.

**جواب:** آخرت خودَټولودَپاره دې مګر اجر صرف دَ مؤمنانودَپاره دې.

[اياتونه: ۷۰-۷۵]

{يأيها النبي قل لمن في أيديكم من الأسارى} وفي قراءة الأسرى {إِنْ يَعْلَمِ اللهُ فِي قُلُوبِكُمْ خَيْرًا} إيمانًا وإخلاصًا {يُؤْتِكُمْ خَيْرًا مِمَّا أُخِذَ مِنْكُمْ} مِنَ الفِدَاء بِأَنْ يُضَعِّفَهُ لَكُمْ فِي الدُّنْيَا وَيُثِيبَكُمْ فِي الآخرة {ويغفر لكم} ذنوبكم {والله غفور رحيم} {وَإِنْ يُرِيدُوا} أَيْ الأَسْرَى {خِيَانَتَكَ} بِمَا أَظْهَرُوا مِنَ القَوْلِ {فَقَدْ خَانُوا اللهَ مِنْ قَبْلُ} قَبْل بَدْر بِالكُفْرِ {فَأَمْكَنَ مِنْهُمْ} بِبَدْرٍ قَتْلًا وَأَسْرًا فَلْيَتَوَقَّعُوا مِثْلَ ذَلِكَ إِنْ عَادُوا

{وَاللهُ عَلِيمٌ} بِخَلْقِهِ {حَكِيمٌ} فِي صُنْعِه {إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ} وَهُمُ الْمُهَاجِرُونَ {وَالَّذِينَ آوَوْا} النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وَنَصَرُوا} وَهُمُ الْأَنْصَارُ {أُولَٰئِكَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ} فِي النُّصْرَةِ وَالْإِرْثِ {وَالَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا مَا لَكُمْ مِنْ وَلَايَتِهِمْ} بِكَسْرِ الْوَاوِ وَفَتْحِهَا {مِنْ شَيْءٍ} فَلَا إِرْثَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ وَلَا نَصِيبَ لَهُمْ فِي الْغَنِيمَةِ {حَتَّى يُهَاجِرُوا} وَهَذَا مَنْسُوخٌ بِآخِرِ السُّورَةِ {وَإِنِ اسْتَنْصَرُوكُمْ فِي الدِّينِ فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ} لَهُمْ عَلَى الْكُفَّارِ {إِلَّا عَلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِيثَاقٌ} عهد فلا تنصروهم عليهم وتنقضوا عهدهم {والله بما تعملون بصير} {وَالَّذِينَ كَفَرُوا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ} فِي النُّصْرَةِ وَالْإِرْثِ فَلَا إِرْثَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ {إِلَّا تَفْعَلُوهُ} أَيْ تَوَلِّي الْمُسْلِمِينَ وَقَطْعَ الْكُفَّارِ {تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيرٌ} بِقُوَّةِ الْكُفْرِ وَضَعْفِ الإِسْلَامِ {وَالَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ آوَوْا وَنَصَرُوا أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ} فِي الْجَنَّةِ {وَالَّذِينَ آمَنُوا مِنْ بَعْدُ} أَيْ بَعْدَ السَّابِقِينَ إِلَى الْإِيمَانِ وَالْهِجْرَةِ {وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا مَعَكُمْ فَأُولَٰئِكَ مِنْكُمْ} أَيُّهَا الْمُهَاجِرُونَ وَالْأَنْصَارُ {وَأُولُو الْأَرْحَامِ} ذَوُو الْقَرَابَاتِ {بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ} فِي الْإِرْثِ مِنَ التَّوَارُثِ فِي الْإِيمَانِ وَالْهِجْرَةِ الْمَذْكُورَةِ فِي الْآيَةِ السَّابِقَةِ {فِي كِتَابِ اللَّهِ} اللَّوْحِ الْمَحْفُوظِ {إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ} وَمِنْهُ حِكْمَةُ الْمِيرَاثِ

---

**ترجمه:** اې نبی هغه خلقو ته اووایه کوم چې ستاسو په قبضه کښې قیدي دي او په یو قراءت کښې أسرى دي که الله تعالى ستاسو په زړونو کښې څه خیراووینی (یعنی ایمان اوخلاص نو کوم څه چې تاسو نه دَ فدیه په توګه اخستې شوي دي دَهغې نه به زیات درکړي په داسې توګه چې په دنیاکښې به دَهغې دوچنده درکړي اوپه آخرت کښې به تاسو ته ثواب درکوي، اوستاسو ګناهونه به معاف کړي، الله تعالى ډیر غفور اورحیم دې اوکه چرې داقیدیان خپل وئیلې شوې خبره (دَ اسلام په اظهار) کښې خیانت کوي نودې خلقو دَ بدر نه وړاندې دَالله تعالى سره دَ کفر کولو سره خیانت کړې دې آخر هغه تاسو ته په دوی باندې په بدرکښې دَقتل اوقید په ذریعه قدرت درکړو. که چرې هغوی بیا داسې حرکت اوکړو نوهغوی له هم دغه شان توقع ساتل پکاردي، الله تعالى دَ خپل مخلوق باره کښې باخبر او دَ خپل صنعت باره کښې باحکمت دې کومو خلقو چې ایمان راوړې دې او هجرت ئې کړې دې او په خپل ځان اومال سره ئې دَالله تعالى په لارکښې جهاد کړې دې اوهغه مهاجرین دی اوکومو خلقو چې نبی ﷺ ته ځائې ورکړو او امدادئې اوکړو اوهغه انصاردی هم دغه په اصل کښې دَ یوبل سره دَ نصرت او دَ وراثت ولیان دی. او هغه خلق چې ایمان خوئې راوړې دې لیکن هجرت ئې نه دې کړې ستاسو هغوی سره هیڅ ولایت نشته (وَلَايَة) دَ واؤ په کسرې او فتحې سره دې. لهذا دَهغوی او ستاسو په مینځ کښې خونه ارث شته اونه دَهغوی دَ غنیمت په مال کښې څه حصه شته، تردې چې هغوی هجرت اوکړی اودا حکم په آخر دسورت سره منسوخ دې البته که هغوی تاسونه دَ دین په باره کښې امداد اوغواړي نو په تاسو لازم دی چې دَ کافرانو په مقابله کښې دَهغوی امداد

او کړئی سواد هغه خلقو په مقابله کښې چې دهغوئ او ستاسو په مینځ کښې عهد او میثاق دې نو دهغوی په مقابله کښې (د مسلمانانو) امداد مه کوئی اودهغوی سره کړې شوې عهد مه ماتوئی، څه چې تاسو کوئی الله تعالی هغه ښه ګوری او کافران په خپل مینځ کښې د یوبل په نصرت او ارث کښې ولیان دی لهذا ستاسو اودهغوی په مینځ کښې هیڅ ارث نشته دې که چرې تاسو داسې نه کوئی یعنی تاسو دمؤمنانو سره حمایت او کافرانو سره قطع تعلق نه کوئی نو په ملک کښې به د کفر په قوت او د اسلام په ضعف سره زبردست فساد خور شی، او کومو خلقو چې ایمان راوړې دې او هجرت ئی کړې دې او دالله تعالی په لار کښې ئی جهاد کړې او چاچې پناه ورکړه او امداد ئی ورا ورسولو هم دغه خلق ربښتونی مؤمنان دی دهغوی د پاره مغفرت دې او په جنت کښې دعزت رزق دې او کومو خلقو چې دایمان او هجرت طرف ته سبقت کونکونه پس ایمان راوړو او هجرت ئی اوکړو او تاسوسره یوځائی یې جهاد اوکړو نو اې مهاجرو اواې انصارو هغوی هم تاسو نه دی او په خپلولئ ارث او توارث کښې دایمان او سابقه آیت کښې دهجرت مذکوره دوجې بعض بعضو ته اولی دی دالله تعالی کتاب په لوح محفوظ کښې یقیناً الله تعالی د هر څیز پیژندونکې دې او هم ددې نه د میراث حکمت دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** بآخر السُّوْرَةِ أی وأولوا الارحام بعضهم أولی ببعض.

**قوله:** مِنْ بَعْدُ أی بعد الحديبية وقبل الفتح.

## [۹] سورة التوبة

### سورة التوبة مدنية او إلا الآيتين اخرها مائة وثلثون او الاية

سوره توبه مدنی دې مګر دوه آیاتونه یا یو آیت کوم چه د سورة توبه آخری آیت دې، ټول یوسل دیرش آیتونه دی.

### [آیاتونه: ۱ - ٦]

وَلَمْ تُكْتَب فِيهَا الْبَسْمَلَة لِأَنَّهُ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَأْمُر بِذَلِكَ كَمَا يُؤْخَذ مِنْ حَدِيث رَوَاهُ الْحَاكِم وَأَخْرَجَ فِي مَعْنَاهُ عَنْ عَلِيّ أَنَّ الْبَسْمَلَة أَمَان وَهِيَ نَزَلَتْ لِرَفْعِ الْأَمْن بِالسَّيْفِ وَعَنْ حُذَيْفَة إِنَّكُمْ تُسَمُّونَهَا سُورَة التَّوْبَة وَهِيَ سُورَة الْعَذَاب وَرَوَى الْبُخَارِيّ عَنْ الْبَرَاء أَنَّهَا آخِر سُورَة نَزَلَتْ هَذِهِ {بَرَاءَةٌ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ} وَاصِلَة {إِلَى الَّذِينَ عَاهَدْتُمْ مِنَ الْمُشْرِكِينَ} عَهْدًا مُطْلَقًا أَوْ دُون أَرْبَعَة أَشْهُر أَوْ فَوْقهَا وَنَقْض الْعَهْد بِمَا يُذْكَر فِي قَوْله {فَسِيحُوا} سِيرُوا آمِنِينَ أَيّهَا الْمُشْرِكُونَ {فِي الْأَرْضِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ} أَوَّلهَا شَوَّال بِدَلِيلِ مَا سَيَأْتِي وَلَا أَمَان لَكُمْ بَعْدهَا {وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ} أَيْ فَائِتِي عَذَابه {وَأَنَّ اللَّهَ مُخْزِي الْكَافِرِينَ} مُذِلّهمْ فِي الدُّنْيَا بِالْقَتْلِ وَالْأُخْرَى بِالنَّارِ {وَأَذَانٌ} إِعْلَام {مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ} يَوْم النَّحْر {أَنَّ} أَيْ بِأَنَّ {اللَّهَ بَرِيءٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ} وَعُهُودهمْ {وَرَسُولُهُ} بَرِيء أَيْضًا وَقَدْ بَعَثَ

النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا مِنَ السَّنَةِ وَهِيَ سَنَةَ تسع فاذن يوم النحر بمنى بِهٰذِهِ الآيَاتِ وَأَنْ لَا يَحُجّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِك وَلَا يَطُوف بِالْبَيْتِ عُرْيَان رَوَاهُ الْبُخَارِيّ {فَإِنْ تُبْتُمْ} مِنَ الْكُفْر {فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ} عَنِ الْإِيمَان {فَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللّٰهِ وَبَشِّرِ} أَخْبِرْ {الَّذِينَ كَفَرُوا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ} مُؤْلِم وَهُوَ الْقَتْل وَالْأَسْر فِي الدُّنْيَا وَالنَّار فِي الآخِرَة {إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدْتُمْ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ثُمَّ لَمْ يَنْقُصُوكُمْ شَيْئًا} مِنْ شُرُوط الْعَهْد {وَلَمْ يُظَاهِرُوا} يُعَاوِنُوا {عَلَيْكُمْ أَحَدًا} مِنَ الْكُفَّار {فَأَتِمُّوا إِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ إِلَى} انْقِضَاء {مُدَّتِهِمْ} الَّتِي عَاهَدْتُمْ عَلَيْهَا {إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ} بِإِتْمَامِ الْعُهُود {فَإِذَا انْسَلَخَ} خَرَجَ {الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ} وَهِيَ آخِر مُدَّة التَّأْجِيل {فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوهُمْ} فِي حِلّ أَوْ حَرَم {وَخُذُوهُمْ} بِالْأَسْرِ {وَاحْصُرُوهُمْ} فِي الْقِلَاع وَالْحُصُون حَتَّى يَضْطَرُّوا إِلَى الْقَتْل أَوِ الْإِسْلَام {وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ} طَرِيق يَسْلُكُونَهُ ونصب كل على نزع الخافض {فَإِنْ تَابُوا} مِنَ الْكُفْر {وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ} وَلَا تَتَعَرَّضُوا لَهُمْ {إِنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ} لِمَنْ تَابَ {وَإِنْ أَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ} مَرْفُوع بِفِعْلٍ يُفَسِّرُهُ {اسْتَجَارَكَ} اسْتَأْمَنَك مِنَ الْقَتْل {فَأَجِرْهُ} أَمِّنْهُ {حَتَّى يَسْمَعَ كَلَامَ اللّٰهِ} الْقُرآن {ثُمَّ أَبْلِغْهُ مَأْمَنَهُ} وَهُوَ دَار قَوْمه إِنْ لَمْ يُؤْمِن لِيَنْظُر فِي أَمْره {ذٰلِكَ} الْمَذْكُور {بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْلَمُونَ} دِين الله فَلَا بُدّ لَهُمْ مِنْ سَمَاع الْقُرآن لِيَعْلَمُوا.

**ترجمه:** ددې سورت په شروع کښې بسم الله ليکلې شوې نه ده، ځکه چې حضور پاک ﷺ ددې حکم نه دې فرمائيلې، لکه چې د حديث نه معلوميږی کوم چې حاکم روايت کړې دې، او هم دې هم معنی د حضرت علی رضي الله عنه روايت دې، چې بسم الله امان دې او دا سورت د توری (جهاد) په ذريعه د امن د اوچتولو د پاره نازل شوې دې، او د حذيفه رضي الله عنه نه روايت دې چې تاسو دې سورت ته سورة توبه وايئ حالانکه دا سورة عذاب دې، او امام بخاری د براء ابن عازب نه روايت کړې دې چې دا آخری سورت دې چې نازل شو، دا د الله او د رسول د طرف نه د بيزارئ اعلان دې چې ددې مشرکانو په باره کښې دې، چې هغوی سره تاسو مطلق (بغير نيتې) يا د څلور مياشتنو نه کم او زيات عهد کړې وی، او مشرکانو د عهد مات کړی وی. د بېزارئی د اظهار د الله تعالی په قول (فسيحو الخ) کښې ذکر دې، يعنی اې مشرکانو! تاسو څلور مياشتو پورې امن سره، او ګرځئ، چې د هغې شروعات به د شوال نه کيږی، د راروان دليل په وجه، او ددې نيتې نه پس به ستاسو د پاره امن نه وی، ياد ساتئ تاسو الله تعالی لره عاجز کولو والا نه يئ، يعنی د هغه د عذاب نه بچ کيدلې نشئ، او دا چې الله تعالی منکرينو د (حق) لره رسوا کوونکې دې، يعنی دوی لره په دنيا کښې د قتل په ذريعه او په آخرت کښې د اور په ذريعه ذليل کونکې دې، او عام اعلان دې د الله او د هغه د رسول د طرف نه د ټولو خلقو د پاره د حج اکبر يعنی د قربانی په ورځ دا چې الله تعالی د مشرکانو نه او د هغوی د معاهدو نه بری دې او د هغه رسول هم بری دې، او حضور پاک ﷺ

هم په دغه کال باندې حضرت علی رضی الله عنه مکې ته اولیږلو، او دا د هجرت نهم کال وو، چنانچه حضرت علی رضی الله عنه د نحر په ورځ د منی میدان کښې ددې آیتونو اعلان اوفرمائیلو، او دا چې ددې کال نه پس به یو مشرک هم حج نه کوی، او نه به څوک د بیت الله نه بربنډ طواف کوی (رواه البخاری) پس که چرې تاسو د کفر نه توبه اوباسئ نو دا به ستاسو د پاره ښه وی او که تاسو د ایمان نه مخ اړوئ نو یاد ساتئ چې تاسو الله تعالی لره عاجز کوونکې نه یئ، او کافرانو ته د دردمند عذاب خبر ورکړه، او هغه قتل او قید دې په دنیا کښې او اور دې په آخرت کښې سوا د هغې کافرانو نه چې کومو سره تاسو وعدې کړې دی، او بیا هغوی ستاسو د وعدې یو شرط مات کړې نه وی او نه ئې ستاسو خلاف د یو کافر مدد کړې وی، نو داسې خلقو سره تاسو هم د هغوی د کړې شوې وعدې د مدت پورې وفا اوکړئ ځکه چې الله تعالی وفا والا پرهیزګار خلق خوښوی پس هر کله چې (اشهرحرم) حرام میاشتې ختمې شی، او هغه د معاهدې آخری مدت دې، نو مشرکان قتل کړئ کوم ځائې کښې چې مومئ په حل کښې یا په حرم کښې، او دوی قید کړئ او دوی په قلعو کښې بند کړئ تردې چې قتال یا اسلام ته مجبور شی، او ددوی خبر اخستلو د پاره په هر مورچه کښې نخښه لګونکښې کینئ یعنی ددوی په لاره کښې کینئ او د "کل" نصب د جار د حذف په وجه دې، بیا که دوی د کفر نه توبه اوباسی او مونځ قائم کړی او زکواة ورکړی نو د هغوی لار پرېږدئ او دوی سره مقابله مه کوی بېشکه الله تعالی توبه ویستونکې معاف کولو والا او رحم کولو والا دې او که په مشرکانو کښې تاسو نه څوک پناه او غواړی، یعنی د قتل نه تاسو نه پناه اوغواړی نو هغه ته د قتل نه امن ورکړئ احد ددې فعل محذوف د وجه نه مرفوع دې چې د هغې تفسیر استجارک کوی چې هغوی د الله کلام قرآن واوری بیا هغه د هغې مامن یعنی پناه ګاه پورې اورسوی یعنی که چرې دوی ایمان راونړو نو هغوی د هغوی د امن ځائې ته اورسوئی او دا د هغوی د قوم علاقه ده چې دوی په خپله معامله کښې غور اوکړی، او دا ذکر شوې خبره ځکه ضروری ده چې دا خلق پوره توګه باندې خبر نه دی،

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** عن حذیفة: ددې اضافې مقصد د حضرت علی رضی الله عنه د قول تائید دې:

**قوله:** هذه: ددې اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره ده چې "براءة هذه" د مبتدأ محذوف خبر دې په دې سره رد اوشو د هغه حضراتو چې هغوی وئیلې دی چې براءة مبتدأ ده او الی الذین عاهدتم الخ پورې د براءة خبر دې، ځکه چې براءة نکره ده او د هغې مبتدأ واقع کیدل صحیح نه دی.

**قوله:** واصلة: مفسر علام واصلة محذوف ګڼړلو سره اشاره اوکړه چې من الله کښې "من" ابتدائیه دې چې واصلة محذوف سره متعلق دې، تقدیری عبارت دادې هذه براءة واصلة الی

الذین عاهدتم من الله ورسوله

**قوله:** فسیحوا الخ دلته "قولوا" محذوف دې تقدیری عبارت دادې فقولوا لهم سیحوا. سیحوا کښې امر د اجازت د پاره دې یعنی صرف د څلورو میاشتو د امن سره دلته د اوسیدلو اجازت دې.

**قوله:** بدلیل ما سیأتی: دلته امر د اباحت او اجازت د پاره دې ددې دلیل دا راروان آیت فاذا انسلخ الاشهر الحرم فاقتلوا المشرکین دې، ځکه چې د الله تعالی قول فسیحوا اربعة اشهر" په شوال کښې نازل شوې وو، او د اشهر حرم اخری میاشت محرم دې، د شوال د شروع نه د محرم آخرې پورې څلور میاشتې جوړیږي.

**قوله:** یوم النحر

**سوال:** د "یوم الحج الاکبر" تفسیر په "یوم النحر" سره ولې اوشو؟

**جواب:** عمرې ته چونکې حج اصغر وئیلې شی نو حج ئې دعمرې نه د جدا کولو د پاره دحج اکبر تفسیر ئې په یوم النحر سره اوکړو، ځکه چې یوم النحر هم په حج کښې وی، نه چې په عمره کښې، دحضرت علی ﷺ د روایت نه هم کوم چې ترمذی روایت کړې دې، دا معلومیږی چې د حج اکبر نه مراد هم حج دې،

**قوله:** بریء أیضا په دې کښې اشاره ده چې "رسوله" مبتدأ ده او "بریء" ئې خبر محذوف دې، د ایضا لفظ سره دا فائده اوشوه چې درسوله عطف د بریء په ضمیر مستتر باندې دې نه چې د انّ د اسم په محل باندې، او بعضې حضراتو وئیلې دی چې د انّ د اسم په محل باندې عطف دې او هغه د باء محذوف د وجه مجرور دې، حالانکه هغه مرفوع دې.

**قوله:** إلا الذین عهدتم من المشرکین په دې کښې دوه وجه دی، اول دا چې "إلا للذین" مستثنی منقطع اوګرځولې شی او إلا په معنی د "لکن" وی په دې صورت کښې "فألذین" مبتدأ او "فأتمو إلیهم" الخ جمله به د مبتدأ خبر شی، دویم دا صورت دې چې "الا الذین الخ" مستثنی متصل اوګرځولې شی نو په دې صورت کښې به د براءة من الله ورسوله إلی الذین عهدتم من المشرکین، کښې به د المشرکین نه مستثنی وی، خو په دې صورت کښې به فصل په اجنبی سره راشی کوم چې منع دې، که په المشرکین کښې الف لام د عهد واخستلې شی، نو د خاص مشرکینو نه به مراد هغه مشرکین وی چا چې وعده ماته کړې نه ده.

**قوله:** وهی مدة التأجیل: ددې عبارت په اضافه کښې دې خبرې ته اشاره ده چې د اشهر حرم نه معروف اشهر حرم مراد نه دی چې رجب، ذوالقعده، ذوالحجه او محرم دی، بلکه اربعة اشهر نه هغه څلور میاشتې مراد دی چې په هغې کښې مشرکینو ته د قیام کولو اجازت ورکړې شوې وو، مطلب دادې چې دمذکوره آیت د نازلیدو په وخت چې کوم څلور

میاشتو پورې په مکه کښې د قیام اجازت ورکړې شوې وو داسې چې د شوال نه واخله د محرم د آخره پورې مشرکینو ته په مکه کښې د قیام اجازت دې،ددې نه پس که څوک اومندلې شول نو هغه به گرفتارولې شي او قتل کولې به شي،د اشهر حرم نه هم دغه څلور میاشتې مراد دي.

**قوله:مرفوع بفعل يفسره استجارك:** دا د سوال مقدر جواب دې

**سوال:**إن أحد من المشركين کښې ان په اسم باندې داخل دې،حالانکه إن په اسم باندې نه داخليږي؟

**جواب:**دلته د "إن" نه پس استجارك فعل محذوف دې،او د هغې تفسير وروسته استجارك کوی لهذا اوس څه اعتراض نشته.

**[ایاتونه:۷-۱٦]**

{كَيْفَ} أيْ لا {يَكُونُ لِلْمُشْرِكِينَ عَهْدٌ عِنْدَ اللَّهِ وَعِنْدَ رَسُولِهِ} وَهُمْ كَافِرُونَ بِهِما غادِرِينَ {إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدْتُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ} يَوْم الْحُدَيْبِيَة وَهُمْ قُرَيْش الْمُسْتَثْنَوْنَ مِنْ قَبْل {فَمَا اسْتَقَامُوا لَكُمْ} أقَامُوا عَلَى الْعَهْد وَلَمْ يَنقضوه {فَاسْتَقِيمُوا لَهُمْ} على الوفاء به وما شرطية {إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ} وَقَدْ اسْتَقَامَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عَهْدهمْ حَتَّى نَقَضُوا بِإِعَانَةِ بَنِي بَكْر على خزاعة {كَيْفَ} يَكُون لَهُمْ عَهْد {وَإِنْ يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ} يظفروا بكم {لَا يَرْقُبُوا} يُرَاعُوا {فِيكُمْ إِلًّا} قَرَابَة {وَلَا ذِمَّةً} عهدا بل يؤذوكم ما استطاعوا وجملة الشرط حال {يُرْضُونَكُمْ بِأَفْوَاهِهِمْ} بِكَلَامِهِمْ الْحَسَن {وَتَأْبَى قُلُوبُهُمْ} الْوَفَاء بِهِ {وَأَكْثَرُهُمْ فَاسِقُونَ} نَاقِضُونَ لِلْعَهْدِ {اشْتَرَوْا بِآيَاتِ اللَّهِ} الْقُرْآن {ثَمَنًا قَلِيلًا} مِنْ الدُّنْيَا أَيْ تَرَكُوا اتِّبَاعهَا لِلشَّهَوَاتِ وَالْهَوَى {فَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِهِ} دِينه {إِنَّهُمْ سَاءَ} بِئْسَ {مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} هـ عملهم هذا {لَا يَرْقُبُونَ فِي مُؤْمِنٍ إِلًّا وَلَا ذِمَّةً وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُعْتَدُونَ} {فَإِنْ تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَإِخْوَانُكُمْ} أَيْ فَهُمْ إخْوَانكُمْ {فِي الدِّينِ وَنُفَصِّلُ} نُبَيِّن {الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ} يَتَدَبَّرُونَ {وَإِنْ نَكَثُوا} نَقَضُوا {أَيْمَانَهُمْ} مَوَاثِيقهمْ {مِنْ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوا فِي دِينِكُمْ} عَابُوهُ {فَقَاتِلُوا أَئِمَّةَ الْكُفْرِ} رُؤَسَاءَهُ فِيهِ وَضْع الظَّاهِر مَوْضِع الْمُضْمَر {إِنَّهُمْ لَا أَيْمَانَ} عُهُود {لَهُمْ} وَفِي قِرَاءَة بِالْكَسْرِ {لَعَلَّهُمْ يَنْتَهُونَ} عَنْ الْكُفْر {أَلَا} لِلتَّحْضِيضِ {تُقَاتِلُونَ قَوْمًا نَكَثُوا} نَقَضُوا {أَيْمَانَهُمْ} عُهُودهمْ {وَهَمُّوا بِإِخْرَاجِ الرَّسُولِ} مِنْ مَكَّة لَمَّا تشاوروا فيه بدار الندوة {وَهُمْ بَدَءُوكُمْ} بِالْقِتَالِ {أَوَّلَ مَرَّةٍ} حَيْثُ قَاتَلُوا خُزَاعَة حُلَفَاءَكُمْ مَعَ بَنِي بَكْر فَمَا يَمْنَعكُمْ أَنْ تُقَاتِلُوهُمْ {أَتَخْشَوْنَهُمْ} أَتَخَافُونَهُمْ {فَاللَّهُ أَحَقُّ أَنْ تَخْشَوْهُ} فِي ترك قتالهم {إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ} {قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ} يَقْتُلهُمْ {بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ} يُذِلّهُمْ بِالْأَسْرِ وَالْقَهْر {وَيَنْصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ} بِمَا فَعَلَ بِهِمْ هُمْ بَنُو خُزَاعَة {وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ} كَرْبهَا {وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَى مَنْ يَشَاءُ} بِالرُّجُوعِ إلَى الْإِسْلَام كَأَبِي سُفْيَان {وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ} {أَمْ} بِمَعْنَى هَمْزَة الْإِنْكَار {حَسِبْتُمْ أَنْ

تُتْرَكُوا وَلَمَّا} لَمْ {يَعْلَمِ اللّٰهُ} عِلْم ظُهُور {الَّذِيْنَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ} بِإِخْلَاصٍ {وَلَمْ يَتَّخِذُوا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلَا رَسُوْلِهٖ وَلَا الْمُؤْمِنِيْنَ وَلِيْجَةً} بِطَانَة وَأَوْلِيَاء الْمَعْنٰى وَلَمْ يَظْهَر الْمُخْلِصُوْنَ وَهُمْ الْمَوْصُوْفُوْنَ بِمَا ذُكِرَ مِن غَيْرِهِم {والله خبير بما تعملون}

**ترجمه:** د مشركانو د پاره د الله او د هغه رسول سره هيڅ عهد نشته، يعنى نشى كيدې، مراد ترې نه هغه مشركين دى كومو چې الله او د هغه رسول سره د وعدې ماتولو سره غدارى اوكړه البته چې كوم خلقو سره تا د مسجد حرام حرم سره نزدې د حديبيه په مقام باندې معاهده اوكړه، او هغه قريش دى چې د هغوى مخكښې استثناء شوې ده، نو ترڅو چې هغوى تاسره په عهد كښې قائم وى او معاهده نه ماتوى. نو ته هم هغوى سره د عهد په پورا كولو باندې قائم اوسه، او ما شرطيه ده ځكه چې الله تعالى نيكانو خلقو سره مينه كوى، او رسول هغوى سره په معاهده باندې قائم وو، تر دې چې قريشو د خزاعه خلاف د بنى بكر مدد كولو سره وعده ماته كړه، او دې مشركانو سره وعده څنګه برقرار پاتې كيدې شى چې د دوى حال داسې دې كه چرې دوى په تاسو باندې غلبه حاصله كړې يعنى فتح اومومى نو نه به ستاسو د رشته دارئى خيال ساتى او نه د عهد بلكه چې څومره ئې وس وى تاسو ته به تكليف در رسوى او جمله شرطيه حال دې، هغوى په خپلو خبره سره يعنى دژبې په خوږو خبرو سره ستاسو د خوشحالولو كوشش كوى حالانكه د دوى زړونه د عهد د پورا كولو نه انكار كوى او په دوى كښې اكثر د وعدې ماتولو سره د حد نه اوړيدنكى دى، دې خلقو د الله د آيتونو په بدله كښې د دنيا سپک قيمت اخستې دې، يعنى د آيتونو اتباع ئې د خواهشاتو او شهوتونو په بدله كښې پريښودلې ده، بيا د الله په لار كښې يعنى د دين په لار كښې دلارې ركاوټ جوړشوې دى، ډير خراب كارونه دى چې دوى ئې كوى، يعنى دا اعمال، د يو مومن په معامله كښې نه د رشته دارئى خيال ساتى او نه د عهد ذمه دارئى، هم دا دوى زياتې كوونكى او كه چرې دې خلقو توبه اويستله او مونځ ئې قائم كړو او زكواة ئې وركړو نو ستاسو دينى رونړه دى، او پوهه خلقو د پاره يعنى د غوروفكر كونكو د پاره مونږ احكام ښكاره بيانوو، او كه دوى د عهد نه پس خپلو قسمونو لره عهدونو لره مات كړى او ستاسو په دين كښې طعنه زنى عيب جوئى كوى نو تاسو د كفر دې مشرانو سره قتال اوكړئ، په دې كښې اسم ضمير په ځائې اسم ظاهر راوړې دې يعنى د قاتلوهم په ځائې قاتلوا ائمة الكفر اووئيلې شو ځكه د دوى د قسمونو معاهدو هيڅ اعتبار نشته او په يو روايت كښې ايمان د كسرې سره دې يعنى د دوى د ايمان هيڅ اعتبار نشته ممكنه ده چې دوى داسې د كفر نه منع شى، آيا تاسو به داسې خلقو سره جنګ نه كوئى چې هغوى خپلې وعدې ماتې كړې او رسول لره ئې د مكې نه د اويستلو قصد اوكړو، كله چې هغوى په دارالندوه كښې دې باره كښې مشوره هم اوكړه او هم دوى په اول ځل په تاسو باندې د قتال ابتداء اوكړه، په داسې طريقې سره چې خزاعه سره چې ستاسو حليف وو، بنى بكر

سره میلاؤیدو سره قتال اوکړو، نو تاسو د پاره کوم څیز منع کونکې دې چې تاسو دوی سره قتال او نه کړئ، آیا تاسو ددوی نه ویرېږئ یعنی په ویره کښې ترې راځئ که چرې تاسو مومنان یئ نو الله ددې زیات مستحق دې تاسو چه دوی سره د جنګ نه کولو په باره کښې د هغه نه ویرېږئ تاسو دوی سره جنګ او کړئ الله به ستاسو په لاس په قتلولوسره دوی ته سزا ورکړی او د قید او غلبې د وجې به دوی رسوا کړی او ددوی په مقابله کښې به ستاسو مدد اوکړی او څه چې دوی سره کیږی نو دهغې په ذریعه به د ډیرو مومنانو زړونه یخ کړی او هغه بنوخزاعه دی او ددوی د زړونو بې چینی به لرې کړی او الله چې چاته غواړی اسلام ته مائله کیدو سره د توبې توفیق به ورکړی لکه چې ابوسفیان ته او الله تول هر څه پیژندلو والا او حکمت والا دې، آیا تاسو خلقو دا خیال کړې دې چې تاسو به داسې پرېښودلې شئ؟ ام همزه استفهام د انکار په معنی کښې دې حالانکه اوس الله تعالی خوا دا ظاهره کړې هم نه ده چې په تاسو کښې هغه کوم خلق دی چا چې په اخلاص سره جهاد اوکړو او چا الله او د هغه رسول ﷺ او مومنانو نه علاوه بل څوک د زړه راز دار دوست جوړ نه کړو، مطلب دادې چې مخلصان ئې لا د غیر مخلصو نه جدا کړې نه دی، او مخلصان هغه دی چې په ذکر شوې صفاتو باندې پوره وی، او الله ستاسو په کارونو باندې ډیر ښه خبردار دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** ای لا په دې کښې اشاره ده چې کیف استفهام تعجبی په معنی د نفی دې، او دغه وجه ده چې ددې نه پس په الا سره استثناء صحیح ده کیف یکون خبر مقدم دې، اوعهد اسم مؤخر دې کیفئ د صدارت د کلام غوښتلو د وجې مقدم کړه، د للمشرکین ثابتا یا باقیا متعلق شو د عهد حال مقدم دې.

او که للمشرکین عهد نه موخر وو نو ددې صفت به وو، او دا هم کیدې شی چې یکون تامه شی او کیف د حال کیدو د وجه په محل د نصب کښې وی.

**قوله:** ما شرطیة ما شرطیه ده نه چې موصوله او فاستقاموا لهم جزاء ده.

**قوله:** کیف کیف نه پس یکون محذوف دې چې کوم مفسر علام ذکر کړې دې، د ماقبل د قرینې د وجې فعل حذف کړې شوې دې.

**سوال:** کیفئ ولې مکرر راوړو؟

**جواب:** دمشرکینو په عهد باندې د پاتې کیدو لرې والې ظاهرولو د پاره او عدم ثبات د علت بیان کولو دپاره، او علت وان یظهروا دې

**قوله:** الا د ال ډیرې معنې دی رشته داری، وعده، ګاوند، دشمنی، کینه او حسد.

**قوله:** وجملة الشرط حال یعنی وان یظهروا علیکم شرط دې او "لا یرقبوا" الخ جزاء جمله شرطیه د کیف

يكون لهم نه حال دې، لهذا دا اعتراض ختم شو چې دجمله شرطيه عطف په جمله حاليه باندې صحيح نه دې.

**قوله**: اي فهم اخوانكم دا د سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دا دې چې د "فهم" مقدر منلو ته څه ضرورت راغلې دې؟

**جواب**: دا دې چې "اخوانكم" چونكه د "فان تابو" جزاء ده او د جزاء دپاره جمله كيدل شرط دى، مفسر علام "هم" محذوف منلو سره جمله تامه جوړه كړه.

**قوله**: خزاعة حلفاءكم خزاعة موصوف دې او حلفاءكم ئې صفت دې،

**قوله**: هم بنو خزاعة، ددې مقصد د مومنينو مصداق ښكاره كول دى ددې نه دا معلومه شوه چې بنوخزاعة په غائبانه طور سره ايمان راوړې وو.

**قوله**: وليجة، دا د ولوج نه اخستې شوې دې په معنى د "داخليدو" او د "خوږ راز دار ملګرى" مفسر علام د "وليجة" ترجمه په "بطانة" سره كړې ده، بطانة "استر" ته وئيلې شى چې كوم پټه وى.

**[اياتونه: ۱۷ ـ ۲۴]**

{مَاكَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَنْ يَعْمُرُوا مَسَاجِدَ اللَّه} بِالْإِفْرَادِ وَالْجَمْع بِدُخُولِهِ وَالْقُعُود فِيهِ {شَاهِدِينَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ بِالْكُفْرِ أُولَئِكَ حَبِطَتْ} بَطَلَتْ {أَعْمَالُهُمْ} لِعَدَمِ شرطها {وفى النار هم خالدون} {إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّه مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ} احدا {إلا الله فعسى أولئك أن يكونوا من المهتدين} {أَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَاجِّ وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ} أيْ أَهْل ذَلِكَ {كَمَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَجَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللَّه لَا يَسْتَوُونَ عِنْدَ اللَّه} فِي الْفَضْل {وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ} الْكَافِرِينَ نَزَلَتْ رَدًّا عَلَى مَنْ قَالَ ذَلِكَ وَهُوَ الْعَبَّاس أَوْ غَيْره {الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّه بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ أَعْظَم دَرَجَة} رُتْبَة {عِنْدَ اللَّه} مِنْ غَيْرهمْ {وَأُولَئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ} الظَّافِرُونَ بِالْخَيْرِ {يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِنْهُ وَرِضْوَانٍ وَجَنَّاتٍ لَهُمْ فِيهَا نَعِيمٌ مُقِيمٌ} دَائِم {خَالِدِينَ} حال مقدرة {فيها أبدا إن الله عنده أجر عظيم} وَنَزَلَ فِيمَنْ تَرَكَ الْهِجْرَة لِأَجْلِ أَهْله وَتِجَارَته {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا آبَاءَكُمْ وَإِخْوَانَكُمْ أَوْلِيَاءَ إِنِ اسْتَحَبُّوا} اختاروا {الكفر على الإيمان ومن يتولهم منكم فأولئك هم الظالمون} {قُلْ إِنْ كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ} أقرباؤكم وَفِي قِرَاءَة عَشِيرَاتكُمْ {وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا} اكتسبتموها {وتجارة تخشون كسادها} عدم نفاقها {وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُمْ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ} فَقَعَدْتُمْ لِأَجْلِهِ عَنْ الْهِجْرَة وَالْجِهَاد {فَتَرَبَّصُوا} انْتَظِرُوا {حَتَّى يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ} تهديد لهم، {والله لا يهدي القوم الفاسقين}

**ترجمه**: مشركين د دې لائق نه دى چې مسجدونو ته د تلو راتلو په ذريعه سره مسجدونه آباد

کړی مساجد مفرد او جمع سره دې حال دادې چې هغوی په خپله په ځان باندې د کفر ګواهی ورکوی دا هغه خلق دی چې ددوی اعمال دصحیح کیدلو شرائط نه موندو د وجه ضائع شول،او هغوی به په دوزخ کښې همیشه د پاره پراته وی، د مسجدونو آبادول خو بس د هغه خلقو کار دې چې په الله باندې او په آخرت باندې ایمان ساتی،او زکواة ورکوی او سوا د الله نه د بل چانه ویرېږی نه،امید دې چې داسې خلق به په صحیح لار شی،آیا تاسو حاجیانو ته اوبه ورځکول او مسجد حرام اباد کوونکو عمل د هغه سړی عمل برابر ګنړلې دې چې په الله باندې او په اخرت باندې ایمان لری،او هغه د الله په لار کښې جهاد هم کړې دې،دا خلق د الله په نیز په فضل کښې برابر کیدې نشی،او الله ظالمانو کافرانو ته لار خودنه نه کوی دبرابرئ ویناکونکی قول د رد کولو د پاره دا راروان آیت نازل شو،او هغه ویناکونکی حضرت عباس ﷺ دې یا دده نه علاوه دې،چې کومو خلقو ایمان راوړو او هجرت ئې اوکړو او د الله په لار کښې ئې د جان او مال سره جهاد اوکړو دا خلق د الله په نیز د نورو نه مرتبه کښې لوئې دی او د هم دا خلق پورا کامیاب دی او هغوی ته د هغوی رب د خپل طرف نه د رحمت او رضامندئ او د داسې باغونو چې په هغې کښې به دوی د پاره همشیګیر نعمتونه وی خوشخبری ورکوی،دوی به په هغې کښې د همیشه دپاره اوسیږی بې شک الله تعالی سره لوئې اجر دې او دا راروان آیت د هغه سړی په باره کښې نازل شو چې هغه هجرت د خپل چم او د تجارت د وجه پرېښودلو اې ایمان والو تاسو خپل پلاران او ځامن دوستان مه جوړوئی که چرې دوی کفر له په ایمان باندې ترجیح ورکوی او په تاسو کښې چې څوک دوی دوست جوړوی نو داسې خلق ظالمان دی اې نبی اووایئ دوی ته چې ستاسو پلاران ستاسو ځامن ستاسو ښځې او ستاسو رشته دار او په یو روایت کښې عشیراتکم دې او ستاسو هغه مالونه کوم چې تاسو ګټلې دی او ستاسو هغه تجارت چې د هغې د ختمیدلو تاسو ویره کوی،او ستاسو هغه کور کوم چې ستاسو خوښ دې تاسو ته د الله،رسول او د هغه په لار کښې دجهاد نه زیات خوښ دی نو انتظار کوئ تر دې چې الله ستاسو په مخکښې خپله فیصله راوړی دا د هغوی د پاره زورنه ده او الله د فاسقانو رهنمائی نه کوی

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله:ما کان للمشرکین ان یعمروا مساجد الله " "کان" فعل ناقص للمشرکین ینبغی د محذوف متعلق کیدو سره خبرمقدم او ان یعمروا مسجد الله جمله کیدو سره د کان اسم مؤخر شاهدین دیعمروا دضمیر نه حال. او د شاهدین علی الکافرین دپاره متعلق اول دې،او بالکافرین متعلق ثانی یعنی ما کان ینبغی للمشرکین ان یعمروا مسجد الله شاهدین علی انفسهم بالکفر.

د جمهورو په نیز "یعمروا" د عمر یعمر نه دې یعنی اباد ئې کړی او ابن السمیفع "یعمروا" د باب افعال نه وئیلې دې،حضرت ابن عباس او سعید بن جبیر ﷺ وغیره "مسجد" د افراد سره وئیلې دې،او باقیو مساجد د جمع سره لوستلې دې(فتح القدیر شوکانی)

**قوله:** اى اهل ذلك ددې اضافي مقصد د يو سوال جواب دې

**سوال:** "عمارة" او "سقاية" دواړه مصدرونه دی چې يو معنوی څيز دې لهذا دې لره د جسم او څيز سره تشبيه ورکول صحيح نه دی لکه چې ذکر شوې مصدورونو ته د "من" سره تشبيه ورکړې شوې ده کوم چې د جسم څيز دې.

**جواب:** دا دې چې د "العمارة" او "السقاية" نه مخکښې مضاف محذوف دې او هغه "اهل" دې يعنی اهل العمارة واهل السقاية لهذا اوس څه اعتراض باقی پاتې نه شو.

**قوله:** نزلت ردا على من قال په دې کښې اشاره ده چې اجعلتم سقاية کښې همزه استفهام انکاری ده او هم ددې نه د راروان آيت شان نزول طرف ته اشاره هم اوشوه.

**قوله:** ذلك مشار اليه مهاجرين او مجاهدينو لره ددوی د غير سره برابر ګرځول دی.

**قوله:** من غيرهم ددې نه مراد هغه خلق دی چې ذکر شوې صفاتو باندې پوره نه دی چې په هغې کښې د سقايه او عماره خلق هم شامل وو، د لفظ "اعظم" نه شک پيدا کيږی چې د سقايه او عماره خلق اګرچې د ډيرې اوچتې درجې قابل نه دی خو د اوچتې درجې قابل دی، حالانکه د ايمان نه بغير هر قسم نيکی کوونکی د پاره په آخرت کښې هيڅ درجه به نه وی.

**قوله:** نفاقها نفاق بفتح النون رواج، يقال السكة النافقة رائجه سكه.

**[اياتونه: ۲۵ - ۲۹]**

{لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ فِي مَوَاطِنَ} لِلْحَرْبِ {كَثِيرَةٍ} كبدر وقريظة والنضير {وَ} واذكر {يَوْمَ حُنَيْنٍ} وَادٍ بَيْنَ مَكَّةَ وَالطَّائِفِ أَيْ يَوْمَ قِتَالِكُمْ فِيهِ هَوَازِنَ وَذٰلِكَ فِي شَوَّالٍ سَنَةَ ثَمَانٍ {إِذْ} بَدَلٌ مِنْ يَوْمٍ {أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ} فَقُلْتُمْ لَنْ نُغْلَبَ الْيَوْمَ مِنْ قِلَّةٍ وَكَانُوا اثْنَيْ عَشَرَ أَلْفًا وَالْكُفَّارُ أَرْبَعَةَ آلَافٍ {فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ شَيْئًا وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ} مَا مَصْدَرِيَّةٌ أَيْ مَعَ رُحْبِهَا أَيْ سِعَتِهَا فَلَمْ تَجِدُوا مَكَانًا تَطْمَئِنُّونَ إِلَيْهِ لِشِدَّةِ مَا لَحِقَكُمْ مِنَ الْخَوْفِ {ثُمَّ وَلَّيْتُمْ مُدْبِرِينَ} مُنْهَزِمِينَ وَثَبَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ وَلَيْسَ مَعَهُ غَيْرُ الْعَبَّاسِ وَأَبُو سُفْيَانَ آخِذٌ بِرِكَابِهِ {ثُمَّ أَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِينَتَهُ} طُمَأْنِينَتَهُ {عَلَى رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ} فَرَدُّوا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا نَادَاهُمُ الْعَبَّاسُ بِإِذْنِهِ وَقَاتَلُوا {وَأَنْزَلَ جُنُودًا لَمْ تَرَوْهَا} مَلَائِكَةً {وَعَذَّبَ الَّذِينَ كَفَرُوا} بالقتل والأسر {وذلك جزاء الكافرين} {ثُمَّ يَتُوبُ اللّٰهُ مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ عَلَى من يشاء} منهم بالإسلام {والله غفور رحيم} {يأيها الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ} قذر لِخُبْثِ بَاطِنِهِمْ {فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ} أَيْ لَا يَدْخُلُوا الْحَرَمَ {بَعْدَ عَامِهِمْ هٰذَا} عَامِ تِسْعٍ مِنَ الْهِجْرَةِ {وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً} فَقْرًا بِانْقِطَاعِ تِجَارَتِهِمْ عَنْكُمْ {فَسَوْفَ يُغْنِيكُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهِ إن شاء} وقد اغناهم بالفتوح والجزية {إن الله عليم حكيم} {قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ} وَإِلَّا لَآمَنُوا بِالنَّبِيِّ

صلى الله عليه وسلم {وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَرَسُولُه} كالخمر {وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ} الثابت الناسخ لغيره من الاديان وهو دين الاسلام {مِنَ} بيان للذين {الَّذِينَ اُوتُوا الْكِتَابَ} اي اليهود والنصارى {حَتّٰى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ} الخراج المضروب عليهم كل عام {عَنْ يَدٍ} حال اي منقادين او بايديهم لا يوكلون بها {وَهُمْ صَاغِرُونَ} اذلاء منقادون لحكم الاسلام

**ترجمه:** بې شکه الله تعالی د جنګ په ډیرو موقعو کښې ستاسو مدد کړې دې مثلا د بدر، بنوقریظه،او بنو نضیر په مقابله کښې او د حنین ورځ یاده کړی دا د مکې او طائف په مینځ کښې وادی ده یعنی په دغه ورځ هوازن سره جنګ یاد کړئ او دا شوال ۸ هجرئی کښې شوې وو هرکله چې تاسو ته په خپل زیاتوالی باندې فخر شوې وو نو تاسو وئیلې وو چې نن به مونږ ته د کموالی د وجه شکست نه کیږی او د مسلمانانو تعداد دولس زره وو او کافران څلور زره وو "اذ" د یوم نه بدل دې خو دې زیاتوالی تاسو ته څه فائده درنکړه او زمکه سره د پراخوالی په تاسو باندې تنګه شوه "ما" مصدریه ده یعنی باوجود د پورا طاقت تاسو ته یو داسې ځائې میلاؤ نه شو چې تاسو پکښې پناه اونیسئ د هغه سختې ویرې نه کومه چې په تاسو راغلې وه،بیا تاسو شکست خوړونکې په شا کولو سره اوتښتیدئ او حضورپاک ﷺ په خپل سپین خچر باندې په خپل ځائې ایسار وو حالانکه هغوی سره سوا د عباس او ابوسفیان نه کوم چې د حضورپاک ﷺ د خچر پیدان نیولې وو،څوک باقی پاتې نه وو دې نه پس الله تعالی په خپل رسول او مومنانو باندې سکینت تسلی نازله کړه کله چه حضرت عباس رضی الله تعالی عنه دهغوی ﷺ په فرمان سره تاسو ته آواز درکړو نو تاسو نبی کریم ﷺ طرف ته واپس راغلئ او (مشرکانو سره مو) قتال اوکړو او د فرښتو هغه لښکر ئې نازل کړو کومه چې تاسو ته په نظر نه راتله او الله کافرانو لره دقتل او قید سزا ورکړه او هم دا د کافرانو سزا ده بیا دې نه پس په دوی کښې الله چې څوک اوغواړی د اسلام توفیق ورکولو سره توبه ورنصیب کړی او الله ډیر بخښونکې او رحمت والا دې، اې ایمان والو مشرکین د باطن د پلیتوالی د وجه سرنه څپو پورې پلیت دی لهذا دې کال نه پس به مسجد حرام ته نزدې هم نه تیرېږی یعنی مسجد حرام ته به نه داخلیږی،او په ۹ هجرئی کښې دا حکم نازل شو او که چرې تاسو ته دوی سره د تجارت د ختمیدو د وجه د غریبئ ویره وی نو که الله اوغواړی نو الله به په خپل فضل سره تاسو لره ددوی نه بې نیازه کړی چنانچه الله مسلمانانو لره په فتح او جزیې سره بې نیازه کړل الله بنه پوهیدونکې لوئې حکمت والا دې،هغه خلقو سره قتال اوکړه چې په الله باندې او په ورځ د آخرت باندې ایمان نه راوړی که چرې دوی په الله باندې او په ورځ د آخرت باندې ایمان لرلو نو په نبی ﷺ باندې به ئې ایمان راوړې وو او نه هغه څیز حرام ګڼړی کوم چې الله او د هغه رسول حرام کړې دی مثلا شراب او نه رشتونې دین قبلوی چې

همیشګیر او د نورو دینونو دپاره ناسخ دې او هغه اسلام دې او هغه اهل کتاب یهود و نصاری دی،من بیانه دې د "الذین" بیان دې دې د پاره چې لګیدلي شوي کالیزه ټیکس جزیه په تابعداری سره په خپل لاس بغیر چاته د ورکړي نه ادا کړی،په داسې حال کښې چې هغوی ذلیل وی یعنی د اسلام د حکم تابع وی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** مواطن، د موطن جمع ده په معنی د موقع،مقامات، مفسر علام د "للحرب" اضافه کولو سره اشاره اوکړه چې د موطن نه مراد خائې د اوسیدونه دې بلکه د جنګ میدان دې.

**قوله:** اذکرمفسر علام "اذکر" فعل محذوف منلو سره اشاره اوکړه چې "یوم" د فعل محذوف مفعول دې نه چې مواطن باندې عطف دې،لکه چې وئیلې شوی دی ځکه چه "یوم حنین" ظرف زمان دې او "مواطن" ظرف مکان دې،او د زمان عطف په مکان باندې صحیح نه دې،دویمه وجه دا چې اذا اعجبتکم د یوم حنین نه بدل دې،او که د "یوم حنین" عطف په مواطن باندې اوکړې شی نو "اذ اعجبتکم" به هم د "مواطن" نه بدل منلې شی،او دا باطله ده، ځکه چه ددې مطلب به دا شی چې په ټولو موقعو باندې عجب (حیرانتیا) شوې وه.

**قوله:** هوازن په غشی وشتلو کښې مشهوره د یوې قبیلې نوم دې چې د حلیمه سعدیه قبیله وه.

**قوله:** حنین حنین د مکه او طائف په مینځ کښې د مکې نه په اتلس میله فاصله کښې یو وادی ده.

**قوله:** بما رحبت رحبة په ضمه د راء سره،په معنی د کشادګئی او فراخوالی، او رحبة بالفتح فراخ مکان او باء په معنی د "مع ما" مصدریه دې لهذا د عدم عائد اعتراض به نه کیږی

**قوله:** فلم تجدوا مکانا ددې عبارت د اضافې مقصد د یو سوال جواب دې.

**سوال:** دا دې چې ضاقت علیکم الارض بما رحبت نه معلومیږی چې زمکه سره د فراخوالی تنګه شوه،حالانکه زمکه په خپل حالت باندې باقی وه.

**جواب:** دادې چې د زمکې د تنګوالی نه مراد مجازا عدم وجود المکان المطمئن دې

**قوله:** لخبث باطنهم: دا د یو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** سوال دادې چې "نجس" مصدر دې او د مصدر حمل په ذات باندې صحیح نه دې.

**جواب:** حاصل دادې چې د نجس نه مراد "نجس والا" دې یا بطور مبالغه حمل دې،د نجاست په بیانولو کښې د مبالغې د پاره،ګویا چې مشرک سراسر پلیت دی.

**دویم سوال:** دا دې چې المشرکون جمع دې او "نجس" مفرد دې چې د هغې د وجې په مبتدا

خبر کښې مطابقت نشته.

**جواب:** د جواب حاصل دادې چې د نجس مصدر کیدو د وجه په واحد، تثنیه او جمع ټولو باندې وئیلې کیږي، یقال رجل نجس رجلان نجس رجال نجس بعضې ظاهریه او زیدیه مشرک نجس العین ګڼړي.

**قوله:** عیلة الفقر دا د عال یعیل(ض) مصدر دې په معنی د محتاج کیدولو

**قوله:** والاآمنوا بالنبی ﷺ دا د سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** دا دې چې قاتلوا الذین لایومنون بالله ولا بالیوم الآخر دې نه د اهل کتابو نه د ایمان بالله او ایمان بالآخرة نفی اوشوه، حالانکه دا دواړه فرقې په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان ساتی؟

**جواب:** خلاصه داده که چرې دې خلق په صحیح معنو کښې په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان ساتلو نو په حضرت محمد ﷺ باندې به ئې ضرور ایمان راوړې وو، چې کله په هغوی باندې ایمان نه راوړی نو ددوی په الله او په ورځ د آخرت باندې هم ایمان نشته.

**قوله:** دین الحق ای الدین الحق په دې کښې اضافت الموصوف الی الصفت دی.

**قوله:** عن ید حال یعطوا د ضمیر نه حال دې، د 'ید' تفسیر 'منقادین' نه تفسیر بالازلام دې، وئیلې شي: أعطی فلان بیده أي أسلم وانقاد

**قوله:** بأیدیکم په دې کښې اشاره ده چه په 'عن ید' کښې 'عن' په معنی د باء دې او دا د 'عن ید' دویم تفسیر دې.

**قوله:** یوکلون دا د توکیل نه د مضارع جمع مذکر غائب صیغه ده، په معنی د سپارلو او وکیل جوړولو.

**قوله:** وهم صاغرون په داسې حال کښې چې هغوی سره د خپل زیردستئ احساس وی، الصاغر الراضی بالمنزلة الدنیة (راغب) امام شافعی رحمه الله فرمائیلې دی صغار د اسلام د قانون بالادستی قبلول دی.

**[ایاتونه: ۳۰ - ۳۷]**

{وقالت الیهود عزیر بن الله وقالت النصاری المسیح} عیسی {بن الله ذٰلِكَ قَوۡلُهُم بِأَفۡوَٰهِهِمۡ} لا مُسْتَنِد لَهُمْ عَلَيْهِ بَلْ {يُضَٰهِـُٔونَ} يُشَابِهُونَ بِهِ {قَوۡلَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِن قَبۡلُ} مِنْ آبَائِهِمْ تَقْلِيدًا لَهُمْ {قَٰتَلَهُمُ} لَعَنَهُمْ {ٱللَّهُ أَنَّىٰ} كَيْفَ {يُؤۡفَكُونَ} يُصْرَفُونَ عَنِ الْحَقِّ مَعَ قِيَامِ الدَّلِيلِ {ٱتَّخَذُوٓاْ أَحۡبَارَهُمۡ} عُلَمَاءَ الْيَهُود {وَرُهۡبَٰنَهُمۡ} عُبَّادَ النَّصَارَى {أَرۡبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ} حَيْثُ اتَّبَعُوهُمْ فِي تَحْلِيلِ مَا حَرَّمَ اللهُ وَتَحْرِيمِ مَا أَحَلَّ الله {وَٱلۡمَسِيحَ ٱبۡنَ مَرۡيَمَ وَمَآ أُمِرُوٓاْ} فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ {إِلَّا لِيَعۡبُدُوٓاْ} أَيْ بِأَنْ يَعْبُدُوا {إِلَٰهًا وَٰحِدًا لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا

هو سبحانه} تنزيها له {عما يشركون} {يُرِيدُونَ أَنْ يُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ} شرعه وبراهينه {بِأَفْوَاهِهِمْ} بأقوالهم فيه {وَيَأْبَى اللَّهُ إِلَّا أَنْ يُتِمَّ} يظهر {نُورَهُ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ} ذلك {هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ} محمدا صلى الله عليه وسلم {بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ} يغلبه {عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ} جميع الأديان المخالفة له {وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ} ذلك {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ كَثِيرًا مِنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ} يأخذون {أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ} كالرشى في الحكم {وَيَصُدُّونَ} الناس {عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ} دينه {وَالَّذِينَ} مبتدأ {يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُونَهَا} أي الكنوز {فِي سَبِيلِ اللَّهِ} أي لا يؤدون منها حقه من الزكاة والخير {فَبَشِّرْهُمْ} أخبرهم {بِعَذَابٍ أَلِيمٍ} مؤلم {يَوْمَ يُحْمَى عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَى} تحرق {بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ} وتوسع جلودهم حتى توضع عليها كلها ويقال لهم {هَذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُونَ} أي جزاءه {إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ} المعتد بها للسنة {عِنْدَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِي كِتَابِ اللَّهِ} اللوح المحفوظ {يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ مِنْهَا} أي الشهور {أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ} محرمة ذو القعدة وذو الحجة والمحرم ورجب {ذَلِكَ} أي تحريمها {الدِّينُ الْقَيِّمُ} المستقيم {فَلَا تَظْلِمُوا فِيهِنَّ} أي الأشهر الحرم {أَنْفُسَكُمْ} بالمعاصي فإنها فيها أعظم وزرا وقيل في الأشهر كلها {وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً} جميعا في كل الشهور {كَمَا يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ} بالعون والنصر {إِنَّمَا النَّسِيءُ} أي التأخير لحرمة شهر إلى آخر كما كانت الجاهلية تفعله من تأخير حرمة المحرم إذا أهل وهم في القتال إلى صفر {زِيَادَةٌ فِي الْكُفْرِ} لكفرهم بحكم الله فيه {يُضَلُّ} بضم الياء وفتحها {بِهِ الَّذِينَ كَفَرُوا يُحِلُّونَهُ} أي النسيء {عَامًا وَيُحَرِّمُونَهُ عَامًا لِيُوَاطِئُوا} يوافقوا بتحليل شهر وتحريم آخر بدله {عِدَّةَ} عدد {مَا حَرَّمَ اللَّهُ} من الأشهر فلا يزيدوا على تحريم أربعة ولا ينقصوا ولا ينظروا إلى أعيانها {فَيُحِلُّوا مَا حَرَّمَ اللَّهُ زُيِّنَ لَهُمْ سُوءُ أَعْمَالِهِمْ} فظنوه حسنا {والله لا يهدي القوم الكافرين}

---

ترجمه: يهودو اوئيل چې عزيز دالله ځوئې دې او نصارى اوئيل عيسى مسيح د الله ځوئې دې دا د هغوى د خولې نه وتلې بې حقيقته خبرې دى، چې په هغې باندې دوى سره هيڅ دليل نشته، دا هم دهغه خلقو په تقليد کښې هم د هغوى پشان خبرې کوى، کوم چې د دوى په پلار نيکه کښې مخکښې کافران شوې دى، د الله دې په هغوى باندې وهل لعنت وى دليل د قائم کيدو باوجود کوم خوا روکيږى؟ يهودو خپل عالمانو او نصارى خپل درويشانو لره د الله نه علاوه رب جوړ کړې دې په داسې طريقه چې د حلالو په حرامولو کښې او د حرامو په حلالو کښې ددوى اتباع اوکړه، او دغه شان مسيح ابن مريم ئې هم رب جوړ کړې دې او په تورات او انجيل کښې دوى ته صرف دا حکم ورکړې شوې وو چې هغوى د صرف د يو معبود بندګى اوکړى، هغه معبود چې د هغه نه علاوه څوک د عبادت لائق نشته، او هغه ددوى د شرک نه پاک دې. دا کافران دا غواړى چې دالله نور په پوکو باندې مر کړى يعنى د هغه په شريعت او براهينو کښې په خبرو اترو سره شک پيدا کړى او الله دا رڼړا مکمل ښکاره کيدو نه بغير نه منى اګر

چې کافرانو ته دا خبره ناخوښه وی چنانچه هغه الله داسې دې چې هغه خپل رسول محمد ته ددې نور د پوراکولو د پاره هدایت او حق دین ورکولو سره راولیږو.چې دې دین لره په ټولو دینونو باطلو باندې غالب کړی اګر چې مشرکانو ته دا خبره ناخوښه وی اې ایمان والو د یهودو او عیسایانو اکثر عالمان او راهبان د خلقو مالونه په باطله طریقې سره خوری اخلی یعنی په فیصله کښې د رشوت په ذریعه سره او خلقو لره د الله د دین نه لرې ساتی او هغه خلق الذین مبتدأ دې چې کوم سره او سپین زر جمع کوی،او دې جمع شوې مال نه د الله په لار کښې نه خرچ کوی یعنی د زکواة په ذریعه ددې حق نه ادا کوی فبشرهم د مبتدأ خبر دې نو دوی ته د دردناک عذاب خبر واوروه،چې په کومه ورځ ددوی جمع شوې مال به په اور کښې سور کړې شی بیا به په دې باندې ددوی تندی او اړخونه داغ کولې شی ددوی څرمنې به فراخ کړې شی چې په دې باندې به ددوی هغه ټول مال کیخودلې شی او دوی ته به اوئیلې شی چې دا هغه مال دې کوم چې تاسو جمع کړې وو یعنی دا د هغې سزا ده او واخلئ اوس د خپل جمع شوې خزانې مزه اوڅکئ،حقیقت دا دې چې د میاشتو تعداد چې د هغې په ذریعه د کال حساب کولې شی د الله په نیز په لوح محفوظ کښې دولس میاشتې دی.کله نه چې الله زمکه او اسمانونه پیدا کړې دی هم دولس دی په دې میاشتو کښې څلور میاشتې محترم دی ذوالقعده،ذوالحجه،محرم او رجب،دا یعنی ددې میاشتو حرمت د دین صحیح طریقه ده لهذا په دې څلور میاشتو کښې د ګناه په وجه په خپل ځان باندې ظلم مه کوی څکه چې ددې څلورو میاشتو بې قدری کول لویا ګناه ده او وئیلې شوې دی چې پورا دولس میاشتې مراد دې او ټول مشرکانو سره په ټولو میاشتو کښې جنګیږئ څنګه چې هغوی تاسو سره جنګ کوی او ښه پوه شئ چې الله تعالی د مدد او نصرت په ذریعه د نیکانو سره دې او نسې یعنی په دې میاشتې حرمت دویمې میاشتې ته روستو کول څنګه چې د جاهلیت د زمانې خلقو به د محرم د میاشتې حرمت به دویمې میاشتې یعنی د صفر میاشتې ته منتقل کولو کله به چه د محرم میاشت سپوږمئ به ددوی د جنګ په دوران کښې په نظر راغله،او دا حرکت په کفر کښې یو اضافه ده ددې میاشتې په باره کښې د الله د حکم نه د انکار د وجه چې د هغې د وجه کافر خلق په ګمراهئ کښې مبتلا کیږی یضل د یاء په ضمې او کسرې سره دې نسی یعنی روستو کول په څه کالونو کښې حلال کوی او په څه کښې حراموی چې یو میاشت حلال کړی او دویمه میاشت د هغې په بدله کښې حرام کولو سره د الله حرام کړې شوې یعنی د الله د طرف نه عزت ورکړې شوې میاشتو شمیر پورا کړی چنانچه څلور قدردانې میاشتو کښې به ئې نه زیاتې کولو اونه کمې البته ددې د مقررتیا خیال به ئې نه ساتلو چنانچه هغوی دغه شان د الله حرام کړې شوې میاشت حلالوی او د هغوی خراب عملونه د هغوی د پاره خیسته کړې شوی دی چې د هغې د وجې هغوی به دا اعمال ښه ګنړل الله تعالی د حق نه انکار کونکی ته هدایت نه ورکوی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** عزير:د يو مشهور اسرائيلي بزرگ نوم دې چې د هغه متعلق د بعضو عربو خيال ور چې هغه د الله خوئي دې "عزيز"بعضو منصرف او بعضو غير منصرف لوستلې دې،دده په نبي كيدو كښې اختلاف دې په روح المعاني كښې دي اختلف في عزيز هل هو نبي أم لا والأكثرون على الثاني" علامه سيوطي هم په الاتقان في علوم القرآن كښې دې ته ترجيح وركړې ده.مولانا سيد سليمان ندوي ليكلي دي چې د عزير نه مراد عزراء كاهن مراد دې چې هغه تورات په خپل اعجاز سره دوباره ژوندې كړې وو.

**قوله:** يضاهئون: دا د مضاهاة(مفاعلة) نه د مضارع جمع مذكر غائب صيغه ده،په معنى د "مشابهت پيدا كوي" ضَهِيٌّ مثل به شان.شبه ضهياً مصدر(س) د ښځې د سړي په شان كيدل چه نه ورته حيض راځي، نه ئې سينې راخيژي او نه حامله كيږي، ضَهْيَاءُ(د سړي په شان ښځه)

**قوله:** يؤفكون افك(ض)نه جمع مذكر غائب مضارع،(كوم خوا گرځي)؟

**قوله:** بأن يعبدوا:په دې كښې اشاره ده چې "ليعبدوا" كښې لام په معنى د باء دې،لهذا دا اعتراض ختم شو چې د "الامر" صله "لام" نه راځي.

**سوال:** "أن" ئې ولې مقدر اوگرځولو؟

**جواب:** چې د حرف جر دخول صحيح شي.

**قوله:** شرعة

**سوال:** د نور تفسير په "شرع" او "برهان" سره كولو كښې څه مصلحت دې؟

**جواب:** ددې سره هم د يو سوال مقدر جواب مقصود دې.

**سوال:** دا دې چې نور خو د الله ذات سره قائم دې نو هغوي د دې نور د مړ كولو اراده څنگه كولې شي،حالانكه هغوي عاقلان دي؟

**جواب:** دا دې چې د نور نه مراد د الله شريعت دې.

**قوله:** بأفواههم فيه په دې كښې اشاره ده چې محل ذكر كولو سره حال مراد دې څكه چې په خلې سره د شريعت د مړ كولو هيڅ مطلب نشته. مراد ترې نه اقوال دي يعنې نكته چيني او طعنه زنې.

**قوله:** ذلك ذلك دگره مفعول محذوف دې

**قوله:** يأخذون د يأكلون تفسير په يأخذون سره كولو كښې دې طرف ته اشاره ده چې په كلام كښې استعاره ده يعنې د "اكل" نه "اخذ" مراد دې،د "اكل" ذكر خاص طور كول د

لوني مقصود کيدو د وجې شوې دې.

**قوله:** الكنوز: په دې کښې اشاره ده چې د "ينفقونها" ضمير "كنوز" ته راجع دې، چې د يكنزون نه ئې پته لګي، دا شبه ختم شو چې په ماقبل کښې د "ذهب" او "فضة" د دوو څيزونو ذکر دې لهذا "ينفقونهما" پکار وو.

**قوله:** أي لا يؤدون منها حقه من الزكوة، دا اضافه ددې سوال جواب دې چې په "لاينفقونها في سبيل الله" کښې مطلقا په "عدم انفاق" باندې وعيد دې، په دې د نفاق مقدار بيان کړې شوې نه دې، معلومه شوه چې د ټول مال په نه خرچ کولو باندې هم وعيد دې، حالانکه ټول مال خرچ کول ضروري نه دی ددې سوال جواب ته ئې په "لا يؤدون الخ" لفظ اشاره اوکړه چې "کل" ذکر دې "جزء" مراد دې.

**قوله:** يوم يحمى عليها في نار جهنم: أي النار توقد عليها وهي ذات حمي وحر شديد ولو قال يوم يحمى أي الكنوز لم يعط هذا المعنى فجعل الإحماء للنار مبالغة ثم حذف النار وأسند الفعل الى الجار.

**قوله:** أخبرهم دا اضافه ددې سوال جواب دې چې "فبشرهم" د مبتدأ خبر واقع دې، حالانکه د انشاء خبر واقع کيدل صحيح نه وی، د جواب حاصل کوم ته چې مفسر علام په "وأخبرهم" سره اشاره کړې ده هغه دا ده چې "فبشرهم في حقهم" په تاويل سره د مبتدأ خبر دې (نوټ): زمونږ مخې ته چه د جلالين کومه نسخه ده هغې "الخبر" ذکردې چې د کتابت غلطی ده، په اصل کښې "الخبر" دې.

**قوله:** تكوى: داغ به ورکولې شی (ض) داد "كيّ" نه مضارع مجهول واحد مونث غائب صيغه ده.

**قوله:** اى جزاءه د مضاف حذف کولو سره دې خبرې ته اشاره ده چې "كنز" د څکلو څيز نه دې مطلب د خرچ نه کولو سزا تيرول دی.

**قوله:** للسنة اى المعتد لحساب السنة، دلته په اصل کښې "الحساب" مضاف محذوف دې يعنی دالله په نيز دولس مياشتې دی چې د هغې په ذريعه د کال حساب کيږی قمری سال ۳۵۵ ورځو وی، او شمسی کال ۳۶۵ ورځو په ذريعې سره حساب کيږی، قمری کال د شمسی کال نه لس ورځې وړوکې وی.

**قوله:** حرمة: سوال: "حُرُم" مصدر دې لهذا ددې حمل په "أربعة" باندې صحيح نه دې؟

**جواب:** حرم، محرمة، د اسم مفعول په معنی دې لهذا اوس څه اعتراض پاتې نه شو.

**قوله:** النسئ: دادنسا مصدر دې "روستو کول يا اخوا کول" يقال نَسَأه نَسْأ ونَسِيئا ونَسَاءً دې لره ئې روستو کړو څنګه چې وئيلې شوې دی مسا ومسأسا ومسيا، مسح کول او بعضې حضراتو "نسئ" په معنی د "ملسوء" په وزن د فعيل په معنی د مفعول هم اخستې دې.

[ایاتونه: ۳۸ ـ ۴۲]

وَنَزَلَ لَمَّا دَعَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ إِلَى غَزْوَةِ تَبُوكَ وَكَانُوا فِي عُسْرَةٍ وَشِدَّةِ حَرٍّ فَشَقَّ عَلَيْهِمْ {يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ} بِإِدْغَامِ التَّاءِ فِي الْأَصْلِ فِي الْمُثَلَّثَةِ وَاجْتِلَابِ هَمْزَةِ الْوَصْلِ أَيْ تَبَاطَأْتُمْ وَمِلْتُمْ عَنِ الْجِهَادِ {إِلَى الْأَرْضِ} وَالْقُعُودِ فِيهَا وَالِاسْتِفْهَامُ لِلتَّوْبِيخِ {أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا} وَلَذَّاتِهَا {مِنَ الْآخِرَةِ} أَيْ بَدَلَ نَعِيمِهَا {فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي} جَنْبِ مَتَاعِ {الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ} حَقِيرٌ {إِلَّا} بِإِدْغَامِ لَا فِي نُونِ إِنِ الشَّرْطِيَّةِ فِي الْمَوْضِعَيْنِ {تَنْفِرُوا} تَخْرُجُوا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْجِهَادِ {يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا} مُؤْلِمًا {وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ} أَيْ يَأْتِ بِهِمْ بَدَلَكُمْ {وَلَا تَضُرُّوهُ} أَيِ اللهَ أَوِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {شَيْئًا} بِتَرْكِ نَصْرِهِ فَإِنَّ اللهَ نَاصِرُ دِينِهِ {وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ} وَمِنْهُ نَصْرُ دِينِهِ وَنَبِيِّهِ {إِلَّا تَنْصُرُوهُ} أَيِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ إِذْ} حِينَ {أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا} مِنْ مَكَّةَ أَيْ أَلْجَأُوهُ إِلَى الْخُرُوجِ لَمَّا أَرَادُوا قَتْلَهُ أَوْ حَبْسَهُ أَوْ نَفْيَهُ بِدَارِ النَّدْوَةِ {ثَانِيَ اثْنَيْنِ} حَالٌ أَيْ أَحَدُ اثْنَيْنِ وَالْآخَرُ أَبُو بَكْرٍ الْمَعْنَى نَصَرَهُ اللهُ فِي مِثْلِ تِلْكَ الْحَالَةِ فَلَا يَخْذُلُهُ فِي غَيْرِهَا {إِذْ} بَدَلٌ مِنْ إِذْ قَبْلَهُ {هُمَا فِي الْغَارِ} نَقْبٍ فِي جَبَلِ ثَوْرٍ {إِذْ} بَدَلٌ ثَانٍ {يَقُولُ لِصَاحِبِهِ} أَبِي بَكْرٍ وَقَدْ قَالَ لَهُ لَمَّا رَأَى أَقْدَامَ الْمُشْرِكِينَ لَوْ نَظَرَ أَحَدُهُمْ تَحْتَ قَدَمَيْهِ لَأَبْصَرَنَا {لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا} بِنَصْرِهِ {فَأَنْزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ} طُمَأْنِينَتَهُ {عَلَيْهِ} قِيلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقِيلَ عَلَى أَبِي بَكْرٍ {وَأَيَّدَهُ} أَيِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {بِجُنُودٍ لَمْ تَرَوْهَا} مَلَائِكَةٍ فِي الْغَارِ وَمَوَاطِنِ قِتَالِهِ {وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا} أَيْ دَعْوَةَ الشِّرْكِ {السُّفْلَىٰ} الْمَغْلُوبَةَ {وَكَلِمَةُ اللَّهِ} أَيْ كَلِمَةُ الشَّهَادَةِ {هِيَ الْعُلْيَا} الظَّاهِرَةُ الْغَالِبَةُ {وَاللَّهُ عَزِيزٌ} فِي مُلْكِهِ {حَكِيمٌ} فِي صُنْعِهِ {انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا} نِشَاطًا وَغَيْرَ نِشَاطٍ وَقِيلَ أَقْوِيَاءَ وَضُعَفَاءَ أَوْ أَغْنِيَاءَ وَفُقَرَاءَ وَهِيَ مَنْسُوخَةٌ بِآيَةِ {لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ} {وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ} أَنَّهُ خَيْرٌ لَكُمْ فَلَا تَثَّاقَلُوا وَنَزَلَ فِي الْمُنَافِقِينَ الَّذِينَ تَخَلَّفُوا {لَوْ كَانَ} مَا دَعَوْتَهُمْ إِلَيْهِ {عَرَضًا} مَتَاعًا مِنَ الدُّنْيَا {قَرِيبًا} سَهْلَ الْمَأْخَذِ {وَسَفَرًا قَاصِدًا} وَسَطًا {لَاتَّبَعُوكَ} طَلَبًا لِلْغَنِيمَةِ {وَلَٰكِنْ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ} الْمَسَافَةُ فَتَخَلَّفُوا {وَسَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ} إِذَا رَجَعْتُمْ إِلَيْهِمْ {لَوِ اسْتَطَعْنَا} الْخُرُوجَ {لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ يُهْلِكُونَ أَنْفُسَهُمْ} بِالْحَلِفِ الْكَاذِبِ {وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ} فِي قَوْلِهِمْ ذَٰلِكَ

**ترجمه:** او دا راروان آیت هغه وخت نازل شو کله چه حضورپاک ﷺ خلقو ته غزوه تبوک د پاره دوتلو اوفرمائیل، او حال دا وو چې خلق ډیر په تنګۍ کښې وو، او د سختې ګرمۍ موسم وو نو د هغوی ته وتل مشکل محسوس شو، اې ایمان والو تاسو باندې څه چل شوې دې چې کله تاسو ته د الله په لار کښې د وتلو د پاره اوویلې شو نو تاسو په زمکه باندې اونختئ، تاء په اصل کښې په ثاء مثلثه کښې ادغام شوې ده، او په شروع کښې د همزه وصل اضافه

شوي ده "اثاقلتم اصل كښې تثاقلتم" وو، تاء په ثاء مثلثه سره بدلولو سره او ثاء په ثاء كښې ادغام كولو سره، همزه وصل مو شروع كښې راوړه، يعنى تاسو ناراسته شوئى او د جهاد په مقابله كښې په وطن كښې ناسته مو خوښه كړه (مالكم) كښې استفهام د توبيخ د پاره دې آيا تاسو د دنيا زندګئ له او د دې لذتونه د آخرت په مقابله كښې يعنى د هغې د نعمتونو په بدله كښې خوښ كړې دې (نو تاسو ته معلوميدل پكار دى) چې د دنيا دا د عيش سامان د آخرت د عيش سامان په مقابله كښې ډير لږ سپک دې الا كښې د "ان" شرطيه په لا كښې ادغام دې دواړو ځايونو كښې (دلته او مخكښې راروان ځاى كښې) كه چرې تاسو نبى ﷺ سره او نه وتلئ نو الله به تاسو ته دردناک عذاب در كړى او تاسو په ځائې به يو بل قوم را بدل كړى. يعنى دويم قوم به ستاسو په ځائې راولي، او تاسو د هغه مدد پريښودلو سره هغه ته يا نبى ته هيڅ نقصان نشئ وركولې. ځكه چه الله د خپل دين په خپله مدد كوونكې دې هغه په هر څيز باندې قدرت لرى او په دې كښې د هغه د دين او د هغه د نبى مدد هم شامل دې كه چرې تاسو د هغه د نبى مدد نه كوى نو هيڅ پرواه نشته الله هغه وخت د هغه مدد كړې دې كله چې كافرانو هغه لره د مكې نه ويستې وو يعنى هغه ئې په وتلو باندې مجبور كړې وو او په دار الندوه كښې ئې د هغه د قيد يا د قتل يا د وطن نه د ويستو مشوره كړې وه، هر كله چې هغه په دوو كښې دويم وو دا حال دې، او دويم ابوبكر ﷺ وو مطلب دادې چې د هغه ئې په دې نازک وخت كښې مدد اوكړو نو هغه به په نورو وختونو كښې هم بې يار و مدد ګار نه پريږدى، هر كله چې هغه جبل ثور غار كښې وو، دويم "اذ" د اول "اذ" نه بدل دې هر كله چې هغه خپل ملګرى ابوبكر ﷺ ته وئيل دا "اذ" دويم بدل دې او ابوبكر ﷺ د مشركينو قدمونه اوليدل نو رسول الله ﷺ ته ئې اوفرمائيل كه چرې دوى كښې څوک هم د خپل قدمونو لاندې طرف ته اوګورى نو يقينى طور سره به مونږ اوينى، غم مه كوه يقينا الله د خپل مدد په ذريعه مونږ سره دې دغه وخت الله په هغه باندې خپل سكون يعنى د زړه اطمينان نازل كړو دعليه ضمير باره كښې وئيلې شوې دى چې نبى ﷺ طرف ته راجع دې او دا هم وئيلې شوې دى چې ابوبكر ﷺ ته راجع دې او د ده يعنى د نبى ﷺ مدد ئې په غار كښې يا د جنګ په ميدان كښې د فرشتو داسې لښكرو سره اوكړو چې تاسو ته په نظر نه راتلې او د كافرانو خبره يعنى ددوى د شرک دعوې ئې ښكته كړې يعنى مغلوبې ئې كړې او د الله خبره خو هم اوچته ده يعنى (غالب) كلمه شهادت الله په خپل ملكيت كښې زبردست او باحكمت دې په خپل كارونو كښې اوځئ اګرچې سپک يئ يا درانه يعنى خوشحاله يئ او يا خفا، او وئيلې شوى دى كه طاقتور يئ او كه كمزورې، مالداره يئ يا غريب. دا حكم په "ليس على الضعفاء" سره منسوخ شوې دې، او دالله په لار كښې په مالونو سره او ځانونو سره جهاد اوكړئ

دا ستاسو د پاره بهتره ده که تاسو دې خبرې نه خبریږئ چې دا ستاسو د پاره ښه ده نو تاسو ناراسته کیږئ مه(یعنی ځان مه پټوئ) او راروان آیت د هغه منافقینو باره کښې نازل شو چې په غزوه کښې شریک شوې نه وو(اې نبي ﷺ)که چرې هغه خبره چې د کومې تاسو دوی ته دعوت ورکوی د دنیا فائدې حاصلول آسان وې او سفر درمیانه وې نو دوی به د مال غنیمت حاصلولو د پاره خامخا تا سره تلل خو په دوی باندې دا لاره ډیره ګرانه سخته شوې ده چې د هغې د وجه نه دوی روستو پاتې شوې دی هرکله چې تاسو واپس دوی لره راشئ نو دوی به په الله قسمونه خوړلو خوړلو سره وائی چې که مونږ وتلې شوې د وتلو په حالت کښې وو نو تاسو سره به ضرور وتلو،دوی خپل ځان په دروغو قسمونو سره هلاکت کښې غورزوی،الله ته ښه پته ده چې دوی په خپله خبره کښې دروغژن دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:بإدغام التاء في الأصل في المثلثة**په اصل کښې د ادغام مطلب دادې چې د تعلیل نه مخکښې تا مو ثا کړه او ثا مو په ثا کښې مدغمه کړه،او ابتداء بالسکون لازمیدو د وجه مو همزه وصل په شروع کښې راوړله.

**قوله:اثاقلتم**په اصل کښې "تثاقلتم" وو،د ذکرشوې عبارت راوړلو مقصد په "اثاقلتم"کښې د "ثاء" دتشدید او په شروع کښې همزه وصل راوړلو بیان کول دی،باوجود ددې نه چې دا د باب د تفاعل نه دې.

**قوله:تباطئتم،دبطوءنه** اخستلې شوې دې په معنی د ناراستیا سره،دا د تیزوالی ضد دې

**سوال:**مفسر علام د "اثاقلتم" تفسیر په "ملتم" سره ولې اوکړو؟

**جواب:** چونکه د "تثاقل" صله "الی" نه رازی،ځکه مفسر علام د "ملتم" اضافې کولو سره اشاره اوکړه چې "تثاقل" د "میل" معنې لره متضمن دې،لهذا اوس څه اعتراض نشته.

**قوله:والقعود فیها**،دا د سوال جواب دې

**سوال:**"القعود فیها" د اضافې څه فائده ده؟

**جواب:**ددې اضافې فائده داده که په جهاد کښې شریک شوې وو نو هم به په زمکه باندې به وو،په جهاد کښې د نه شریک کیدو په صورت کښې په زمکه باندې د اوسیدو څه مطلب؟ مفسر علام د "القعود فیها" اضافه کولو سره اشاره اوکړه چې دلته د "اثاقلتم إلی الأرض" معنی بزدلی ده. **قوله:**ای بدل نعیمها،ددې اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره ده چې په "من الاخرة" کښې "من" د مقابلې د پاره دې،نه ابتدائیه،لهذا اعتراض ختم شو چې دآخرت نه د حیات دنیا ابتدا کولو هیڅ معنی نشته،د نعیمها د اضافې سره اشاره اوشوه چې مطلق آخرت پریښودل مراد نه دی،بلکه ددې نه ددې نعمتونه پریښودل مراد دی.

**قوله:** جنب متاع په دې کښې اشاره ده چې په "فما" کښې "ما" د مقابلې د پاره ده، نه د ظرفيت د پاره، لهذا د متاع دنيا د پاره د آخرت ظرف واقع کيدلو اعتراض ختم شو.

**قوله:** حـال: يعنى ثانى اثنين حضور پاک ﷺ ته د راجع ضمير نه حال دې،

**قوله:** اى احد الاثنين، دا ددې سوال جواب دې چې کله د "ثانى" اضافت عدد ته کيږى، نو غير د مضاف اليه مراد وى، ددې قاعدې نه معلومه شوه چې نبى عليه السلام د دوه نه علاوه دريم وو، حالانکه واقعه داسې نه ده، "احد الاثنين" وئيلو سره ئې اوفرمائيل چې مراد په دوو کښې يو دې، نه په دوو کښې دريم.

**قوله:** جبل ثور جبل ثور د مکې نبى طرف ته د يو گهنټې په سفر سره واقع دې.

**قوله:** انه خير لکم دا د "تعملون" محذوف مفعول دې.

**قوله:** فلا تثاقلوا دا د شرط جزاء ده.

**[ايا تونه: ۴۳ - ۵۹]**

وَكَانَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَذِنَ لِجَمَاعَةٍ فِي التَّخَلُّفِ بِاجْتِهَادٍ مِنْهُ فَنَزَلَ عِتَابًا لَهُ وَقُدِّمَ الْعَفْوُ تَطْمِينًا لِقَلْبِهِ {عَفَا اللَّهُ عَنْكَ لِمَ أَذِنْتَ لَهُمْ} فِي التَّخَلُّفِ وَهَلَّا تَرَكْتَهُمْ {حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِينَ صَدَقُوا} فِي الْعُذْرِ {وَتَعْلَمَ الْكَاذِبِينَ} فِيهِ {لَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ} فِي التَّخَلُّفِ عَنْ {أَنْ يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالْمُتَّقِينَ} {إِنَّمَا يَسْتَأْذِنُكَ} فِي التَّخَلُّفِ {الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَارْتَابَتْ} شَكَّتْ {قُلُوبُهُمْ} فِي الدِّينِ {فَهُمْ فِي رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ} يَتَحَيَّرُونَ {وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ} مَعَكَ {لَأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً} أُهْبَةً مِنَ الْآلَةِ وَالزَّادِ {وَلَكِنْ كَرِهَ اللَّهُ انْبِعَاثَهُمْ} أَيْ لَمْ يُرِدْ خُرُوجَهُمْ {فَثَبَّطَهُمْ} كَسَّلَهُمْ {وَقِيلَ} لَهُمْ {اقْعُدُوا مَعَ الْقَاعِدِينَ} الْمَرْضَى وَالنِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ أَيْ قَدَّرَ اللَّهُ تَعَالَى ذَلِكَ {لَوْ خَرَجُوا فِيكُمْ مَا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا} فَسَادًا بِتَخْذِيلِ الْمُؤْمِنِينَ {وَلَأَوْضَعُوا خِلَالَكُمْ} أَيْ أَسْرَعُوا بَيْنَكُمْ بِالْمَشْيِ بِالنَّمِيمَةِ {يَبْغُونَكُمُ} يَطْلُبُونَ لَكُمُ {الْفِتْنَةَ} بِإِلْقَاءِ الْعَدَاوَةِ {وَفِيكُمْ سَمَّاعُونَ لَهُمْ} مَا يَقُولُونَ سَمَاعَ قَبُولٍ {وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ} {لَقَدِ ابْتَغَوُا} لَكَ {الْفِتْنَةَ مِنْ قَبْلُ} أَوَّلَ مَا قَدِمْتَ الْمَدِينَةَ {وَقَلَّبُوا لَكَ الْأُمُورَ} أَيْ أَجَالُوا الْفِكْرَ فِي كَيْدِكَ وَإِبْطَالِ دِينِكَ {حَتَّى جَاءَ الْحَقُّ} النَّصْرُ {وَظَهَرَ} عَزَّ {أَمْرُ اللَّهِ} دِينُهُ {وَهُمْ كَارِهُونَ} لَهُ فَدَخَلُوا فِيهِ ظَاهِرًا {وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ ائْذَنْ لِي} فِي التَّخَلُّفِ {وَلَا تَفْتِنِّي} وَهُوَ الْجَدُّ بْنُ قَيْسٍ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ لَكَ فِي جِلَادِ بَنِي الْأَصْفَرِ فَقَالَ إِنِّي مُغْرَمٌ بِالنِّسَاءِ وَأَخْشَى إِنْ رَأَيْتُ نِسَاءَ بَنِي الْأَصْفَرِ أَنْ لَا أَصْبِرَ عَنْهُنَّ فَأَفْتَتِنَ قَالَ تَعَالَى {أَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوا} بِالتَّخَلُّفِ وَقُرِئَ سَقَطَ {وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ} لَا مَحِيصَ لَهُمْ عَنْهَا {إِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ} كَنَصْرٍ وَغَنِيمَةٍ {تَسُؤْهُمْ وَإِنْ تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ} شِدَّةٌ {يَقُولُوا قَدْ أَخَذْنَا أَمْرَنَا} بِالْحَزْمِ حِينَ تَخَلَّفْنَا {مِنْ قَبْلُ} قَبْلَ هَذِهِ الْمُصِيبَةِ {وَيَتَوَلَّوْا وَهُمْ فَرِحُونَ} بِمَا أَصَابَكَ {قُلْ} لَهُمْ {لَنْ يُصِيبَنَا إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَنَا} إِصَابَتَهُ {هُوَ مَوْلَانَا} نَاصِرُنَا وَمُتَوَلِّي

امورنا {وعلی الله فلیتوکل المؤمنون} {قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ} فِيهِ حَذْفُ إِحْدَى التَّاءَيْنِ مِنَ الْأَصْلِ أَيْ تَنْتَظِرُونَ أَنْ يَقَعَ {بِنَآ إِلَّآ إِحْدَى} الْعَاقِبَتَيْنِ {الْحُسْنَيَيْنِ} تَثْنِيَةُ حُسْنَى تَأْنِيثُ أَحْسَنَ النَّصْرِ أَوِ الشَّهَادَةِ {وَنَحْنُ نَتَرَبَّصُ} نَنْتَظِرُ {بِكُمْ أَنْ يُصِيبَكُمُ اللَّهُ بِعَذَابٍ مِنْ عِنْدِهِ} بِقَارِعَةٍ مِنَ السَّمَاءِ {أَوْ بِأَيْدِينَا} بِأَنْ يَأْذَنَ لَنَا فِي قِتَالِكُمْ {فَتَرَبَّصُوا} بِنَا ذَلِكَ {إِنَّا مَعَكُمْ مُتَرَبِّصُونَ} عَاقِبَتَكُمْ {قُلْ أَنْفِقُوا} فِي طَاعَةِ اللَّهِ {طَوْعًا أَوْ كَرْهًا لَنْ يُتَقَبَّلَ مِنْكُمْ} ما انفقتموه {إِنَّكُمْ كُنْتُمْ قَوْمًا فَاسِقِينَ} وَالْأَمْرُ هُنَا بِمَعْنَى الْخَبَرِ {وَمَا مَنَعَهُمْ أَنْ تُقْبَلَ} بالياء والتاء {مِنْهُمْ نَفَقَاتُهُمْ إِلَّا أَنَّهُمْ} فَاعِلٌ وَأَنْ تُقْبَلَ مَفْعُولٌ {كَفَرُوا بِاللَّهِ وَبِرَسُولِهِ وَلَا يَأْتُونَ الصَّلَاةَ إِلَّا وَهُمْ كُسَالَى} مُتَثَاقِلُونَ {وَلَا يُنْفِقُونَ إِلَّا وَهُمْ كَارِهُونَ} النَّفَقَةَ لِأَنَّهُمْ يعدونها مغرما {فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُمْ} أَيْ لَا تَسْتَحْسِنْ نِعَمَنَا عَلَيْهِمْ فَهِيَ اسْتِدْرَاجٌ {إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ} أَيْ أَنْ يُعَذِّبَهُمْ {بِهَا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا} بِمَا يَلْقَوْنَ فِي جَمْعِهَا مِنَ الْمَشَقَّةِ وَفِيهَا مِنَ الْمَصَائِبِ {وَتَزْهَقَ} تَخْرُجَ {أَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كَافِرُونَ} فَيُعَذِّبَهُمْ فِي الْآخِرَةِ أَشَدَّ الْعَذَابِ {وَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ إِنَّهُمْ لَمِنْكُمْ} أَيْ مُؤْمِنُونَ {وَمَا هُمْ مِنْكُمْ وَلَكِنَّهُمْ قَوْمٌ يَفْرَقُونَ} يَخَافُونَ أَنْ تَفْعَلُوا بِهِمْ كَالْمُشْرِكِينَ فَيَحْلِفُونَ تَقِيَّةً {لو یجدون ملجأ} يلجأون إِلَيْهِ {أَوْ مَغَارَاتٍ} سَرَادِيبَ {أَوْ مُدَّخَلًا} مَوْضِعًا يَدْخُلُونَهُ {لَوَلَّوْا إِلَيْهِ وَهُمْ يَجْمَحُونَ} يُسْرِعُونَ فِي دُخُولِهِ وَالْإِنْصِرَافِ عَنْكُمْ إِسْرَاعًا لَا يَرُدُّهُ شَيْءٌ كالفرس الجموح {ومنهم من یلمزك} یعیبك {فی} قسم {الصدقات فإن أعطوا منها رضوا وإن لم یعطوا منها إذا هم یسخطون} {وَلَوْ أَنَّهُمْ رَضُوا مَا آتَاهُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ} مِنَ الْغَنَائِمِ وَنَحْوِهَا {وَقَالُوا حَسْبُنَا} كَافِينَا {اللَّهُ سَيُؤْتِينَا اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَرَسُولُهُ} مِنْ غَنِيمَةٍ أُخْرَى مَا يَكْفِينَا {إِنَّا إِلَى اللَّهِ رَاغِبُونَ} أَنْ يُغْنِيَنَا وَجَوَابُ لَوْ لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ

**ترجمه**: حضور پاک ﷺ په خپل اجتهاد سره یو ټولګی ته په جهاد (غزوه تبوک) کښې د نه شریکیدو اجازت ورکړو نو د ناراضتیا ښکاره کولو د پاره د راروان آیت نازل شو او د حضور پاک ﷺ د زړه اطمینان د پاره معافی نې مخکښې بیان کړه، (اې نبي) الله دې تا معاف کړي تا هغوی ته د شرکت نه کولو ولې اجازت ورکړو؟ او تاسو هغوی ولې په حالت باندې پرې نخودل؟ چه تا باندې ښکاره شوې وې چه کوم خلق په عذر کښې رښتونې دی؟ او د عذر په معامله کښې به دې دروغجن هم معلوم کړې وې کوم خلق چه په الله باندې او په ورځ د آخرت باندې ایمان لری هغوی خو به ستا نه کله هم درخواست اونکړی چه هغوی په خپل ځان او مال سره د جهاد کولو نه معاف اوساتلې شی، الله متقیان ښه پیژنی، داسې د نه شریکیدو درخواست خو صرف هغه خلق کوی څوک چه په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان نه لری، او د هغوی زړونه د دین په معامله کښې په شک کښې مبتلا دی او هغوی په خپل شک کښې حیران وی که چرې د هغوی (په رښتیا) تاسو سره د وتلو څه اراده وې نو هغوی به ددې د پاره ستاسو په وړاندې د وتلو آلات او د سفر د توښې په ذریعه څه تیاری کړې وې لیکن الله ته (جهاد د پاره) د هغوی پاڅیدل خوښ نه وو، یعنی الله د هغوی (د جهاد د پاره) وتل نه غوښتل، په دې وجه الله هغوی

ســت کړل او ورته او وئیلی شو چه د ناست خلقو سره (یعنی) مریضانو او ښځو سره کینئ، یعنی الله تعالی دا مقدر کړل، که چرې هغوی په تاسو کښې شامل شوې وې او وتلې وې نو په تاسو کښې به ئې مؤمنان ذلیل کړی وې (په بزدلئ ښکاره کولو سره) د فساد نه علاوه دهیڅ څیز اضافه نه وې کړې او په تاسو کښې به ئې فتنه اچولو دپاره ښه منډې وهلې په تاسو کښې به ئې فتنه اچولې وې یعنی په تاسو کښې به ئې چغل خوری کولو دپاره ښه کوششونه کول، او دهغوی خبره منونکی خلق په تاسو کښې موجود دی، الله دغه ظالمان ښه پیژنی، ددې نه مخکښې هم (یعنی) کله چه تاسو مدینې ته راغلی وئ هغوی د فتنې اچولو کوششونه کړی دی تاسو سره د مکر کولو او ستاسو دین باطل کولو دپاره دوی هرقسم تدبیرونه او چل ول کړې دې تردې پورې چه حق یعنی نصرت راغې تردې پورې چه او د الله امر (یعنی) دهغه دین غالب شو حالانکه هغوی دا ناخوښه گڼړلو لیکن هغوی په دې (اسلام) کښې په ښکاره داخل شو او په هغوی کښې بعضې خلق داسې هم شته چه هغوی وائی چه ماته (په جهاد کښې) د نه شریکیدو اجازت راکړئ او ما په فتنه کښې مه اچوئ او هغه جد بن قیس دې ددوی نه نبی ﷺ تپوس اوکړو چه آیا ته دخپل اصفر سره دقتال (جهاد) دپاره تیار ئې؟ نو هغه جواب ورکړو چه زه د ښځو شوقین یم ماته خطره ده چه که زه دخپل اصفر ښځې اووینم نه به ځان قابو نه کړې شم چه ددې په وجه به زه په فتنه کښې مبتلا شم ښه واورئ دوی په شرکت نه کولو سره په فتنه کښې مبتلا شوی دی او سقط، هم وئیلې شوی دی، یقین اوکړئ دکافرانو جهنم احاطه کړې ده، هغوی ته ددې نه خلاصې نشته، که تاسو ته څه خیر در اورسیږی، مثلامدد او مال غنیمت نو هغوی خفه کیږی او که تاسو ته څه مصیبت در اورسیږی نو وائی چه مونږ خپله معامله په نه شریکیدو سره احتیاطًا دمخکښې نه درست کړې وه، یعنی ددې مصیبت د راتلو نه مخکښې او ستاسو په مصیبت باندې خوشحالیدو سره مخ اړونکی روانیږی هغوی ته اووایه مونږ ته (خیر یا بدی) بالکل نه رارسیږی خو هغه رارسیږی کوم چه الله زمونږ دپاره لیکلی دی هم هغه زمونږ مولا (یعنی) مددگار او زمونږ دکارونو والی (کارساز) دې او ایمان والو ته هم په هغه باندې بهروسه پکار ده ته هغوی ته اووایه تاسو چه دکوم څیز زمونږ باره کښې منتظر یئ هغه ددې نه سوا نور څه دی چه هغه د دوه خیرونو (فائدو) نه یو خیر دې الحسنین، حسنٰی د احسنُ د تانیث تثنیه ده (او هغه دوه څیزونه) غلبه یا شهادت دې او مونږ ستاسو په معامله کښې چه دکوم څیز منتظر یو هغه دا دې چه الله تاسو ته د آسمانی بجلئ په ذریعه په خپله سزا درکوی یا به ئې زمونږ په لاس درکوی په دې طریقه چه مونږ ته ستاسو دقتلولو اجازت راکوی تاسو ددې زمونږ باره کښې انتظار کوئ مونږ تاسو سره ستاسو د انجام انتظار کوی په تربَّصون کښې اصل کښې حذف د تاء دې، یعنی تاسو د واقع کیدو انتظار کوئ تاسو هغوی ته اووایئ تاسو د الله په اطاعت کښې که په خوشحالئ خرچ کوئ او که په ناخوښئ هغوی ستاسو خرچ

کول بالکل نه قبلوی ځکه چه تاسو فاسقان یئ او دلته امر د خبر په معنی کښې دې دهغوی د خرچ کړې شوی مال د نه قبلولو ددې نه سوا بله هیڅ وجه نشته چه هغوی د الله او دهغه د رسول انکار کړې دې (یقبل) په یاء او تاء سره دې،د الاانهم منهم فاعل دې او ان تقبل دهغې مفعول دې مونځ له راځی نو په کسالت سستئ سره راځی، او (د الله په لار کښې) هغوی په ناخوشئ خرچ کوی ځکه چه هغوی دا تاوان ګنړی دهغوی مالونه او دهغوی اولاد (زیاتوالې) تاسو په تعجب (دهوکه) کښې وانه چوی، یعنی زمونږ هغوی ته خوشحالی (مالداری) ورکول دې تاسو ته ښه معلوم نه شی ځکه چه دا مهلت ورکول دی الله خو دا غواړی چه هم ددې څیزونو په ذریعه دوی ته د دنیا په ژوند کښې د لیعذبهم تقدیر یعذبهم دې په عذاب کښې ګرفتار کړی دهغې مشقتونو او مصیبتونو په ذریعه کوم چه دوی په مال جمع کولو کښې برداشت کوی او دوی ساه هم ورکړی نود حق نه د انکار په حالت کښې ئې ورکړی چه دهغې په وجه الله هغوی ته په آخرت کښې سخت ترین عذاب ورکړی، هغوی د الله قسم خوری او وائی چه هغوی تاسو سره دی یعنی دمؤمنانو سره حالانکه هغوی بالکل تاسو سره نه دی، اصل کښې هغوی داسې خلق دی چه ستاسو نه ویریږی، هغوی ددې خبرې نه ویریږی چه چرته تاسو دهغوی سره هم د مشرکانو په شان معامله او کړئ نود تقیه (ښودنې) په طور قسمونه خوری که چیرته هغوی داسې د پناه ځائې بیامومی چه په هغې کښې هغوی پناه واخلی یا چرته سورنګ بیامومی یا چرته د پټیدو ځائې بیامومی نوهغوی په هغې کښې زرپټ شی یعنی په داخلیدو کښې د جلتئ نه کار واخلی په داسې جلتئ سره ستاسو نه واوړی چه څه څیز هغوی لره ستاسو طرف ته واپس نه کړی لکه چه سرکش اس وی، او (اې نبی) دهغوی نه بعضې خلق دصدقاتو دتقسیم باره کښې تاسو باندې اعتراضات کوی (عیبونه لګوی) پس که چرې په صدقاتو کښې (دهغوی د مرضئ مطابق) هغوی ته ملاویږی نو خوشحالیږی او که ددې صدقاتو نه (دهغوی دخواهش مطابق) نه ملاویږی نوهغوی خفه کیږی څومره به ښه وې چه کوم څه الله او دهغه رسول د غنیمتونو وغیره نه هغوی ته ورکړی دی په هغې باندې راضی کیدلې او وئیل ئې چه الله زمونږ دپاره کافی دې دیر زر به الله دخپل فضل نه او دهغه رسول د مال غنیمت وغیره نه دومره راکړی چه زمونږ دپاره به کافی وی، په تحقیق سره مونږ د الله طرف ته رغبت کونکی یو. او د لو جواب لکان خیرًالهم محذوف دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** عفا الله عنك: جمله دعائیه ده، د ناراضګئ په مقام کښې د شفقت د اظهار دپاره مقدم کړې شوې دې.

**قوله:** لِمَ: دا په اصل کښې لِمَا جار مجرور وو، په دې قاعدې سره چه کله حرف جر په ما

استفهاميه باندې داخل شی نو الف غورځيږی، لهذا الف غورځيدلې دې، په لِمَ کښې لام تعليليه دې او لمر تبليغيه، لهذا د دواړو أذنت سره متعلق کيدل صحيح دی.

**قوله:** الذين صدقوا: دا د يتبين فاعل دې، جمله صدقوا صله ده، تعلم په يتبين باندې عطف دې، كاذبين مفعول له دې.

**قوله:** لم يرد خروجهم: كراهة: إنقباض النفس للعلم بنقصانه ته وائی او داد الله تعالی دپاره محال دې، لهذا په كرة الله کښې د کراهت نسبت الله تعالی طرف ته صحيح نه دې؟

**جواب:** مفسر علام د كرة تفسير په لم يرد خروجهم سره کړې دې، په دې سره ئې ددې سوال جواب ورکړې دې چه دلته د کراهت لازم معنی مراد ده څکه چه کوم شئ مکروه او ناخوښه وی دهغې اراده نه شی کولې.

**قوله:** ثبطهم: (تفعيل) تثبيطاً منع کول، ايسارول، ماضی واحد مذکر غائب، هم ضمير دجمع مذکر غلئب دې

جواب: تثبيط» معنی منع کول دی او دالله تعالی دپاره دا مناسب نه دی چې بندګان د فرائضو څخه منع کړی، نومجازاً دمنع نسبت کسل ته کړې شوې دې. چې د الله تعالی د تقدير مطابق دهغوی کسل هغوی منع کړل.

**قوله:** أي قدّر الله ذلك: سوال: الله تعالی فرمائيلی دی ((اقعدوا مع القاعدين)) په دې کښې د قعود عن الجهاد حکم ورکړې شوې دې او مامور ماحود وی نه چې مذموم.

جواب: د جواب حاصل دا دې چې ازلی تقدير مراد دې دې جواب ته د اشارې کولو دپاره ئې د ((قدر الله تعالى ذلك)) اضافه اوکړه. بعضې حضراتو بل جواب ورکړې دې

دويم جواب: دا دې چې دا امر تهديدی دې، د((اعملوا ما شئتم)) د قبيلې څخه دې.

**قوله:** إلا خبالًا: دا مستثنی مفرع ده يعنی مشتثنی منه محذوف ده ((اي ما زادوكم شيئاً الا خبالا)) **قوله:** خبالاً: په معنی دفساد، شردې.دا د ،،خبل يخبل،، څخه ماخوذ دې.دا شراوفساد چې دهغې په وجه په څناور کښې جنون اواضطراب پيدا شی،((خبالاً)) مستثنی متصله ده.

**قوله:** اوضعوا أي لسعوا بينكم بالنميمة: ((اي لسعوا بينكم بالنميمة،)) ايضاع په معنی د اسراع اوجلتی کولو کښې استعماليږی. ((وضع البعير وضعاً اذا اسرع)) معلومه شوه چې دلته وضع په معنی د کيخودلو نه ده.

**قوله:** وفيكم سماعون: ښه غوږکيښودنکې ،جاسوس،(سماع) کله خو د جاسوس په معنی راځی.اوکله د تابعدار په معنی کښې استعماليږی.دلته دواړه معانی مراد کيدې شی.

**قوله: بني الأصفر** اصفر د روم د اطراف د رئيس نوم وو.هغه د يوې رومي ښځې سره نکاح کړې وه دهغې ښځه چې کوم بچي پيدا شوى وو هغوى ته ئې بني الاصفر وئيل،دا نسل ډير ښکلي وو دا هم دغه نسل طرف ته اشاره ده.

**قوله: جلاد:**
کورې وهونکې،توره چلونکې،جلاد هم ددې ځخه ماخوذ دې.دلته قتال بالسيف مراد دې. په بعضې نسخو کښې د جلادو په ځائې جهاد دې.دکومې معنى چې واضحه ده.

**قوله: انفقوا طوعًا او كرهًا..الخ:**
دا امر په معنى دخبر دې.معنى ئې دا ده ((نفقتكم طوعاً او كرهاً غير مقبولة))

**قوله: فاعل منعهم:**
يعنى ((الا انهم)) دمنع فاعل دې.تقديرد عبارت داسې دې ((ما منعهم قبول نفقاتهم الا كفرهم)) قبول مفعول ثانى دې.اوپه ((منعهم)) کښې هم مفعول اول دې.

**قوله: استدراج:** په مزه باندې نزدې کول په مزه باندې مهلت ورکول.

**قوله: تقيةً:** دباطن خلاف ښکاره کول،دا لفظ د اهل تشيع اصطلاح ده يعنى دخپلې مذهبى عقيدې خلاف ښکاره کول

**قوله: مدّخلاً:** په اصل کښې مدتخلاً وو،تاء په دال باندې بدل شوې اودال په دال کښې مدغم شو.ځائې د داخليدو.

**قوله: يجمحون:** دا دجمح ځخه ماخوذ دې.دا هغې خودسره اس ته وائى کوم چې په واګى لګولو سره هم په قابو کښې نه راځى.اوپه تيزه سره منډه وهى.دلته مطلقاً تيزتلل او تيزه منډه وهل مراد دى.

**[ايا تونه: ٦٠ ـ ٦٦]**

{إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ} الزَّكَوَات مَصْرُوفَة {لِلْفُقَرَاءِ} الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يَقَع مَوْقِعًا مِنْ كِفَايَتهمْ {وَالْمَسَاكِينِ} الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يَكْفِيهِمْ {وَالْعَامِلِينَ عَلَيْهَا} أَيْ الصَّدَقَات مِنْ جَابٍ وَقَاسِم وَكَاتِب وَحَاشِر {وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبهمْ} لِيُسْلِمُوا أَوْ يَثْبُت إِسْلَامهمْ أَوْ يُسْلِم نُظَرَاؤُهُمْ أَوْ يَذُبُّوا عَنْ الْمُسْلِمِينَ أَقْسَام و الْأَوَّل وَالْأَخِير لَا يُعْطَيَانِ الْيَوْم عِنْد الشَّافِعِيّ رَضِيَ اللَّه تَعَالَى عَنْهُ لِعِزِّ الْإِسْلَام بِخِلَافِ الْآخَرَيْنِ فَيُعْطَيَانِ عَلَى الْأَصَحّ {وَفِي} فَكّ {الرِّقَاب} أَيْ الْمُكَاتَبِينَ {وَالْغَارِمِينَ} أَهْل الدَّيْن إِنْ اسْتَدَانُوا لِغَيْرِ مَعْصِيَة أَوْ تَابُوا وَلَيْسَ لَهُمْ وَفَاء أَوْ لِإِصْلَاحِ ذَات الْبَيْن وَلَوْ أَغْنِيَاء {وَفِي سَبِيل اللَّه} أَيْ الْقَائِمِينَ بِالْجِهَادِ مِمَّنْ لَا فَيْء لَهُمْ وَلَوْ أَغْنِيَاء {وَابْنِ السَّبِيل} الْمُنْقَطِع فِي سَفَره {فَرِيضَة} نُصِبَ بِفِعْلِهِ الْمُقَدَّر {مِنْ اللَّه وَاَللَّه عَلِيم} بِخَلْقِهِ {حَكِيم} فِي صُنْعه فَلَا يَجُوز صَرْفهَا لِغَيْرِ هَؤُلَاءِ وَلَا مَنْع صِنْف مِنْهُمْ إِذَا وُجِدَ فَيَقْسِمهَا الْإِمَام عَلَيْهِمْ

عَلَى السَّوَاء وَلَهُ تَفْضِيل بَعْض آحَاد الصِّنْف عَلَى بَعْض وَأَفَادَتْ اللَّام وُجُوب اسْتِغْرَاق أَفْرَاده لَكِنْ لَا يَجِب عَلَى صَاحِب الْمَال إذَا قَسَمَ لِعُسْرِهِ بَلْ يَكْفِي إعْطَاء ثَلَاثَة مِنْ كُلّ صِنْف وَلَا يَكْفِي دُونهَا كَمَا أَفَادَتْهُ صِيغَة الْجَمْع وَبَيَّنَتْ السُّنَّة أَنَّ شَرْط الْمُعْطَى مِنْهَا الْإِسْلَام وَأَنْ لَا يَكُون هَاشِمِيًّا وَلَا مُطَّلِبِيًّا {وَمِنْهُمْ} أَيْ الْمُنَافِقِينَ {الَّذِينَ يُؤْذُونَ النَّبِيَّ} بِعَيْبِهِ وَبِنَقْلِ حَدِيثه {وَيَقُولُونَ} إذَا نُهُوا عَنْ ذَلِكَ لِئَلَّا يَبْلُغهُ {هُوَ أُذُنٌ} أَيْ يَسْمَع كُلّ قِيل وَيَقْبَلهُ فَإِذَا حَلَفْنَا لَهُ أَنَّا لَمْ نَقُلْ صَدَّقَنَا {قُلْ} هُوَ {أُذُنُ} مُسْتَمِع {خَيْرٍ لَكُمْ} لَا مُسْتَمِع شَرّ {يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَيُؤْمِنُ} يُصَدِّق {لِلْمُؤْمِنِينَ} فِيمَا أَخْبَرُوهُ بِهِ لَا لِغَيْرِهِمْ وَاللَّام زَائِدَة لِلْفَرْقِ بَيْن إيمَان التَّسْلِيم وَغَيْره {وَرَحْمَةٌ} بِالرَّفْعِ عَطْفًا عَلَى أُذُن وَالْجَرّ عَطْفًا على خير {للذين آمنوا منكم والذين يؤذون رسول الله لهم عذاب أليم} {يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ} أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ فِيمَا بَلَغَكُمْ عَنْهُمْ مِنْ أَذَى الرَّسُول أَنَّهُمْ مَا أَتَوْهُ {لِيُرْضُوكُمْ وَاللَّهُ وَرَسُوله أَحَقّ أَنْ يُرْضُوهُ} بِالطَّاعَةِ {إن كانوا مؤمنين} حقا وَتَوْحِيد الضَّمِير لِتَلَازُمِ الرِّضَاءَيْنِ أَوْ خَبَر الله او رسوله محذوف {أَلَمْ يَعْلَمُوا} بِ {أَنَّهُ} أَيْ الشَّأْن {مَنْ يُحَادِد} يُشَاقِق {اللَّه وَرَسُوله فَأَنَّ لَهُ نَار جَهَنَّم} جزاء {خالدا فيها ذلك الخزي العظيم} {يحذر} يخاف {الْمُنَافِقُونَ أَنْ تُنَزَّل عَلَيْهِمْ} أَيْ الْمُؤْمِنِينَ {سُورَة تُنَبِّئهُمْ بِمَا فِي قُلُوبهمْ} مِنْ النِّفَاق وَهُمْ مَعَ ذَلِكَ يَسْتَهْزِئُونَ {قُلْ اسْتَهْزِئُوا} أَمْر تَهْدِيد {إنَّ اللَّه مُخْرِج} مُظْهِر {مَا تَحْذَرُونَ} إخراجه من نفاقكم {وَلَئِنْ} لام قسم {سَأَلْتَهُمْ} عَنْ اسْتِهْزَائِهِمْ بِك وَالْقُرْآن وَهُمْ سَائِرُونَ مَعَك إلَى تَبُوك {لَيَقُولُنَّ} مُعْتَذِرِينَ {إنَّمَا كُنَّا نَخُوض وَنَلْعَب} فِي الْحَدِيث لِنَقْطَع بِهِ الطَّرِيق وَلَمْ نَقْصِد ذَلِكَ {قُلْ} لهم {أبالله وآياته ورسوله كنتم تستهزئون} {لَا تَعْتَذِرُوا} عَنْهُ {قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْد إيمَانكُمْ} أَيْ ظَهَرَ كُفْركُمْ بَعْد إظْهَار الْإِيمَان {إنْ يُعْفَ} بِالْيَاءِ مَبْنِيًّا لِلْمَفْعُولِ وَالنُّون مَبْنِيًّا لِلْفَاعِلِ {عَنْ طَائِفَة مِنْكُمْ} بِإِخْلَاصِهَا وَتَوْبَتهَا كَمَخْشِي بْن حمير {تعذب} بِالتَّاءِ وَالنُّون {طَائِفَة بِأَنَّهُمْ كَانُوا مُجْرِمِينَ} مُصِرِّينَ عَلَى النِّفَاق وَالِاسْتِهْزَاء

**ترجمه:** صدقات (واجبه) مثلا زکوٰة صرف د هغې فقیرانو د پاره دی چې دومره اندازه کښې هم نه مومی چې خپل حاجت کښې ئې اولګوی (یعنی دوی سره مال بالکل نه وی او مسکینانو د پاره دی څه چې د ضرورت په قدر مال نه مومی او په صدقاتو کښې کار کوونکو د پاره او صدقات (زکوٰة) وصول کوونکو د پاره دی او په مستحقینو باندې تقسیم کوونکو د پاره او لیکوالو د پاره او (د ارباب اموال) نه د جمع کوونکو د پاره دی، او د هغه خلقو د پاره چې د چا د زړه مائله کول مقصود وی چې هغوی اسلام راوړی یا په خپل اسلام باندې کلک اوسی، یا د دوی په شان نور خلق اسلام راوړی یا د مسلمانانو دفاع اوکړی، دا څلور قسمونه دی، اول او آخری قسم ته به د امام شافعی رحمه الله په نیز نن صبا نه ورکړې کیږی ځکه چې اسلام طاقت ور شوې دې، په خلاف د باقی دوارو قسمونو د صحیح مذهب مطابق به دوی ته ورکولې شی، او مکاتبینو آزادولو د پاره او قرضدارو د پاره دی چا چې د غیر معصیت د پاره قرض اخستې وی یا د ګناه د پاره اخستې وی خو د ګناه نه ئې توبه

کړي وي او دوی سره د قرض د ورکولو مطابق مال نه وي، او په خپل مینځ کښې د روغې د پاره، اګرچې مالدار وي او مجاهدینو د پاره یعني داسې مجاهدینو د پاره چې په جهاد کښې مشغول وي، او هغه خلقو د پاره چې د هغوی په مال غنیمت کښې حصه نه وي اګرچې دوی مالدار ولې نه وي، او داسې مسافرو د پاره چې هغوی ته د مال د ختمیدو د وجه سفر جاري ساتل ګران وي او دا د الله د طرف نه فرض کړې شوې حکم دې (فريضة) فعل مقدر د (فرض) د وجه نه منصوب دې الله د مخلوق د ضرورتونو نه ډیر ښه خبردار دې او په خپل صنعت کښې حکمت والا دې لهذا د ذکر شوې مصارفو نه علاوه کښې خرچ کول جائز نه دي، او د مذکوره قسمونو د موجودګئ په وخت کښې به دوی کښې یو هم پاتې کوی نه، لهذا د وخت امام له پکار دی چې په دوی کښې برابر تقسیم اوکړی او امام ته اختیار دې چې یو قسم له په بل باندې ترجیح ورکړی، او د لام نه د ټولو کسانو د استغراق وجوب معلومیږی خو د مال والا د پاره د تقسیم په وخت کښې د ټولو کسانو ته د رسیدلو د ګرانوالی د وجې واجب نه دی بلکه په دې اتو قسمونو کښې هر قسم کښې صرف دریو تنو (افرادو) ته ورکول کافي دی، ددې نه په کم کښې به کافي نه وي، لکه چې د جمع د صیغو نه دا فائده اخستې شی، او سنت دا خبره واضحه کړه چې چاته د زکواة مال ورکیږی د هغه مسلمان کیدل شرط دی، او دا هم شرط دی چې هاشمی او مطلبی سید نه وی او په دې منافقینو کښې داسې خلق هم دی چې نکته چیني او رازونه ښکاره کولو سره نبی ﷺ ته تکلیف سوی کله چه دوی په خپلو کښې په دې خیال د دې نکته چینئ نه منع کړې شی چې هسې نه داسې او شی چې د دې خبرو هغوی ﷺ ته اطلاع ورکړې شی نو وائی چې هغه خو غوږونه دی هر یو خبره اوری او رشتیا ئې ګنړی، او چې مونږ هم قسم خوړلو سره اووایو چې مونږ داسې خبره کړې نه ده نو زمونږ خبره به هم رشتیا اوګنړی، او دوی ته اوویه چې ستاسو د خیر خبرې اوری نه چې ستاسو د نقصان، په الله باندې ایمان لری او د مومنانو په دې خبره کښې تصدیق کوی چې د هغې ورته خبر ورکوی نه د نورو، او په (للمؤمنين) کښې لام زائده دې چې د ایمان تسلیم او ایمان تصدیق د فرق د پاره دې، او په تاسو کښې چې څوک ایمان راوړی د هغوی د پاره رحمت دې رحمة په رفع سره په 'اذن' باندې عطف دې، او جر سره دې په 'خير' باندې عطف دې. او کوم خلق چې د الله رسول ته تکلیف رسوی ددوی د پاره دردناک عذاب دې اې ایمان والو! د رسول د ایذا دا خبره چې د دوی د طرف نه تاسو ته رارسیدلې ده ستاسو په مخکښې په الله قسم خوری چې مونږ داسې خبره کړې نه ده دې د پاره چې دوی تاسو خوشحاله کړی حالانکه الله او رسول د هغه زیات مستحق دی چې هغوی د تابعداری په ذریعه خوشحاله کړی که چرې دوی په رشتیا مسلمانان وی د دواړو د رضامندئ د لازم او ملزوم کیدو د وجه (د يرضوه ضمير ئې واحد راوړو، یا د الله او یا د

رسول خبر محذوف دي،آیا دوی ته معلومه نه ده چې څوک الله او رسول سره دشمني کوی د هغوی سزا د جهنم اور دې چې په هغې کښې به دوی همیشه وی، دا ډیره د رسوائی خبره ده منافقان د دې خبرې نه ویرېږی چې د دې مومنانو باندې څه سورت نازل نه شي چې د دوی دا منافقت ښکاره کړی چې کوم د دوی په زړونو کښې دې او دوی د دې باوجود توقې کوی (اې نبی ﷺ اووایه او توقې اوکړئ دا امر د تهدید دې الله دې نفاق لره ښکاره کونکې دې چې د څه د ښکاره کولو نه تاسو ویرېږئ او که چرې ته ددوی نه د ستاسو او د قرآن په باره کښې د توقو تپوس اوکړې په داسې حال کښې چې دوی تاسره تبوک ته روان دی قسمیه خبره ده چې دوی عذر پیش کولو سره یقینا دا خبره به اوکړی چې مونږ خو هسې د توقو مسخرو خبرې کولې چې په خندا خوشحالئ سره مزل لنډ شي او دا توقې مسخرې زمونږ مقصد نه وو ته دوی ته اووایه چې آیا تاسو الله، د هغه آیتونو او د هغه رسول پورې توقې کوی دې باره کښې عذر مه بیانوی تاسو د ایمان نه پس کفر اوکړو د ایمان د ښکاره کیدو نه پس ستاسو کفر ښکاره شو که په تاسو کښې یو جماعت د هغوی د اخلاص او د توبې د وجه معاف کړې شي لکه مخشي بن حمیر نو یو جماعت ته به مونږ ضرور سزا ورکوو ځکه چې دوی مجرمان دی تعذب "تا" او "نون" سره دې او "نعف" یاء سره مبنی للمفعول دې،او نون سره مبنی للفاعل دې،یعنی نفاق او استهزاء باندې کلک دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** انما الصدقات للفقراء والمساكين، انما کلمه د حصر ده،دلته قصر موصوف علی الصفت د پاره استعمال شوې دې یعنی د صدقاتو (زکواة) مصرف صرف دا ذکر شوې خلق دی،ددې نه علاوه بل څوک نشته، په للفقراء کښې د لام باره کښې ډیرې خبرې شوې دی،بعضو وئیلې دی چې لام د تملیک د پاره دې،لکه چې د امام شافعی رحمه الله دغه مسلک دې او بعضو وئیلو دی چې اختصاص او استحقاق د پاره دې،ددې قائل امام ابوحنیفه رحمه الله دې(بحر) الفقراء والمساكين د دواړو لفظونو په تعبیر او تفسیر کښې ډیر اقوال نقل شوې دی.

ابوحنیفه وئیلې دی چې "فقیر" هغه ناداره دې چې سوال نه کوی او مسکین هغه نادار دې چې سوال کوی، او د ابن عباس رضی الله عنهما،حسن بصری، جابر بن زید ، او زهری(رحمهم الله) نه هم دا نقل دی،د امام ابو حنیفه رحمه الله قول ددې حضراتو د قول مطابق دې(جصاص) د لفظ د فقیر او مسکین په تشریح او تعبیر کښې اګر چې هر څومره اختلاف ولې نه وی،د زکواة په مسئله باندې اثر نه غورزیږی،زکواة دواړو ته ورکول جائز دی،البته د وصیت په مسئله کښې به فرق راځی،که د فقیرانو د پاره ئې وصیت کړې وی نو هغوی به مستحق وی او که مسکینانو د پاره ئې کړې وی نو صرف هغوی به مستحق وی.

[ایاتوله: ۶۷ ـ ۷۲]

{الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ بَعْضُهُمْ مِنْ بَعْضٍ} اي مُتَشَابِهُونَ فِي الدِّين كَأَبْعَاضِ الشَّيْءِ الْوَاحِد {يَأْمُرُونَ بِالْمُنْكَرِ} الْكُفْر وَالْمَعَاصِي {وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوفِ} الْإِيمَان وَالطَّاعَة {وَيَقْبِضُونَ أَيْدِيَهُمْ} عَنِ الْإِنْفَاق فِي الطَّاعَة {نَسُوا اللَّهَ} تَرَكُوا طَاعَته {فَنَسِيَهُمْ} تَرَكَهُمْ مِنْ لُطْفه {إن المنافقين هم الفاسقون} {وَعَدَ اللَّهُ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا هِيَ حَسْبُهُمْ} جَزَاء وَعِقَابًا {وَلَعَنَهُمُ اللَّهُ} أَبْعَدَهُمْ عَنْ رَحْمَته {وَلَهُمْ عَذَابٌ مُقِيمٌ} دائم أَنْتُمْ أَيُّهَا الْمُنَافِقُونَ {كَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ كَانُوا أَشَدَّ مِنْكُمْ قُوَّةً وَأَكْثَرَ أَمْوَالًا وَأَوْلَادًا فَاسْتَمْتَعُوا} تَمَتَّعُوا {بِخَلَاقِهِمْ} نَصِيبهمْ مِنَ الدُّنْيَا {فَاسْتَمْتَعْتُمْ} أَيُّهَا الْمُنَافِقُونَ {بِخَلَاقِكُمْ كَمَا اسْتَمْتَعَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ بِخَلَاقِهِمْ وَخُضْتُمْ} فِي الْبَاطِل وَالطَّعْن فِي النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {كَالَّذِي خَاضُوا} اي خوضهم {أولئك حبطت أعمالهم في الدنيا والآخرة وأولئك هم الخاسرون} {أَلَمْ يَأْتِهِمْ نَبَأُ} خَبَر {الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ قَوْمِ نُوحٍ وَعَادٍ} قوم هود {وَثَمُودَ} قوم صالح {وَقَوْمِ إِبْرَاهِيمَ وَأَصْحَابِ مَدْيَنَ} قَوْم شُعَيْب {وَالْمُؤْتَفِكَاتِ} قُرَى قَوْم لُوط اي أَهْلهَا {أَتَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ} بِالْمُعْجِزَاتِ فَكَذَّبُوهُمْ فَأُهْلِكُوا {فَمَا كَانَ اللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ} بِأَنْ يُعَذِّبهُمْ بِغَيْرِ ذَنْب {وَلَكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ} بِارْتِكَابِ الذَّنْب {وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُقِيمُونَ الصَّلَاةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَيُطِيعُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ أُولَئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللَّهُ أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ} لَا يُعْجِزهُ شَيْء عَنْ إِنْجَاز وَعْده وَوَعِيده {حَكِيمٌ} لا يضع شَيْئًا إلا في محله {وَعَدَ اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ} إِقَامَة {وَرِضْوَانٌ مِنَ اللَّهِ أَكْبَرُ} اعظم من ذلك كله {ذلك هو الفوز العظيم

ترجمه: منافقان سړی او منافقې ښځې ټول یو شان دی یعنی د دین په معامله کښې د یو څیز د جزونو په شان دی، د بدئی یعنی د کفر او د گناه حکم ورکوی او د خیګړې یعنی د ایمان او د تابعدارئی نه منع کوی او تابعدارئی کښې خرچ کولو نه خپل لاسونه بندوی، الله ئې هیر کړې دې، یعنی د هغه تابعداری ئې پرېښودې ده، نو الله هم دوی هیر کړل، یعنی د خپل رحم او کرم نه ئې محروم کړل، یقینا دا منافقان هم فاسقان دی دې منافقانو سړو او ښځو سره الله تعالی د دوزخ د اور وعده کړې ده، چې په هغې کښې به دوی همیشه اوسیږی هم هغه د سزا او بدلې په اعتبار سره د دوی د پاره دې، الله په دوی باندې لعنت کړې دې، یعنی د خپل رحمت نه ئې لرې کړی دی، او ددوی د پاره همیشه غذاب دې اې منافقانو ستاسو چال چلن هم هغه شان دې څنګه چې ستاسو نه مخکښې خلقو وو، هغوی ستاسو نه زیات طاقت والا وو او په مال اولاد کښې ستاسو نه مخکښې وو، هغوی په دنیا کښې د خپلې حصې مزې اوکړې بیا اې منافقانو تاسو هم د خپلې حصې مزې هم هغهٔ شان وکړې څنګه چې ستاسو نه مخکښې خلقو کړې وې او تاسو هم په نبی ﷺ باندې په طعنې او ناحقه بحثونو کښې داسې ورننوتئ څنګه چې هغوی ورننوتی وو، هم

دغه خلق دي چې د هغوی اعمال د نیکئ په دنیا او په آخرت کښې ضائع شول او هم دوی په تاوان کښې دي،آیا دوی ته د هغې خلقو تاریخ رارسیدلې نه دې چه د دوی نه مخکښې تیر شوی دي؟ مثلا قوم د نوح او عادیان،چې د هود عليه السلام قوم وو. او د ثمود تاریخ چې د صالح عليه السلام قوم وو. او د ابراهیم عليه السلام قوم او د اصحاب مدین چې د شعیب عليه السلام قوم وو. او د هغه کلو د خلقو کوم چې اولټه کړې شوې وو او هغه د قوم لوط عليه السلام کلي والا وو. ددوی رسولان دوی ته ښکاره ښښې معجزات راوړلو سره راغلې وو خو دوی هغه دروغ اوګڼل او دغه شان دوی هلاک کړې شول دا د الله کار نه وو چې په ظلم اوکړي په داسې طریقې سره چې بغیر د څه وجه دوی هلاک کړي خو حقیقت دادې چې دوی په خپله د ګناهونو په وجه په خپل ځان باندې ظلم کوونکي وو مومنان سړي او مومنانې ښځې د یو بل ملګري دي، د نیکو حکم کوي او د ګناهونو نه منع کوي مونځ قائموي او زکوٰة ادا کوي او دالله او د رسول اطاعت کوي او هم دغه خلق دي چې الله به ډیر زر په دوی باندې رحم اوکړي،الله تعالی غالب دې هغه لره خپله وعده پورا کول او وعید باندې عمل کولو نه څوک منع کولې نشي د حکمت والا دې هر څیز د هغې په موقع او محل باندې کوي مومنانو سړو او ښځو سره د الله تعالی وعده ده چې هغوی ته به داسې جنتونه ورکوي چې د هغې لاندې به نهرونه جاري وي په هغه کښې به دوی همیشه اوسیږي، په هغه باغونو کښې د دوی د پاره پاک کورونه دي، او د ټولو نه زیات دا چې دوی ته به د الله تعالی رضا حاصله وي،چې ددې ټولو نعمتونو نه لوئې نعمت دې،هم دغه لویه کامیابي ده.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: ترکوا طاعته،** دا د دې سوال جواب دې چې په هیره باندې هیڅ نیول نشته.او نه هیره د مذمت قابله ده،ځکه چې دا د الله د طرف نه وي نو بیا ئې دا د مذمت په ځائې کښې ولې ذکر کړه؟

**جواب:** دلته او راروان ځائې کښې د نسیان نه ددې لازم معنی مراد ده ځکه چې د نسیان سره پریښودل لازم دي د الله تعالی د هیرولو مطلب د خپل خاص رحمت نه محرومول دي

**قوله: انتم ایها المنفقون،** انتم محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه چې کالذین من قبلکم د مبتدأ محذوف خبر کیدو د وجه محلا مرفوع ده،نه چې د فعل محذوف د وجه منصوب،ځکه چې په دې صورت کښې به د کثرت د حذف راشي، حالانکه په حذف کښې کموالی اولی دې،

**قوله: نصیبهم،** په دې کښې د خلاق معنی طرف ته اشاره ده،دا د "خلق" نه وتلې دې په معنی د تقدیر.

**سوال:** فکذبوهم د اضافې څه فائده ده؟

**جواب:** چې د فما کان الله لیظلمهم "عطف د فاء تعقیبیه په ذریعه صحیح شي.

قوله: اقامة، په دې کښې اشاره ده چې 'عدن' په معنی د 'همیشه والی' دې لهذا د تکرار اعتراض ختم شو.

قوله: رضوان من الله، رضوان کښې تنوین د تنکیر د پاره دې، یعنی د الله تعالی لږ رضامندی هم لوئې څیز دې.

**[ایاتو له ۷۳ـ۸۰]**

{يأيها النَّبِيّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ} بِالسَّيْفِ {وَالْمُنَافِقِينَ} بِاللِّسَانِ وَالْحُجَّة {وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ} بِالانتِهَارِ وَالْمَقْت {وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ} الْمَرْجِع هِيَ {يَحْلِفُونَ} أَيْ الْمُنَافِقُونَ {بِاللَّهِ مَا قَالُوا} مَا بَلَغَكَ عَنْهُمْ مِنَ السَّبّ {وَلَقَدْ قَالُوا كَلِمَةَ الْكُفْرِ وَكَفَرُوا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ} أَظْهَرُوا الْكُفْر بَعْد إِظْهَار الْإِسْلَام {وَهَمُّوا بِمَا لَمْ يَنَالُوا} مِنَ الْفَتْك بِالنَّبِيّ لَيْلَة الْعَقَبَة عِنْد عَوْده مِنْ تَبُوك وَهُمْ بِضْعَة عَشَرَ رَجُلًا فَضَرَبَ عَمَّار بْن يَاسِر وُجُوه الرَّوَاحِل لَمَّا غَشُوهُ فَرُدُّوا {وَمَا نَقَمُوا} أَنْكَرُوا {إِلَّا أَنْ أَغْنَاهُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ مِنْ فَضْلِهِ} بِالْغَنَائِمِ بَعْد شِدَّة حَاجَتهمْ الْمَعْنَى لَمْ يَنَلْهُمْ مِنْهُ إِلَّا هَذَا وَلَيْسَ مِمَّا يُنْقَم {فَإِنْ يَتُوبُوا} عَنِ النِّفَاق وَيُؤْمِنُوا بِك {يَكُ خَيْرًا لَهُمْ وَإِنْ يَتَوَلَّوْا} عَنِ الإيمان {يعذبهم عَذَابًا أَلِيمًا فِي الدُّنْيَا} بِالْقَتْلِ {وَالْآخِرَةِ} بِالنَّارِ {وَمَا لَهُمْ فِي الْأَرْضِ مِنْ وَلِيٍّ} يَحْفَظهُمْ مِنْهُ {وَلَا نَصِيرٍ} يَمْنَعهُمْ {وَمِنْهُمْ مَنْ عَاهَدَ اللَّهَ لَئِنْ آتَانَا مِنْ فَضْلِهِ لَنَصَّدَّقَنَّ} فِيهِ إِدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الصَّاد {وَلَنَكُونَنَّ مِنَ الصَّالِحِينَ} وَهُوَ ثَعْلَبَة بْن حَاطِب سَأَلَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَدْعُو لَهُ أَنْ يَرْزُقهُ اللّٰه مالا ويؤدي منه إلى كُلّ ذِي حَقّ حَقّه فَدَعَا لَهُ فَوَسَّعَ عَلَيْهِ فَانْقَطَعَ عَنِ الْجُمُعَة وَالْجَمَاعَة وَمَنَعَ الزَّكَاة كما قال تعالى {فَلَمَّا آتَاهُمْ مِنْ فَضْلِهِ بَخِلُوا بِهِ وَتَوَلَّوْا} عن طاعة الله {وهم معرضون {فَأَعْقَبَهُمْ} أَيْ فَصَيَّرَ عَاقِبَتهمْ {نِفَاقًا} ثَابِتًا {فِي قُلُوبِهِمْ إِلَى يَوْمِ يَلْقَوْنَهُ} أَيْ اللّٰه وَهُوَ يَوْم الْقِيَامَة {بما أخلفوا الله ما وعدوه وبما كانوا يكذبون} فيه فَجَاءَ بَعْد ذَلِكَ إِلَى النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِزَكَاتِهِ فَقَالَ إِنَّ اللّٰه مَنَعَنِي أَنْ أَقْبَلَ مِنْك فَجَعَلَ يَحْثُو التُّرَاب عَلَى رأسه ثم جاء بها إِلَى أَبِي بَكْر فَلَمْ يَقْبَلهَا ثُمَّ إِلَى عُمَر فَلَمْ يَقْبَلهَا ثُمَّ إِلَى عُثْمَان فَلَمْ يَقْبَلهَا وَمَاتَ فِي زَمَانه {أَلَمْ يَعْلَمُوا} أَيْ الْمُنَافِقُونَ {أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ سِرَّهُمْ} مَا أَسَرُّوهُ فِي أَنْفُسهمْ {وَنَجْوَاهُمْ} مَا تَنَاجَوْا بِهِ بَيْنهمْ {وَأَنَّ اللَّهَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ} مَا غَابَ عَنِ الْعِيَان وَلَمَّا نَزَلَتْ آيَة الصَّدَقَة جَاءَ رَجُل فَتَصَدَّقَ بِشَيْءٍ كَثِير فَقَالَ الْمُنَافِقُونَ مُرَاءٍ وَجَاءَ رَجُل فَتَصَدَّقَ بِصَاعٍ فَقَالُوا إِنَّ اللّٰه غَنِيّ عَنْ صَدَقَة هَذَا فَنَزَلَ {الَّذِينَ} مبتدأ {يَلْمِزُونَ} يَعِيبُونَ {الْمُطَّوِّعِينَ} الْمُتَنَفِّلِينَ {مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فِي الصَّدَقَاتِ وَالَّذِينَ لَا يَجِدُونَ إِلَّا جُهْدَهُمْ} طَاقَتهمْ فَيَأْتُونَ بِهِ {فَيَسْخَرُونَ مِنْهُمْ} وَالْخَبَر {سخر الله منهم} جازاهم على سخريتهم {ولهم عذاب أليم} {اسْتَغْفِرْ} يَا مُحَمَّد {لَهُمْ أَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ} تَخْيِير لَهُ فِي الِاسْتِغْفَار وَتَرْكه قَالَ صلى الله عليه وسلم إني خيرت فاخترت يَعْنِي الاسْتِغْفَار رَوَاهُ الْبُخَارِيّ {إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً فَلَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ} قِيلَ الْمُرَاد بِالسَّبْعِينَ الْمُبَالَغَة فِي كَثْرَة الِاسْتِغْفَار وَفِي الْبُخَارِيّ حَدِيث لَوْ أَعْلَم أَنِّي لَوْ زِدْت عَلَى السَّبْعِينَ غُفِرَ لَزِدْت عَلَيْهَا وَقِيلَ الْمُرَاد

العدد المخصوص لحديثه ايضا وساير على السبعين فبين له حسم المغفرة بآية {سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَسْتَغْفَرْتَ لهم أم لم تستغفر لهم ذلك بأنهم كفروا بالله ورسوله والله لايهدي القوم الفاسقين}

ترجمه: اې نبی کافرانو سره په توره باندې او منافقانو سره په ژبه او په دليل سره جهاد اوکړه او دې منافقانو سره په غصه او خفگان په سختئ سره پيښ شه اخرکار ددوی ځائې د اوسيدو جهنم دې او هغه ډيره خرابه ټهکانه ده،او منافقان د الله قسم خورلو سره وائی چې د کنځلو کومه خبره زمونږ د طرف نه تاسو ته دررسيدلې ده هغه مونږ وئيلې نه ده حالانکه يقينا هم دغه کافرانه خبره هغوی وئيلې ده،او اسلام راوړلو نه پس د کفر مرتکب شول يعنی د اسلام ښکاره کولو نه پس دوی کفر اوکړو او دوی هغې نه هيڅ حاصل نکړل کوم چې دوی د حضورپاک ﷺ د قتل په ارادې د تبوک نه واپس کيدو په وخت په ليلية العقبه کښې کول غوښتل، او دوی د لسو نه زيات خلق وو،او عمار بن ياسر د هغوی سورلئ په مخ مخ وهلو سره د هغوی رخ واړوو،هر کله چې دوی د نبی عليه السلام په يوځائې راچاپيره شو،او دې منافقانو ته چې کومه خبره ناخوښه راغله هغه صرف داوه چه الله او رسول دوی لره په خپل فضل وکرم سره د مال غنيمت په ذريعه د سخت حاجت په وخت کښې غنيان کړل حاصل دادې چې دې منافقانو ته چې د دې د طرف نه څه اورسيدل هغه د دې نه سوا بل څه نه وو،او دا داسې خبره نه ده چې دې سره خفگان ښکاره کړې شی که دا خلق د نفاق نه توبه اوباسی او ايمان راوړی نو دوی د پاره به ښه وی او که دا خلق د ايمان نه مخ واړوی نو الله به دوی له په دنيا کښې د قتل په ذريعه او په آخرت کښې د اور په ذريعه دردناک عذاب ورکړی او په دنيا کښې به نه ددوی څوک دوست وی چې هغه د عذاب نه ئې حفاظت اوکړی او نه مددگار چې دوی بچ کړی او په دوی کښې بعضې هغه دی چې هغوی الله سره عهد اوکړو چې که چرې مونږ ته الله په خپل فضل سره دولت راکړی نو مونږ به خامخا صدقه او خيرات اوکړو (لنصدقن) په اصل کښې د تاء په صاد کښې ادغام دې او د نيکانو نه به شی او دا سړې ثعلبه بن حاطب وو چې ده نبی کريم ﷺ ته درخواست کړې وو چې تاسو زما د پاره دعاء اوکړئ چې الله مالره ډير مالداره کړی او څه ددې مال نه د هر حقدار حق پورا ورکړم،چنانچه هغوی دعاء اوکړه چې د هغې د وجه نه دده د پاره فراخوالې اوشو نو هغه د جمع او د جمع پريښودونکې جوړشو،او زکواة ورکول ئې بند کړو ځنکه چې الله تعالی فرمائيلې دی هر کله چې هغه ده ته په خپل فضل سره مال ورکړو نو په هغې کښې ئې شومتوب شروع کړو او د الله تعالی د فرمانبردارئی نه ئې هم مخ واړولو،حال دادې چې دوی هر حالت کښې مخ اړونکی دی ددې شومتوب نتيجه دا شوه چې ددوی په زړونو کښې د الله په مخکښې د مخامخ کيدو وخته پورې منافقت پيوست کړې شو او هغه د قيامت ورځ ده او دا ددې وجه اوشول چې دوی د الله تعالی سره وعده خلافی اوکړه او ددې وجه نه چې دوی د عهد په باره کښې دروغ وئيل بيا هغه د دې نه پس د حضورپاک ﷺ په

خدمت کښې د زکواة مال راوړلو سره حاضر شو ،نو هغوی ﷺ اوفرمائيل چې الله تعالی څه منع کړې يم چې څه ستا مال قبول کړم، نو هغه په سر خپل باندې خاورې اچول شروع کړل، بيا دې مال لره د ابوبکر ﷛ په خدمت کښې راوړو ،نو هغوی هم د قبلولو نه انکار اوکړو ،بيا د حضرت عمر ﷛ په خدمت کښې مال راوړلو سره حاضر شو نو هغوی هم قبول نکړو ،دې نه پس د حضرت عثمان ﷛ په خدمت کښې حاضر شو ،نو هغوی د قبلولو نه انکار اوکړو ،دده انتقال د حضرت عثمان ﷛ په دور خلافت کښې اوشو. آيا منافقان پوهيږي نا چې الله تعالی د دوی د راز خبرې کوم چې دوی په خپلو زړونو کښې پټې کړې دی او هغه پټې خبرې کوم چې دوی خپل مينځ کښې کوی پيجنی، يقينا الله تعالی هغه غيبو خبرو باندې هم پوهه دې کومې چې د خلقو د نظرونو نه پټې دی او هر کله چې دا آيت ﴿خذ من اموالهم﴾ نازل شو نو يو سړې (حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷛) راغلو او غټ مقدار (څلور زره ديناره) ئې صدقه کړل نو منافقانو اووئيل چې رياکار دې او يو بل سړی (حضرت ابوعقيل انصاري) راغلو هغوی يو صاع کهجورې صدقه کړې نو منافقانو اووئيل چې د الله تعالی ددې لږ څيز محتاجه نه دې،نو راروان آيت (الذين يلمزون) نازل شو او دا دولت مند منافقانان هم ښه پيژنی الذين مبتدأ چه په خوشحالئ سره ورکونکو د مومنانو قربانو (صدقاتو) پس ې عيبې کوی اونکته چينی کوی او هغه خلقو پسې توقې کوی چاسره چې د الله په لار کښې د ورکولو د پاره د دې نه سوا بل څه نشته کوم چې هغوی د محنت مزدورئ کولو نه پس راوړی نو دا دولتمند هغوی پسې توقې کوی، الله هم دوی پسې توقې ورکړه يعنی ددوی د توقو ئې بدله دوکړه، (سخر الله منهم) د مبتدا خبر دې او ددوی د پاره دردناک عذاب دې اې محمد ﷺ ته ددوی د پاره معافی غواړې يا نه غواړې دا نبی عليه السلام د استغفار کولو يا نه کولو اختيار دې، هغوی ﷺ اوفرمائيل ماته د استغفار کولو يا نه کولو اختيار راکړې شو نو ما استغفار خوښ کړو (رواه البخاري) که ته اويا ځله د دې خلقو د معاف کولو درخواست اوکړې نو الله دوی هيڅ کله نه معاف کوی او د اويا عدد سره په استغفار کښې د ډيروالی مبالغه مراد ده،او بخاری شريف کښې يو حديث دې که ماته معلومه وه چې څه د اويا ځله نه زيات استغفار اوکړم نو دوی به معاف کړې شی نو ما به دې نه زيات کړې وو،او وئيلې شوې دی چې د اويا نه خاص عدد مراد دې،د بخاری د حديث د وجه نه چې څه به د اويا ځله نه زيات استغفار اوکرم،هغوی ﷺ ته سواء عليهم استغفرت لهم ام لم تستغفر لهم په ذريعه اووئيلې شول چې ددوی نه بخښنه ختمه شوې ده،او دا د دې وجه نه چې دوی الله او د هغه رسول ﷺ باندې کفر کړې دې،الله تعالی فاسقانو ته لار نه ورښائی.

........

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله:المنافقون، (مفاعلة) اسم فاعل جمع مذكر غائب مرفوع،دومخيزي، د شريعت په اصطلاح كښې هغه سړي ته وائي چې په ژبه باندې د اسلام اقرار اوكړي خو په زړه كښې ئې ددې خلاف وي،د نفق معنى په اصل كښې د خرج كيدو او د تلو دې،نفقت الدراهم، روپئ تولې ختمې شوې، نافقاء (ضب) د سمسرې سوره،چې د هغې كم ازكم دوه خلې وي په يو باندې راوځي او په بل باندې ننوځي،ښكارى دې سورې طرف ته متوجه وي او سمسره په بله سوره باندې بهر اوځي،منافقان هم د ژبې اقرار سره په اسلام كښې داخل شي خو د زړه د عقيدې د وجه نه د اسلام نه بهر وي،د حضورپاك ﷺ په زمانه كښې د منافقانو سرو شمير درې سوه او د منافقانو ښځو تعداد يو سل اوويا وو.

قوله:بعضهم من بعض،بعضهم مبتدأ ده او 'من بعض' ددې خبر دې او 'من' اتصاليه دې.

قوله:يقبضون ايديهم.د يد قبض كول د بخل نه كنايه ده،په حقيقت كښې موټې بندول مراد نه دي دې طرف ته مفسر علام په عن الانفاق في الطاعة وتيلو سره اشاره اوكړه.

قوله:تركواطاعته،په دوارو ځايونو كښې د نسيان نه ددې لازم معنى يعنى پريښودل مراد دي.په اول ځائې كښې ځكه چې په نسيان باندې نيول نشته او نه د مذمت قابل دې، او دويم ځائې كښې ځكه چې د نسيان نسبت الله تعالى طرف ته ناممكن دې.لهذا لازم معنى يعنى محرومول مراد دي.

قوله:كخوضهم.دا د يو سوال جواب دې

سوال:د منافقينو خوض لره د كفارو ذواتو سره تشبيه وركول صحيح نه دي،ځكه چې خوض صفت دې او كافران ذوات؟

جواب: د جواب حاصل دادې چې دلته مضاف محذوف دې او هغه مصدر دې اى خضتم خوضاً كخوضهم

قوله:المؤتفكت،دا د مؤتفكة جمع ده، ائتفاك (افتعال) مصدر دې افك ماده ده "التيه كړې شوې" تس نس شوې مراد ترې نه د قوم لوط كلي دي،چې د بحرمردار په غاړه باندې آباد دي،چې د هغه مركزى ښار سندوم يا سدوم وو.

قوله:فكذبوهم ددې اضافي مقصد د فماكان ليظلمهم عطف صحيح كول دي،چې د فاء تعقيبيه په ذريعې سره عطف صحيح شي.

[ایاتونه: ۸۱ ـ ۸۹]

{فَرِحَ الْمُخَلَّفُونَ} عَنْ تَبُوك {بِمَقْعَدِهِمْ} أيْ بِقُعُودِهِمْ {خِلَافَ} أيْ بَعْد {رَسُولِ اللّٰهِ وَكَرِهُوا أَنْ يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَقَالُوا} أيْ قَالَ بَعْضهمْ لِبَعْضٍ {لَا تَنْفِرُوا} لا تَخرُجوا إلَى الْجِهَاد {فِي الْحَرِّ قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرًّا} مِن تَبُوك فَالأوْلَى أنْ يَتَّقُوهَا بِتَرْكِ التَّخَلُّف {لَوْ كَانُوا يَفْقَهُونَ} يَعْلَمُونَ ذَلِكَ مَا تَخَلَّفُوا {فَلْيَضْحَكُوا قَلِيلًا} فِي الدُّنْيَا {وَلْيَبْكُوا} فِي الآخِرَة {كثيرا جزاء بما كانوا يكسبون} خَبَر عَنْ حَالِهِمْ بِصِيغَةِ الأمْر {فَإِنْ رَجَعَكَ} رَدَّكَ {اللّٰه} مِنْ تَبُوك {إِلَى طَائِفَةٍ مِنْهُمْ} مِمَّنْ تَخَلَّفَ بِالْمَدِينَةِ مِنَ الْمُنَافِقِينَ {فَاسْتَأْذَنُوكَ لِلْخُرُوجِ} مَعَكَ إلَى غَزْوَة أخْرَى {فَقُلْ} لَهُمْ {لَنْ تَخْرُجُوا مَعِيَ أَبَدًا وَلَنْ تُقَاتِلُوا مَعِيَ عَدُوًّا إِنَّكُمْ رَضِيتُمْ بِالْقُعُودِ أَوَّلَ مَرَّةٍ فَاقْعُدُوا مَعَ الْخَالِفِينَ} الْمُتَخَلِّفِينَ عَنِ الْغَزْوِ مِنَ النِّسَاء وَالصِّبْيَان وَغَيْرِهِمْ وَلَمَّا صَلَّى النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ على ابن أُبَيّ نَزَلَ {وَلَا تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَى قَبْرِهِ} لِدَفْنٍ أوْ زِيَارَة {إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ} كَافِرُونَ {وَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ وَأَوْلَادُهُمْ إِنَّمَا يُرِيدُ اللّٰهُ أَنْ يُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ} تَخْرُج {أنفسهم وهم كافرون} {وَإِذَا أُنْزِلَتْ سُورَةٌ} أيْ طَائِفَة مِنَ الْقُرْآن {أَنْ} أيْ بِأنْ {آمِنُوا بِاللّٰهِ وَجَاهِدُوا مَعَ رسوله استأذنك أولو الطول} ذَوو الْغِنى {منهم وقالوا ذرنا نكن مع القاعدين} {رَضُوا بِأَنْ يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ} جَمْع خَالِفَة أيْ النِّسَاء اللَّاتِي تَخَلَّفْنَ فِي الْبُيُوت {وَطُبِعَ عَلَى قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُونَ} الْخَيْر {لَكِنِ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ جَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ وَأُولَئِكَ لَهُمُ الْخَيْرَاتُ} فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَة {وأولئك هم المفلحون} اي الفائزون {أعد اللّٰه لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ذلك الفوز العظيم}

ترجمه: دغزوه تبوک نه روستو پاتې شوې خلق د رسول الله ﷺ د وتلونه پس خپل کورونو کښې په ناسته باندې خوشحاله شول او دوی ته دا خبره ناخوښه شوه چې هغوی په خپل مال او ځان سره د الله په لار کښې جهاد اوکړی او دوی خپلو کښې يو بل ته او وئيل په ګرمۍ کښې جهاد د پاره مه اوځئ ته دوی ته اووايه چې دجهنم اور د تبوک د ګرمۍ نه ډير سخت دې لهذا ښه داده چې تاسو روستو پاتې کيدل پريږدئ ځان ددې اور نه بچ کړئ، که چرې دوی دا حقيقت پيژندلو نو په غزوه تبوک کښې به شرکت کولو نه نه روستو کيدل، لږې ورځې په دنيا کښې اوخاندئ په آخرت کښې به اوجاړی او دا جزا به ددوی د اعمالو په وجه وی دا (خبر) په صيغه د امر ددوی د حالت خبر دې او که الله تاسو د تبوک نه دې منافقانو په مينځ کښې چې په مدينه کښې روستو پاتې شوې وو (په خير) واپس راولی او په دوی کښې څوک په يو بله غزوه کښې تاسو سره د شريکيدو اجازت اوغواړی نو ته دوی ته اووايه چې تاسو ماسره هيڅ کله وتلې نشئ او نه ځما سره چرته يو دشمن سره جنګ کولې شئ، تاسو په اول ځل ناسته خوښه کړې ده او اوس روستو پاتې شوې ښځو ماشومانو وغيره سره ناست اوسئ او هر کله چې هغوی ﷺ په عبد الله بن ابی باندې جنازه کول اوغوښتل نو دا آيت نازل شو که بيا دوی کښې څوک وفات

شول نو د دوی د جنازې مونځ هيڅ کله مه کوه او دفن يا زيارت د پاره ددوی په قبر باندې هم مه اودرېږه، دې خلقو الله او د هغه رسول بادنې کفر اوکړو او د کفر په حالت کښې مړه شول او ددوی د مال او د اولاد دېروالې دې تا په حيرانتيا کښې وانچوی الله اراده کړې ده چې مال او دولت د وجه په دنيا کښې عذاب ورکړی او ددوی ساهګانې په داسې حالت کښې اوځی چې دوی کافران وی او هر کله چې به د قرآن څه حصه په دې مضمون باندې نازله شوه چې په الله باندې ايمان راوړئ او د هغه د رسول په ملګرتيا کښې جهاد اوکړئ، تا اوليدل چې دوی کښې څوک قدرت والا وو هم هغوی تانه په غزوه کښې د نه شريکيدو اجازت اوغښتلو چې دوی دې په جهاد کښې د شرکت نه معاف کړې شی، دې خلقو په کور باندې ناستې خلقو سره شامليدل اوغښتل خوالف د خالفة جمع ده يعنی هغه ښځې چې کوررونو کښې ناستې وی او د دوی په زړونو باندې تاپه لګولې شوی ده چې د هغې د وجه نه دوی د خير خبره نه پوهيږی، او د دې مقابله کښې رسول الله او هغه خلقو چې د هغوی سره ئې ايمان راوړو او په خپل مال او ځان سره ئې جهاد اوکړو په دنيا او آخرت کښې ټولې نيکئ د هغوی د پاره دی، او هم هغوی کاميابی مونده ونکی دی الله د دوی د پاره داسې باغونه تيار کړې دی چې په هغې کښې نهرونه بهيږی په هغه کښې به دوی هميشه اوسيږی، دا ده لوئې شان والا کاميابی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: المخلفون (تفعيل) اسم مفعول جمع مذکر غائب، روستو پاتې کړې شوی خلق، تخليف څوک روستو کول، روستو پريښودل، دلته هغه دولس سړی مراد دی چې په غزوه تبوک کښې د سستئ او د منافقت د وجه حضورپاک ﷺ سره نه ووتلی.

قوله: خلف رسول الله اي خلفه خلف ① يا خو د مفعول له کيدو د وجه منصوب دې ای قعدوا لمخالفته ② يا د حال کيدو د وجه منصوب دې ای مخالفين له ③ او د فعل مقدر د وجه هم منصوب کيدې شی ای تخلفوا خلاف رسول الله او دا هم جائز دی چې د ظرفيت د وجه منصوب وی ای بعد رسول الله، علامه سيوطی رحمه الله هم دا ترکيب اختيار کړې دې

قوله: بقعودهم دې سره ئې اشاره اوکړه چې مقعد مصدر ميمی دې نه چې ظرف.

قوله: وکرهوا ان يجاهدوا: ددې عطف په فرح المخلفون باندې دې اوان يجاهدو د کرهو مفعول دې

قوله: ما تخلفوا دا د لو جواب دې کوم چې محذوف دې

قوله: خبر عن حالهم دا دې سوال جواب دې چې الله تعالی د خندا حکم نه کوی حالانکه دلته فليضحكوا د امر صيغه استعمال شوې ده چې د هغې نه معلوميږی چې الله تعالی د ضحك (خندا) حکم فرمائيلې دې؟

جواب: جواب دا دې چې امر په معنی د خبر دې يعنی ددوی د حالت خبر ورکول مقصود

دی نه چې د خندا حکم ورکول.

**قوله: طائفة من القرآن،** دا دې خبرې ته اشاره ده چې دلته د سورت نه مراد پورا سورت مرادنه دې بلکه د قرآن یوحصه مراد ده،په دې کښې پوره اودهغې نه کم دواړه داخل دی.

**[ایاتونه: ۹۰-۹۳]**

{وَجَاءَ الْمُعَذِّرُونَ} بإدغام التاء في الذال في الأصل أي المعتذرون بمعنى المعذورين وقرئ به {مِنَ الْأَعْرَابِ} إلى النبي صلى الله عليه وسلم {لِيُؤْذَنَ لَهُمْ} في القعود لعذرهم فأذن لهم {وَقَعَدَ الَّذِينَ كَذَبُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ} في ادعاء الإيمان من منافقي الأعراب عن المجيء للاعتذار {سَيُصِيبُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ} {لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ} كالشيوخ {وَلَا عَلَى الْمَرْضَى} كالعمي والزمنى {وَلَا عَلَى الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يُنْفِقُونَ} في الجهاد {حَرَجٌ} إثم في التخلف عنه {إِذَا نَصَحُوا لِلَّهِ وَرَسُولِهِ} في حال قعودهم بعدم الإرجاف والتثبيط والطاعة {مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ} بذلك {مِنْ سَبِيلٍ} طريق بالمؤاخذة {وَاللَّهُ غَفُورٌ} لهم {رَحِيمٌ} بهم في التوسعة في ذلك {وَلَا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ} معك إلى الغزو وهم سبعة من الأنصار وقيل بنو مقرن {قُلْتَ لَا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ} حال {تَوَلَّوْا} جواب إذا أي انصرفوا {وَأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ} تسيل {مِنَ} للبيان {الدَّمْعِ حَزَنًا} لأجل {أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنْفِقُونَ} في الجهاد {إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ} في التخلف {وَهُمْ أَغْنِيَاءُ رَضُوا بِأَنْ يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطَبَعَ اللَّهُ عَلَى قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ} تقدم مثله

**ترجمه:** او راغلل عذر کوونکی حضورپاک ﷺ له د عربو څه باندچیان په اصل کښې د "تاء" په "ذال" کښې ادغام شوې دې یعنی معتذرین کښې او (معتذرون) په معنی د "معذورین" کښې دې او په یو قراءت کښې معتذرون هم لوستلې شوې دې،د پاره ددې چې دوی ته مدینه کښې د ناستې اجازت میلاو شی ددوی د عذر د وجه نه دوی ته اجازت ورکړې شو،اوباندچیان د منافقانو نه چې هغوی د ایمان په دعوی کښې الله او دهغه رسول ته ئې دروغ وئیلې دی،نو هغه د عذر نه هم کیناستل یعنی د عذر د پاره هم رانغلل هغوی نه چې چا کفر اوکړو دوی ته به دردناک عذاب ورسیږی او په کمزورو یعنی بوډاګانو او مریضانو باندې یعنی ړوند او شل او هغه خلقو باندې چا سره چې د جهاد خرچه نه وی د جهاد نه په روستو کیدو کښې هیڅ ګناه نشته په دې شرط چې دا خلق الله او د هغه رسول سره اخلاص اوساتی یعنی په کور کښې د ناستې په وخت کښې څه فتنه خوره نکړی او خلق د جهاد نه منع نکړی او عبادت کښې لګیا اوسی،په دې نیکانو باندې ددې ناستې د وجه د الزام څه لار نشته (نیول نشته) او الله دوی لره معاف کوونکې دې. په دې معامله کښې دوی ته وسعت ورکولو سره په دوی باندې رحم کوونکی دې،دغه شان په هغه خلقو هم الزام نشته چې تاسو ته راغلل چې تاسو دوی ته سورلۍ ورکړئ او خان سره ئې د غزوې د پاره بوځئی،او دا اووه انصار وو،او

ونيلې شوې دی چې دا د بنو مقرن خلق وو نو تا دوی ته اووئيل چې ما سره سورلئی نشته، او "قلت" د "اتوک" د ضمير نه حال دې،نو هغوی مجبورا واپس لاړل په داسې حال کښې چې د هغوی د سترګو نه اوخکښې روانې وې "من" بيانيه دې او هغوی ته ددې خبرې ډير غم وو چې هغوی سره ته هغه فراخوالې نشته چې هغه په جهاد کښې خرچ کړی البته الزام په هغه خلقو دې چې مالداره دی بيا هم تا ته د روستو پاتې کيدو درخواست کوی،دوی په کور کښې د ناستو ښځو کښې شامليدل خوښ کړل،او الله د دوی په زړونو باندې مهر لګولې دې ځکه اوس دوی هيڅ باندې نه پوهيږی داسې آيت مخکښې هم تير شوې دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله:المعذرون: (تعذير تفعل نه) اسم فاعل جمع مذکر،دروغو عذرونه پيش کونکی، مفسر علام د "معذرون" اصل "معتذرون" خودلو سره اشاره اوکړه چې "معذرون" د باب افتعال نه دې، په دغه وخت کښې به ددې معنی شی په حقيقت کښې معذور. "المعذرون" د باب افتعال نه ګرځولو کښې دوه مقصدونه دی اول داچې باب تفعيل متعدې دې حالانکه دلته غير متعدی استعمال شوې دې،د جواب حاصل دادې چې "معذرون" هم د باب افتعال نه دې په دې کښې "تاء" په "ذال" سره بدل شوه او "ذال" په "ذال" کښې ادغام کړې شو لهذا اوس څه اعتراض نشته. دويم دا شک هم ختم شو چې "عذّر" (تفعل) معنی ده "د دروغو عذر ښکاره کول" حالانکه راتلونکې خلق په خقيقت کښې معذور وو،دې شک لره په "المعتذرون" په معنی د معذورين، ددې ذکر په مخکښې جمله وقعد الذين کذبوا الخ کښې راروان دې.

قوله:الزمنی:دا د "زمانه" نه اغستلې شوې دې،ددې معنی ده "شل، ګوډ، عاجز"

قوله:ارجاف: افواه خورول،شر خورول، په مومنانو کښې بدخبر خورول.

قوله:بعدم الارجاف:د"نصحوا" متعلق دې.

قوله:التثبيط:منع کول، بندول

قوله:والطاعة: ددې عطف په عدم الارجاف باندې دې نه چې په ارجاف باندې لهذا اوس معنی صحيح شوه

قوله:حال: يعنى قلت لااجد د "اتوک" د کاف نه په تقدير د "قد" سره حال دې لهذا دا اعتراض ختم شو چې ماضی بغير د "قد" نه حال نه واقع کيږی.

پاره نمبر ۱۱ [يَعْتَذِرُوْنَ] [اياتونه: ۹۴ ـ ۹۹]

{يَعْتَذِرُونَ إِلَيْكُمْ} فِي التَّخَلُّف {إِذَا رَجَعْتُمْ إِلَيْهِمْ} مِنَ الْغَزْو {قُلْ} لَهُمْ {لَا تَعْتَذِرُوا لَنْ نُؤْمِنَ لَكُمْ} نُصَدِّقكُمْ {قَدْ نَبَّأَنَا اللّٰه مِنْ أَخْبَارِكُمْ} أَيْ أَخْبَرَنَا بِأَحْوَالِكُمْ {وَسَيَرَى اللّٰه عَمَلَكُمْ وَرَسُوله ثُمَّ تُرَدُّونَ}

بالبعث {إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ} أي الله {فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ} فيجازيكم عليه {سَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ إِذَا انْقَلَبْتُمْ} رجعتم {إِلَيْهِمْ} من تبوك انهم معذورون في التخلف {لِتُعْرِضُوا عَنْهُمْ} بترك المعاتبة {فَأَعْرِضُوا عَنْهُمْ إِنَّهُمْ رِجْسٌ} قذر لخبث باطنهم {وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ} {يَحْلِفُونَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ فَإِنْ تَرْضَوْا عَنْهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَرْضَىٰ عَنِ الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ} أي عنهم ولا ينفع رضاكم مع سخط الله {الْأَعْرَابُ} أهل البدو {أَشَدُّ كُفْرًا وَنِفَاقًا} من أهل المدن لجفائهم وغلظ طباعهم وبعدهم عن سماع القرآن {وَأَجْدَرُ} أولى {أَ} ن أي بأن {لَا يَعْلَمُوا حُدُودَ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ} من الأحكام والشرائع {وَاللَّهُ عَلِيمٌ} بخلقه {حَكِيمٌ} في صنعه بهم {وَمِنَ الْأَعْرَابِ مَنْ يَتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ} في سبيل الله {مَغْرَمًا} غرامة وخسرانا لأنه لا يرجو ثوابه بل ينفقه خوفا وهم بنو أسد وغطفان {وَيَتَرَبَّصُ} ينتظر {بِكُمُ الدَّوَائِرَ} دوائر الزمان أن تنقلب عليكم فيتخلص {عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ} بالضم والفتح أي يدور العذاب والهلاك عليهم لا عليكم {وَاللَّهُ سَمِيعٌ} لأقوال عباده {عَلِيمٌ} بأفعالهم {وَمِنَ الْأَعْرَابِ مَنْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ} كجهينة ومزينة {وَيَتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ} في سبيل الله {قُرُبَاتٍ} تقربه {عِنْدَ اللَّهِ وَ} وسيلة إلى {صَلَوَاتِ} دعوات {الرَّسُولِ} له {أَلَا إِنَّهَا} أي نفقتهم {قُرْبَةٌ} بضم الراء وسكونها {لَهُمْ} عنده {سَيُدْخِلُهُمُ اللَّهُ فِي رَحْمَتِهِ} جنته {إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ} لأهل طاعته {رَحِيمٌ} بهم

ترجمه: چې کله تاسو د غزوې نه واپس لاړ شئ نو دوی به د روستو پاتې کیدو قسمه قسم عذرونه پیش کوی، خو ته ورته اووایه چې بهانې مه کوئی مونږ ستاسو د خبرو اعتبار نه کوو، الله تعالی مونږ ته ستاسو حالات بیان کړې دې یعنی ستاسو د حالاتو ئې مونږ ته خبر راکړې دې اوس به الله او د هغه رسول ستاسو طرز عمل ته گوری بیا به د قبر نه د پاڅیدو نه پس تاسو داسې ذات طرف ته واپس کیږئی چې پټ او ښکاره باندې پوهیدونکې دې یعنی الله د طرف ته او هغه به تاسو ته اوښائی چې تاسو به څه کول، چې د هغې سزا به هغه تاسو ته درکړی، اوس چه تاسو د کله تبوک نه واپس کیدو نه پس د هغوی خوا له لاړ شئ نو هغوی به ستاسو مخکښې د الله قسمونه خوری چې مونږ په روستو پاتې کیدو کښې مغذوره وو، دې د پاره چې ته د خفگان اظهار پرېښودلو سره ددوی نه مخ واړوې نو ته د دوی نه مخ واړوه یعنی دوی سره تعلق ختم کړه دا خلق بالکل گنده دی د خبث باطن د وجې نه نجس دی او ددوی ځائې جهنم دې او دا د دوی د اعمالونو سزا ده، دوی دې د پاره قسمونه خوری چې تاسو دوی نه راضی شئ که چرې تاسو دوی نه راضی هم شئ نو الله د فاسقانو خلقو نه راضی کیږی نه، یعنی د دوی نه ستا رضامندی د الله د غضب په موجودگئ کښې به څه فائده ورنکړی اعرابی یعنی باندیچیان په کفر او منافقت کښې د سخت زړه او د طبیعت د سختئ او د قرآن د اوریدو نه د لرې کیدلو د وجې په نسبت د ښاریانو زیات سخت وی او دا خبره ډیره قیاس ته نزدې ده چې دوی دهغه حدودو (احکام) نه واقف نه وی کوم چې الله په خپل رسول باندې نازل کړې دی یعنی احکام او شرائع او

الله د خپل مخلوق نه خبردار او دوی سره د خپل کار په معامله کښې باحکمت دې او په دې بانديچيانو کښې بعضې داسې دی چې د الله په لار کښې خرچ کوی او دا جرمانه او نقصان گنړی ځکه چې دوی ددې د ثواب امید نه ساتی بلکه د ویرې د وجې نه خرچ کوی او دا بنو اسد او بنو عطفان دی، او دوی ستاسو د پاره دخراب وخت په انتظار کښې دی یعنی د زمانې بدلیدل په تاسو باندې په مصیبتونه سره راشی او دوی د چرچ کولو نه خلاصې اوموی، خراب وخت هم په دوی باندې پریوتونکې دې (السوء) د ضمې او فتحې سره دې یعنی عذاب اوهلاکت به په دوی باندې راځی نه چې په تاسو باندې الله د خپلو بندیگانو خبرو لره اوریدونکې او ددوی په عملونو باندې پوهیدونکې دې او بعضې بانديچيان داسې دی چې په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان راوړی لکه جهینه او مزینه او څه چې د الله په لار کښې خرچ کوی هغه د الله ته د نزدیکیدو ذریعه او د رسول د دعاء وسیله گنړی، یاد ساتئ چې ددوی دا خرچ د دوی د پاره د الله په وړاندې بې شک د رحمت واجب کونکې دې دوی به الله خامخا په خپل جنت کښې داخل کړی، الله تابعداری کونکو لره ډیر معاف کونکې او په دوی باندې رحم کونکې دې،

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: یعتذرون الیکم اذا رجعتم الیه:** دا جمله مستانفه ده الله په دې آیت کښې د منافقینو د راتلونکی حالاتو پیشن گوئی کړې ده چې کله منافقانو سره ستاسو ملاقات اوشی نو دوی به عذورنه پیش کوی دلته د (قل) مخاطب که رسول الله ﷺ وی ځکه چې ظاهره ده نو (کم) ضمیر جمع احتراما او تعظیما راوړلې شوې دې او د که (کم) ضمیر نه صحابه د رسول الله ﷺ مراد وی نو په خطاب کښې د حضور ﷺ خاص والې د مشر په حیثیت سره به وی.

**قوله: نصدقکم:** سره اشاره ده چې په (لکم) کښې لام زائده دې.

**قوله: ورسوله:** ددې عطف په لفظ الله باندې دې او په مینځ کښې د روئت مفعول ددې ښکاره کولو دپاره راوړې دې چې د اجر اوثواب اود سزا تعلق د الله تعالی روئت سره دې،

**قوله: الاعراب:** دا اسم جمع په صورت د جمع کښې دې دا د عرب جمع نه ده ځکه چې عرب، عربی ویونکو ته وائی، اگرچه هغه کلی وال وی یا ښاری، او (أعراب) د اعرابی جمع ده، کلی وال ته وائی.

**قوله: جفاء:** قساوت قلبی، ظلم او ستم

**قوله: الدوائر:** د دائرة جمع ده په معنی د بلاء، مصیبت، د زمانې اوریدل راوړیدل، د زمانې حوادث، مصیبتونه.

{وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ} وَهُمْ مَنْ شَهِدَ بَدْرًا أَوْ جَمِيعِ الصَّحَابَةِ {وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُمْ} إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ {بِإِحْسَانٍ} فِي الْعَمَلِ {رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ} بِطَاعَتِهِ {وَرَضُوا عَنْهُ} بِثَوَابِهِ {وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الْأَنْهَارُ} وَفِي قِرَاءَةٍ بِزِيَادَةِ مِن {خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ} {وَمِمَّنْ حَوْلَكُمْ} يَا أَهْلَ الْمَدِينَةِ {مِنَ الْأَعْرَابِ مُنَافِقُونَ} كَأَسْلَمَ وَأَشْجَعَ وَغِفَارٍ {وَمِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ} مُنَافِقُونَ أَيْضًا {مَرَدُوا عَلَى النِّفَاقِ} لَجُّوا فِيهِ وَاسْتَمَرُّوا {لَا تَعْلَمُهُمْ نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ سَنُعَذِّبُهُمْ مَرَّتَيْنِ} بِالْفَضِيحَةِ أَوِ الْقَتْلِ فِي الدُّنْيَا وَعَذَابِ الْقَبْرِ {ثُمَّ يُرَدُّونَ} فِي الْآخِرَةِ {إِلَىٰ عَذَابٍ عَظِيمٍ} هُوَ النَّارُ {وَ} قَوْمٌ {آخَرُونَ} مُبْتَدَأٌ {اعْتَرَفُوا بِذُنُوبِهِمْ} مِنَ التَّخَلُّفِ نَعْتُهُ وَالْخَبَرُ {خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا} وَهُوَ جِهَادُهُمْ قَبْلَ ذَٰلِكَ أَوِ اعْتِرَافُهُمْ بِذُنُوبِهِمْ أَوْ غَيْرُ ذَٰلِكَ {وَآخَرَ سَيِّئًا} وَهُوَ تَخَلُّفُهُمْ {عَسَى اللَّهُ أَنْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ} نَزَلَتْ فِي أَبِي لُبَابَةَ وَجَمَاعَةٍ أَوْثَقُوا أَنْفُسَهُمْ فِي سَوَارِي الْمَسْجِدِ لَمَّا بَلَغَهُمْ مَا نَزَلَ فِي الْمُتَخَلِّفِينَ وَحَلَفُوا أَنْ لَا يَحُلَّهُمْ إِلَّا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَلَّهُمْ لَمَّا نَزَلَتْ {خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ بِهَا} مِنْ ذُنُوبِهِمْ فَأَخَذَ ثُلُثَ أَمْوَالِهِمْ وَتَصَدَّقَ بِهَا {وَصَلِّ عَلَيْهِمْ} أَيِ ادْعُ لَهُمْ {إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ} رَحْمَةٌ {لَهُمْ} وَقِيلَ طُمَأْنِينَةٌ بِقَبُولِ تَوْبَتِهِمْ {وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ} {أَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ وَيَأْخُذُ} يَقْبَلُ {الصَّدَقَاتِ وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ التَّوَّابُ} عَلَى عِبَادِهِ بِقَبُولِ تَوْبَتِهِمْ {الرَّحِيمُ} بِهِمْ وَالِاسْتِفْهَامُ لِلتَّقْرِيرِ وَالْقَصْدُ بِهِ هُوَ تَهْيِيجُهُمْ إِلَى التَّوْبَةِ وَالصَّدَقَةِ {وَقُلِ} لَهُمْ أَوْ لِلنَّاسِ {اعْمَلُوا} مَا شِئْتُمْ {فَسَيَرَى اللَّهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُولُهُ وَالْمُؤْمِنُونَ وَسَتُرَدُّونَ} بِالْبَعْثِ {إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ} أَيِ اللَّهِ {فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ} فَيُجَازِيكُمْ بِهِ {وَآخَرُونَ} مِنَ الْمُتَخَلِّفِينَ {مُرْجَوْنَ} بِالْهَمْزِ وَتَرْكِهِ مُؤَخَّرُونَ عَنِ التَّوْبَةِ {لِأَمْرِ اللَّهِ} فِيهِمْ بِمَا يَشَاءُ {إِمَّا يُعَذِّبُهُمْ} بِأَنْ يُمِيتَهُمْ بِلَا تَوْبَةٍ {وَإِمَّا يَتُوبُ عَلَيْهِمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ} بِخَلْقِهِ {حَكِيمٌ} فِي صُنْعِهِ بِهِمْ وَهُمُ الثَّلَاثَةُ الْآتُونَ بَعْدُ مُرَارَةُ بْنُ الرَّبِيعِ وَكَعْبُ بْنُ مَالِكٍ وَهِلَالُ بْنُ أُمَيَّةَ تَخَلَّفُوا كَسَلًا وَمَيْلًا إِلَى الدَّعَةِ لَا نِفَاقًا وَلَمْ يَعْتَذِرُوا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَغَيْرِهِمْ فَوُقِفَ أَمْرُهُمْ خَمْسِينَ لَيْلَةً وَهَجَرَهُمُ النَّاسُ حَتَّى نَزَلَتْ تَوْبَتُهُمْ بَعْدُ {وَ} مِنْهُمْ {الَّذِينَ اتَّخَذُوا مَسْجِدًا} وَهُمُ اثْنَا عَشَرَ مِنَ الْمُنَافِقِينَ {ضِرَارًا} مُضَارَّةً لِأَهْلِ مَسْجِدِ قُبَاءَ {وَكُفْرًا} لِأَنَّهُمْ بَنَوْهُ بِأَمْرِ أَبِي عَامِرٍ الرَّاهِبِ لِيَكُونَ مَعْقِلًا لَهُ يَقْدَمُ فِيهِ مَنْ يَأْتِي مِنْ عِنْدِهِ وَكَانَ ذَهَبَ لِيَأْتِيَ بِجُنُودٍ مِنْ قَيْصَرَ لِقِتَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وَتَفْرِيقًا بَيْنَ الْمُؤْمِنِينَ} الَّذِينَ يُصَلُّونَ بِقُبَاءَ بِصَلَاةِ بَعْضِهِمْ فِي مَسْجِدِهِمْ {وَإِرْصَادًا} تَرَقُّبًا {لِمَنْ حَارَبَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ مِنْ قَبْلُ} أَيْ قَبْلَ بِنَائِهِ وَهُوَ أَبُو عَامِرٍ الْمَذْكُورُ {وَلَيَحْلِفُنَّ إِنْ} مَا {أَرَدْنَا} بِبِنَائِهِ {إِلَّا} الْفَعْلَةَ {الْحُسْنَىٰ} مِنَ الرِّفْقِ بِالْمِسْكِينِ فِي الْمَطَرِ وَالْحَرِّ وَالتَّوْسِعَةِ عَلَى الْمُسْلِمِينَ {وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ} فِي ذَٰلِكَ وَكَانُوا سَأَلُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُصَلِّيَ فِيهِ فَنَزَلَ {لَا تَقُمْ} تُصَلِّ {فِيهِ أَبَدًا} فَأَرْسَلَ جَمَاعَةً هَدَمُوهُ وَحَرَّقُوهُ وَجَعَلُوا مَكَانَهُ كُنَاسَةً تُلْقَى فِيهَا الْجِيَفُ {لَمَسْجِدٌ أُسِّسَ} بُنِيَتْ قَوَاعِدُهُ {عَلَى التَّقْوَىٰ مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ} وُضِعَ

يَوْمَ حَلَلْتَ بِدَارِ الْهِجْرَةِ وَهُوَ مَسْجِدُ قُبَاءَ كَمَا فِي الْبُخَارِيِّ {أَحَقُّ} مِنْهُ {أَنْ} أَيْ بِأَنْ {تَقُومَ} تُصَلِّيَ {فِيهِ فِيهِ رِجَالٌ} هُمُ الْأَنْصَارُ {يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ} أَيْ يُثِيبُهُمْ فِيهِ إِدْغَامُ التَّاءِ فِي الْأَصْلِ فِي الطَّاءِ رَوَى ابْنُ خُزَيْمَةَ فِي صَحِيحِهِ عَنْ عُوَيْمِرِ بْنِ سَاعِدَةَ أَنَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَاهُمْ فِي مَسْجِدِ قُبَاءَ فَقَالَ إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى قَدْ أَحْسَنَ عَلَيْكُمُ الثَّنَاءَ فِي الطُّهُورِ فِي قِصَّةِ مَسْجِدِكُمْ فَمَا هَذَا الطُّهُورُ الَّذِي تَطَهَّرُونَ بِهِ قَالُوا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا نَعْلَمُ شَيْئًا إِلَّا أَنَّهُ كَانَ لَنَا جِيرَانٌ مِنَ الْيَهُودِ وَكَانُوا يَغْسِلُونَ أَدْبَارَهُمْ مِنَ الْغَائِطِ فَغَسَلْنَا كَمَا غَسَلُوا وَفِي حَدِيثٍ رَوَاهُ الْبَزَّارُ فَقَالُوا نُتْبِعُ الْحِجَارَةَ بِالْمَاءِ فَقَالَ هُوَ ذَاكَ فَعَلَيْكُمُوهُ {أَفَمَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَى تَقْوَى} مَخَافَةٍ {مِنَ اللَّهِ وَ} رَجَاءِ {رِضْوَانٍ} مِنْهُ {خَيْرٌ أَمْ مَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَى شَفَا} طَرَفِ {جُرُفٍ} بِضَمِّ الرَّاءِ وَسُكُونِهَا جَانِبٍ {هَارٍ} مُشْرِفٍ عَلَى السُّقُوطِ {فَانْهَارَ بِهِ} سَقَطَ مَعَ بَانِيهِ {فِي نَارِ جَهَنَّمَ} خَيْرٌ تَمْثِيلٌ لِلْبِنَاءِ عَلَى ضِدِّ التَّقْوَى بِمَا يَئُولُ إِلَيْهِ وَالِاسْتِفْهَامُ لِلتَّقْرِيرِ أَيِ الْأَوَّلُ خَيْرٌ وَهُوَ مِثَالُ مَسْجِدِ قُبَاءَ وَالثَّانِي مثال مسجد الضرار {والله لايهدي القوم الظالمين} {لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمُ الَّذِي بَنَوْا رِيبَةً} شَكًّا {فِي قُلُوبِهِمْ إِلَّا أَنْ تَقَطَّعَ} تَنْفَصِلَ {قُلُوبُهُمْ} بِأَنْ يَمُوتُوا {وَاللَّهُ عَلِيمٌ} بِخَلْقِهِ {حَكِيمٌ} فِي صنعه بهم

ترجمه: هغه مهاجرين او انصار چا چې (د ايمان دعوت طرف ته) د ټولو نه مخکښې لبيک وئيلو کښې مخکښې والې اوکړو، او د هغه خلق دی چه غزوه بدر کښې شريک شوې وو يا ټول صحابه مراد دی. او هغه خلق چې په عمل کښې په صحيح طريقې سره د قيامت پورې د دوی په نقش قدم باندې روان وی الله تعالی د دوی د تابعدارئی نه راضی شو او هغوی د الله د اجر نه راضی شول، الله تعالی ددوی د پاره داسې باغونه تيار کړې دې چې په هغې کښې به نهرونه بهيږی، او په يو قرات کښې د (من) د زيات والی سره دې او دوی به په هغې کښې هميشه وی هم دا ډيره لويه کاميابی ده اې مدينې والو ستاسو ګير چاپيره چې کوم بانډيچيان اوسيږی په هغوی کښې ډير منافقان دی لکه اسلم، اشجع او غفار او د مدينې په اوسيدونکو کښې هم منافقان موجود دی چې په نفاق کښې ماهره او چالاک ته دوی نه پيژنې دا نبی ﷺ ته خطاب دې مونږ دوی پيژنو مونږ به ډير زر دوی ته د رسوائی يا د قتل په دنيا کښې او د عذاب قبر دوچنده عذاب ورکړو بيا به غټې سزا د پاره آخرت ته راوستې شی هغه اور دې او څه خلق نور دی چا چې د روستو پاتې کيدلو د قصور اعتراف اوکړو، آخرون مبتدأ ده (اعترفوا بذنوبهم) صفت دې (خلطوا عملا صالحا) خبر دې ددوی عمل مخلوط دې څه نيک دې او هغه نيک عمل د دې مخکښې د دوی په جهاد کښې شريکيدل دی او د خپل قصور اعتراف کول دی او څه بد او هغه ددوی د جهاد نه روستو پاتې کيدل دی د الله نه اميد دې چې ددوی توبه به قبوله کړی بې شکه الله ډير بخښونکې او ډير رحمت والا دې، دا آيت د ابولبابه او د يو جماعت په باره کښې نازل شوې دې چاچه د مسجد نبوی ﷺ په ستونو پورې ځان ترلې وو، هر کله چې

دوى ته پته اولږيده چې دا آيت خو د روستې پاتې كيدونكى خلقو په باره كښې نازل شوې دې او دوى قسم خوړلې وو چې دوى به سوا د نبى ﷺ نه څوک پرانيزې نه، چنانچه چې كله آيت نازل شو نو حضور ﷺ هغوى كولاؤ كړل او چې كله (خذ من اموالهم، الأية) نازل شو چې ته د دوى د مالونو نه صدقه واخله تاسو به دوى د دې په ذريعه د دوى د گناهونو نه پاک كړې چنانچه حضور ﷺ د دوى د مالونو دريمه حصه واخستله او هغه ئې صدقه كړه، او ته د دوى د پاره دعا كوه يقينا ستاسو دعا د دوى د پاره سبب د آرام دې يعنى د رحمت سبب دې او د دوى د توبې د قبليدو د پاره اطمينان دې الله ډير ښه اوريدونكې دې او ډير ښه پوهه دې، آيا دوى ته پته نه لږى چې الله تعالى د خپلو بندگانو توبه قبلوى دې او صدقات قبلوى، او بې شكه الله تعالى د خپلو بندگانو توبه قبولولو سره په دوى باندې رحم كونكې دې او استفهام د تقرير د پاره دې، د دې مقصد دوى په توبه او صدقاتو باندې آماده كول دى، اې نبى ﷺ ته دې منافقانو ته يا عام خلقو ته اووايه چې تاسو څه غوارئى عمل كوئى الله او د هغه رسول او مومنان تول به وگورى چې ستاسو عمل به اوس څه وى؟ او د قبر نه پاسيدلو په وجه به عالم الغيب او عالم الشهاده يعنى د الله طرف ته واپس كيږئى نو هغه به تاسو ته اووائى چې تاسو به څه كول، او هغه به ستاسو د عمل بدله دركړى، او روستو پاتې كيدونكو نه څه خلق نور هم دى چې د هغوى معامله د الله تعالى حكم راتلو پورې ايساره ده د هغوى باره كښې چې هغه څه حكم وركړى نو هغه به وى (مرجئون) د همزې او ترک د همزې سره په دواړه قسمه، يعنى د دوى توبه روستو كړې شوې ده يا خوبه بغير د توبې نه مرگ راوستلو سره دوى ته عذاب وركړى يا به د دوى توبه قبوله كړى او الله تعالى د خپل مخلوق په باره كښې ښه پوهيدونكې دې او دوى سره معامله كولو په باره كښې باحكمت دې او هغه درې دى چې د هغوى ذكر روستو راروان دې، مراره بن ربيع، كعب بن مالک او هلال بن اميه (دا درې واړه حضرات) د سستئ او د آرام غوښتلو په غرض روستو پاتې شوې وو، نه چې د منافقت د وجې، او نه د نورو پشان دوى د نبى ﷺ په مخكښې د دروغو بهانې پيش كړې چې د هغې د وجې نه د دوى معامله د پنځوسو ورځو پورې روستو شوه، او خلقو هم دوى سره تعلقات ختم كړل، (بائيكاټ ئې وكړو) تردې چه روستو بيا د دوى د توبې قبوليت نازل شو، او په دوى كښې څه خلق نور هم دى هغه دولس منافقان دى چاچې د مسجد قباء خلقو ته د نقصان رسولو او د كفر د پاره يو مسجد جوړ كړو ځكه چې هغه مسجد منافقانو د ابوعامر راهب په وينا سره جوړ كړې وو چې د هغه د پناه ځائې وى او د هغه طرف راتلونكې كس په دې كښې ايسار شى، او هغه د نبى ص) سره د جنگ د پاره د قيصرروم لښكر راغوښتلو د پاره تلې وو او د مسلمانانو په مينځ كښې د جدائې راوستلو د پاره چې به دوى كښې ځوک مسجد قباء كښې مونځ كوى نو څه مونځونه د دوى په مسجد ضرار

کښې هم ادا کړي (دغه شان به دمومنانو ټولګي خور شي) او دهغه کس د اوسېدلو انتظام اوکړي چې ددې مسجد د جوړېدلو نه مخکښې د الله او د هغه رسول سره په مقابله کښې وو او دا سړې هغه ابوعامر دې د چا چې ذکر اوشو او دوی به خامخا قسمونه خوری چې زمونږ مقصد خو صرف نیکی وه، چې هغه مسکین ته په باران او ګرمئ کښې سهولت ورکول دی او په مسلمانانو کښې فراخی راوستل دی خو الله ګواه دې چې دوی په دې معامله کښې مکمل دروغژن دی او دې خلقو نبی ﷺ ته درخواست کړې وو چې تاسو په د ې مسجد کښې مونځ اوکړئ نو دا آیت نازل شو ته په دې کښې هیڅ کله مونځ مه کوه چنانچه نبی ﷺ خو کسانو اولیږل او هغه ئې وران کړو او اور ئې ورته اولګولو، او هغه ځائې ئې دیران جوړ کړو چې هلته کښې مرداري غورزولې شي، کوم مسجد چې د اولنۍ ورځې نه په تقوی باندې جوړ دې په هغه ورځ باندې د ددې بنیاد کیخودلې شو چې په کومه ورځ (حضور) په دارالهجرت کښې قیام کړې وو، او هغه مسجد قباء دې، څنګه چې بخاری شریف کښې دی، نو هغه د دې د پاره زیات مناسب دې چې ته په هغې کښې مونځ اوکړې په دې کښې داسې خلق دی چې پاک اوسېدل غواړي او الله تعالی پاکی اختیارونکی خوښوی، یعنی هغوی ته به اجر ورکړی او په دې کښې د تاء په طاء کښې ادغام دې په اصل کښې ابن خزیمه په صحیح کښې دعویمر بن ساعده نه روایت نقل کړې دې، چې حضور ﷺ انصارو خواله مسجد قباء ته تشریف راوړو او ورته ئې اوفرمائیل چې الله تعالی د مسجد قباء په سلسله کښې ستاسو د پاکیزګئ تعریف کړې دې، نو اووایئ چې هغه طهارت څه دې کوم چې تاسو اختیار کړې دې؟ نو هغوی اوفرمائیل چې والله یارسول الله ﷺ مونږ ددې نه سوا بل څه نه پیژنو چې زمونږ په ګاونډ کښې څه یهودیان وو هغوی به اوبو سره استنجاء کوله نو مونږ هم د هغوی پشان کول شروع کړل او په یو حدیث کښې دی کوم چې بزار روایت کړې دې چې انصارو دا اوفرمائیل چې مونږ کاڼری د استنجاء نه پس اوبه استعمالوو، نو حضور ﷺ اوفرمائیل چې هم دغه خبره ده، او دا ځان سره مضبوطه اوساتئ، بیا ستاسو خیال څه دې چې بهتر انسان هغه دې چا چې خپل بنیاد د الله په ویره او د هغه د رضامندئ په امید باندې کیخودلې دې، یا هغه چا چې خپل بنیاد په یو ددې ژائې (غاړې) باندې کیخودلو کومه چې غورزیدلو والا ده؟ (جرف) د راء د ضمې او سکون سره دې په معنی د ژائې، نو هغه کناه (غاړه) خپل بانی سره جهنم ته پریوتله، دا په تقوی باندې د بناء تمثیل دې د خپل انجام په اعتبار سره، او استفهام د تقریر د پاره دې، یعنی اولنې سړې ښه دې او هغه د مسجد قباء مثال دې او دویم مثال د مسجد ضرار دې او الله تعالی ظالمانو ته هدایت نه ورکوی ددوی دا عمارت کوم چې دوی جوړ کړې دې ددوی په زړونو کښې شک، (شک به پیدا کوی) سوا ددې نه چې ددوی زړونه ټکرې ټکرې شی داسې چې دوی مړه شی، الله تعالی د خپل

مخلوق د حالاتو نه ښه خبردار دې او ددوی په معاملاتو کښې حکمت والا دې،

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** والسابقون الاولون من المهاجرين والانصار (الأية) ددې جملې ترکيب کوم چې راجع دې او ښکاره دې هغه دادې چې (السابقون) موصوف (الاولون) صفت، دواړه ملاويدو سره مبتدأ (من المهاجرين والانصار) حال، (والذين) معطوف په السابقون باندې، (اتبعوهم) د الذين صله، (باحسان) محذوف سره متعلق کيدو سره حال، (رضى الله عنهم ورضوا عنه) جمله د (السابقون) مبتدأ خبر، ددې نه علاوه بعضې حضراتو دوره نور ترکيبونه دوه کړې دی، خو صاحب اعراب القرآن هغه ضعيف بلکه غلط ګرځولې دی،
اولنی: (السابقون) مبتدأ او (الاولون) د هغې خبر.
دويم: (السابقون) مبتدأ او (من المهاجرين والانصار) ددې خبر،

**قوله:** من شهد بدرا او جميع الصحابة: په دې عبارت کښې په سابقين اولين کښې دوه قولو طرف ته اشاره ده.

**قوله:** وفي قراءة بزيادة من: اى تجرى من تحتها الانهر

**قوله:** مردوا: ماضی جمع مذکر غائب، اى تمرنوا عليه، هغوی ماهر او چالاک شول، د هر خير نه خالی شول، هم ددې نه (الشيطان المارد) دې، يعنی بدئ باندې کلک شو،

**قوله:** قوم: لفظ قوم مقدر منلو سره د دې سوال جواب ئې ورکړې دې چې د مبتدأ د پاره ذات کيدل ضروری دی حالانکه آخرون ذات نه دې بلکه وصف دې، قوم محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه چې آخرون صفت دې او د هغې موصوف کوم چې مبتدأ ده، قوم محذوف دې، لهذا هيڅ اعتراض نشته،

**قوله:** نعته: دا ددې شبهې جواب دې چې قوم آخرون نکره ده، او د نکرې مبتدأ واقع کيدل صحيح نه دی، ددې جواب ئې ورکړې دې چې (اعترفوا بذنوبهم) د قوم صفت دې، چې د هغې د وجې نه قوم نکره پاتې شوې نه ده، لهذا مبتدأ واقع کيدل صحيح دی.

**قوله:** سواري: دا د سارية جمع ده، ستنې ته وائی.

**قوله:** صدقة تطهرهم: تطهرهم د صدقة صفت دې، د (تطهر) ضمير (صدقة) ته راجع دې (تطهر) مضارع واحد مؤنث غائب صيغه ده او که (تطهرهم) د حاضر صيغه وی او مخاطب حضور ﷺ وی، نو (بها) تعلق به د (تطهر) او تزکيهم) دواړو سره وی. اى تطهرهم بها وتزکيهم بها.

**قوله:** مرجئون: په دې دويم قراءت بغير د همزې دې اى مؤخرون وموقوفون، مرجون ارجاءنه اسم مفعول جمع مذکر غائب، هغه خلق چې د چا معامله روستو کړې شوې وی.

قوله: ابي عامر: دا د حضرت حنظله ﷺ غسيل ملائكه پلار وو، ده عيساني مذهب اختيار كړي وو چې كله حضور ﷺ مدينې ته تشريف راوړو نو ده حضور ﷺ سره مناظره كړې وه.

قوله: معقلا: تهكانه، د پناه ځائې.

قوله: الفعلة: په دې لفظ اشاره ده، چې الحسنى صفت دې او ددې موصوف الفعلة يا الخصلة وغيره محذوف دې.

قوله: بالمسكين: په بعضې نسخو كښې د (بالمسكين) په ځائې (بالمسلمين) دې، كوم چې زيات مناسب دې.

قوله: شفا: كناره (غاړه، طرف)

قوله: جرف: د كوئى كچه ژائې، د ولې كناره، كومه اوبو خالي كړې وي.

قوله: هار: اسم فاعل، غورزيدلو ته نزدې. هور، هار اصل هاور يا هائر وو. د هاور واوء يا د (هائر) همزې لره په قلب مكاني سره د (راء) نه پس كړو. هاور يا هائر شو. بيا مو واؤ او همزه په (ياء) سره بدل كړل نو هاوير شو، د حالت جر د وجې نه ياء اوغورزيدله. بعضې حضراتو وئيلې دي چې د (هاور) واو او د (هائر) همزې لره مو بغير د نقل مكاني نه د تخفيف د پاره حذف كړو.

قوله: مع بانيه: په دې كښې اشاره ده چې په (به) كښې باء په معنى د (مع) دې نه چې سببيه.

قوله: خير: دا د (مَن) خبر دې

قوله: تمثيل للبناء بما يؤل اليه: د اليه مرجع سقوط ده، دا ددې بناء تمثيل دې كوم چې د تقوى په ضد كښې جوړه شوې ده يعنى مشبه به هغه عمارت دې چې په داسې ځائې باندې جوړ وي چې غورزيدو او زمكه كښې خښيدلو ته نزدې وي، او مشبه، ديني احكام او اعمال په كفر او په نفاق باندې مرتب كول دي.

قوله: ريبة: اي سبب ريبة.

**[اياتونه: ۱۱۱ ـ ۱۱۸]**

{إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم} بِاَنْ يَبْذُلُوهَا فِي طَاعَتِه كَالْجِهَادِ {بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ} جُمْلَة اسْتِئْنَاف بَيَان لِلشِّرَاءِ وَفِي قِرَاءَة بِتَقْدِيمِ الْمَبْنِيّ لِلْمَفْعُولِ أَيْ فَيُقْتَل بَعْضهمْ وَيُقَاتِل الْبَاقِي {وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا} مَصْدَرَانِ مَنْصُوبَانِ بِفِعْلِهِمَا الْمَحْذُوف {فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ وَمَنْ أَوْفَى بِعَهْدِهِ مِنَ اللَّهِ} أَيْ لَا أَحَد أَوْفَى مِنْهُ {فَاسْتَبْشِرُوا} فِيهِ اِلْتِفَات عَنْ الْغَيْبَة {بِبَيْعِكُمُ الَّذِي بَايَعْتُم بِهِ وَذَٰلِكَ} الْبَيْع {هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ} الْمُنِيل غَايَة الْمَطْلُوب {التَّائِبُونَ} رُفِعَ عَلَى الْمَدْح

بتقدير مبتدا من الشرك والنفاق {الْعَابِدُونَ} المخلصون العبادة لله {الْحَامِدُونَ} له على كل حال {السَّائِحُونَ} الصائمون {الرَّاكِعُونَ السَّاجِدُونَ} أي المصلون {الْآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنكَرِ وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللَّهِ} لأحكامه بالعمل بها {وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ} بالجنة ونزل في استغفاره صلى الله عليه وسلم لعمه ابي طالب واستغفار بعض الصحابة لأبويه المشركين {مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَن يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَىٰ} ذوي قرابة {مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ} النار بأن ماتوا على الكفر {وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَن مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَا إِيَّاهُ} بقوله سأستغفر لك ربي رجاء أن يسلم {فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِّلَّهِ} بموته على الكفر {تَبَرَّأَ مِنْهُ} وترك الاستغفار له {إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَأَوَّاهٌ} كثير التضرع والدعاء {حَلِيمٌ} صبور على الأذى {وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ إِذْ هَدَاهُمْ} للإسلام {حَتَّىٰ يُبَيِّنَ لَهُم مَّا يَتَّقُونَ} من العمل فلا يتقوه فيستحقوا الإضلال {إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ} ومنه مستحق الإضلال والهداية {إن الله له ملك السماوات وَالْأَرْضِ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَمَا لَكُم} أيها الناس {مِّن دُونِ اللَّهِ} أي غيره {مِن وَلِيٍّ} يحفظكم منه {وَلَا نَصِيرٍ} يمنعكم عن ضرره {لَّقَد تَّابَ اللَّهُ} أي أدام توبته {عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنصَارِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ فِي سَاعَةِ الْعُسْرَةِ} أي وقتها وهي حالهم في غزوة تبوك كان الرجلان يقتسمان تمرة والعشرة يعتقبون البعير الواحد واشتد الحر حتى شربوا الفرث {مِن بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيغُ} بالتاء والياء تميل {قُلُوبُ فَرِيقٍ مِّنْهُمْ} عن اتباعه إلى التخلف لما هم فيه من الشدة {ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ} بالثبات {إنه بهم رءوف رحيم} {وَ} تاب {عَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا} عن التوبة عليهم بقرينة {حَتَّىٰ إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ} أي مع رحبها أي سعتها فلا يجدون مكانا يطمئنون إليه {وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنفُسُهُمْ} قلوبهم للغم والوحشة بتأخير توبتهم فلا يسعها سرور ولا أنس {وَظَنُّوا} أيقنوا {أَن} مخففة {لَّا مَلْجَأَ مِنَ اللَّهِ إِلَّا إِلَيْهِ ثم تاب عليهم} وفقهم للتوبة {ليتوبوا إن الله هو التواب الرحيم}

**ترجمه:** حقيقت داده چې الله تعالی د مومنانو مالونه او د هغوی جانونه د جنت په بدله کښې اخستي دي په داسې طريقه چې دا د هغه په اطاعت کښې مثلا په جهاد کښې خرچ کړي هغوی د الله په لار کښې قتال کوی مره کوی او مره کيږي. (يقاتل) بيان د شراء د پاره جمله مستانفه ده. او په يو قراءت کښې يقتلون مجهول مقدم دې او (يقاتل) معروف مؤخر دې يعنی په دوی کښې بعضې قتلولې شي او باقی قتال کوی دوی سره د الله د طرف نه د جنت په تورات، انجيل او قرآن کښې پخه وعده ده. (وعدا، او حقا) دواړه دخپل فعل محذوف دوجه مصدر منصوب دی. او د الله نه زيات څوک خپله وعده پوره کونکې دې يعنی د هغه نه زيات څوک وعده پوره کولو والا نشته لهذا تاسو د هغه بيع په معامله کښې کومه چې تاسو کړې ده خوشحالې اوکړئ په دې کښې د غائب نه حاضر طرف ته التفات دې دا لويا کاميابی ده يعنی د اوچت مقصد حاصلول دی، هغه مجاهدين د شرک او نفاق نه توبه کونکی دی

(التائبون) مرفوع بالمدح ده د مبتدا تقدیر سره عبادت کونکی دی یعنی په اخلاص سره د الله تعالی عبادت کونکی دی او په هر حال کښې د هغه حمد بیانونکی دی روژه نیونکی دی رکوع سجده کونکی دی یعنی مونځ کونکی دی د نیکۍ حکم کونکی او د بدۍ نه منع کونکی دی او د الله په حکمونو باندې عمل کولو سره د الله حدودو حفاظت کونکی دی، او اې نبی ﷺ دې مومنانو ته د جنت خوشخبری واوروه. او راتلونکې آیت د نبی ﷺ د خپل تره ابوطالب د پاره او بعضې صحابه کرامو د خپل مشرک مور پلار د پاره استغفار کولو باره کښې نازل شو. د نبی د پاره او د هغه خلقو د پاره چې کومو ایمان راوړې دې مناسب نه دی چې د مشرکانو دپاره استغفار اوکړی اګر چې هغه ددوی رشته دار ولې نه وی. حال دا چې په دوی باندې دا خبره ښکاره شوې ده چې هغوی د جهنم مستحق دی، ددې وجه نه چې هغوی په کفر باندې مړه شوې دی. ابراهیم ﷺ چې د خپل پلار د پاره کوم استغفار کړې وو هغه ئې ددې وجې کړې وو چې هغه د خپل قول (ساستغفرک لک ربی) سره د استغفار وعده کړې وه، په دې امید باندې چې هغه به ایمان راوړی خو چې کله په هغوی باندې دا خبره ښکاره شوه چې د هغه پلار په کفر باندې دمړه کیدو د وجه نه د الله دشمن دې نو هغوی د بیزارۍ اظهار اوکړو او دهغه د پاره ئې د مغفرت دعا پریخودله، حقیقت دادې چې ابراهیم ﷺ ډیر زیات عاجزی کونکې او دعا کونکې او بردباره وو، په تکلیف باندې صبر کولو والا وو د الله تعالی دا طریقه نه ده چې خلقو لره د اسلام هدایت ورکولو نه پس ګمراه کړی تر دې چه صفا صفا هغوی ته او نه ښائی چې هغوی له د کومو کارونو نه بچ کیدل پکار دی. بیا هم که چرې دوی د هغې نه بچ نه شول نو هغوی به د ګمراهۍ قابل شی او په حقیقت کښې الله ته د هر څیز علم دې او هم په دې کښې مسحق کیدل د ګمراهۍ او هدایت دی. اودا هم واقعی خبره ده چې د آسمانونو او د زمکې د حکومت قبضه د الله په لاس کښې ده هم هغه ژوندی کول کوی او هم هغه مړه کول کوی، اې خلقو د الله نه سوا نه څوک ستاسو مددګار شته چې د هغه نه ستاسو حفاظت اوکړی او نه مددګار چې تاسو د هغه د تکلیف نه بچ کړی الله تعالی د مهاجرینو او انصارو په حال باندې توجو اوفرمائیله یعنی ددوی توبه ئې همشګیر کړه چا چې په سخته کښې د پیغمبر ملاتړی اوکړه ددوی دا حالت په غزوه تبوک کښې وو چې دوو کسانوبه یو کهجوره نیمه نیمه کړه او لس کسان به په یو اوښ باندې په نمبر نمبر سوریدل او د سختې ګرمۍ موسم وو، تردې چې د لری اوبه ئې هم اوسکلې اګرچې په دې کښې د څه خلقو زړونه د نبی علیه السلام د تابعدارئی نه د کوږوالی یعنی روستو پاتې کیدو طرف ته نزدې وه چه مائله شوی وو (تزیغ) د یا او تاء سره دې، څکه چې هغوی په دې وخت کښې ډیر په تکلیف کښې وو، بیا الله تعالی دوی ته ثابت قدمی ورکړه دوی طرف ته ئې توجه ورکړه الله تعالی په دوی باندې ډیر شفقت کونکې او مهربانه دې، او هغه درې واړه حضراتو طرف ته ئې هم توجه اوفرمائیله د چا چې توب-

روستو کړې شوې وه، دا معنی د (حتی اذا ضاقت) د قرینې د وجې ده. چې کله زمکه سره د پراخوالی په دوی باندې تنګه شوله نو دوی څه داسې ځاې نه موندلو کوم ځائې چې دوی ته اطمینان حاصل شی او د توبې روستو والې او د ډیر غم نه په دوی باندې خپل ځانونه هم درانه معلومیدل چې د هغې د وجه نه، نه د دوی په زړونو کښې خوشحالی وه او نه محبت، او هغوی یقین اوکړو چې د الله نه سوا بل د پناه ځائې نشته بیا الله تعالی د دوی طرف ته متوجه شو یعنی دوی ته ئې د توبې توفیق ورکړو چې دوی توبه اوکړی، یقینا الله ډیر معاف کونکې ډیر رحم کونکې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** بأن یبذلوها فی طاعته: دا یو تمثیل دې یعنی د مجاهدینو د خپل ځانونه او مالونه د الله په لار کښې د قربانولو په عوض کښې جنت ورکول ئې په شراء سره تعبیر کړو، لهذا حقیقة بیع او شراء کول ضروری نه دی.

**قوله:** جملة استیناف: دا د ماقبل سره د نه یوځائې کیدو د علت بیان دې.

**قوله:** فیقتل بعضهم ویقاتل الباقی: دا اضافه ددې سوال جواب دې چې د مجهول د مقدم کیدو په صورت کښې چې کله دوی قتل شی نو بیا دوی څنګه قتال کوی؟

**جواب:** حاصل دادې چې مسندالیه (جمیع مومنین) دی، یعنی چې کله په دوی کښې بعضې قتل شی نو نور په زړه بیلولو سره تختی نه، بلکه قتال کوی؟

**قوله:** مصدر منصوب بفعلهما المحذوف: یعنی (وعدا) او (حقا) د خپل خپل فعل محذوف د وجه نه منصوب دی تقدیری عبارت دادې وعدهم وعدا وحق الوعد حقا، او ددې قرینه شراء په معنی د وعد ده

**قوله:** رفع علی المدح: نه دا د مبتدأ د وجه نه مرفوع دې څنګه چې بعضې خلقو وئیلې دی ځکه چې په داسې صورت کښې به بغیر د ضرورت نه د خبر د حذف کیدو ضرورت راشی، د مرفوع بالمدح کیدو په صورت کښې هم اګرچې حذف لازم رازی. ، خو هغه د فائدې نه خالی نه وی کما هو الظاهر.

**قوله:** بتقدیر المبتدأ: او هغه (هم) دی

**قوله:** من الشرك والنفاق: دا دواړه د (التائبون) سره متعلق دی.

**قوله:** الصائمون: داد (السائحون) د معنی بیان دې، حضور ﷺ اوفرمائیل سیاحة امتی الصوم

**قوله:** ونزل فی استغفاره لعمه ابی طالب: خواجه ابی طالب چې کله ډیر بیمار شو نو حضور ﷺ هغه ته اوفرمائیل چې دا کلمه شهادت اووایه چې څه ددې په وجه د الله په وړاندې حجت پیش کړم خو هغه انکار اوکړو نو هغه وخت حضور ﷺ اوفرمائیل لا ازال

استغفرلك مالم انه عنه) (رواه الشيخان)؛ دغه شان د حضرت علی ﷺ نه روایت دې چې ما یو کس نه واوریدل چې هغه د مورپلار د پاره د مغفرت دعا کوی نو ما هغه ته اوښل چې ته د مورپلار د پاره د مغفرت دعا کوې حالانکه هغوی خو کافران وو، نو هغه کس اوښل چې ابراهیم ﷺ خو هم د خپل پلار د پاره د استغفار دعا کړې وه حالانکه د هغه پلار مشرک وو، دا واقعه د حضور ﷺ په مخکښې وراندې کړې شوه نو دا آیت نازل شو

**قوله:** اواه: دا د فعال په وزن سره د مبالغې صیغه ده، ډیر آه کولو والا، نرم زړه والا

**قوله:** ادام توبته: دا ددې سوال مقدر جواب دې چې د توبې قبلیدو د پاره مخکښې د گناه کار کول لازم دی ځکه چې د توبې قبولیت د گناه کولو نه فرع ده. حالانکه حضور ص خو د گناه نه پاک وو او صحابه هم په دې واقعه کښې د څه گناه کار کړې نه دې نو بیا د توبې د قبولیت څه مطلب شو؟

**جواب:** دوام او ثبات علی التوبة مراد دې.

**[ایاتونه: ۱۱۹ _ ۱۲۲]**

---

{يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ} بِتَرْكِ مَعَاصِيهِ {وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ} فِي الْإِيمَانِ وَالْعُهُودِ بِأَنْ تَلْزَمُوا الصِدق {مَا كَانَ لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ وَمَنْ حَوْلَهُمْ مِنَ الْأَعْرَابِ أَنْ يَتَخَلَّفُوا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ} إِذَا غَزَا {وَلَا يَرْغَبُوا بِأَنْفُسِهِمْ عَنْ نَفْسِهِ} بِأَنْ يَصُونُوهَا عَمَّا رَضِيَهُ لِنَفْسِهِ مِنَ الشَّدَائِدِ وَهُوَ نَهْيٌ بِلَفْظِ الْخَبَرِ {ذَلِكَ} أَيْ النَّهْيُ عَنِ التَّخَلُّفِ {بِأَنَّهُمْ} بِسَبَبِ أَنَّهُمْ {لَا يُصِيبُهُمْ ظَمَأٌ} عَطَشٌ {وَلَا نَصَبٌ} تَعَبٌ {وَلَا مَخْمَصَةٌ} جُوعٌ {فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا يَطَئُونَ مَوْطِئًا} مَصْدَرٌ بِمَعْنَى وَطْئًا {يَغِيظُ} يُغْضِبُ {الْكُفَّارَ وَلَا يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ} لِلَّهِ {نَيْلًا} قَتْلًا أَوْ أَسْرًا أَوْ نَهْبًا {إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ بِهِ عَمَلٌ صَالِحٌ} لِيُجَازَوْا عَلَيْهِ {إِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ} أَيْ أَجْرَهُمْ بَلْ يُثِيبُهُمْ {وَلَا يُنْفِقُونَ} فِيهِ {نَفَقَةً صَغِيرَةً} وَلَوْ تَمْرَةً {وَلَا كَبِيرَةً وَلَا يَقْطَعُونَ وَادِيًا} بِالسَّيْرِ {إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ} بِهِ عَمَلٌ صَالِحٌ {لِيَجْزِيَهُمُ اللَّهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} أَيْ جَزَاءَهُمْ وَلَمَّا وُبِّخُوا عَلَى التَّخَلُّفِ وَأَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً نَفَرُوا جَمِيعًا فَنَزَلَ {وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا} إِلَى الْغَزْوِ {كَافَّةً فَلَوْلَا} فَهَلَّا {نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ} قَبِيلَةٍ {مِنْهُمْ طَائِفَةٌ} جَمَاعَةٌ وَمَكَثَ الْبَاقُونَ {لِيَتَفَقَّهُوا} أَيْ الْمَاكِثُونَ {فِي الدِّينِ وَلِيُنْذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ} مِنَ الْغَزْوِ بِتَعْلِيمِهِمْ مَا تَعَلَّمُوهُ مِنَ الْأَحْكَامِ {لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ} عِقَابَ اللَّهِ بِامْتِثَالِ أَمْرِهِ وَنَهْيِهِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَهَذِهِ مَخْصُوصَةٌ بِالسَّرَايَا وَالَّتِي قَبْلَهَا بِالنَّهْيِ عَنْ تَخَلُّفِ أَحَدٍ فِيمَا إِذَا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

**ترجمه:**: اې ایمان والو په گناهونو پرېښودو سره د الله نه ویرېږئ او په ایمان او وعدو کښې رشتونی خلقو سره شئ په داسې طریقه چې تاسو رشتیا لازم اونیسئ د مدینې والو د پاره او ددې اطرافو باندیچیانو د پاره هیڅ کله مناسب نه ده چې د غزوه په وخت کښې د رسول الله ﷺ

نه روستو پاتې وی او نه دا مناسب دی چې خپل ځانونه د حضور ﷺ نه زيات خوښ اوګڼی په داسې طريقه چې خپل ځانونه د هغې سختو نه اوساتی چې کوم حضورپاک ﷺ د ځان د پاره خوښ کړې وی (لا يرغبون) د نهی په صورت کښې خبر دې،يعنی د روستوالی نه منع کول په دې وجه دی چې دوی ته د الله په لار کښې چې کومه تنده لګيدلې ده او چې کوم جسمانی تکليف ئې اوچت کړې دې او چې کومه لوږه هغوی ته د الله په لار کښې اولګيده اوچه هغوی يو داسې ځائې ته لاړل چه هغه دکافرانو دپاره موجب د غضب وی موطئا مصدر په معنی د وطأ دې اوکوم څه چه هغوی ته د دشمن د طرفه د قتل يا د قيد يا د لوټ په شکل کښې راغلې ده په دې ټولو باندې ددوی په نوم نيک عمل ليکلې شی چې دې عملونو باندې دوی ته بدله ورکړې شی يقينا الله تعالی د مخلصينو اجر ضائع کوی نه (اجر المحسنين ای اجرهم)بلکه دوی ته به بدله ورکولې شی او د الله په لاره کښې چې کوم څه دوی خرچ کړل که لږ وی او که ډير اګرچې يوه کهجوره ولې نه وی،او چې کومې واديانو باندې دوی تير شول نو دا چې هغه ددوی په اعمال نامو کښې اوليکلې شول چې الله تعالی ددوی د عملونو څه نه څه بدله ورکړی يعنی ددوی بدله، او چې کله روستو پاتې کيدونکو ته په روستو پاتې کيدو باندې غصه اوکړې شوه،او حضور ﷺ سريه روانه کړه نو ټول په ټوله اووتل،او دا راروان آيت نازل شواو مومنانو لره پکار نه دی چې ټول په ټوله د غزوې د پاره اوځی نو داسې دی ولې ونه کړې شی چې ددوی هر لوئې ډلې نه يو وړوکې جماعت لاړ شی او باقی ايسار شی دې د پاره چې دا روستو پاتې شوې د دين پوهه حاصله کړی او هرکله چې د غزوې نه هغه خلق دوی طرف ته واپس راشی نو هغوی ته دې تعليم ورکړی چې کوم احکام دوی حاصل کړې دی او هغوی دې ويروی دې د پاره چې هغوی د الله د عذاب نه په امر او نهی باندې عمل کولو سره ويريږی ابن عباس ﷺ فرمائی چې دا حکم سريه سره خاص دې او روستو آيت چې د روستو پاتې کيدو نه د منع کولو په باره کښې دې نو دا هغه وخت دې چې کله حضورپاک ﷺ هم د غزوې د پاره وتلې وی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: فى الايمان والعهود:** په دې کښې اشاره ده چې 'مع الصادقين' کښې د معيت نه مراد 'معيت فی الايمان' دې نه چې 'معيت فی المعاملات والمکان' ځکه چې د دې معيت هيڅ فائده نشته،ترسو چې ايمان نه وی.

**قوله: تلزموالصدق:** دا د معيت د طريقې بيان دې

**قوله: بأن يصونواالخ:** دا د حاصل معنی بيان دې په 'بانفسهم' کښې باء د تعديت ده مطلب دادې چې په کومو مصيبتونو او تکليفونو کښې ئې ځان اچولې دې او نبی عليه السلام ته چې کوم تکليفونه راځی نو تاسو په خپله د هغې نه د ځان د بچ کيدو کوشش مه کوئی

قوله: وهونهي بلفظ الخبر دا په طور د مبالغې دي

قوله: اي النهي: دا د "ذلک" دمرجع بيان دي او د نهی نه هغه نهی مراد ده چې کومه د ما کان لاهل المدينة الخ نه معلومېږی

قوله: مصدر بمعنى وطئا: يعنى موطئا دوطأ په معنى کښې مصدر ميمى دي نه چې ظرف

قوله: ولاينالون: اى لايصيبون وراندې راتلل، د سختوالى او د غم راتلل

قوله: نيلا: اى اصابة، اى يصيبون اصابة دا هر تکليف او مصيبت ته شامل دي

قوله: اي اجرهم: ددې اضافې مقصد د دى خبرې طرف ته اشاره ده چې په المحسنين کښې ضمير د "هم" په ځائې د دوى صفت احسان بيانولو دپاره راوړلې شې، ګنى اجرهم وئيل کافى وو، خو په هغې کښې به "دلالت على الاحسان" نه وو

قوله: ذلك: په دې کښې اشاره ده چې د "کتب" ضمير انفاق او قطع وادى دواړو طرف ته په تاويل راجع دې لهذا د عدم مطابقت اعتراض ختم شو.

قوله: لما وبخوا على التخليف: په دې کښې د راروان آيت "وما کان" سبب نزول طرف ته اشاره ده.

قوله: قبيلة، دفرقة تفسير په قبيلة کولو سره ئې اشاره اوکړه چې د فرقې نه مراد غټه ډله ده

قوله: مكث الباقون: په دې کښې اشاره ده چې د ليتفقهوا ضمير د محذوف متقلق دې نه چې د "نفر" لهذا دا اعتراض ختم شو چې غازيان به په جهاد کښې څنګه فقه حاصلوى،

قوله: والتى قبلها بالنهى عن التخلف الخ: ددې اضافې مقصد د دواړو آيتونو تعارض ختمول دى "ما کان لاهل المدينة الخ" کښې اوفرمائيلې شول چې يو کس له هم د غزوې نه پاتې کيدل جائز نه دى او وما كان المومنين لينفروا کښې ئې د ټولو د وتلو نه منع فرمائيلې ده، د دواړو آيتونو په مطلبونو کښې تعارض دې، التى قبلها الخ دې سره ددې اعتراض جواب دې، ددې حاصل دا دې چې مخکښې چې کزمه نهى ده، هغه په دې صورت کښې ده چې کله نفير عام (عام اعلان) وى او حضورپاک ﷺ په خپله هم تشريف يوسى او د لږ جماعت د وتلو او د لوئې جماعت په مدينه کښې د پاتې کيدو حکم په سرايا کښې دې، چې کله عام اعلان نه وى او حضورپاک ﷺ په خپله پکښې شريک نه وى.

**[اياتونه: ۱۲۳ـ۱۲۹]**

{يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَاتِلُوا الَّذِيْنَ يَلُوْنَكُمْ مِّنَ الْكُفَّارِ} أَيْ الْأَقْرَب فَالْأَقْرَب مِنْهُمْ {وَلْيَجِدُوْا فِيْكُمْ غِلْظَةً} شِدَّة أَيْ أَغْلِظُوا عَلَيْهِمْ {وَاعْلَمُوْٓا أَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ} بِالْعَوْنِ وَالنَّصْر {وَإِذَا مَآ أُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ} مِنَ الْقرآن {فَمِنْهُمْ} أَيْ الْمُنَافِقِيْنَ {مَّنْ يَّقُوْلُ} لِأَصْحَابِهِ اسْتِهْزَاء {أَيُّكُمْ زَادَتْهُ هٰذِهٖٓ إِيْمَانًا} تصديقا قال تعالى {فَأَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَزَادَتْهُمْ إِيْمَانًا} لِتَصْدِيقِهِمْ بِهَا {وَهُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ} يَفْرَحُونَ بِهَا {وَأَمَّا الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ

مَرَض} ضَعف اعتِقَاد {فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا اِلَى رِجْسِهِمْ} كُفرًا اِلَى كُفرِهِمْ لكفرهم بها {وماتوا وهم كافرون} {اَوَلَا يَرَوْنَ} بالياء اي المُنافِقُونَ وَالتَّاء اَيُّهَا المُؤمِنُونَ {اَنَّهُمْ يُفْتَنُوْنَ} يُبتَلَوْنَ {فِي كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً اَوْ مَرَّتَيْنِ} بِالقَحطِ وَالاَمرَاضِ {ثُمَّ لَا يَتُوْبُوْنَ} مِنْ نِفَاقِهِمْ {وَلَا هُمْ يَذَّكَّرُوْنَ} يَتَّعِظُونَ {وَاِذَا مَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ} فِيهَا ذِكرُهُمْ وَقَرَاَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {نَّظَرَ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ} يُرِيدُونَ الهَرَبَ يَقُولُونَ {هَلْ يَرٰىكُمْ مِّنْ اَحَدٍ} اِذَا قُمتُمْ فَاِنْ لَمْ يَرَهُمْ اَحد قَامُوا وَاِلَّا ثَبَتُوا {ثُمَّ انْصَرَفُوْا} عَلَى كُفرِهِمْ {صَرَفَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ} عَنِ الهُدَى {بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ} الحَقَّ لِعَدَمِ تَدَبُّرِهِمْ {لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ} اي مِنكُمْ مُحَمَّد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {عَزِيْزٌ} شَدِيد {عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ} اي عَنَتُكُمْ اي مَشَقَّتُكُمْ وَلِقَاؤُكُمُ المَكرُوه {حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ} اَنْ تَهتَدُوا {بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَءُوْفٌ} شَدِيد الرَّحمَة {رَّحِيْمٌ} يُرِيد لَهُمُ الخَيرَ {فَاِنْ تَوَلَّوْا} عَنِ الاِيمَانِ بِكَ {فَقُلْ حَسْبِيَ} كافي {اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ} بِهِ وَثِقتُ لَا بِغَيرِهِ {وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ} الكُرسِيّ {الْعَظِيْمِ} خَصَّهُ بِالذِّكرِ لِاَنَّهُ اَعظَمُ المَخلُوقَاتِ وَرَوَى الحَاكِمُ فِي المُستَدرَكِ عَنْ اُبَيِّ بْنِ كَعْب قَالَ آخِرُ آيَةٍ نَزَلَتْ {لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ} الى آخر السورة.

**ترجمه:** اې ايمان والو تاسو خپل ځان نه خوا و شا (نږدې) منكرانو كافرانو سره جنګ اوكړئ يعنى دوى سره د اقرب فالاقرب قاعدې مطابق په ترتيب سره او پكار دى چې دوى په تاسو كښې سختى ومومى يعنى تاسو دوى سره سخته رويه ساتئ او يقين اوساتئ چې الله د مدد او نصرت په ذريعه متقيانو سره دې او هر كله چې نوې سورت د قرآن نازليږى نو په دې منافقينو كښې څه خلق د حضور پاک ﷺ اصحابو پورې توقې كوى او وايه دې سورت په تاسو كښې د چا په ايمان كښې د تصديق زياتوالې اوكړو نو واورئې چې كوم خلق ايمان والا دى دې سورت د هغوى په ايمان كښې د دوى ددې تصديق كولو د وجه اضافه اوكړه او دوى خوشحاليږى يعنى ددې سورت په نازليدو سره خوشحاليږى او چې د كومو خلقو په زړونو كښې د كمزورى عقيدې مرض وى دې سورت د هغوى په ګندګۍ كښې نور هم د ګندګۍ اضافه اوكړه ددې سورت نه د انكار په وجه ددوى په كفر كښې نوره هم زياتوالې اوكړې شو او هغوى د كفر په حالت كښې مړه شول آيا دا منافقان نه ګورى (يرون) ياء او تاء سره ده اې مومنانو د دوى هر كال يو يا دوه ځل د اوچ سالئ او مرضونو د وجه ازميښت كولې شى خو دا خلق بيا هم د منافقت نه منع كيږى نه او نه دوى سبق اخلى او كله چې څه نوې سورت نازل شى نو يو بل ته ګورى يعنى د سترګو په اشارې سره خبرې كوى په اصل كښې دوى وتل غواړى په داسې حال چې دوى وائى چې تاسو په وتلو سره څوک خو وينى نه كه دوى ته څوک ګورى نه نو دوى پاسى لاړ شى ګنى ناست وى، بيا دا خلق واپس شول كفر طرف ته الله تعالى ددوى زړونه واړول د هدايت نه په سبب ددې چې دوى ناپوهه دى يعنى دوى د تدبر د نشتوالى د وجه حق نه پيژنى. تاسو ته يو داسې پيغمبر تشريف راوړې دې چې تاسو د جنس نه دې يعنى ستاسو نه دې او هغه محمد

ﷺ دي ستاسو په نقصان کښې غورزيدل په هغه باندې گرانه ده يعنى ستاسو تکليف او مشقت او تاسو ته يو ناخوښه کار راپيښيدل په هغه باندې گرانه ده ستاسو د کاميابئ هغه حريص دې دا چې تاسو په هدايت باندې راشئ او د ايمان والو د پاره ډير شفقت کونکې او مهربانه دې د هغوى د پاره خير غوارى اوس که چرې دا خلق په تا باندې ايمان راوړلو نه مخ اړوى نو ته ورته اووايه چې ځما د پاره الله تعالى کافى دې د هغه نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته دې ما هم په هغه باندې بهروسه کړې ده يعنى په هغه ځما اعتماد دې نه چې په بل چا باندې او د عرش عظيم کرسئ مالک دې، د عرش د ذکر کولو خاص والې ځکه دې چې هغه د اوچتو مخلوقاتو نه دې، حاکم په مستدرک کښې د ابى ابن کعب نه روايت کړې دې چې د ټولو آخره کښې نازل شوې آيت لقد جاءکم رسول.. الخ دې..

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: يلونكم: دولى نه جمع مذکر غائب، هغه څوک چې تاسو ته نزدې دى.

قوله: اي اغلظوعليهم: دا عبارت د يو سوال مقدر جواب دې

سوال: دا دې چې "وليجدوا" دا کافرانو ته حکم دې چې هغوى دى په مسلمانانو کښې کلکوالې او سختې اومومى حالانکه په کافرانو باندې د سختوالى موندل واجب نه دى

جواب: د خو په ظاهره کافرانو ته حکم دې خو په حقيقت کښې مومنانو ته دې، په آيت کښې سبب ذکر دې خو مسبب مراد دې،

قوله: يقولون الخ

سوال: د يقولون مقدر گڼړلو څه ضرورت راغلو؟

جواب: چونکه د "هل يراکم" نه مخکښې په "نظر بعضهم الى بعض" کښې په ښکاره څه جوړ نه وو ځکه چې "هل يراکم" حاضر دې او "نظر بعضهم الى بعض" غائب، په دې کښې ربط پيدا کولو د پاره د "يقولون" محذوف منلو ضرورت راغلو.

قوله: من احد: اى من المسلمين.

قوله: صرف الله: په اصل کښې د منافقينو د پاره خيرې دى ځکه دا د مقام مناسب دې نه چې خبر.

قوله: بأنهم قوم لا يفقهون: دا د انصرفوا متعلق دې نه چې د "صرف الله" ځکه چې دا جمله معترضه دعائيه ده.

قوله: منکم اي من جنسکم: اى عربى قريشى مثلکم

قوله: اي عنتکم: په دې کښې اشاره ده چې ما عنتم کښې "ما" مصدريه ده، نه چې موصوله، په دې کښې د عائد ضرورت نه وى ځکه د عائد د نه ذکر کولو اعتراض ختم شو.

## [ ۱۰ ] سورۃ یونس

**سورة يونس مكية الا فإن كنت في شك الايتين او الثلث او ومنهم من يومن به الاية مائة وتسع او عشر ايات**

سورة یونس مکی دي بغیر د فإن كنت في شك، دوه آیتونو یا دریو آیتونو نه، یا ومنهم من يؤمن به، یو آیت، یوسل نهه یا یوسل لس آیتونه دي.

**[ ایاتونه: ۱-۱۰ ]**

بسم الله الرحمن الرحيم {الر} الله أعلم بمراده بذلك {تِلْكَ} أي هذه الآيات {آيَاتُ الْكِتَابِ} القرآن والإضافة بمعنى من {الْحَكِيمِ} المحكم {أَكَانَ لِلنَّاسِ} أي أهل مكة استفهام إنكار والجار والمجرور حال من قوله {عَجَبًا} بالنصب خبر كان وبالرفع اسمها والخبر وهو اسمها على الأولى {أَنْ أَوْحَيْنَا} أي إيحاؤنا {إِلَىٰ رَجُلٍ مِنْهُمْ} محمد صلى الله عليه وسلم {أَنْ} مفسرة {أَنْذِرِ} خوف {النَّاسَ} الكافرين بالعذاب {وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا أَنَّ} أي بأن {لَهُمْ قَدَمَ} سلف {صِدْقٍ عِنْدَ رَبِّهِمْ} أي أجرا حسنا بما قدموه من الأعمال {قَالَ الْكَافِرُونَ إِنَّ هَٰذَا} القرآن المشتمل على ذلك {لَسِحْرٌ مُبِينٌ} بين وفي قراءة لساحر والمشار إليه النبي صلى الله عليه وسلم إن ربكم الله الذي خلق السماوات والأرض في ستة أيام} من أيام الدنيا أي في قدرها لأنه لم يكن ثم شمس ولا قمر ولو شاء لخلقهن في لمحة والعدول عنه لتعليم خلقه التثبت {ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ} استواء يليق به {يُدَبِّرُ الْأَمْرَ} بين الخلائق {مَا مِنْ} صلة {شَفِيعٍ} يشفع لأحد {إِلَّا مِنْ بَعْدِ إِذْنِهِ} رد لقولهم إن الأصنام تشفع لهم {ذَٰلِكُمُ} الخالق المدبر {اللَّهُ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ} وحدوه {أَفَلَا تَذَكَّرُونَ} بإدغام التاء في الأصل في الذال {إِلَيْهِ} تعالى {مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا} مصدران منصوبان بفعلهما المقدر {إِنَّهُ} بالكسر استئنافا والفتح على تقدير اللام {يَبْدَأُ الْخَلْقَ} أي بدأه بالإنشاء {ثُمَّ يُعِيدُهُ} بالبعث {لِيَجْزِيَ} يثيب {الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ بِالْقِسْطِ وَالَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ شَرَابٌ مِنْ حَمِيمٍ} ماء بالغ نهاية الحرارة {وَعَذَابٌ أَلِيمٌ} مؤلم {بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ} أي بسبب كفرهم {هُوَ الَّذِي جَعَلَ الشَّمْسَ ضِيَاءً} ذات ضياء أي نور {وَالْقَمَرَ نُورًا وَقَدَّرَهُ} من حيث سيره {مَنَازِلَ} ثمانية وعشرين منزلا في ثمان وعشرين ليلة من كل شهر ويستتر ليلتين إن كان الشهر ثلاثين يوما أو ليلة إن كان تسعة وعشرين يوما {لِتَعْلَمُوا} بذلك {عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ مَا خَلَقَ اللَّهُ ذَٰلِكَ} المذكور {إِلَّا بِالْحَقِّ} لا عبثا تعالى عن ذلك {يُفَصِّلُ} بالياء والنون يبين {الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ} يتدبرون {إِنَّ فِي اخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ} بالذهاب والمجيء والزيادة والنقصان {وَمَا خَلَقَ اللَّهُ فِي السَّمَاوَاتِ} من ملائكة وشمس وقمر ونجوم وغير ذلك {و} في {الْأَرْضِ} من حيوان وجبال وبحار وأنهار وأشجار وغيرها {لَآيَاتٍ} دلالات على قدرته تعالى {لِقَوْمٍ يَتَّقُونَ} ه فيؤمنون خصهم بالذكر لأنهم المنتفعون بها {إِنَّ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا} بالبعث {وَرَضُوا بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا} بدل الآخرة لإنكارهم لها {وَاطْمَأَنُّوا بِهَا} سكنوا إليها {وَالَّذِينَ هُمْ عَنْ آيَاتِنَا} دلائل وحدانيتنا {غَافِلُونَ} تاركون النظر فيها

{أُولَئِكَ مَأْوَاهُمُ النَّارُ بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ} مِنَ الشرك والمعاصي {إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ يَهْدِيهِمْ} يُرْشِدُهُمْ {رَبُّهُمْ بِإِيمَانِهِمْ} بِهِ بِأَنْ يَجْعَلَ لَهُمْ نُوْرًا يهتدون به يوم القيامة {تجري من تحتهم الأنهار في جنات النعيم} {دَعْوَاهُمْ فِيهَا} طَلَبُهُمْ يَشْتَهُونَهُ فِي الْجَنَّةِ أَنْ يَقُولُوا {سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ} أَيْ يَا اللّٰهُ فَإِذَا مَا طَلَبُوهُ وَجَدُوهُ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ {وَتَحِيَّتُهُمْ} فِيمَا بَيْنَهُمْ {فِيهَا سَلَامٌ وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ} مُفَسِّرَةٌ {الحمد لله رب العالمين}

ترجمه: شروع کوم د الله په نوم چې ډير مهربانه او ډير رحم والا دې الر، ددې په مراد باندې الله تعالى ښه پوهيږي دا محکم کتاب يعنی د قرآن آيتونه دی په "آيت الکتاب" کښې اضافت په معنی د "من" دې آيا دې خلقو ته يعنی د مکې اوسيدونکو ته ددې خبرې نه حيراتيا اوشوه استفهام انکاری دې او جار مجرور ددې قول "عجبا" نه حال دې عجبا په نصب سره د "کان" خبر دې او په رفع سره د کان اسم دې او خبر "ان اوحينا الخ" دې او "اوحينا" رومبې اسم دې يعنی د نصب په صورت کښې ان اوحينا، ايحاونا، د مصدر په معنی کښې دې چې مونږ په دوی کښې يو کس محمد ﷺ ته وحی اوليږله چې خلقو کافرانو لره د عذاب نه اويروی "ان" مفسره ده او چې کومو خلقو ايمان راوړې دې هغوی ته زيرې واوروی چې ددوی د پاره ددوی د رب سره رشتنی عزت دې يعنی ددوی د اعمالو ښه بدله ده کافرانو اوئيل چې دا قرآن چې په ويرولو او زيرې ورکولو باندې مشتمل دې بې شکه ښکاره جادو دې او په يو قرآت کښې لساحر دې، په دې صورت کښې به د "ذلک" مشارالیه حضور پاک ﷺ وی حقيقت دا دې چې ستاسو رب هغه الله دې چاچې اسمانونه او زمکه لره د دنيا د ورځو په اعتبار سره په شپږو ورځو کښې يعنی ددې په مقدار کښې پيدا کړل ځکه چې هغه وخت نور او سپوږمئ نه وه،که چرې الله تعالى غوښتله نو په يو لمحه کښې به ئې پيدا کړې وو خو په داسې نه کولو کښې مخلوق ته د جلدئ د نه کولو تعليم ورکول مقصود وو بيا ئې د حکومت په تخت باندې ئې استواء اوکړه ځنګه چې د هغه د شان سره ښائی هغه د مخلوق د هريو کار تدبير کوی څوک د چا سفارش کولې نشی خو د هغه په اجازت سره "من شفيع" کښې "من" زائد دې دا د کافرانو د هغه عقيدې رد دې چې بتان به ددوی سفارش کوی دغه خالق تدبير کونکې الله ستاسو رب دې صرف د هغه عبادت کوئ آيا تاسو ددې دليلونو آوريدو نه پس هم نه پوهيږئ "تذکرون" کښې په اصل کښې د تاء په ذال کښې ادغام شوې دې ستاسو تولو الله تعالى له ورتلل دی هغه رشتونې وعده کړې ده (وعدا او حقا) دواړه مصدرې دی چې د فعل مقدر د وجه نه منصوب دی بې شکه "انه" کسرې سره دې د استيناف د وجې نه، او فتح د لام د تقدير په صورت کښې ده ،هغه په اول ځل پيدا کوی يعنی هغه په پيدا کولو کښې شروع کړې ده بيا د بعث په ذريعه به دوباره پيدا کوی دې د پاره چې هغه خلقو ته چې ايمان ئې راوړو او

نیک عملونه ئې اوکړل، په انصاف سره بدله ورکړی او چې کومو خلقو کفر اوکړو هغوی ته به د څکلو د پاره ډیرې ګرمې اوبه میلاویږی یعنی په ګرم والی کښې به آخری حد ته رسیدلې وی او درد ناک عذاب به وی ددوی د کفر د وجه نه یعنی ددوی د کفر په وجه به دوی ته سزا ورکولې شی هغه ذات چا چې نور روښانه جوړ کړو یعنی رڼرا والا او چمکدار ئې جوړ کړو او سپوږمۍ ته ئې نور ورکړو او د سپوږمۍ د پاره ئې د هغې د رفتار په اعتبار سره په هره میاشت کښې په اته ویش شپو کښې اته ویش منزلونه جوړ کړل او دوه شپې پټه وی که چرې میاشت د دیرشو ورځو وی، او یو شپه پټه وی که میاشت د یوکم دیرشو وی ددې پاره چې په دې سره تاسو د کالونو او تاریخونو حساب معلوم کړئ الله تعالی دا هرڅه د یو مقصد د پاره جوړ کړې دی نه چې بې فائدې، الله تعالی ددې نه پاک دې هغه نښې ښکاره بیانوی د غور او فکر کونکی قوم د پاره یقینا د شپې او ورځې په اوړیدو راوړیدو کښې یعنی په تلو راتلو کښې او غټیدلو او وړه کیدلو کښې او په هر هغه څیز کښې چې هغه په آسمانونو کښې پیدا کړې دی مثلا فرشتې، نور، ستوری، سپوږمۍ وغیره او چې په زمکه کښې ئې پیدا کړل مثلا څناور، غرونه، دریابونه، نهرونه او اونې وغیره یقینا د الله تعالی په قدرتونو باندې دلالت کونکی نښې دی د الله نه ویریدونکی خلقو د پاره چې هغوی ایمان راوړی او خاص کر د متقیانو ذکر ئې اوکړو څکه چې دغه خلق د دې نښو نه فائده حاصلوی حقیقت دادې چې کومو خلقو ته دوباره ژوندی کولو په ذریعه زمونږ د ملاقات امید نشته او هغوی د آخرت نه د انکار کولو په وجه د آخرت په بدله کښې د دنیا په ژوند باندې راضی شول او په هغې مطمئن شول یعنی دې سره ئې زړه اولګولو او هغه خلق چې زمونږ وحدانیت باندې دلالت کونکی زمونږ د آیتونو نه غافله دی یعنی دوی د غور او فکر پریښودونکی دی د داسې خلقو ځائې ددوی د شرکی کارونو او ګناهونو د وجه جهنم دې یقینا هغه خلق چې ایمان ئې راوړو او نیک عملونه ئې اوکړل ددوی رب به ددوی د نیک عملونو په وجه ددوی رهنمائی کوی په داسې طریقه چې دوی ته د نور ورکړی چې د هغې د وجه به دوی د قیامت په ورځ خپل مقصد ته ورسی په ډک جنتونو باغونو کښې به وی چې د هغې د لاندې به نهرونه بهیږی او ددوی د طلب (طریقه) په جنت کښې چې د کوم څیز غوښتنه کوی سبحانک اللهم به وی یعنی اې الله، او کله چې دوی هغه څیز اوغواړی نو ددوی مخکښې به موجود وی او ددوی خپلو کښې سلام په جنت کښې به "السلام علیکم" وی، او ددوی آخری خبره به الحمدلله رب العالمین وی ان مفسره دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: حال من قوله عجبا للناس:** په اصل کښې د محذوف سره متعلق دی او بیا د "عجبا" صفت دې او صفت چې کله په موصوف باندې مقدم وی نو هغې ته حال وئیلې شی څکه

چې د صفت په موصوف باندې مخکښې کول صحیح نه دی او نه للناس د عجبا سره متعلق دې ځکه چې د مصدر عامل کمزورې وی په خپل ماقبل کښې عمل نه کوی، عجبا د کان خبر مقدم دې، او ان اوحینا د کان اسم مؤخر دې، تقدیری عبارت دادې اکان ایحاؤنا عجبا للناس، او عجب د رفع سره هم لوستلې شوې دې په دې صورت کښې به عجب د کان اسم وی او ان اوحینا چې کوم د نصب په صورت کښې اسم وو، هغه به د رفع په صورت کښې خبر وی، او ابن مسعود ﷺ عجب مرفوع د کان تامه منولو سره لوستلې دې، او ان اوحیناء د عجب نه بدل گرځولې دې.

**قوله:** قدم صدق: دا د اضافت موصوف الی الصفت د قبیلې نه دې لکه چې په مسجد الجامع کښې قدم په معنی د مرتبې، عزت، د تیرشوې نیک عمل ښه اثر، مفسر د قدم تفسیر په سلف سره کولو سره دې معنې طرف ته اشاره کړې ده، علامه سیوطی اجرا حسنا بما قدموا من الاعمال وئیلو سره دغه معنی مراد اخستلې ده.

**فائده:** مخکښې والې چونکه د قدم د وجه کیږی، سابقه ته قدم وئیلی کیږی ځنګه چې نعمت ته ید وئیلې کیږی، د "قدم" صدق" طرف ته اضافت د د زیادت فضیلت د پاره دې، یا دې د پاره چې د صدق مقام د صدق خبرې سره حاصلیږی.

**قوله:** مذکور: د ذلک تفسیر د مذکور سره کولو کښې د یو سوال مقدر جواب ورکول مقصود دی.

**سوال:** دادې چې مخکښې د نور اوسپوږمئی ذکر دې نو اسم اشاره تثنیه راوړل پکار وو، حالانکه ذلک ئې مفرد راوړې دې؟

**جواب:** حاصل دادې چې د مذکور په معنی کښې اخستلو د وجه ئې ذلک مفرد راوړو.

**قوله:** ان اللذین امنو: الخ یهدیهم د "ان" خبر اول دې او تجری من تحتهم الانهر دویم خبر دې او فی جنت دریم خبر دې.

**قوله:** سبحنک اللهم: یعنی جنتیان چې کله د یو خوښ څیز ارمان اوکړې نو د د غوښتلو طریقه به ئې دا وی چې اللهم به وائی نو فورا به هغه غوښتلې شوې څیز موجود شی اللهم چونکه کلمه د نداء ده، لهذا دعاء په معنی د غوښتلو به وی،

**قوله:** اذا ما طلبوا بین ایدیهم: اذا مفاجاتیه ده، یعنی جنتیان چې کله د یو څیز خواهش وکړی نو هغوی به سبحانک اللهم او وائی نو فورا به هغه څیز حاضر شی

**قوله:** ذات ضیاء: ددې اضافې مقصد د الشمس ضیاء حمل صحیح دی، ځکه چې ضیاء مصدر دې ددې حمل په ذات باندې صحیح نه دې.

[ایاتونه: ۱۱ - ۲۰]

وَنَزَلَ لَمَّا اسْتَعْجَلَ الْمُشْرِكُونَ الْعَذَابَ {وَلَوْ يُعَجِّلُ اللَّهُ لِلنَّاسِ الشَّرَّ اسْتِعْجَالَهُمْ} أَيْ كَاسْتِعْجَالِهِمْ {بِالْخَيْرِ لَقُضِيَ} بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ وَالْفَاعِلِ {إِلَيْهِمْ أَجَلُهُمْ} بِالرَّفْعِ وَالنَّصْبِ بِأَنْ يُهْلِكَهُمْ وَلَكِنْ يُمْهِلُهُمْ {فَنَذَرُ} نَتْرُكُ {الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ} يَتَرَدَّدُونَ مُتَحَيِّرِينَ {وَإِذَا مَسَّ الْإِنْسَانَ} الْكَافِرَ {الضُّرُّ} الْمَرَضُ وَالْفَقْرُ {دَعَانَا لِجَنْبِهِ} أَيْ مُضْطَجِعًا {أَوْ قَاعِدًا أَوْ قَائِمًا} أَيْ فِي كُلِّ حَالٍ {فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُ ضُرَّهُ مَرَّ} عَلَى كُفْرِهِ {كَأَنْ} مُخَفَّفَةٌ وَاسْمُهَا مَحْذُوفٌ أَيْ كَأَنَّهُ {لَمْ يَدْعُنَا إِلَى ضُرٍّ مَسَّهُ كَذَلِكَ} كَمَا زُيِّنَ لَهُ الدُّعَاءُ عِنْدَ الضُّرِّ وَالْإِعْرَاضُ عِنْدَ الرَّخَاءِ {زُيِّنَ لِلْمُسْرِفِينَ} الْمُشْرِكِينَ {مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} {وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا الْقُرُونَ} الْأُمَمَ {مِنْ قَبْلِكُمْ} يَا أَهْلَ مَكَّةَ {لَمَّا ظَلَمُوا} بِالشِّرْكِ {وَ} قَدْ {جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ} الدَّالَّاتِ عَلَى صِدْقِهِمْ {وَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا} عَطْفٌ عَلَى ظَلَمُوا {كَذَلِكَ} كَمَا أَهْلَكْنَا أُولَئِكَ {نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ} الْكَافِرِينَ {ثُمَّ جَعَلْنَاكُمْ} يَا أَهْلَ مَكَّةَ {خَلَائِفَ} جَمْعُ خَلِيفَةٍ {فِي الْأَرْضِ مِنْ بَعْدِهِمْ لِنَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ} فِيهَا وَهَلْ تَعْتَبِرُونَ بِهِمْ فَتُصَدِّقُوا رُسُلَنَا {وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا} الْقُرْآنُ {بَيِّنَاتٍ} ظَاهِرَاتٍ حَالٌ {قَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا} لَا يَخَافُونَ الْبَعْثَ {ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هَذَا} لَيْسَ فِيهِ عَيْبُ آلِهَتِنَا {أَوْ بَدِّلْهُ} مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِكَ {قُلْ} لَهُمْ {مَا يَكُونُ} يَنْبَغِي {لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِنْ تِلْقَاءِ} قِبَلِ {نَفْسِي إِنْ} مَا {أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَى إِلَيَّ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي} بِتَبْدِيلِهِ {عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ} هُوَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ {قُلْ لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا تَلَوْتُهُ عَلَيْكُمْ وَلَا أَدْرَاكُمْ} أَعْلَمَكُمْ {بِهِ} وَلَا نَافِيَةٌ عَطْفٌ عَلَى مَا قَبْلَهُ وَفِي قِرَاءَةٍ بِلَامٍ جَوَابُ لَوْ أَيْ لَأَعْلَمَكُمْ بِهِ عَلَى لِسَانِ غَيْرِي {فَقَدْ لَبِثْتُ} مَكَثْتُ {فِيكُمْ عُمُرًا} سِنِينَ أَرْبَعِينَ {مِنْ قَبْلِهِ} لَا أُحَدِّثُكُمْ بِشَيْءٍ {أَفَلَا تَعْقِلُونَ} أَنَّهُ لَيْسَ مِنْ قِبَلِي {فَمَنْ} أَيْ لَا أَحَدَ {أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ كَذِبًا} بِنِسْبَةِ الشَّرِيكِ إِلَيْهِ {أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ} الْقُرْآنِ {إِنَّهُ} أَيِ الشَّأْنَ {لَا يُفْلِحُ} يَسْعَدُ {الْمُجْرِمُونَ} الْمُشْرِكُونَ {وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ} أَيْ غَيْرِهِ {مَا لَا يَضُرُّهُمْ} إِنْ لَمْ يَعْبُدُوهُ {وَلَا يَنْفَعُهُمْ} إِنْ عَبَدُوهُ وَهُوَ الْأَصْنَامُ {وَيَقُولُونَ} عَنْهَا {هَؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللَّهِ قُلْ} لَهُمْ {أَتُنَبِّئُونَ اللَّهَ} تُخْبِرُونَهُ {بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ} اسْتِفْهَامُ إِنْكَارٍ إِذْ لَوْ كَانَ لَهُ شَرِيكٌ لَعَلِمَهُ إِذْ لَا يَخْفَى عَلَيْهِ شَيْءٌ {سُبْحَانَهُ} تَنْزِيهًا لَهُ {وَتَعَالَى عَمَّا يُشْرِكُونَ} هـ معه {وَمَا كَانَ النَّاسُ إِلَّا أُمَّةً وَاحِدَةً} عَلَى دِينٍ وَاحِدٍ وَهُوَ الْإِسْلَامُ مِنْ لَدُنْ آدَمَ إِلَى نُوحٍ وَقِيلَ مِنْ عَهْدِ إِبْرَاهِيمَ إِلَى عَمْرِو بْنِ لُحَيٍّ {فَاخْتَلَفُوا} بِأَنْ ثَبَتَ بَعْضٌ وَكَفَرَ بَعْضٌ {وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَبِّكَ} بِتَأْخِيرِ الْجَزَاءِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ {لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ} أَيِ النَّاسِ فِي الدُّنْيَا {فِيمَا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ} مِنَ الدِّينِ بِتَعْذِيبِ الْكَافِرِينَ {وَيَقُولُونَ} أَيْ أَهْلُ مَكَّةَ {لَوْلَا} هَلَّا {أُنْزِلَ عَلَيْهِ} عَلَى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {آيَةٌ مِنْ رَبِّهِ} كَمَا كَانَ لِلْأَنْبِيَاءِ مِنَ النَّاقَةِ وَالْعَصَا وَالْيَدِ {فَقُلْ} لَهُمْ {إِنَّمَا الْغَيْبُ} ما غاب عن العباد اي امره {لله} وَمِنْهُ الْآيَاتُ فَلَا يَأْتِي بِهَا إِلَّا هُوَ وَإِنَّمَا عَلَيَّ التَّبْلِيغُ {فَانْتَظِرُوا} العذاب إِنْ لَمْ تؤمنوا {إني معكم من المنتظرين}

ترجمه: راتلونکې آیت هغه وخت نازل شو کله چې مشرکینو د عذاب د زر راتللو مطالبه اوکړه که چرې الله تعالی د خلقو د پاره د شر په معامله کښې جلدی کوله څنګه چې دوی د خیر په معامله کښې جلدی کوی نو ددوی وعده به پوره کړې شوې وه، "قضی" مجهول او معروف دواړه لوستلې شوې دې، "اجلهم" رفع او نصب دواړو سره دې په داسې طریقه چې دوی به هلاک کړې شوې وو، خو هغه دوی ته مهلت ورکوی پس نو مونږ هغه خلق د چا چې مونږ ته د راتلو امید نشته هغوی مونږ د هغوی په سرکشئ کښې حیران پرېږدو، یعنی د شک سره حیرانه وی او هر کله چې کافر انسان ته د مرض او د غریبئ تکلیف رسېږی نو مونږ ته اواز کوی په ملاسته، په ناسته او په ولاړه یعنی په هر حال کښې بیا چې کله مونږ د هغه دا تکلیف اوچت کړو نو بیا د خپل کفر (زوړ حالت باندې شی) ګویا چې ده مونږ ته د تکلیف په وخت کښې چرته اواز نه وو کړې کأن مخفف دې او اسم ئې محذوف دې کأنه، څنګه چې د دوی د پاره د تکلیف په وخت کښې مونږ نه دعاء غوختل او د خوشحالئ په وخت کښې مخ اړول خائسته کړې شوی دی دغه شان د مشرکانو اعمال هغوی د پاره ښائسته کړې شوی دی. او یقینا مونږ هلاک کړې دی امتونه ستاسو نه مخکښې اې د مکې اوسیدونکو هر کله چې هغوی ظلم اوکړو په شرک سره او یقینا راغلې وو دوی ته پیغمبران په دلائلو سره هغوی په رشتونوالی باندې ثبتونو سره او نه وو دوی چې ایمان ئې راوړې وو عطف دې په ظلموا باندې همدغه شان څنګه چې مونږ هلاک کړل دغه خلق مونږ بدله ورکوو قوم د مجرمانو کافرانو ته بیا مونږ اوګرځولئ تاسو اې د مکې اوسیدونکو خلیفه ګان خلائف د خلیف جمع ده په زمکه باندې ددوی نه پس چې مونږ اوګورو چې څنګه تاسو عمل کوئی آیا تاسو دوی نه عبرت حاصلوی چې زمونږ د رسولانو تصدیق اوکړئ هر کله چې هغوی ته زمونږ صفا صفا قرآنی خبرې واورولې شی بینات حال دې نو هغه خلق چې مونږ سره د میلاوېدو توقع نه ساتی د قبر نه د پاسیدلو ویره نه کوی وائی چې ددې په ځائې بل قرآن راوړه چې په هغې زمونږ د معبودانو عیب نه وی بیان شوې یا په هغې کښې د خپل طرف نه څه تبدیلی اوکړه اې محمد ﷺ دوی ته اووایه چې ځما کار دا نه دې چې په دې کښې څه د خپل ځان نه څه تبدیلی اوکړم څه خو صرف د هغه وحی تابعداری کوم چې کومه ماته رالیږلې شی که چرې څه په دې کښې تبدیلی کولو سره د خپل رب نافرمانی اوکړم نو ماته د یو غټې ورځې د عذاب ویره ده چې هغه د قیامت ورځ ده او اووایه که چرې د الله تعالی خوښه دغه وی نو مابه دا قرآن هیڅ کله هم تاسو ته اورولې نه وو او الله تعالی به تاسو ته د دې خبر هم نه درکولې او لا نافیه ده په خپل ماقبل (لوشاء الله ماتلوته الخ) باندې عطف دې او په یو قراءت کښې لام سره دې، د "لو" جواب واقع کیدلو د وجه یعنی ځما نه علاوه د بل چا په ژبه باندې به ئې تاسو ته وئیلې وو، په آخر ما ددې قرآن د نازلیدلو نه مخکښې ستاسو سره په مینځ کښې یو عمر یعنی څلویښت کاله تیر کړې دی چې ما تاسو ته د خپل طرف نه څه څیز بیان کړې نه

دي نو آيا تاسو بيا هم نه پوهيږئ چې دا قرآن څما د طرف نه نه دي بيا به د هغه نه لوئي ظالم څوک وي هيڅ څوک هم نه چا چې په الله باندې د هغه طرف ته د شرک نسبت کولو سره دروغ الزام اولګولو يا د هغه آيتونه يعنې قرآن ئې دروغ اوګڼل يقينا شان دادې چې مجرمان مشرکان چرې هم کاميابي حاصلولې نشي دا خلق د الله نه سوا د نورو بندګي کوي چې نه خو دوی ته څه نقصان رسولې شي که چرې دوی د هغه بندګي اونکړي او نه دوی ته څه فائده رسولې شي که دوی د هغه بندګي اوکړي او هغه بتان دی او دوي بتانو په باره کښې وائي چې دا بتان د الله په نيز څمونږ سفارشيان دی اې محمد ﷺ ته دوی ته اووايه آيا تاسو الله ته دهغه څه خبر ورکوي چې هغه ته ئې علم نشته نه په آسمانونو کښې او نه په زمکه کښې استفهام انکاري دې يعنې که د هغه څوک شريک وو نو خامخا به ورته علم وو، څکه چې د هغه نه يو څيز هم پټ نه دې هغه پاک دې او د هغه څه نه اعلی دې کوم چې دوی د هغه شريک ګرځوي په شروع کښې ټولو خلق يو امت وو يعنې يو دين باندې وو او هغه اسلام دې د آدم ﷺ نه تر نوح ﷺ پورې او څوک وائي چې د ابراهيم ﷺ د زمانې نه واخله تر د عمرو بن لحي د زمانې پورې روستو هغوی اختلاف اوکړو په داسې طريقه چې بعضې په اسلام باندې کلک ولاړ وو او بعضو انکار اوکړو که چرې ستا د رب د طرف نه يو خبره يعنې د قيامت پورې دعذاب روستو کولو فيصله نه وه شوې نو د خلقو په مينځ کښې به په دنيا کښې کافرانو ته د عذاب فيصله شوې وه چې د کوم دين په باره کښې اختلاف کوي او اهل مکه وائي په محمد ﷺ باندې د هغه د رب د طرف نه څه نښه ولې نازله نه شوه؟ څنګه چې په نورو پيغمبرانو باندې نازله شوې وه چې هغه اونبه، عصا او يد بيضا ده نو ته دوی ته اووايه چې د غيبو يعنې چې کوم څيز د بندګانو نه غيب دې لکه د الله حکم مالک او اختيارمند خو صرف الله دې دې نښو لره صرف هغه راوستلې شي څما په ذمه خو صرف تبليغ دې که چرې تاسو ايمان نه راوړئ نود عذاب انتظار کوئ څه هم ستاسو سره انتظار کوم..

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** اى كاستعجالهم:

**سوال:** د استعجالهم تفسير په "كاستعجالهم" سره کولو کښې د "كاف" د اضافې څه فائده؟

**جواب:** "استعجالهم بالخير" بالكل "استعجالهم بالشر" نه دي که د حرف تشبيه "كاف" اضافه اونکړې شي نو د دواړو به يو شان کيدل لازم راتلل، ددې فرق ښکاره کولو د پاره د "اسعجالهم" تفسير "كاستعجالهم" سره اوکړو، دې نه دا هم معلومه شوه چې استعجالهم منصوب بنزع الخافض دې،

**قوله:** بالرفع والنصب: رفع د "قضى" نائب فاعل کيدو د وجه او نصب د "قضى" د معروف کيدو په صورت کښې مفعول کيدو د وجه، په دې حالت کښې به فاعل الله تعالى وي.

**قوله: يمهلهم:**

**سوال:** "يمهلهم" محذوف منلو څه ضرورت پيښ شو؟

**جواب:** "فنذر" كښې فاء عاطفه ده هغې ته د معطوف عليه ضرورت دې حالانكه د هغې معطوف عليه مخكښې ذكر نه دې اونه د هغې عطف په قضى باندې صحيح دې نه لفظا او نه معنا، لفظا ددې وجه چې "لقضى" د "لو" جواب واقع كيدلو په وجه مجزوم دې كه د "نذر" عطف په "لقضى" باندې وى نو "فنذر" بيا مجزوم پكار وو، حالانكه مجزوم نه دې، د معنې په اعتبار سره د عطف نه صحيح كيدل د معنې د فساد د وجه نه كاره دې، لهذا د "فنذر" عطف به په هغه نفى باندې وى كوم چې د "لو" شرطيه نه معلوميږى، څكه چې "لو يعجل" د نفى تعجيل معنې لره متضمن دې، ددې نفى تعجيل مطلب بيانولو د پاره مفسر علام د "ولكن يمهلهم" اضافه كړې ده، خلاصه دا شوه چې د "فنذر" عطف "يمهلهم" محذوف باندې دې نه چې په "قضى" باندې.

**قوله: وقد جاء تهم:**

**سوال:** وجاء تهم د ظلموانه حال دې ماضى د "قد" نه بغير حال واقع كيدې نشى؟

**جواب:** ددې اعتراض نه بچ كيدو د پاره مفسر علام "قد" محذوف ګڼلې دې،

**قوله: حال:** يعنى بينت، اٰيتنا نه حال دې نه چې صفت، څكه چې ايتنا د اضافت د وجه معرفه ده او "بينت" نكره ده، حالانكه په موصوف صفت كښې مطابقت ضرورى وى.

**قوله: وفى قراءة بلام:** يعنى لا ادراكم په ځائې لأدراكم دې يعنى لام تاكيد سره

**قوله: جواب لو:** يعنى جواب لو باندې عطف دې چې هغه مأتلونه دې.

**[اياتونه: ۲۱ ـ ۳۰]**

{وَإِذَا أَذَقْنَا النَّاسَ} أي كُفّار مَكّة {رَحْمَةً} مَطرًا وَخِصبًا {مِّن بَعْدِ ضَرَّاءَ} بُؤس وَجَدب {مَسَّتْهُمْ إِذَا لَهُم مَّكْرٌ فِي آيَاتِنَا} بِالِاستِهزَاء وَالتَّكذِيب {قُلْ} لَهُمْ {اللَّهُ أَسْرَعُ مَكْرًا} مُجَازَاة {إِنَّ رُسُلَنَا} الحَفَظَة {يَكْتُبُونَ مَا تَمْكُرُونَ} بالتاء والياء {هُوَ الَّذِي يُسَيِّرُكُمْ} وَفِي قِرَاءَة يَنشُرُكُمْ {فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ حَتَّىٰ إِذَا كُنتُمْ فِي الْفُلْكِ} السُّفُن {وَجَرَيْنَ بِهِم} فِيهِ اِلتِفَات عَنِ الخِطَاب {بِرِيحٍ طَيِّبَةٍ} لَيِّنَة {وَفَرِحُوا بِهَا جَاءَتْهَا رِيحٌ عَاصِفٌ} شَدِيدَة الهُبُوب تَكسِر كُلّ شَيْء {وَجَاءَهُمُ الْمَوْجُ مِن كُلِّ مَكَانٍ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ أُحِيطَ بِهِمْ} أَي أُهلِكُوا {دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ} الدُّعَاء {لَئِنْ} لام قَسَم {أَنجَيْتَنَا مِنْ هَٰذِهِ} الأَهوَال {لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ} المُوَحِّدِينَ {فَلَمَّا أَنجَاهُمْ إِذَا هُمْ يَبْغُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ} بالشرك {يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّمَا بَغْيُكُمْ} ظُلمُكُمْ {عَلَىٰ أَنفُسِكُم} لِأَنَّ إِثمه عَلَيهَا هُوَ {مَّتَاعَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا} تُمَتَّعُونَ فِيهَا قَلِيلًا {ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُكُمْ} بَعدَ المَوت {فَنُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ} فَنُجَازِيكُمْ عَلَيهِ وَفِي قِرَاءَة بِنَصب مَتَاع أَي تَتَمَتَّعُونَ {إِنَّمَا مَثَلُ} صِفَة {الْحَيَاةِ الدُّنْيَا كَمَاءٍ} مَطَر {أَنزَلْنَاهُ مِنَ السَّمَاءِ فَاخْتَلَطَ بِهِ} بِسَبَبِهِ {نَبَاتُ الْأَرْضِ} وَاشتَبَكَ بَعضه

بَعْضٍ {مِمَّا يَأْكُلُ النَّاسُ} مِنَ الْبُرِّ وَالشَّعِيرِ وَغَيْرِهِمَا {وَالْأَنْعَامُ} مِنَ الْكَلَأِ {حَتَّى إِذَا أَخَذَتِ الْأَرْضُ زُخْرُفَهَا} بَهْجَتَهَا مِنَ النَّبَاتِ {وَازَّيَّنَتْ} بِالزَّهْرِ وَأَصْلُهُ تَزَيَّنَتْ أُبْدِلَتِ التَّاءُ زَاءً وَأُدْغِمَتْ فِي الزَّاءِ {وَظَنَّ أَهْلُهَا أَنَّهُمْ قَادِرُونَ عَلَيْهَا} مُتَمَكِّنُونَ مِنْ تَحْصِيلِ ثِمَارِهَا {أَتَاهَا أَمْرُنَا} قَضَاؤُنَا أَوْ عَذَابُنَا {لَيْلًا أَوْ نَهَارًا فَجَعَلْنَاهَا} أَيْ زَرْعَهَا {حَصِيدًا} كَالْمَحْصُودِ بِالْمَنَاجِلِ {كَأَنْ} مُخَفَّفَةٌ أَيْ كَأَنَّهَا {لَمْ تَغْنَ} تَكُنْ {بِالْأَمْسِ كَذَلِكَ نُفَصِّلُ} نُبَيِّنُ {الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ} {وَاللَّهُ يَدْعُو إِلَى دَارِ السَّلَامِ} أَيِ السَّلَامَةِ وَهِيَ الْجَنَّةُ بِالدُّعَاءِ إِلَى الْإِيمَانِ {وَيَهْدِي مَنْ يَشَاءُ} هِدَايَتَهُ {إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ} دِينِ الْإِسْلَامِ {لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا} بِالْإِيمَانِ {الْحُسْنَى} الْجَنَّةُ {وَزِيَادَةٌ} هِيَ النَّظَرُ إِلَيْهِ تَعَالَى كَمَا فِي حَدِيثِ مُسْلِمٍ {وَلَا يَرْهَقُ} يَغْشَى {وُجُوهَهُمْ قَتَرٌ} سَوَادٌ {وَلَا ذِلَّةٌ} كَآبَةٌ {أُولَئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ} {وَالَّذِينَ} عَطْفٌ عَلَى لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا أَيْ وَلِلَّذِينَ {كَسَبُوا السَّيِّئَاتِ} عَمِلُوا الشِّرْكَ {جَزَاءُ سَيِّئَةٍ بِمِثْلِهَا وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ مَا لَهُمْ مِنَ اللَّهِ مِنْ} زَائِدَةٌ {عَاصِمٍ} مَانِعٍ {كَأَنَّمَا أُغْشِيَتْ} أُلْبِسَتْ {وُجُوهُهُمْ قِطَعًا} بِفَتْحِ الطَّاءِ جَمْعُ قِطْعَةٍ وَإِسْكَانِهَا أَيْ جُزْءًا {مِنَ اللَّيْلِ مُظْلِمًا أُولَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ} {وَ} اُذْكُرْ {يَوْمَ نَحْشُرُهُمْ} أَيِ الْخَلْقَ {جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا مَكَانَكُمْ} نُصِبَ بِالْزَمُوا مُقَدَّرًا {أَنْتُمْ} تَأْكِيدٌ لِلضَّمِيرِ الْمُسْتَتِرِ فِي الْفِعْلِ الْمُقَدَّرِ لِيُعْطَفَ عَلَيْهِ {وَشُرَكَاؤُكُمْ} أَيِ الْأَصْنَامُ {فَزَيَّلْنَا} مَيَّزْنَا {بَيْنَهُمْ} وَبَيْنَ الْمُؤْمِنِينَ كَمَا فِي آيَةِ {وَامْتَازُوا الْيَوْمَ أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ} {وَقَالَ} لَهُمْ {شُرَكَاؤُهُمْ مَا كُنْتُمْ إِيَّانَا تَعْبُدُونَ} مَا نَافِيَةٌ وَقُدِّمَ الْمَفْعُولُ لِلْفَاصِلَةِ {فَكَفَى بِاللَّهِ شَهِيدًا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ إِنْ} مُخَفَّفَةٌ اَيْ إِنَّا {كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغَافِلِينَ} {هُنَالِكَ} اَيْ ذَلِكَ الْيَوْمَ {تَبْلُوا} مِنَ الْبَلْوَى وَفِي قِرَاءَةٍ بِتَاءَيْنِ مِنَ التِّلَاوَةِ {كُلُّ نَفْسٍ مَا أَسْلَفَتْ} قَدَّمَتْ مِنَ الْعَمَلِ {وَرُدُّوا إِلَى اللَّهِ مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ} الثَّابِتِ الدَّائِمِ {وَضَلَّ} غَابَ {عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ} عَلَيْهِ مِنَ الشُّرَكَاءِ.

---

**ترجمه:** او د خلقو دا حال دې چې کله دوی ته یعنی کفار مکه ته تکلیف او قحط سالئ نه پس چې کوم دوی ته راپیښ شوې وی، د رحمت یعنی د باران او خوشحالئ مزا ورڅکوو نو دوی څمونږ د آیتونو په باره کښې د توقو او تکلیف په ذریعه چالبازی شروع کړی دوی ته اووایه چې الله تعالی د چالبازئ په جواب کښې ستاسو نه زیات تیز دې او بې شکه زمونږه فرشتې ددوی مکارئی محفوظ کوی "تمکرون" یاء او تاء سره دې هم هغه الله دې چې تاسو په اوچه او لونده باندې بوځی او یو قراءت کښې ینشرون دې، تردې چې کله تاسو په کشتو کښې یئ او هغه دوی د نرمې (موافق) هوا په ذریعه بوځی.او دوی د هغې د وجه خوشحاله وی نو اچانک د هوا یو سخت طوفان راشی چې هر خیز تکړې تکړې کړی او هر طرف نه چپې راروانې شی او دوی دا گنړی چې بد راګیر شو. یعنی دوی هلاک شول هغه وخت دا خلق دین خاص د الله د پاره کړی او په اخلاص سره دعاء شروع کړی او په قسم سره وائی په "لئن" کښې لام قسمیه

دې که چرې تا مونږ دې سختئو نه خلاص کړو نو مونږ به ستا شکر ګذار توحید منونکی بندیګانو کښې شامل شو نو هر کله چې مونږ دوی بچ کړل نو بیا دغه خلق په زمکه باندې شرک کولو سره په ناحقه وراني کوی، خلقو! دا وراني ستاسو خلاف پریوزی ځکه چې ددې ګناه په تاسو باندې ده د دنیا یو څو ورځې مزې دی څو ورځې مزې واخلئ، د مرګ نه پس تاسو له زمونږ طرف ته راتلل دی هغه وخت به مونږ ستاسو ته اووایو چې تاسو په دنیا کښې څه څه کول بیا به مونږ تاسو ته ددې بدله درکړو، او په یو قراءت کښې "متاع" په نصب سره دې (ای تتمتعون متاع الحیوۃ الدنیا) د دنیا د زندګئ مثال داسې دې لکه چې د آسمان نه باران اووریږی، چې د هغې د وجې نه د زمکې پیداوار ښه ګنړ شو چې د هغې نه انسانان خوړل کوی لکه غنم جوار وغیره او ځناور ئې خوری لکه واښه وغیره بیا بالکل هغه وخت چې زمکه په خپل پوره بهار باندې وه یعنی د شینوالی د وجه نه روښانه وه او خپل رونق د وجه ښه ښائسته شوه د "ازینت" اصل "تزینت" وو، تاء زاء سره بدل کړې شوه او بیا زاء په زاء کښې مدغم شوه بیا ددې شروع کښې د همزه وصل اضافه اوکړې شوه او ددې مالکانو دا ګنړله چې اوس مونږ فائده حاصلولو کښې په دې باندې قادر یو، یعنی ددې د میوو (پیداوار) نه فائده اخستلو باندې، اچانک په شپه کښې یا په روځ کښې زمونږ حکم یعنی فیصله یا عذاب په دې باندې راغې نو مونږ دا پټې صفا کړو لکه په څځکوره باندې صفا کړې شوې پټې داسې چې لکه هلته کښې پرون هیڅ نه وو، دغه شان مونږ ښکاره نښې بیانوو د هغه خلقو د پاره چې غور وفکر کولو والا دی او الله د ایمان دعوت ورکولو سره د سلامتئ کور طرف ته رابلی او هغه جنت دې او هغه چې چا ته هدایت کول غواړی د هغه صراط مستقیم یعنی د دین اسلام طرف ته راهنمائی کوی چا چې د ایمان سره نیکی کړې ده د هغوی د پاره خوبی یعنی جنت دې او ددې نه نور هم زیات دی او هغه نور د الله تعالی دیدار دې لکه چې په مسلم شریف کښې حدیث دې اوددوی په مخونو باندې به نه تیاره وی او نه ذلت مشقت هم دغه خلق جنتیان دی چې په دې کښې به همیشه وی او چې کومو خلقو بدی کړې ده د "الذین" عطف په "الذین احسنو" باندې دې تقدیری عبارت وللذین کسبوادې د دوی د بدئ سزا به ددوی د بدئ په شان وی او په دوی باندې به سپکوالې خور وی، دوی لره به د الله د عذاب نه څوک بچ کولو والا نه وی "من" زائده دې لکه چې د دوی په مخونو باندې د تورې شپې څه حصه اچولې شوی وی قطعا د طاء فتحې سره، قطعا د قطعة جمع ده، او د تاء په سکون سره په معنی د حصې ده او هم دغه خلق جهنمیان دی او په دې کښې به همیشه وی او هغه ورځ هم د ذکر قابله ده په کومه ورځ چې مونږ به ټول مخلوقات راجمع کړو بیا به مشرکانو ته اووایو چې تاسو او ستاسو شریک بتان په خپل ځایونو باندې اودیرېږئ "مکانکم" د الزموا مقدر د وجه منصوب دې "انتم" فعل مقدر په "الزموا" کښې د ضمیر مستتر تاکید دې چې په ضمیر مستتر باندې عطف صحیح شی نو مونږ به ددوی او

مومنانو په مینځ کښې جدائي راولو لکه چې په آيت وامتازو اليوم ايها المجرمون کښې دی او دوی ته به شريکان وائي تاسو زمونږ بندګی نه کوله ماء نافيه ده، د فواصلو خيال ساتلو د پاره مفعول "ايانا" مخکښې کړې شو نو زمونږ او ستاسو په مينځ کښې الله د ګواهئ د پاره دير دې "ان" مخففه عن المثقله دې ای انا،مونږ خو ستاسو دې عبادت نه بالکل ناخبره وو په دغه ورځ به هر يو د خپلو کړو مزه وڅکی "تبلو" د بلوی نه اخستې شوې دې او په يو قراءت کښې په دوو تاء سره دې په دغه وخت کښې به دا د "تلاوة" نه ماخوذ وی او دا خلق به د الله طرف ته چې ددوی حقيقی مولا دې ثابت او هميشه دې ورته واپس کړې شی او چې کوم دروغ دوی د شريکانو په باره کښې جوړ کړی وو غائب به شی.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: واذا اذقنا الناس:...الی..اذا لهم مکر فی آيتنا، واو استينافيه اذا ظرفيه متضمن معنی د شرط لره، اذالهم جزاء شرط دې اذا مفاجاتيه ده.

**قوله**: مجازاة

**سوال**: د مکر تفسير په مجازاة سره د کولو څه مقصد وو؟

**جواب**: چونکه د مکر نسبت الله تعالی طرف ته کول مناسب نه وو څکه ئې د مکر تفسير په جزاء مکر سره اوکړو.

**قوله**: السفن: د فلك صيغه چونکه د مفرد او جمع د پاره شريکه ده څکه ئې د فلک تفسير په سفن سره کولو کښې اشاره اوکړه چې دلته جمع مراد ده.

**قوله**: فيه التفات عن الخطاب: په مخکښې د خطاب صيغې استعمال شوې دی په "جرين بهم" کښې د غائب ضمير راوړلې شوې دې داسې د قباحت د زياتوالی د بيانولو د پاره شوې دې "جرين" ماضی د جمع مونث غائب صيغه ده، هغوی روان شو، هغوی جاری شول، د متعدی بالباء د وجه نه ددې معنی ده "هغه کيشتو دوی بوتلل.

**قوله**: ريح، الهواء المسخر بين السماء والارض: ريح په فضا کښې اويزانده شوې هوا ته وائی (المصباح) ريح په اصل کښې روح وو، واو ماقبل مکسور ياء سره بدل شو، نو ريح شو، ددې جمع رياح او رِواح راځی، ريح مؤنث سماعی دې.

**قوله**: وظنوا انهم احيط بهم: ددې عطف په "جاءهم" باندې دې او "ان" چې کوم ددې ماتحت دې هغه د ظنوا د دوو مفعولو په ځائې دې، او "احيط بهم" د "ان" خبر دې، او جمله "دعوا الله الخ د ظنوا" نه بدل اشتمال دې څکه چې ددوی دعاء ددوی د هلاکت د ګمان په لوازمو کښې ده، او د سوال مقدر جواب کيدو په صورت کښې جمله مستانفه هم کيدې شی يعنی "ماذا صنعوا؟ قيل دعوا الله مخلصين له الدين.

قوله: اصله تزينت: باب تفعل

قوله: زرعها،

سوال: دلته د مضاف د حذف كيدو څه فائده ده؟

جواب: كه زرع مضاف محذوف اونه منلې شي نو نفس زمكه پرې كول به لازم شي حالانكه د زمكې د پريكولو هيڅ مطلب نشته، ځكه ئې زرع مضاف محذوف اومنلو، او د مبالغې د اظهار د پاره ئې مضاف حذف كړو يعنى فصل پريكول داسې وو چې زمكه ئې پريكړه.

قوله: عطف على الذين احسنوا: دا د هغه خلقو د خبرې مطابق دې چې د فى الدار زيد والحجرة عمرو تركيب جائز ګڼرى.

**[ايالتوله: ۳۱ ـ ٤۰]**

{قُلْ} لَهُمْ {مَنْ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ} بِالْمَطَرِ {وَالْأَرْضِ} بِالنَّبَاتِ {أَمَّنْ يَمْلِكُ السَّمْعَ} بِمَعْنَى الْأَسْمَاعِ أَيْ خَلْقَهَا {وَالْأَبْصَارَ وَمَنْ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَمَنْ يُدَبِّرُ الْأَمْرَ} بَيْنَ الْخَلَائِقِ {فَسَيَقُولُونَ} هُوَ {اللَّهُ فَقُلْ} لَهُمْ {أَفَلَا تَتَّقُونَ} هُ فَتُؤْمِنُونَ {فَذَلِكُمُ} الْفَاعِلُ لِهَذِهِ الْأَشْيَاءِ {اللَّهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ} الثَّابِتُ {فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ} اسْتِفْهَامُ تَقْرِيرٍ أَيْ لَيْسَ بَعْدَهُ غَيْرُهُ فَمَنْ أَخْطَأَ الْحَقَّ وَهُوَ عِبَادَةُ اللَّهِ وَقَعَ فِي الضَّلَالِ {فَأَنَّى} كَيْفَ {تُصْرَفُونَ} عَنِ الْإِيمَانِ مَعَ قِيَامِ الْبُرْهَانِ {كَذَلِكَ} كَمَا صُرِفَ هَؤُلَاءِ عَنِ الْإِيمَانِ {حَقَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ فَسَقُوا} كَفَرُوا وَهِيَ {لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ} الْآيَةَ أَوْ هِيَ {أَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ} {قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَائِكُمْ مَنْ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ قُلِ اللَّهُ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ فَأَنَّى تُؤْفَكُونَ} تُصْرَفُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ مَعَ قِيَامِ الدَّلِيلِ {قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَائِكُمْ مَنْ يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ} بِنَصْبِ الْحُجَجِ وَخَلْقِ الِاهْتِدَاءِ {قُلِ اللَّهُ يَهْدِي لِلْحَقِّ أَفَمَنْ يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ} وَهُوَ اللَّهُ {أَحَقُّ أَنْ يُتَّبَعَ أَمَّنْ لَا يَهِدِّي} يَهْتَدِي {إِلَّا أَنْ يُهْدَى} أَحَقُّ أَنْ يُتَّبَعَ اسْتِفْهَامُ تَقْرِيرٍ وَتَوْبِيخٍ أَيِ الْأَوَّلُ أَحَقُّ {فَمَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ} هَذَا الْحُكْمَ الْفَاسِدَ مِنِ اتِّبَاعِ مَا لَا يَحِقُّ اتِّبَاعُهُ {وَمَا يَتَّبِعُ أَكْثَرُهُمْ} فِي عِبَادَةِ الْأَصْنَامِ {إِلَّا ظَنًّا} حَيْثُ قَلَّدُوا فِيهِ آبَاءَهُمْ {إِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا} فِيمَا الْمَطْلُوبُ مِنْهُ الْعِلْمُ {إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ} فَيُجَازِيهِمْ عَلَيْهِ {وَمَا كَانَ هَذَا الْقُرْآنُ أَنْ يُفْتَرَى} أَيِ افْتِرَاءً {مِنْ دُونِ اللَّهِ} أَيْ غَيْرِهِ {وَلَكِنْ} أُنْزِلَ {تَصْدِيقَ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ} مِنَ الْكُتُبِ {وَتَفْصِيلَ الْكِتَابِ} تَبْيِينَ مَا كَتَبَهُ اللَّهُ مِنَ الْأَحْكَامِ وَغَيْرِهَا {لَا رَيْبَ} شَكَّ {فِيهِ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ} مُتَعَلِّقٌ بِتَصْدِيقَ أَوْ بِأُنْزِلَ الْمَحْذُوفِ وَقُرِئَ بِرَفْعِ تَصْدِيقُ وَتَفْصِيلُ بِتَقْدِيرِ هُوَ {أَمْ} بَلْ أَ {يَقُولُونَ افْتَرَاهُ} اخْتَلَقَهُ مُحَمَّدٌ {قُلْ فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِثْلِهِ} فِي الْفَصَاحَةِ وَالْبَلَاغَةِ عَلَى وَجْهِ الِافْتِرَاءِ فَإِنَّكُمْ عَرَبِيُّونَ فُصَحَاءُ مِثْلِي {وَادْعُوا} لِلْإِعَانَةِ عَلَيْهِ {مَنِ اسْتَطَعْتُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ} أَيْ غَيْرِهِ {إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فِي أَنَّهُ افْتِرَاءٌ فَلَمْ تَقْدِرُوا عَلَى ذَلِكَ قَالَ تَعَالَى {بَلْ كَذَّبُوا بِمَا لَمْ يُحِيطُوا بِعِلْمِهِ} أَيِ الْقُرْآنِ وَلَمْ يَتَدَبَّرُوهُ {وَلَمَّا} لَمْ {يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُ} عَاقِبَةُ مَا فِيهِ مِنَ الْوَعِيدِ {كَذَلِكَ} التَّكْذِيبِ {كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ

قَبْلِهِمْ} رُسُلَهُمْ {فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظّٰلِمِيْنَ} بِتَكْذِيْبِ الرُّسُلِ أَيْ آخِرِ أَمْرِهِمْ مِنَ الْهَلَاكِ فَكَذٰلِكَ نُهْلِكُ هٰؤُلَاءِ {وَمِنْهُمْ} أَيْ أَهْلِ مَكَّةَ {مَنْ يُّؤْمِنُ بِهٖ} لِعِلْمِ اللّٰهِ ذٰلِكَ مِنْهُمْ {وَمِنْهُمْ مَنْ لَّا يُؤْمِنُ بِهٖ} أَبَدًا {وَرَبُّكَ أَعْلَمُ بِالْمُفْسِدِيْنَ} تَهْدِيْدٌ لَهُمْ

**ترجمه:** ددوی نه تپوس اوکړه چې د آسمان نه د باران په ذريعه او د زمکې نه د نباتاتو په ذريعه تاسو ته څوک رزق درکوی؟ يا هغه څوک چې په غوګونو او سترګو باندې پورا اختيار لری؟ سمع په معنی د اسماع ده. يعنی چا دا پيدا کړل؟ او هغه څوک دې چې د ژوندی نه مړی او د مړی نه ژوندی راوباسی؟ او هغه څوک دې چې د مخلوق د معاملاتو تدبير کوی؟ خامخا به دوی وائی چه هغه الله دې، نو دوی ته اووايه چې بيا د الله نه ولې نه ويريږئ چې ايمان راوړئی نو دا چې د ددې ټولو کارونو کولو والا دې الله دې ستاسو حقيقی رب دې بيا د حق نه پس سوا د ګمراهئ نه نور څه پاتې شول، استفهام تقريری دې يعنی دې نه پس هيڅ پاتې نه شول لهذا چې څوک د حق نه واوړيدو چې دا د الله عبادت دې نو ګمراهئ کښې پريوتلو او بيا دليل قائم کيدو باوجود د ايمان نه چرته تختئ دغه شان ستا د رب دا خبره چې دا خلق به ايمان نه راوړی د فاسقانو په حق کښې ثابته شوله هغه خبره "لاملئن جهنم الخ يا "انهم لا يؤمنون" ده ته ورته اووايه چې ستاسو په شريکانو کښې څوک داسې شته چې په اول ځل هم پيدا کړی او په دويم ځل هم؟ ته ورته اووايه چې الله تعالی په اول ځل هم پيدا کوی او په دويم ځل به هم پيدا کوی، نو تاسو د دليل قائم کيدو باوجود د هغه د عبادت نه چرته اړولې شئ؟ ته دوی ته اووايه چې ستاسو په شريکانو کښې څوک داسې شته چې په دليلونو سره او د هدايت پيدا (تخليق) کيدو سره لاره ښائی؟ ته ورته اووايه چې صرف الله د حق لاره ښائی، ته ورته اووايه چې هغه ذات چې حق طرف ته لار ښائی ددې خبرې زيات لائق دې چې د هغه تابعداری دې اوکړې شی؟ يا هغه چې په خپله ئې هدايت موندلې نه وی مګر دا چې هغه ته لار ښودنه اوکړې شی. زيات حقدار دې چې د هغه اتباع اوکړې شی، استفهام توبيخ او تقرير د پاره دې يعنی اول زيات حقدار د تابعدارئ دې آخر په تاسو څه شوی دی چې تاسو د غير حقدار څنګه غلطې فيصلې کوئی حقيقت دا دې چې په دوی کښې ډير د بت پرستئ په باره کښې صرف د خيال او ګمان تابعداری کوی ځکه چې دوی دې معامله کښې د خپل پلار نيکه تقليد کړې دې حالانکه ګمان حق يعنی علم مطلوب ضرورت لږ هم پورا کولې نشی داچې دوی څه کوی الله دې لره ښه پيژنی لهذا هغه به ددوی د اعمالو بدله ورکړی او دا قرآن داسې نه دې چې د الله د وحی نه بغير د خپل ځان نه جوړ کړې شوې وی بلکه دا خو د هغه کتابونو د تصديق د پاره نازل شوې دې چې کوم ددې نه مخکښې نازل شوې وو، او احکام وغيره چې کوم الله فرض کړې وود هغې تفصيل کولو والا دې په دې هيڅ شک نشته چې د رب العلمين نه نازل شوې دې (من رب العلمين) تصديق يا انزل محذوف متعلق دې او "تصديق او تفصيل" رفع سره هم لوستلې شوې دې د "هو" په تقدير سره آيا

دا خلق دا وائی چې دا محمد ﷺ د ځان نه جوړ کړې دې؟ تاسو دوی ته اووایئ چې تاسو هم په فصاحت او بلاغت کښې ددې پشان یو سورت جوړ کړئ راوړئی ځکه چې تاسو هم ځما په شان عربیان فصیح خلق یئ او په دې کښې د غیر الله نه چې څوک د مدد د پاره راغوارئی، نو راوئي غوارئی که چرې تاسو په دې دعوی کښې رشتونې یئ چې د ځان نه جوړ شوي دې،چنانچه هغوی دا کار اونکړې شو بلکه د یو داسې څیز ئې تکذیب شروع کړو چې د هغې هغوی علمی احاطه کولې نه شوه،یعنی د قرآن، او نه ئې په دې کښې غور او فکر اوکړو او اخر دوی ته ددې اخری نتیجه چې هغه وعید دې میلاؤ نه شو دغه شان د هغوی نه چې کوم مخکښې خلق وو د خپل رسولانو تکذیب کړې وو نو اوګورئی د رسولانو د تکذیب د وجه نه ددې ظالمانو انجام څه وو؟یعنی ددوی اخری انجام هلاکت وو،نو دغه شان به دا خلق هم هلاک کړې شی په دې کښې بعضې خلق داسې دی چې دالله په علم کښې کیدو د وجه په هغه باندې ایمان راوړی، او بعضې داسې دی چې په هغه باندې به چرې هم ایمان راونړی. او ستا رب داسې مفسدان ډیر ښه پیژنی.دا د هغوی د پاره زورنه ده..

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:**عمنی الاسماع:په دې کښې اشاره ده چې په "السمع" باندې لام د استعراق د پاره دې چې د الابصار تقابل صحیح شی

**سوال:** د "یملک" تفسیر مفسر علام په "خلقها" سره ولې اوفرمائیلو؟

**جواب:** ځکه چې په سترګو او غوږونو کښې ملکیت د سترګو او غوږونو والا وی او هم دغه وجه ده چې د ارش صاحبِ اذن و سمع هم مالک وی، د دغه شبهې دفع کولو د پاره ئې د "ملک" تفسیر په "خلقها" سره اوکړو.

**قوله:**هوالله:**سوال:** د "هو" مقدر منلو څه وجه ده؟

**جواب:** چونکه دلته لفظ الله چې مقوله واقع شوې دې مفرد دې حالانکه مقوله جمله وی مفسر علام "هو" محذوف منلو سره اشاره اوکړه چې هو محذوف دې چې د هغې د وجه نه مقوله جمله ده نه چې مفرد.

**قوله:**اوهی انهم لایؤمنون: ددې اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره کول دی چې د "کلمت ربک" نه دوه صورتونه مراد اخستلې شی یو خو د الله قول لاملئن جهنم الخ او دویم انهم لایومنون که رومبې صورت وی نو "انهم لا یؤمنون" به علت وی یعنی لانهم لایؤمنون:

**قوله:**بنصب الحجج: په دې کښې اشاره ده چې د هدایت نه مراد صرف اراءة الطریق نه دې ځکه چې دا د الله تعالی سره خاص نه دې ځکه نور هم د لارښودنې کار کولې شی، په خلاف د ایصال الی المطلوب،چې هغه دلته مراد دې هغه الله تعالی سره خاص دې.

**قوله:** يهتدي: ددې اضافي مقصد د "يهدي" اصل ښودل دی چې يهدی په اصل کښې د باب افتعال نه "يهتدي" دې، تاء په دال کښې د قلب نه پس ادغام اوشو، او ياء ته مو د التقاء ساکنين د وجه نه کسره ورکړه.

**قوله:** احق ان يتبع: داد "امرمن لايهدی" مبتدأ خبر دې...

**[اياتونه: ۴۱ - ۵۳]**

{وَإِنْ كَذَّبُوكَ فَقُلْ} لَهُمْ {لِي عَمَلِي وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ} أَيْ لِكُلٍّ جَزَاء عَمَله {أَنْتُمْ بَرِيئُونَ مِمَّا أَعْمَلُ وَأَنَا بَرِيءٌ مِمَّا تَعْمَلُونَ} وَهَذَا مَنْسُوخ بِآيَةِ السَّيْف {وَمِنْهُمْ مَنْ يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ} إِذَا قَرَأْت الْقُرْآن {أَفَأَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ} شَبَّهَهُمْ بِهِمْ فِي عَدَم الِانْتِفَاع بِمَا يُتْلَى عَلَيْهِمْ {وَلَوْ كَانُوا} مَعَ الصَّمَم {لَا يَعْقِلُونَ} يَتَدَبَّرُونَ {وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْظُرُ إِلَيْكَ أَفَأَنْتَ تَهْدِي الْعُمْيَ وَلَوْ كَانُوا لَا يُبْصِرُونَ} شَبَّهَهُمْ بِهِمْ فِي عَدَم الِاهْتِدَاء بَلْ أَعْظَم {فَإِنَّهَا لَا تَعْمَى الْأَبْصَارُ وَلَكِنْ تَعْمَى الْقُلُوبُ الَّتِي فِي الصُّدُورِ} {إن الله لا يظلم الناس شيئاً ولكن الناس أنفسهم يظلمون} {وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ كَأَنْ} أَيْ كَأَنَّهُمْ {لَمْ يَلْبَثُوا} فِي الدُّنْيَا أَوْ الْقُبُور {إِلَّا سَاعَةً مِنَ النَّهَارِ} لِهَوْلِ مَا رَأَوْا وَجُمْلَة التَّشْبِيه حَال مِنْ الضَّمِير {يَتَعَارَفُونَ بَيْنَهُمْ} يَعْرِف بَعْضهمْ بَعْضًا إِذَا بُعِثُوا ثُمَّ يَنْقَطِع التَّعَارُف لِشِدَّةِ الْأَهْوَال وَالْجُمْلَة حَال مُقَدَّرَة أَوْ مُتَعَلِّق الظَّرْف {قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِلِقَاءِ اللَّهِ} بِالْبَعْثِ {وماكانوامهتدين} {وَإِمَّا} فِيهِ إِدْغَام نُون إِنْ الشَّرْطِيَّة فِي مَا الْمَزِيدَة {نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ} بِهِ مِنْ الْعَذَاب فِي حَيَاتك وَجَوَاب الشَّرْط مَحْذُوف أَيْ فَذَاكَ {أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ} قَبْل تَعْذِيبهمْ {فَإِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ اللَّهُ شَهِيدٌ} مُطَّلِع {عَلَى مَا يَفْعَلُونَ} مِنْ تَكْذِيبهمْ وَكُفْرهمْ فَيُعَذِّبهُمْ أَشَدّ الْعَذَاب {وَلِكُلِّ أُمَّةٍ} مِنْ الْأُمَم {رَسُولٌ فَإِذَا جَاءَ رَسُولُهُمْ} إِلَيْهِمْ فَكَذَّبُوهُ {قُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ} بِالْعَدْلِ فَيُعَذَّبُونَ وَيُنَجَّى الرَّسُول وَمَنْ صَدَّقَهُ {وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ} بِتَعْذِيبِهِمْ بِغَيْرِ جُرْم فَكَذَلِكَ نَفْعَل بِهَؤُلَاءِ {وَيَقُولُونَ مَتَى هَذَا الْوَعْدُ} بِالْعَذَابِ {إِنْ كُنْتُمْ صادقين} فيه {قُلْ لَا أَمْلِكُ لِنَفْسِي ضَرًّا} أَدْفَعهُ {وَلَا نَفْعًا} أَجْلِبهُ {إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ} أَنْ يُقْدِرنِي عَلَيْهِ فَكَيْفَ أَمْلِك لَكُمْ حُلُول الْعَذَاب {لِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ} مُدَّة مَعْلُومَة لِهَلَاكِهِمْ {إِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ فَلَا يَسْتَأْخِرُونَ} يَتَأَخَّرُونَ عَنْهُ {سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ} يَتَقَدَّمُونَ عَلَيْهِ {قُلْ أَرَأَيْتُمْ} أَخْبِرُونِي {إِنْ أَتَاكُمْ عَذَابُه} أَيْ اللَّه {بَيَاتًا} لَيْلًا {أَوْ نَهَارًا مَاذَا} أَيّ شَيْء {يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ} أَيْ الْعَذَاب {الْمُجْرِمُونَ} الْمُشْرِكُونَ فِيهِ وَضْع الظَّاهِر مَوْضِع الْمُضْمَر وَجُمْلَة الِاسْتِفْهَام جَوَاب الشَّرْط كَقَوْلِك إِذَا أَتَيْتُك مَاذَا تُعْطِينِي وَالْمُرَاد بِهِ التَّهْوِيل أَيْ مَا أَعْظَمَ مَا استعجلوه {أَثُمَّ إِذَا مَا وَقَعَ} حَلَّ بِكُمْ {آمَنْتُمْ بِهِ} أَيْ اللَّه أَوْ الْعَذَاب عِنْد نُزُوله وَالْهَمْزَة لِإِنْكَارِ التَّأْخِير فَلَا يُقْبَل مِنْكُمْ وَيُقَال لَكُمْ {آلْآنَ} تُؤْمِنُونَ {وَقَدْ كُنْتُمْ بِهِ تَسْتَعْجِلُونَ} اسْتِهْزَاء {ثُمَّ قِيلَ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ} أَيْ الَّذِي تَخْلُدُونَ فِيهِ {هَلْ} مَا {تُجْزَوْنَ إِلَّا} جزاء {بماكنتم تكسبون} {وَيَسْتَنْبِئُونَكَ} يَسْتَخْبِرُونَك {أَحَقٌّ هُوَ} أَيْ مَا وَعَدْتنَا بِهِ مِنْ الْعَذَاب وَالْبَعْث {قُلْ إِي} نَعَمْ {وَرَبِّي إِنَّهُ لَحَقٌّ وَمَا أَنْتُمْ بِمُعْجِزِينَ} بِفَائِتِينَ الْعذاب.

ترجمه: که دوی ستا تکذیب کوی نو دوی ته اووایه چې څما عمل څما د پاره دې او ستاسو عمل ستاسو د پاره دې یعنی هر سړی ته به د هغه د عمل بدله ورکولې شی چې څه څه کوم نو د هغې د ذمه دارئی نه تاسو خلاص او څه چې تاسو کوئی نو د هغې د ذمه دارئ نه څه خلاص او دا د آیت سیف په ذریعه منسوخ دې او په دوی کښې ډیر خلق داسې دی چې ستا خبرې اوری چې کله ته قرآن لولې خو آیا ته به ئې کاڼو ته واؤروې کافران ئې د قرآن نه فائده نه اخستلو د وجه د کنړو سره یو شان کړل. اګرچې دوی د کونړتوب سره سره په څه باندې پوهیږی هم نه، یعنی غور او فکر نه کوی او په دوی کښې بعضې داسې خلق دی چې تا ته ګوری نو آیا بیا تاسو ړاندو ته لار ښایئ سره ددې چې ددوی بصیرت هم نشته دې کافرانو ته ئې د هدایت د نشتوالی د وجه ړندو سره تشبیه ورکړه بلکه دوی ددې نه هم زیات دی، ځکه چې دوی د سترګو ړانده نه دی بلکه د زړه ړانده دی چې هغه ددوی په سینو کښې دې او دا یقینی خبره ده چې الله تعالی په خلقو باندې هیڅ ظلم نه کوی هغوی په خپله ځان تباه کوی دوی ته هغه ورځ وریاده کړه چې په کومه ورځ به الله دوی په داسې حالت سره جمع کړی چې هغوی به د منظر دسختوالی د وجې خیال کوی چې ګویا دوی په دنیا کښې یا په قبرونو کښې د ورځې یو ساعت پاتې شوی وو او جمله تشبیه د "یحشرهم" د مفعول ضمیر نه حال دې خپلو کښې به یو بل پیژنی کله چه د قبرونو نه اوچت کړې شی بیا به د سختو د شدت د وجې نه دا پیژندګلو ختمه شی او جمله د "یحشرهم" ضمیر "هم" نه حال مقدره دې یه د "یوم" ظروف متعلق دې واقعی په سخت تاوان کښې پریوتل هغه خلق چاچې د بعث په ذریعه سره د الله تعالی دعلاماتو تکذیب اوکړو او هغوی هدایت موندونکی نه وو او چې د کوم عذاب مونږ هغوی سره وعده کوو، په "اما" د نون شرطیه په د "ما" زائده کښې ادغام دې ددې څه حصه ستاسو په ژندګئ کښې تاسو ته اوښایو او جواب شرط محذوف دې یعنی دا هم کیدې شی یا دوی ته عذاب ورکولو نه مخکښې مونږ تاسو وفات کړو بهر حال دوی لره زمونږ خوا ته راتلل دی بیا الله ددوی د هر کار نه خبردار دې که هغه د دوی د کفر د قبیلې نه وی یا د دروغ ګنړلو د قبیلې نه، لهذا هغه به دوی ته سخت عذاب ورکړی او هر امت د پاره یو رسول دې چې کله یو امت ته د هغوی رسول راشی او دوی هغه دروغ ګنړی نو د هغه فیصله پورا انصاف سره کولې شی نو دغه شان دوی ته عذاب ورکولې شی او رسول او دده تصدیق کونکو ته خلاصې میلاؤ شی او په دوی باندې ظلم نه کیږی چې دوی ته بغیر ظلم سزا ورکړې شی، نو دغه شان به دوی سره هم اوشی دا خلق وائی چې ددې عذاب وعده به کله وی؟ که چرې تاسو په وعده کښې رشتونی یئ ای نبی ﷺ اووایه چې څما په اختیار کښې خپل نقصان هم نشته چې د ځان نه ئې لرې کړم خو یا حاصل کړم خو صرف دومره څومره چې الله غواړی دا چې څه په دې باندې قادر یم، نو ماته به په تاسو باندې د عذاب نازلولو څه قدرت وی؟ د هر امت د هلاکت یو وخت مقرر وی هر کله

چې هغه وخت پوراشي نوددې نه یو ساعت برابر هم مخکښې والې روستو والې نه کیږي دوی ته اووایه چې ماته اووایئ که چرې د الله تعالی عذاب د شپې یا د ورځې په تاسو باندې راشي نو تاسو څه کولې شئ؟ آخر عذاب داسې څه څیز دې چې د هغې د پاره مجرم مشرک جلدي کوي په دې کښې د ضمیر په ځائې اسم ظاهر ایښودې شوې دې جمله استفهامیه جواب شرط دې څنګه چې ددې مثال ان اتیتك ماذا تعطیلی او مراد دې نه هغه سختوالې بیانول دي یعنی د کوم په دوی باندې تادی ده، څومره لویه ورځ ده! آیا چې څه وخت په دوی باندې عذاب راشي نو هغه وخت به دوی ایمان راوړي؟ یعنی په الله باندې یا د هغه په عذاب باندې ددې د نازلیدو په وخت کښې، او همزه انکار د تاخیر د پاره ده، نوستاسو به هغه ایمان قبول نه وي، او تاسو ته اوئیلې شي اوس ایمان راوړئی حالانکه تاسو په خپله توقې ددې د زر راتلو تقاضه کوله بیا به ظالمانو ته اوئیلې شي چې اوس همیشگیر عذاب اوڅکئ یعنی په داسې عذاب کښې چې په هغې کښې تاسو همیشه اوسیږئ تاسو ته هم ستاسو د کړو بدله میلاوّ شوې ده، ستاسو نه تپوس کوي چې عذاب آیا رشتیا خبره ده؟ یعنی چې د کوم عذاب او بعث تا وعده کړې ده آیا هغه په رشتیا دی؟ تاسو ورته اووایئ چې او قسم دې وي ځما په رب باندې، هغه رشتونې خبره ده او تاسو هیڅ کله الله تعالی عاجزه کولې نشئ، یعنی د هغه د عذاب نه بچ کیدې نه شئ.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** هذا منسوخ بآیة السیف: فهی قوله تعالی فاقتلوهم حیث وجدتموهم الخ،

**قوله:** بل هم اعظم: کافرانو له ئې ړندو سره تشبیه ورکړه، ړانده مشبه به دې، او کافران مشبه، د بصیرت نشتوالې د نظر د نشتوالی نه زیات سخت دې، کافران چونکه د زړه سترګې نه لري لهذا کافران په ګمراهئ کښې د ړاندو نه هم زیات دی.

**قوله:** کانهم: په دې کښې اشاره ده چې "کان" مخففه عن المثقله دې، او ددې اسم محذوف دې،

**قوله:** وجملة التشبیه حال من الضمیر: څکه چې د یوم صفت ګرځولو په صورت کښې به تقدیر څه دا شان وي حال کونهم مشبهین بمن لم یلبث الاساعة الخ

**قوله:** والجملة حال مقدرة: د یو سوال مقدر جواب دې

**سوال:** یتعارفون، د یحشرهم ضمیر "هم" نه حال دې، او د حال او ذوالحال زمانه یوه وي لهذا حشر به اول وي او پیژند ګلنه به روستو وي، نو لهذا د دواړو زمانه یوه نشوه؟

**جواب:** دا حال مقدره دې چې کافران به جمع کړې شي په داسې حال کښې چې ددوی د پاره تعارف مقدر کړې شوې دې ای حال کونهم مقدرین التعارف لانهم متعارفون بالفعل

**قوله:** ومتعلق الظرف: او هغه "یوم" دې تقریر دادې یتعارفون یوم یحشرهم

قوله: وجواب الشرط محذوف: ای فذاك دا اضافه د یو سوال جواب دی
سوال: اما نرینك او نتوفینك، دوه شرطونه دی او یو جزا ده او هغه "فالینا مرجعهم" ده حالانکه "اما نرینک باندی د فالینا مرجعهم" ترتب د معنی د خراب والی د وجه صحیح نه دی.
جواب: حاصل دادی چی "فالینا مرجعهم" د دواړه شرطونو جزاء نه ده بلکه د "اما نرینک" جزاء محذوف ده چی هغی ته مفسر علام "فذاک" محذوف سره اشاره کړی ده
سوال: "فذاک" جزاء ده، حالانکه جزاء مفرد نه وی؟
جواب: د "فذاک" اصل "فذاک حق" دی
قوله: وضع الظاهر موضع المضمر:
سوال: یستعجل منه المجرمون ئی اوفرمائیلو او یستعجلون منه ئی او نه فرمائیلو حالانکه دا د هغی په مقابله کښی اخصر دی؟
جواب: د اخصر په مقابله کښی د مختصر تعبیر اختیارولو وجه دا ده چی په مختصر کښی سبب په ترک د استعجال باندی دلالت دی او هغه جرم دی دغه شان دی نه علاوه ددوی د قباحتوالی په صفت باندی هم دلالت کوی
قوله: وجملة الاستفهام: جواب شرط دی او ان اتکم عذابه شرط دی او "ماذاء د فاء تقدیر سره جواب شرط دی څکه چی جمله استفهامیه بغیر د فاء نه جزاء واقع کیدی نشی.
قوله: ان اتیتك ماذا تعطینی: دا مثال د استبعاد د لری کولو د پاره دی یعنی دی وئیلو دپاره چی په کلام عرب کښی جمله استفامیه بغیر د فاء نه هم جزاء واقع کیدی شی لهذا هیڅ اعتراض نشته.
قوله: والمراد به التهویل: یعنی د استفهام نه مراد استعلام نه دی بلکه سختوالی بیانول دی.
قوله: ویقال لکم: ددی عبارت تقدیر د یو سوال د جواب د پاره دی
سوال: لم قیل لهم، عطف په الئن وقد کنتم به تستعجلون باندی دی حالانکه معطوف علیه جمله اسمیه او معطوف جمله فعلیه ده،
جواب: د معطوف علیه نه مخکښی فعل مخذوف دی، چی هغه مفسر علام په ویقال لکم سره ظاهر کړو، لهذا اوس څه اشکال نشته.
قوله: تؤمنون:
سوال: آلئن دیقال لکم مقوله ده، حالانکه مقوله جمله وی او آلئن مفرد دی؟
جواب: عبارت محذوف دی تقدیری عبارت دادی الئن تؤمنون څنګه چی مفسر علام ښکاره کړی ده، لهذا اوس هیڅ اعتراض نشته.

[اياتونه: ۵۴ ـ ۶۰]

{وَلَوْ أَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ ظَلَمَتْ} كَفَرَتْ {مَا فِي الْأَرْضِ} جَمِيعًا مِنَ الْأَمْوَالِ {لَافْتَدَتْ بِهِ} مِنَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ {وَأَسَرُّوا النَّدَامَةَ} عَلَى تَرْكِ الْإِيمَانِ {لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ} أَخْفَاهَا رُؤَسَاؤُهُمْ عَنِ الضُّعَفَاءِ الَّذِينَ أَضَلُّوهُمْ مَخَافَةَ التَّعْيِيرِ {وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ} بَيْنَ الْخَلَائِقِ {بِالْقِسْطِ} بِالْعَدْلِ {وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ} شَيْئًا {أَلَا إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ أَلَا إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ} بِالْبَعْثِ وَالْجَزَاءِ {حَقٌّ} ثَابِتٌ {وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ} أَيِ النَّاسِ {لَا يَعْلَمُونَ} ذَلِكَ {هُوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ} فِي الْآخِرَةِ فَيُجَازِيكُمْ بِأَعْمَالِكُمْ {يَا أَيُّهَا النَّاسُ} أَيْ أَهْلَ مَكَّةَ {قَدْ جَاءَتْكُمْ مَوْعِظَةٌ مِنْ رَبِّكُمْ} كِتَابٌ فِيهِ مَا لَكُمْ وَمَا عَلَيْكُمْ وَهُوَ الْقُرْآنُ {وَشِفَاءٌ} دَوَاءٌ {لِمَا فِي الصُّدُورِ} مِنَ الْعَقَائِدِ الْفَاسِدَةِ وَالشُّكُوكِ {وَهُدًى} مِنَ الضَّلَالِ {وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِينَ} بِهِ {قُلْ بِفَضْلِ اللَّهِ} الْإِسْلَامِ {وَبِرَحْمَتِهِ} الْقُرْآنِ {فَبِذَلِكَ} الْفَضْلِ وَالرَّحْمَةِ {فَلْيَفْرَحُوا هُوَ خَيْرٌ مِمَّا يَجْمَعُونَ} مِنَ الدُّنْيَا بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ {قُلْ أَرَأَيْتُمْ} أَخْبِرُونِي {مَا أَنْزَلَ اللَّهُ} خَلَقَ {لَكُمْ مِنْ رِزْقٍ فَجَعَلْتُمْ مِنْهُ حَرَامًا وَحَلَالًا} كَالْبَحِيرَةِ وَالسَّائِبَةِ وَالْمَيْتَةِ {قُلْ آللَّهُ أَذِنَ لَكُمْ} فِي ذَلِكَ بِالتَّحْلِيلِ وَالتَّحْرِيمِ لَا {أَمْ بَلْ عَلَى اللَّهِ تَفْتَرُونَ} تَكْذِبُونَ بِنِسْبَةِ ذَلِكَ إِلَيْهِ {وَمَا ظَنُّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ} أَيْ أَيُّ شَيْءٍ ظَنُّهُمْ بِهِ {يَوْمَ الْقِيَامَةِ} أَيَحْسَبُونَ أَنَّهُ لَا يُعَاقِبُهُمْ لَا {إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ} بِإِمْهَالِهِمْ وَالْإِنْعَامِ عَلَيْهِمْ {وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ}

ترجمه: که یو کس سره چا چې کفر کولو سره ظلم اوکړو، د زمکې ټول دولت وی نو هغه به د قیامت په ورځې د عذاب نه د خلاصی د پاره په فدیه ورکولو باندې تیار وی او هر کله چې عذاب اوینی نو د ایمان په پرېښودلو باندې به پښیمانتیا پټوی یعنی د دوی مشران به د پیغور د ورکولو په ویره خپله پښیمانتیا د د کمزورو خلقو نه پټوی، کوم چې دوی گمراه کړې وو خو ددوی یعنی مخلوق په مینځ کښې به پورا انصاف سره فیصله کیږی او په دوی باندې به ذره برابر هم ظلم کولې نشی، واورئی اې په آسمانونو او زمکه کښې چې څه دی هغه د الله دی او واورئی چې د بعث او بدلې د الله وعده رشتینې ده خو اکثر خلق دې نه خبر نه دی،هم هغه ژوند ورکوی او هم هغه مره کول کوی او په آخرت کښې به تاسو هم د هغه طرف ته واپس کولې شئ نو هغه به تاسو ته ستاسو د اعمالو بدله درکړی اې خلقو یعنی مکې والو تاسو ته ستاسو د رب د طرف نه نصیحت نامه راغلې ده چې په دې کښې د فائدې او د نقصان د څیزونو خبرې دی او هغه قرآن دې او د زړه د بیمارو د پاره یعنی د خرابو عقیدو او شکونو د پاره شفاء ده او د گمراهئ نه هدایت دې او په دې باندې یقین ساتونکو د پاره هدایت او رحمت دې او اووایه چې د الله په فضل یعنی په اسلام او د هغه په رحمت یعنی په قرآن خوشحالی کول پکار دی په دې باندې خو خوشحاله کیدل پکار دی دا د دنیا د هغه ټولو څیزونو نه بهتر ده کوم چې دوی جمع کوی یجمعون یاء او تاء سره دې اې نبی ﷺ دوی ته اووایه چې آیا تاسو چرته سوچ کړې دې

چې الله كوم رزق ستاسو د پاره راليږلي دي نو هغه تاسو په خپله څه حرام او څه حلال كړل لكه سائبه، بحيره او مرداره دوى نه تپوس اوكړه چې آيا الله تاسو ته ددې حلالو او حرامولو اجازت دركړې وو؟ نا بلكه تاسو په الله باندې د هغه طرف ته د دروغو نسبت كولو سره الزام لګوئې، كوم خلق چې الله تعالى باندې دروغ بهتان تړى د هغوى څه ګمان دې چې د قيامت په ورځ به د دوى سره څنګه معامله كيږى؟ آيا ددوى دا ګمان دې چې الله به دوى ته سزا نه ورنكړى؟ الله تعالى خو خلقو ته مهلت وركولو او په دوى باندې انعام كولو سره په دوى باندې رحم كولو والا دې خو اكثر خلق د هغه شكر نه ادا كوى.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله: لو ان لكل نفس ظلمت ما في الارض لافتدت به**: "لو" شرطيه امتناعيه، "ان" حرف مشبه بالفعل، نفس ظلمت موصوف صفت د "ان" د پاره خبر مقدم، "ما" اسم موصول محلا منصوب، "ان" د خپل ماتحت "ثبت" د فعل محذوف فاعل، "ما" موصوله صله سره ميلاؤيدو سره جمله او بيا د "ان" اسم، لافتدت جواب الشرط، اى لوثبت ذلك لافتدت به.

**قوله: اي اخفاها**: د "اسروا" تفسير په "اخفاها" سره د معنى د بيان د پاره دې، چې "اسروا" د اضدادو نه دې څكه چې ددې معنى د "اظهر" هم ده، او د "اخفا" هم، دويمه معنى زياته مشهوره ده، اګرچې احتمال د دواړو شته.

**قوله: اي شيء ظنهم**: په دې كښې دې خبرې ته اشاره ده چې په "ما ظن الذين" كښې "ما" په معنى د "اى شيء" مبتدا ده، او ظن الذين يفترون على الله ددې خبر دې، او "يوم د ظن" د وجه منصوب دې، اى ظن واقع فيه.

**[اياتونه: ۶۱ـ۷۰]**

{وَمَا تَكُونُ} يَا مُحَمَّد {فِي شَأْنٍ} أَمْر {وَمَا تَتْلُو مِنْهُ} أَيْ مِنَ الشَّأْنِ أَوْ الله {مِنْ قُرْآنٍ} أَنْزَلَهُ عَلَيْكَ {وَلَا تَعْمَلُونَ} خَاطَبَهُ وَأُمَّته {مِنْ عَمَلٍ إِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُودًا} رُقَبَاء {إِذْ تُفِيضُونَ} تَأْخُذُونَ {فِيهِ} أَيْ الْعَمَل {وَمَا يَعْزُبُ} يَغِيب {عَنْ رَبِّكَ مِنْ مِثْقَالِ} وَزْن {ذَرَّةٍ} أَصْغَر نَمْلَة {فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ وَلَا أَصْغَرَ مِنْ ذَلِكَ وَلَا أَكْبَرَ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ} بَيِّن هُوَ اللَّوْح الْمَحْفُوظ {أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ} فِي الْآخِرَة هم {الَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ} اللّٰه بِامْتِثَالِ أَمْره وَنَهيه {لَهُمُ الْبُشْرَى فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا} فُسِّرَتْ فِي حَدِيث صَحَّحَهُ الْحَاكِم بِالرُّؤْيَا الصَّالِحَة يَرَاهَا الرَّجُل أَوْ تُرَى لَهُ {وَفِي الْآخِرَةِ} الْجَنَّة وَالثَّوَاب {لَا تَبْدِيلَ لِكَلِمَاتِ اللَّهِ} لَا خُلْف لِمَوَاعِيدِهِ {ذَلِكَ} الْمَذْكُور {هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ} {وَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ} لَك لَسْت مُرْسَلًا وَغَيْره {إِنَّ} اسْتِئْنَاف {الْعِزَّةَ} الْقُوَّة {لِلَّهِ جَمِيعًا هُوَ السَّمِيعُ} لِلْقَوْلِ {الْعَلِيمُ} بِالْفِعْلِ فَيُجَازِيهِمْ وَيَنْصُرك {أَلَا إِنَّ لِلَّهِ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ} عَبِيدًا وَمُلْكًا وَخَلْقًا

{وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِينَ يَدْعُونَ} يَعْبُدُونَ {مِنْ دُونِ اللَّهِ} أَيْ غَيْرِه أَصْنَامًا {شُرَكَاءَ} لَهُ عَلَى الْحَقِيقَةِ تَعَالَى عَنْ ذَلِكَ {إِنْ} مَا {يَتَّبِعُونَ} فِي ذَلِكَ {إِلَّا الظَّنَّ} أَيْ ظَنَّهُمْ أَنَّهَا آلِهَةٌ تَشْفَعُ لَهُمْ {وَإِنْ} مَا {هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ} يَكْذِبُونَ فِي ذلك {هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا} إِسْنَادُ الْإِبْصَارِ إِلَيْهِ مَجَازٌ لِأَنَّهُ يُبْصَرُ فِيهِ {إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ} دَلَالَاتٍ عَلَى وَحْدَانِيَّتِهِ تَعَالَى {لِقَوْمٍ يَسْمَعُونَ} سَمَاعَ تَدَبُّرٍ واتعاظ {قَالُوا} أَيْ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى وَمَنْ زَعَمَ أَنَّ الْمَلَائِكَةَ بَنَاتُ اللَّهِ {اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا} قَالَ تَعَالَى لَهُمْ {سُبْحَانَهُ} تَنْزِيهًا لَهُ عَنِ الْوَلَدِ {هُوَ الْغَنِيُّ} عَنْ كُلِّ أَحَدٍ وَإِنَّمَا يَطْلُبُ الْوَلَدَ مَنْ يَحْتَاجُ إِلَيْهِ {لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ} مُلْكًا وَخَلْقًا وَعَبِيدًا {إِنْ} مَا {عِنْدَكُمْ مِنْ سُلْطَانٍ} حُجَّةٍ {بِهَذَا} الَّذِي تَقُولُونَهُ {أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ} اسْتِفْهَامُ تَوْبِيخٍ {قُلْ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ} بِنِسْبَةِ الْوَلَدِ إِلَيْهِ {لَا يُفْلِحُونَ} لَا يَسْعَدُونَ لَهُمْ {مَتَاعٌ} قَلِيلٌ {فِي الدُّنْيَا} يَتَمَتَّعُونَ بِهِ مُدَّةَ حَيَاتِهِمْ {ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ} بِالْمَوْتِ {ثُمَّ نُذِيقُهُمُ الْعَذَابَ الشَّدِيدَ} بعد الموت {بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ}

ترجمه: او اې محمد ﷺ ته چې په کوم شان (حال) کښې هم ئې او ددې شان (حال) د وجه نه د قرآن نه چې څه په تا باندې نازل شوې دی څه تلاوت کوې یا د الله د طرف نه د قرآن تلاوت کوې او ته چې څه هم کار کوې او دا حضور پاک ﷺ او د هغه امت ته خطاب دې مونږه ددې کار نه خبردار یوو، هرکله چې تاسو په دې کار کښې مشغولیږئ ذره برابر څه خیز دا سې نشته نه په زمکه کښې او نه په آسمان کښې او نه دې مقدار نه وړوکې او نه غټ، چې هغه په کتاب مبین یعنی لوح محفوظ کښې موجود نه وی ذره وړوکی میږی ته وائی یاد ساتئ یقینی خبره ده چې د الله دوستانو د پاره به په آخرت کښې نه څه ویره وی او نه به ئې څه غم وی او دا هغه خلق دی چې ایمان ئې راوړې دې او ددې په امر او نهی باندې عمل کولو سره د الله نه ویریدل ددې خلقو د پاره په دنیا کښې زیرې دې په یو حدیث کښې چې کوم ته حاکم صحیح وئیلې دی، د خوشخبری تفسیر د ښو خوبونو سره شوې دې چې کوم انسان پخپله گوری یا انسان باره کښې بل خوک گوری او په آخرت کښې د جنت او ثواب خوشخبری ده د الله په خبرو یعنی د هغه په وعدو کښې روستوالې نه وی دا ذکر شوې خبره ډیره غټه کامیابی ده دې د دوی خبرې دا چې ته نبی ﷺ نه ئې وغیره په غم کښې وانچوی، یقینی خبره داده چې ټول قوت الله لره دې دا جمله مستانفه ده، هغه ټولو خبرو لره اوری او کارونه پیژنی هغه به دوی ته بدله ورکړی او د ستا به مدد وکړی یاد ساتئ په زمکه او آسمانونو کښې چې څه دی د غلام ملک او تخلیق په اعتبار سره د الله دی کوم خلق چې الله پریښودلو سره د الله نه سواء د هغه د شریکانو بندگی کوی یقینی خبره ده چې الله د هغوی نه بیزاره دې دا خلق په دې معامله کښې صرف د خیالاتو تابعداری کوی یعنی د دوی دا خیال دې چې دا بتان ددوی معبودان دی، ددوی سفارش به کوی دا خلق صرف د اندازې خبرې کوی یعنی په دې معامله کښې د دروغو نه کار اخلی هغه

صرف الله دي چې ستاسو د پاره ئې شپه جوړه کړه چې تاسو په کښې سکون آرام حاصل کړئ او ورځ ئې روښانه کړه ددې طرف ته د ابصار اسناد مجازی دې ځکه چې په ورځ کښې ليدلې شی بې شکه په دې کښې د الله د وحدانيت نښې دی د هغه خلقو د پاره چې د نصيحت او غوروفکر په توګه اوری يهود او عيسايان او د چا چې دا عقيده ده چې فرشتې د الله لونړه دې وائی چې الله اولاد لری الله تعالى دوی ته اوئيل سبحان الله هغه خو د اولاد نه پاک دې هغه خو د هر څيز نه بې پرواه دې د بچی حاجت خو هغه چا ته وی چې هغه محتاج وی په زمکه او آسمانونو کښې چې څه دی هغه هم د هغه دی د ملک کيدو په اعتبار سره، مخلوق اعتبار سره او د غلام کيدو په اعتبار سره،څه چې تاسو وايئ تاسو سره ددې خبرې هيڅ دليل نشته،آيا تاسو د الله په باره کښې داسې خبرې کويئ چې د هغې تاسو ته علم نشته استفهام د رټنې د پاره دې، اې محمد ﷺ او وايه چې کوم خلق د هغه طرف ته د بچی نسبت کولو سره په الله باندې بهتان لګوی هغوی کاميابی حاصليدونکی نه دی،ددوی د پاره په دنيا کښې د يو څو ورځو مزې دی تو له زندګی دې مزه واخلی بيا د مرګ نه پس دوی له زمونږ طرف ته راتلل دی بيا به مونږ ددوی د کفر په بدله کښې د مرګ نه پس د سخت عذاب مزه ورڅکوو.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** وما تكون في شأن: په دې کښې خطاب حضورپاک ﷺ ته دې د شان معنى حال، کار، فکر، او اهم معامله ده،جمع ئې شئون دې، واؤ عاطفه، ما نافيه، تكون فعل مضارع ناقص،په دې کښې پټ ضمير د انت هغه ئې اسم، "في شان" د "كائنا" سره متعلق د تكون خبر، "وما تتلوا واؤ عاطفه، ما نافيه، تتلوا فعل مضارع، او په دې کښې پټ ضمير د "انت" دې فاعل، "منه" د "تتلوا" سره متعلق، د "منه" ضمير قرآن ته، يا شان ته راجع دې،که چرې "شان" ته راجع وی نو "من" تعليليه به وی،او په "من القرآن" کښې "من" زائد،او قرآن محلا مفعول به دې

**سوال:** په دې صورت کښې به اضمار قبل الذكر لازم شی،

**جواب:** د تفخيم او تعظيم د وجه اضمار قبل الذكر جائز دې د "منه" ضمير ضمير شان هم کيدې شی،او د الله طرف ته هم راجع کيدې شی څنګه چې مفسر علام دوارو احتمالاتو ته په "اى من الشان الله" سره اشاره کړې ده، يعنى تاسو په هيڅ حالت کښې نه يئ او نه په شان(حالت) د تلاوت کښې يئ، مګر الله ستاسو د حال نه خبر دې.

**قوله:** حاطبه وامته: دا د يو سوال مقدر جواب دې

**سوال:** دا دې مخکښې خطاب يواځې حضورپاک ﷺ ته وو،او هم دغه وجه ده چې ضمير د مفرد ئې راوړو، او دلته په تعملون کښې د جمع صيغه استعمال شوې ده،چې کومه د سياق خلاف ده؟

**جواب:** حاصل دادې چې دلته په خطاب کښې امت هم شامل دې

**قوله:** الاكنا عليكم شهودا: دا د مخاطبينو د عام حالاتو نه استثناء مفرغه ده.

**قوله:** وزن ذرة: ددې اضافې مقصد هم د يو سوال جواب دې

**سوال:** دادې چې مثقال يو متعين مقدار دې حالانکه دلته د يو مخصوص مقدار معنى مراد نه ده.

**جواب:** حاصل دادې چې مفسر علام د مثقال تفسير په وزن سره کولو کښې ددې اعتراض جواب ته اشاره کړې ده چې دلته معين مخصوص مقدار مراد نه دې بلکه مطلق وزن مراد دې

**قوله:** هم: اشاره ئې اوکړه چې الذين آمنوا الخ د هم مبتدأ خبر دې

**قوله:** لانه مبصر فيه: دې عبارت سره مفسر علام اشاره اوکړه چې والنهار مبصرا کښې د ظرفيت علاقه ده، څنګه چې نهاره صائم وليله قائم کښې علاقه د ظرفيت ده.

**[اياتونه: ۷۱ ـ ۸۲]**

{وَاتْلُ} يا محمد {عَلَيْهِمْ} أي كفار مكة {نَبَأَ} خبر {نُوحٍ} ويبدل منه {إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ إِنْ كَانَ كَبُرَ} شق {عَلَيْكُمْ مَقَامِي} لبثي فيكم {وَتَذْكِيرِي} وعظي إياكم {بِآيَاتِ اللَّهِ فَعَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْتُ فَأَجْمِعُوا أَمْرَكُمْ} اعزموا على أمر تفعلونه بي {وَشُرَكَاءَكُمْ} الواو بمعنى مع {ثُمَّ لَا يَكُنْ أَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً} مستورا بل أظهروه وجاهروني به {ثُمَّ اقْضُوا إِلَيَّ} امضوا فيما أردتموه {وَلَا تُنْظِرُونِ} تمهلون فإني لست مباليا بكم {فَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ} عن تذكيري {فَمَا سَأَلْتُكُمْ مِنْ أَجْرٍ} ثواب عليه فتولوا {إِنْ} ما {أَجْرِيَ} ثوابي {إلا على الله وأمرت أن أكون من المسلمين} {فكذبوه فنجيناه وَمَنْ مَعَهُ فِي الْفُلْكِ} السفينة {وَجَعَلْنَاهُمْ} أي من معه {خَلَائِفَ} في الأرض {وَأَغْرَقْنَا الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا} بالطوفان {فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِينَ} من إهلاكهم فكذلك نفعل بمن كذب {ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِ} أي نوح {رُسُلًا إِلَى قَوْمِهِمْ} كإبراهيم وهود وصالح {فَجَاءُوهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ} المعجزات {فَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا بِمَا كَذَّبُوا بِهِ مِنْ قَبْلُ} أي قبل بعث الرسل إليهم {كَذَلِكَ نَطْبَعُ} نختم {عَلَى قُلُوبِ الْمُعْتَدِينَ} فلا تقبل الإيمان كما طبعنا على قلوب أولئك {ثم بعثنا من بعدهم مُوسَى وَهَارُونَ إِلَى فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ} قومه {بِآيَاتِنَا} التسع {فاستكبروا} عن الإيمان بها {وكانوا قوما مجرمين} {فَلَمَّا جَاءَهُمُ الْحَقُّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوا إِنَّ هَذَا لَسِحْرٌ مُبِينٌ} بيّن ظاهر {قال موسى أتقولون للحق لما جاءكم} إنه لسحر {أسحر هذا} وقد أفلح من أتى به وأبطل سحر السحرة {ولا يفلح الساحرون} والاستفهام في الموضعين للإنكار {قَالُوا أَجِئْتَنَا لِتَلْفِتَنَا} لتردنا {عَمَّا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آباءنا وتكون لَكُمَا الْكِبْرِيَاءُ} الملك {فِي الْأَرْضِ} أرض مصر {وَمَا نَحْنُ لَكُمَا بِمُؤْمِنِينَ} مصدقين {وَقَالَ فِرْعَوْنُ ائتوني بِكُلِّ سَاحِرٍ عَلِيمٍ} فائق في علم السحر {فَلَمَّا جَاءَ السَّحَرَةُ قَالَ لَهُمْ مُوسَى} بعد ما قالوا له {إِمَّا أَنْ تُلْقِيَ وَإِمَّا أَنْ نَكُونَ نَحْنُ الْمُلْقِينَ} {أَلْقُوا مَا أَنْتُمْ مُلْقُونَ} {فَلَمَّا أَلْقَوْا} حبالهم

وَعِصِيَّهُمْ {قَالَ مُوسَىٰ مَا} اسْتِفْهَامِيَّة مبتدأ خبره {جِئْتُمْ بِهِ السِّحْرُ} بَدَل وَفِي قِرَاءَة بِهَمْزَة وَاحِدَة إِخْبَار فَمَا اسْم مَوْصُول مبتدأ {إِنَّ اللَّهَ سَيُبْطِلُهُ} أَيْ سَيَمْحَقُهُ {إن الله لا يصلح عمل المفسدين} {وَيُحِقُّ} يُثْبِت وَيُظْهِر {اللَّهُ الْحَقَّ بِكَلِمَاتِهِ} بِمَوَاعِيدِهِ {ولو كره المجرمون}

ترجمه: اې محمد ﷺ دې كفار مكه ته د نوح (عليه السلام) د هغه وخت قيصې واوروه "اذ قال" د "نبا نوح" نه بدل دې، چې كله نوح عليه السلام خپل قوم ته اوفرمائيل چې اې ځما د قوم خلقو كه چرې تاسو ته ځما دلته اوسيدنه او د الله تعالى د آيتونو په ذريعه تاسو ته نصيحت كول بنه نه لګى نو نه دې لګى ما خو په الله باندې بهروسه كړې ده نو تاسو خپل تدبيرونه چې كوم تاسو ځما خلاف كول غواړئى نو د خپل شريكانو سره ميلاويدو سره ئې نور هم پاخه كړئ يعنى چې كوم تدبيرونه تاسو ځما خلاف كوئى هغه نور هم مضبوط كړئ په "وشركاؤ" كښې واؤ په معنى د مع دې بيا ستاسو د چالونو يو اړخ ستاسو نه پټ پكار نه دې بلكه دې لره ښكاره كړئ او ما هم ددې نه خبردار اوساتئ بيا چې څه ستاسو اراده وى نوماسره ئې اوكړئ اوماته مهلت مه راكوئى، ماته ستاسو هيڅ پرواه نشته بيا هم كه تاسو ځما د نصيحت نه مخ اړوئى نو ما ستاسو نه د څه اجرت يعنى په دې باندې د څه ثواب سوال كړې نه دې چې د هغې د وجه نه تاسو مخ اړوئى ځما اجر او ثواب خو صرف د الله په ذمه دې او ماته حكم راكړې شوې دې چې ځه د حكم تابعدار اوسم. د نوح عليه السلام قوم هغه دروغژن وګنړلو نو مونږ نوح عليه السلام) او په كشتۍ كښې چې څوك ورسره وو هغه مو بچ كړل او كوم خلق چې نوح عليه السلام سره وو هغوى مو په زمكه باندې خليفه جوړ كړل او باقى ټول خلق مو په طوفان كښې غرق كړل چا چې زمونږ آيتونه دروغژن كړى وو، نو اوګورئى چې د كوم خلق د هلاكت نه ويرولې شوې وو دهغوى څه انجام شو نو دغه شان مونږ به دې خلقو سره هم دغه شان كوو چې تا څوك دروغ ژن ګنړى بيا مونږ د نوح عليه السلام نه پس ډير رسولان د هغوى قومونو ته راوليږل لكه ابراهيم عليه السلام هود عليه السلام او صالح عليه السلام نو هغوى دوى ته ښكاره معجزات راوړل خو چې كوم څيز دوى د مخكښې نه يعنى دوى ته رسول راليږلو نه مخكښې دروغ ګنړلې وو، نو بيا ئې اونه منلو، مونږ دغه شان د حد نه وتوونكى والو زړونو باندې مهر لګوو، بيا هغوى ايمان نه قبلوى څنګه چې مونږ ددوى په زړونو باندې مهر لګولې دې بيا دې نه پس مونږ موسى عليه السلام او هارون عليه السلام زمونږ نخښو سره فرعون او د هغه قوم طرف ته راوليږل خو هغوى د ايمان په مقابله كښې تكبر اوكړو او هغه مجرمان خلق وو بيا چې كله زمونږ د طرف نه حق هغوى ته راغلو نو هغوى اوويل چې دا خو ښكاره جادو دې موسى عليه السلام اوفرمائيل آيا تاسو د حق باره كښې چې كوم تاسو ته راغلې دې وايئ چې دا جادو دې آيا دا جادو دې؟ حالانكه دا چې چا راوړې وو هغه كامياب شو او د جادوګرانو جادو ئې باطل كړو او ساحر جادوګر كاميابى نه مومى او استفهام دواړو ځايونو كښې د انكار د پاره دې هغوى جواب وركړو چې آيا ته زمونږ طرف ته دې له راغلې ئې چې ته مونږ د هغه طريقې نه واړوې چې په

کومه مونږ خپل پلار نیکه موندلي دي؟ او د مصر په ملک کښې ستاسو دوارو رونړو حکومت شی؟او مونږ ستاسو دوارو تصدیق کولو والا نه یوو.او فرعون اووئیل چې ماله یعنی په علم سحر کښې ماهران جادوگران راولئ، چې کله جادوگران راغلل نو د جادوگرو ددې وئیلو نه پس چې تاسو اول غورزوئی یا مونږ اوغورزوو موسی عليه السلام هغوی ته اوفرمائیل چې تاسو اوغورزوئی څه چې تاسو غورزوئی دغه شان چې کله جادوگرانو خپل رسئ او کونتې اوغورزولې نو موسی عليه السلام اوفرمائیل چې څه تاسو راوړې دی هغه جادو دې ما استفهامیه مبتدأ دې "جئتم به السحر) ددې خبر دې "السحر" د "ماجئتم" نه بدل دې او په یو قرات کښې یو همزه سره خبر دې "ما" موصوله مبتدأ ده الله تعالی به اوس دا باطل کړی، الله د داسې فسادیانو کارونه نه جوړوی،او الله په خپلو وعدو سره حق حق ښکاره کوی اګرچې مجرمانو ته دا څومره هم ناخوښه وی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:واتل:** فعل امر د حرف علت حذف سره مبنی دې، په اصل کښې "واتلو" وو،په آخر کښې واؤ حذف شو، "علیهم" د "اتل" سره متعلق دې "نبأ نوح" په ترکیب اضافی سره د "اتل" مفعول به دې،اذ قال، اذ ظرفیه د ماضئ د پاره د "نبا" نه د بدل الاشتمال د وجه محلا منصوب دې،اذقال د "نبأ" سره متعلق هم کیدې شی، په نوح باندې وقف لازم دې ځکه چې د "اذقال" تعلق د "اتل" سره د فساد د معنی د وجه نه جائز نه دې ځکه چې "اتل" مستقبل دې او ظرف ماضی دې په دې صورت کښې به ترجمه داسې وی چې ته هغه وخت واوروه چې کوم وخت نوح عليه السلام خپل قوم ته وئیلې وو،حالانکه دا ممکنه نه ده.

**قوله:لقومه:** په دې کښې لام د تبلیغ د پاره دې،"مقام" په فتح سره "موضع قیام" ځائې، مرتبه،مراد ترې خپل وجود دې او "مقام" په ضمې سره مصدر دې، قیام کول، ایساریدل، القیام علی الدعوة خلال مدة اللبث ځکه چې د دعوت او تبلیغ کار زیات تر په ولاړه باندې وی.

**قوله:فعلی الله توکلت:** داد ان کان کبر جزاء ده، او که فعلی الله توکلت جمله معترضه اوګنړلې شی نو اجمعوا امرکم به جواب شرط وی.

**قوله:فاجمعوا امرکم:** ددې تفسیر په اعزموا علی امر سره کولو کښې اشاره ده چې "اجمع" متعدی بنفسه هم استعمالیږی، او متعدی بالحرف هم.

**قوله:غمه:** ساه ډوبیدل، تور، مشتبه، پټ، سخت، هر کله چې سپوږمئ پټه شی،نو عرب غم الهلال وائی.

**قوله:الواؤ بمعنی مع:** یعنی "شرکاء" مفعول معه کیدو د وجه منصوب دې،دې سره ئې دا

شبهه دفع کړه چې د شرکاء عطف په ظاهره د "اجمعوا" ضمیر فاعل باندې دې، یعنی تاسو شریکان خپل تدبیرونه مضبوط کړئ، په دې اعتبارسره "شرکاء" مرفوع کیدل پکار دی.

**قوله: قال موسى اتقولون للحق لما جاءكم: انه لسحر اسحر هذا قال موسى،** فعل سره د فاعل دې اتقولون کښې همزه استفهام انکاری دې "تقولون" فعل مضارع د فاعل سره دې، انتم للحق متعلق د تقولون سره دې، لما جاءكم د تقولون ظرف دې، انه لسحر، د تقولون مقوله ده، چې محذوف ده، پورا جمله د قال موسى مقوله حکائی ده، یعنی موسى عليه السلام د فرعونیانو مقوله نقل کړې ده.

**قوله: اسحر هذا:** دا د موسى د قول محذوف مقوله ده، همزه د استفهام انکاری ده "سحر" خبر مقدم دې او هذا مبتدأ مؤخر دې. لا يفلح السحرون جمله حاليه ده.

**قوله: بدل:** یعنی اَلسحرُ د ماجئتم به، نه دحذف مبتدا سره بدل دې أي أهو السحر، لهذا دا اعتراض ختم شو. چه مفرد د جملې نه بدل نه واقع کیږی.

**قوله: في قراءة:** یعنی د ابوعمر په قراءت کښې په اسحر هذا کښې یوه همزه استفهامیه ده، ددې قراءت مطابق په ماجئتم کښې به مَا استفهامیه وی، او اَلسحر به د مَا نه بدل وی، أي أيّ شئ جئتم به أهو السحر، او په نورو قراءتونو کښې یوه همزه د اخبار سره ده، په دې صورت کښې به مَا موصوله مبتداء وی. او جئتم به، به صله وی، او اَلسحر به ددې خبر وی، أي الذي جئتم به السحر لا الذي جئتُ به.

**[ایاتونه: ۸۳ _ ۹۲]**

{فَمَا آمَنَ لِمُوسَى إِلَّا ذُرِّيَّةٌ} طَائِفَة {مِنْ} أَوْلَاد {قَوْمه} أَيْ فِرْعَوْن {عَلَى خَوْفٍ مِنْ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِمْ أَنْ يَفْتِنَهُمْ} يَصْرِفهُمْ عَنْ دِينه بِتَعْذِيبِهِ {وَإِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ} مُتَكَبِّر {فِي الْأَرْضِ} أَرْض مِصْر {وَإِنَّهُ لَمِنَ الْمُسْرِفِينَ} الْمُتَجَاوِزِينَ الْحَدّ بِادِّعَاءِ الرُّبُوبِيَّة {وَقَالَ مُوسَى يَا قَوْمِ إِنْ كُنْتُمْ آمَنْتُمْ بِاللَّهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوا إِنْ كُنْتُمْ مُسْلِمِينَ} {فَقَالُوا عَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْنَا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ} أَيْ لَا تُظْهِرهُمْ عَلَيْنَا فَيَظُنُّوا أَنَّهُمْ عَلَى الْحَقّ فَيَفْتَتِنُوا بِنَا {وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ مِنَ الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ} {وَأَوْحَيْنَا إِلَى مُوسَى وَأَخِيهِ أَنْ تَبَوَّآ} اتَّخِذَا {لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوتًا وَاجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ قِبْلَةً} مُصَلًّى تُصَلُّونَ فِيهِ لِتَأْمَنُوا مِنَ الْخَوْف وَكَانَ فِرْعَوْن مَنَعَهُمْ مِنَ الصَّلَاة {وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ} أَتِمُّوهَا {وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ} بِالنَّصْرِ وَالْجَنَّة {وَقَالَ مُوسَى رَبَّنَا إِنَّكَ آتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَأَهُ زِينَةً وَأَمْوَالًا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا رَبَّنَا} آتَيْتهمْ ذَلِكَ {لِيُضِلُّوا} فِي {عَنْ سَبِيلِكَ} دِينك {رَبَّنَا اطْمِسْ عَلَى أَمْوَالِهِمْ} امْسَخْهَا {وَاشْدُدْ عَلَى قُلُوبِهِمْ} اطْبَعْ عَلَيْهَا وَاسْتَوْثِقْ {فَلَا يُؤْمِنُوا حَتَّى يَرَوُا الْعَذَابَ الْأَلِيمَ} المؤلم دعا عليه وَأَمَّنَ هَارُونَ عَلَى دُعَائِهِ {قَالَ} تَعَالَى {قَدْ أُجِيبَتْ دَعْوَتُكُمَا} فَمُسِخَتْ أَمْوَالهمْ حِجَارَة وَلَمْ يُؤْمِن فِرْعَوْن حَتَّى أَدْرَكَهُ الْغَرَق {فَاسْتَقِيمَا} عَلَى الرِّسَالَة وَالدَّعْوَة إِلَى أَنْ يَأْتِيهِمْ الْعَذَاب {وَلَا تَتَّبِعَانِّ

سَبِيل الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ} فِي اسْتِعْجَال قَضَائِي رُوِيَ أَنَّهُ مَكَثَ بَعْدَهَا اربعين سنة {وَجَاوَزْنَا بِبَنِي اِسْرَائِيل
الْبَحْرَ فَأَتْبَعَهُمْ} لَحِقَهُمْ {فِرْعَوْنُ وَجُنُودُهُ بَغْيًا وَعَدْوًا} مَفْعُول لَهُ {حَتَّى إِذَا أَدْرَكَهُ الْغَرَقُ قَالَ آمَنْتُ أَنَّهُ}
اي بِاَنَّهُ وَفِي قِرَاءَة بِالْكَسْرِ اسْتِئْنَافًا {لَا إِلَٰهَ إِلَّا الَّذِي آمَنَتْ بِهِ بَنُوا إِسْرَائِيلَ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ} كَرَّرَهُ لِيُقْبَل
مِنْهُ فَلَمْ يُقْبَل وَدَسَّ جِبْرِيل فِي فِيهِ مِنْ حَمْأَة الْبَحْر مَخَافَة أَنْ تَنَالَهُ الرَّحْمَة وَقَالَ له {آلْآنَ} تُؤْمِن {وَقَدْ
عَصَيْتَ قَبْلُ وَكُنْتَ مِنَ الْمُفْسِدِينَ} بِضَلَالِك وَإِضْلَالك عَنِ الْإِيمَان {فَالْيَوْمَ نُنَجِّيكَ} نُخْرِجك مِنَ الْبَحْر
{بِبَدَنِكَ} جَسَدك الَّذِي لَا رُوح فِيهِ {لِتَكُونَ لِمَنْ خَلْفَكَ} بَعْدك {آيَةً} عِبْرَة فَيَعْرِفُوا عُبُودِيَّتك وَلَا
يُقْدِمُوا على مثل فعلك وعن بن عَبَّاس أَنَّ بَعْض بَنِي إِسْرَائِيل شَكُّوا فِي مَوْته فَأُخْرِجَ لَهُمْ لِيَرَوْهُ {وَإِنَّ كَثِيرًا
مِنَ النَّاسِ} اي أَهْل مَكَّة {عَنْ آيَاتِنَا لَغَافِلُونَ} لا يَعْتَبِرُونَ بِهَا

---

ترجمه: د فرعون د قوم په خوانانو کښې يو موټې ځوانانو نه علاوه چا هم د فرعون او د هغه د سردرانو د ويرې د وجه نه د موسى عليه السلام خبره اونه منله چې هغه به دوى ته تکليف ورکړى او د هغوى د دين نه به ئې واړوى او په دې کښې شک نشته چې فرعون په ملک د مصر کښې په زور او تکبر کښې ډير وتلې وواو هغه خو وو د ربوالى په دعوې سره د حد نه تجاوز کونکې، او موسى عليه السلام اوفرمائيل اې زما قومه که چرې تاسو په الله باندې ايمان لرئى نو هم په هغه باندې بهروسه اوکړئ، که چرې تاسو فرمانبرداره يئ، هغوى عرض اوکړو چې مونږ هم په الله باندې بهروسه کړې ده، اې زمونږ پروردګاره ته مونږ د ظالمانو د د مشق تخته مه جوړوه، يعنى ته دوى په مونږ باندې غالب کوه مه، چې هغوى دا اوګنړى چې هغوى په حق باندې دى، بيا به مونږ باندې ظلم کوى او ته مونږ ته د کافر قوم نه خلاصې راکړه او مونږ موسى عليه السلام او د هغه رور طرف ته وحى اوليږله چې تاسو دواړه په مصر کښې د خپل قوم د پاره کورونه برقرار وساتئ، او خپل کورونو لره قبله، د مونځ ځائې جوړ کړئ چې تاسو پکښې مونځ کوئى، او چې تاسو د ويرې نه په امن يئ، او فرعونيانو دوى د مونځ کولو نه منع کړې وو. اومونځ په پورا طريقې سره ادا کړئ او اې موسى عليه السلام ته د نصرت او جنت مسلمانانو ته زيرې واوروه، اوموسى عليه السلام عرض اوکړو اې زمونږ پروردګاره تا فرعون ته او د هغه سرادارانو ته د زينت سامان او مختلف قسمه مال د دنيا په زندګئ کښې ورکړې او زمونږ پروردګاره تا دا څيزونه هغوى ته ورکړل چې هغوى ددې په نتيجه کښې ستا د لارې نه خلقو لره ګمراه کړى، اې زمونږه رب اددوى مالونه تباه برباد کړه او ددوى زړونه نور هم زيات سخت کړه ددوى په زړونو باندې مهرونه اولګوه او بند ئې کړه چې بيا دوى ايمان راوړې ترڅو چې دردناک عذاب اوينى موسى عليه السلام ددوى د پاره خيرې اوکړې او هارون عليه السلام ددوى په خيرو باندې آمين اوفرمائيلو، الله تعالى اوفرمائيل ستاسو دعا قبوله کړې شوه چې د هغې د وجه نه ددوى مالونه (مال او زر) په کاڼړو کښې بدل شول، او فرعون ايمان راوړو تر دې چې غرق شو، اوتاسو دواړه په تبليغ او دعوت باندې کلک اوسيږئ ترڅو چې په دوى باندې دردناک عذاب راشى اوتاسو دداسې خلقو تابعدارى

مه کوئی چې د فیصلې په معامله کښې د جلدبازئی په انجام باندې نه پوهیږی، راویت کړې شوې دې چې موسی علیه السلام د خیرو نه پس په دوی کښې خلوینښت کاله تیر کړل. او مونږ بنی اسرائیل د سیند نه واړول بیا فرعون او د هغه لښکرې د ظلم او زیاتی په ارادې سره دوی پسې شول. بغیا، وعدوا د "اتبعهم" مفعول له دې تر دې چې فرعون په ډوبیدو شو نو وې وئیل چې ما اومنلو چې رشتونې معبود د هغه نه سوا نشته په چا باندې چې بنی اسرائیلو ایمان راوړې دې "انه" په اصل کښې "بانه" دې او په یو قراءت کښې انه د کسرې سره دې جمله مستانفه کیدو د وجه. او ځه هم تابعدارئی ته سر اینبودنکو کښې یم هغه ایمان او تسلیم مکرر راوړو چې قبول شی خو قبول نکړې شو او جبرئیل علیه السلام د هغه په خوله کښې د سیند خته ورکړه په دې ویره چې چرته دده طرف ته رحمت متوجه نشی جبرائیل علیه السلام هغه ته جواب ورکړو اوس ایمان راوړې حالانکه تا ددې نه مخکښې نافرمانی کوله او ته په خپله گمراه شوې او د نورو لره د ایمان نه د گمراه کولو د وجه په فساد کوونکو کښې وې اوس مونږ ستا لاش چې بې روخه دې د سیند نه راوباسو چې روستو راتلونکو نسلونو د پاره ته د عبرت نښه جوړه شې چې هغوی ستا بنده والې اوپیژنی او ستا په شان کارونو جرات اونکړی او د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چې بعضې بعضې بنی اسرائیلو د فرعون په مرگ کښې شک اوکړو نو د هغه لاش راوخکلې شو چې اوئې گوری او واقعه داده چې ډیر د مکې اوسیدونکی داسې دی چې زمونږ آیتونه د قدرت د نښو نه بې پرواهی کوی یعنی ددې نه عبرت نه حاصلوی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: فما امن لموسی الا ذریة من قومه: فاء عاطفه ده، معطوف علیه محذوف دې، او هغه د مخکښې عبارت نه معلومیږی چې فالقی موسی عصاه فاذا هی تلقف ما یکون دې، اعراب القرآن فما آمن لموسی معنی داده چې د موسی علیه السلام خبره ئې اونه منله، دې ته ایمان بالتسلیم وائی، دا متعدی په لام سره وی او یو ایمان بالتصدیق دې هغه متعدی په باء سره وی، لکه چې د الله تعالی قول دې "یؤمن بالله ویؤمن للمؤمنین".

قوله: ذریة: د ذال تثلیث سره، ذریة الرجل، اولاد، نسل، جمع ئې ذراری، او ذریات، ذریة دلته د قلت عدد په معنی کښې استعمال شوې دې، مفسر علام د ذریة تفسیر په "طائفة" سره کولو کښې دې معنی طرف ته اشاره اوکړه، یعنی د موتی هومره خلق، په تفسیر کبیر کښې دی "ههنا معناها التقلیل" (کبیر) د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما قول دې چې د "ذریة" لفظ کله د یو قوم د پاره اوئیلې شی نو مقصود ددې نه سپکوالې یا وروکې کنړل مراد وی. قال ابن عباس رضی الله عنهما لفظ الذریة یعبر به عن القوم علی وجه التحقیر والتصغیر (کبیر) چونکه دلته د سپکوالی څه قرینه نشته ځکه دلته مقصود تصغیر د عدد دې،

**قوله:من قومه** :د قومه،ضمير دوه مختلف معاني پيدا كوي دي،مراد ترې قوم د موسى عليه السلام هم كيدې شي،اوقوم د فرعون هم،په اول صورت كښې به دا مراد واخستلې شي چې د فرعون او د فرعونيانو د ويرې نه په اول كښې د اسرائيليانو ډير لږو خلقو د حضرت موسى عليه السلام د خبرې تصديق اوكړو،او د دويمې توجيه په صورت كښې به ترې د فرعونيانو يو جماعت مراد وى،چې په هغې كښې هغه جادوګر شامل دى چې د موسى عليه السلام دمقابلې د پاره راغلې وو،ددې نه علاوه د فرعون ښځه آسيه،او د فرعون خازن او د هغه ښځه، د فرعون د لور مشاطه (ويښتو سموونكې ښځه)، او رجل من آل فرعون هم، مفسر علام دويم طرف اختيارولو سره د "قومه" ضمير "فرعون" طرف ته راجع كړې دې

**قوله:ارض مصر**:ددې سره ئې اشاره اوكړه چې "فى الارض" كښې الف لام، لام عهد دې

**قوله:وامن هارون على دعاءه**:دا ددې سوال جواب دې چې خيرې خو موسى عليه السلام كړې وې نو بيا په قداجيبت دعوتكما كښې د تثنيه صيغه ولې راوړلې شوه؟

د جواب حاصل دادې چې دعا كول او په دعا باندې آمين وئيل په يو درجه كښې دى.

**قوله:حمأة**توره خاوره، خټه

[اياتونه:٩٣-١٠٣]

{وَلَقَدْ بَوَّأْنَا} أنزلنا {بَنِي إِسْرَائِيلَ مُبَوَّأَ صِدْقٍ} منزل كرامة وهو الشام ومصر {وَرَزَقْنَاهُمْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ فَمَا اخْتَلَفُوا} بأن آمن بعض وكفر بعض {حَتَّى جَاءَهُمُ الْعِلْمُ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ} من أمر الدين بإنجاء المؤمنين وتعذيب الكافرين {فَإِنْ كُنْتَ} يا محمد {فِي شَكٍّ مِمَّا أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ} من القصص فرضا {فَاسْأَلِ الَّذِينَ يَقْرَءُونَ الْكِتَابَ} التوراة {مِنْ قَبْلِكَ} فإنه ثابت عندهم يخبرونك بصدقه قال صلى الله عليه وسلم لا أشك ولا أسأل {لَقَدْ جَاءَكَ الْحَقُّ مِنْ رَبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ} الشاكين فيه {ولا تكونن من الذين كذبوا بآيات الله فتكون من الخاسرين} {إِنَّ الَّذِينَ حَقَّتْ} وجبت {عَلَيْهِمْ كَلِمَةُ رَبِّكَ} بالعذاب {لا يؤمنون} {وَلَوْ جَاءَتْهُمْ كُلُّ آيَةٍ حَتَّى يَرَوُا الْعَذَابَ الْأَلِيمَ} فلا ينفعهم حينئذ {فَلَوْلَا} فهلا {كَانَتْ قَرْيَةٌ} أريد أهلها {آمَنَتْ} قبل نزول العذاب بها {فَنَفَعَهَا إِيمَانُهَا إِلَّا} لكن {قَوْمَ يُونُسَ لَمَّا آمَنُوا} عند رؤية أمارات العذاب المدعو ولم يؤخروا إلى حلوله {كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَمَتَّعْنَاهُمْ إِلَى حِينٍ} انقضاء آجالهم {وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ لَآمَنَ مَنْ فِي الْأَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيعًا أَفَأَنْتَ تُكْرِهُ النَّاسَ} بما لم يشاء الله منهم {حَتَّى يَكُونُوا مُؤْمِنِينَ} لا {وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تُؤْمِنَ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ} بإرادته {وَيَجْعَلُ الرِّجْسَ} العذاب {عَلَى الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ} يتدبرون آيات الله {قُلِ} لكفار مكة {انْظُرُوا مَاذَا} أي الذي {فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} من الآيات الدالة على وحدانية الله تعالى {وَمَا تُغْنِي الْآيَاتُ وَالنُّذُرُ} جمع نذير أي الرسل {عَنْ قَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ} في علم الله أي ما تنفعهم {فَهَلْ} فما

{يَنتَظِرُونَ} بتكذيبك {إِلَّا مِثْلَ أَيَّامِ الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلِهِمْ} من الأمم أي مثل وقائعهم من العذاب {قُلْ فَانتَظِرُوا} ذلك {إني معكم من المنتظرين} {ثُمَّ نُنَجِّي} المضارع لحكاية الحال الماضية {رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا} من العذاب {كَذَٰلِكَ} الإنجاء {حَقًّا علينا ننجي الْمُؤْمِنِينَ} النبي صلى الله عليه وسلم وأصحابه حين تعذيب المشركين

ترجمه: او مونږ بنی اسرائیلو ته دیر ښه د استوګنې ځائې ورکړو او هغه مصر او شام وو او مونږ د خوراک د پاره پاک څیزونه ورکړل خو بیا هغوی اختلاف اونه کړو خو هغه وخت چې کله علم هغوی ته راغلو، په داسې طریقې سره چې بعضې خلقو ایمان راوړو او بعضو انکار اوکړو یقینا ستا رب به ددوی په مینځ کښې د هغه څیز فیصله وکړی چې د دین په کوم امر کښې دوی اختلاف کولو مومنانو ته خلاصې ورکولو سره او کافرانو ته عذاب ورکولو سره نو اې محمد ﷺ فرض کړه که چرې ته ددې قصو په باره کښې چې کوم مونږ ستا طرف ته نازل کړې دی په شک کښې ئې، نو د هغه خلقو نه تپوس اوکړه چې ستا نه مخکښې کتاب تورات لولی، ځکه چې دا نازل شوې واقعې ددوی په نیز ثابتې دی هغوی به تاته ددې د رشتینوالی خبر درکړی، حضورپاک ﷺ جواب ورکړو چې نه ځما شک دې او نه څه تپوس کوم بې شکه ستا رب د طرف نه تا ته حق راغلې دې لهذا ته په دې کښې د شک کوونکو نه مه کیږه او نه د هغه خلقو نه کیږه چا چې د الله آیتونه دروغ اوګنړل، چرته ته د نقصان کوونکو نه نشې یقینا هغه خلق چې په چا باندې ستا د رب د عذاب فیصله شوې ده هغوی به ایمان نه راوړی، اګرچې د هغوی په مخکښې نښې ولې راونړې شی تردې چې هغوی هغه دردناک عذاب اوینی، خو هغه وخت په هغوی ته د ایمان نه څه فائده نه وی، چنانچه یو کلی والا، د (قریه) کلی نه (اهل قریه) کلې والا مراد دی ایمان راونړو په دوی باندې د عذاب د نازلیدو نه مخکښې چې ایمان ددوی د پاره فائده ورکونکی وی، سوا د یونس ﷺ د قوم نه چې کله هغوی د وعده کړې شوې عذاب دکتلو په وخت کښې ایمان راوړو او هغوی د عذاب د نازلیدو پورې خپل ایمان روستو نکړو نو مونږ د هغوی نه په دنیا کښې د رسوائی عذاب لرې کړو او هغوی له مو یو خاص وخت پورې د زندګۍ نه د فائدې اخستلو موقع ورکړه د هغوی د عمر وخت پورا کیدو پورې او که ستا رب غوښتله نو په زمکه باندې به ټولو خلقو ایمان راوړې وو، نو آیا ته خلقو لره په هغه څیز باندې مجبوره کولې شې چې کوم الله ددوی نه نه غواړی تر دې چه هغوی مومنان شی نو داسې نشی کیدې حالانکه د یو کس د پاره دا ممکنه نه ده چې د الله د ارادې نه بغیر ایمان راوړی او الله په هغه خلقو باندې عذاب نازلوی کوم خلق چې د الله په آیتونو کښې سوچ او فکر نه کوی، نو ته دې د مکې کافرانو ته اووایه چې تاسو سوچ اوکړئ چې په آسمانونو او زمکه کښې چه څه دی د الله په وحدانیت باندې دلالت کوونکې نښو کښې کوم خلق چه د الله په علم کښې ایمان راوړنکی نه دی نو هغوی ته نښې او یروونکی رسولان هیڅ فائده نه ورکوی نذر د نذیر جمع ده یعنی پیغمبران نو اوس دا خلق ستا

دروغ گنړلو سره دې نه سوا د بل کوم څیز په انتظار کښې دی چې هغه شان خرابې ورځې اوینی چې د دوی نه مخکښې خلقو لیدلې وی نو دوی ته اووایه د دې انتظار کوئی او هم زه تاسو سره انتظار کوم، بیا به مونږ خپل رسولان اوهغه خلق چې ایمان ئې راوړې دې،دعذاب نه بچ کړو تنجی د ماضی د حالت حکایت کولو د پاره د مضارع صیغه ده هم دغه شان څمونږ په ذمه دی چې مونږ ایمان والا بچ کوو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** بوانا: تبوئنه ماضی جمع متکلم، استوګنه ورکول، مناسب ځاې ورکول

**قوله:** مبوأ صدق: مبوا اسم مکان دې یا مصدر دې او د صدق اضافت د عربو د عادت مطابق دې، عرب چې کله د یو څیز د تعریف اراده اوکړی کوی نو دهغې اضافت صدق ته کوی. مثلا هذا رجل صادق، وقدم صدق، مراد دلته منزل محمود دې مقام صدق نه بعضې حضراتو مصر، بعضو اردن او فلسطین او بعضې شام مراد اخستلې دې،

**قوله:** المضارع الحكاية الحال الماضية: دا عبارت د یو سوال مقدر جواب دې

**سوال:** دادې چې تنجی د مضارع صیغه ده، چې په حال اواستقبال باندې دلالت کوی ددې مطلب دادې چې بنی اسرائیلو ته خلاصې په زمانه حال کښې ورکولې شی، یا روستو به ورکولې شی، حالانکه خلاصې په تیره شوې زمانه کښې ورکړې شوې وو.

**جواب:** دا د ماضی د حال د حکایت په توګه باندې فرمائیلې شوې دې،داسې لکه چې د تیر وخت په موجوده حال کښې منظر کشی کیږی.

**[ایاتونه: ۱۰٤ ـ ۱۰۹]**

{قل يأيها النّاس} أي أهل مكة {إِن كُنتُمْ فِي شَكٍّ مِّن دِينِي} أنه حق {فَلَا أَعْبُدُ الَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ} أي غيره وهو الأصنام لشككم فيه {وَلَٰكِنْ أَعْبُدُ اللَّهَ الَّذِي يَتَوَفَّاكُمْ} يقبض أرواحكم {وَأُمِرْتُ أَنْ} أي بأن {أكون من المؤمنين} {و} قيل لي {أَنْ أَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حنيفا} مائلا إليه {ولا تكونن من المشركين} {وَلَا تَدْعُ} تعبد {مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكَ} إن عبدته {وَلَا يَضُرُّكَ} إن لم تعبده {فإن فعلت} ذلك فرضا {فإنك إذا من الظالمين} {وَإِن يَمْسَسْكَ} يصبك {اللَّهُ بِضُرٍّ} كفقر ومرض {فَلَا كَاشِفَ} رافع {لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِن يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَادَّ} دافع {لِفَضْلِهِ} الذي اراده به {يصيب به} اي بالخير {من يشاء من عباده وهو الغفور الرحيم} {قل يأيها النّاس} أي أهل مكة {قَدْ جَاءَكُمُ الْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ فَمَنِ اهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ} لأن ثواب اهتدائه له {وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا} لأن وبال ضلاله عليها {وَمَا أَنَا عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ} فأجبركم على الهدى {وَاتَّبِعْ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ} من ربك {وَاصْبِرْ} على الدعوة وأذاهم {حَتَّىٰ يَحْكُمَ اللَّهُ} فيهم بأمره {وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ} أعدلهم وقد صبر حتى حكم على المشركين بالقتال وأهل الكتاب بالجزية

ترجمه: اې محمد ﷺ اووايه چې اې د مکې خلقو که چرې تاسو څما د دين په حق کيدو کښې باره کښې په شک او شبه کښې يئ نو تاسو ته معلوميدل پکار دی چې څه ستاسو په دين کښې ستاسو د شک د وجه د هغه معبودانو عبادت نه کوم د چا چې تاسو الله تعالی پريښودلو سره عبادت کوئ او هغه بتان دی خو څه د هغه خدائې بندگی کوم چې کوم ستاسو روحونه قبض کوی او ماته ئې دا حکم راکړې دې چې زه دی د مومنانو نه يم او ماته ئې دا حکم راکړې دې چې خپله توجه دين طرف ته مائله کړه او هيڅ کله د شرک کوونکو نه مه کيږه، او دا حکم شوی دې چې د الله پريښودلو سره د يو داسې څيز بندگی مه کوه چې کله ته د هغه بندگی اوکړې نو تا ته هيڅ فائده نشی دررسولې، او چې کله ته د هغه بندگی اونکړې نو تا ته څه نقصان نشی دررسولې، بالفرض که تاسو داسې اوکړل نو په داسې صورت کښې به ته د ظالمانو نه شې، (او ماته دا وئيلی شوی دی) چه که الله تاسو ته څه تکليف در اورسوی مثلاً فقيری او بيماری نو د هغه نه سوا ددې تکليف د لرې کولو والا څوک نشته، بلکه هغه خپل فضل په خپلو بندگانو باندې چې په چا اوغواړی کوی ئې پرې، هغه دير بخښونکې او دير رحم کولو والا دې ته ورته اووايه چې اې د مکې خلقو تاسو ته ستاسو د رب نه حق راغلې دې لهذا چې کوم کس په صحيح لار راشی نو هغه به په د خپل ځان د پاره په لار باندې راشی ځکه چې د هدايت اجر هم هغه ته به ميلاويږی او چې کوم سړې بې لارې شی نو د هغه د بې لارې کيدو سزا به هم په هغه باندې پريوزی، ځکه چې د هغه د بې لارې کيدو نقصان صرف هغه ته وی او څه په تاسو باندې مسلط کړې شوې نه يم چې تاسو څه په هدايت باندې مجبوره کړم، او دا هم وئيلې شوې دی چې تا ته د هغه وحی اتباع کوه چې کومه تا ته راليږلې شوې ده، او په دعوت او د هغې په تکليف باندې صبر کوه تر دې چې الله تعالی د دوی په مينځ کښې په خپل حکم سره فيصله اوکړی او هغه بهترين فيصله کوونکې دې، او هغوی ﷺ صبر اوکړو تردې چې مشريکانو سره د جنگ، او اهل کتاب باره کښې د جزيې حکم نازل شو.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: انه حق: دا اضافه ددې سوال جواب دې چې د شک تعلق د مفردَ سره نه وی ددې وجه نه مفسر علام انه حق محذوف گرځولې دې چې د شک تعلق د جملې سره شی

قوله: يتوفاكم: واحد مذکر غائب مضارع معروف توفی (تفعل) کم ضمير مفعول، تاسو پورا پورا اخلی، ستاسو روح قبض کوی.

قوله: قيل له: ددې اضافې مقصد د ماقبل سره ربط پيدا کول دی، ځکه چې ماقبل کښې "امرت" دې اوس به تقديری عبارت داسې شی "وامرت ان اکون من المؤمنين وقيل لی ان اقم وجهك للدين حنيفا"

**قوله:** ذلك فرضاً: دا د دې سوال جواب دې چې د غيرالله عبادت د نبی د طرف نه ناممکنه دې، بيا داسې ولې خطاب اوکړې شو مفسر علام جواب ورکړو چې دا على سبيل الفرض والتقدير دې.

**قوله:** على الدعوة: ددې قيد د لګولو مقصد د ماقبل سره ربط پيدا کول دی

## [۱۱] سورة هود

**سورة هود مكية إلا اقم الصلوة الاية او الا فلعلك تارك الاية واولئك يومنون الاية مائة وثلث وعشرون اية**

سورة هود مکی دې مګر أقم الصلوٰة (آيت) يا مګر: فلعلك تارك (آيت) او: اولئك يؤمنون به (آيت)، په دې کښې ۱۲۲ يا ۱۲۳ آيتونه دی.

**[ايانونه: ۱ - ٥]**

بسم الله الرحمن الرحيم (الر) الله أعلم بمراده بذلك هذا (كِتَابٌ أُحْكِمَتْ آيَاتُهُ) بعجيب النظم وبديع المعاني (ثُمَّ فُصِّلَتْ) بينت بالأحكام والقصص والمواعظ (مِنْ لَدُنْ حَكِيمٍ خَبِيرٍ) أي الله (أ) أي بأن (لا تَعْبُدُوا إِلَّا اللَّهَ إِنَّنِي لَكُمْ مِنْهُ نَذِيرٌ) بالعذاب إن كفرتم (وَبَشِيرٌ) بالثواب إن آمنتم (وَأَنِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ) من الشرك (ثُمَّ تُوبُوا) ارجعوا (إِلَيْهِ) بالطاعة (يُمَتِّعْكُمْ) في الدنيا (مَتَاعًا حَسَنًا) بطيب عيش وسعة رزق (إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى) هو الموت (وَيُؤْتِ) في الآخرة (كُلَّ ذِي فَضْلٍ) في العمل (فَضْلَهُ) جزاءه (وَإِنْ تَوَلَّوْا) فيه حذف إحدى التاءين أي تعرضوا (فَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ كَبِيرٍ) هو يوم القيامة (إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ) ومنه الثواب والعذاب ونزل كما رواه البخاري عن بن عباس فيمن كان يستحي أن يتخلى أو يجامع فيفضي إلى السماء وقيل في المنافقين (أَلَا إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ لِيَسْتَخْفُوا مِنْهُ) أي الله (أَلَا حِينَ يَسْتَغْشُونَ ثِيَابَهُمْ) يتغطون بها (يَعْلَمُ) تعالى (مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ) فلا يغني استخفاؤهم (إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ) أي بما في القلوب

**ترجمه:** شروع کوم د الله په نوم چې ډير مهربانه او ډير رحم کوونکی دې الر ددې نه الله خپل مراد ښه پيژنی دا داسې کتاب دې چې ددې آيتونه د عجيبه ترتيب او بې مثاله معانيو په وجه محکم کړې شوې دې بيا د حکيم او خبير يعنی د الله د طرف نه د احکامو، واقعاتو او نصيحتونو په اعتبار سره صفا صفا بيان کړې شوې دې داچې د الله نه سوا د بل چا عبادت مه کوئی، څه د هغه د طرف نه تاسو له د عذاب نه ويرونکې يم که چرې تاسو کفر کوئی او د ثواب خوشخبری ورکوونکې يم که چرې تاسو ايمان راوړئی او دا چې تاسو د خپل رب سره د شرک نه بخښنه اوغواړئی، بيا د تابعدارئی په ذريعه د هغه طرف ته رجوع اوکړئ هغه به تاسو ته په دنيا کښې د يو خاص وخت پورې د مزو سامان او پراخوالې د رزق درکړی، او په آخرت کښې به هر زيات عمل کوونکی ته زيات اجر ورکړی او که چرې تاسو مخ واړوئی د "تولو" په دوه تاء کښې

یو تاء حذف کړې شوې ده،نو ماته ستاسو په باره کښې د یوې غټې ورځې چې هغه د قیامت ورځ ده د عذاب ویره ده تاسو به هم الله طرف ته ځئ او هغه په هر څیز باندې قدرت لرونکې دې او په دې هر څیز کښې ثواب یا عذاب هم دې،او راروان آیت،څنګه چې امام بخاری د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړې دی چې دا آیت د هغه کس باره کښې نازل شوې دې په دې خیال سره چه ځما دا عمل آسمان (یعنی الله) ته رسی د قضائې حاجت کولو په وخت کښې او د خپلې ښځې سره په میلاویدو کښې ئې شرم محسوسولو،وئیلې شوی دی چې د منافقینو په باره کښې دا نازل شوې دې یاد ساتئ دوی خپلې سینې راتاووی یعنی راتیټوی چې د الله نه خپلې خبرې پټې کړی یاد ساتئ چې کله هغه خلق کوم چې خپلې کپړې راغوندوی یعنی په هغې کښې پټیږی نو الله تعالی په دغه وخت هم هغه څیز له پیژنی کوم چې هغوی پټوی او ښکاره کوی ئې لهذا د دوی د پټولو هیڅ فائده نشته بې شکه هغه خو د زړونو د ټنه خبرې پیژنی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:سورة هود:** په ترکیب اضافی سره مبتدأ،"مکیة" خبر اول،"مائة الخ" دویم خبر،"مکیة" مستثنی منه دې،الا حرف استثناء"اقم الصلوة" (الأیة) مستثنی، یعنی پوره سورت مکی دې،سوا د یو آیت نه "اقم الصلوة (الأیة)" نه، دا قول د ابن عباس رضی الله عنهما دې

**قوله:اوالا فلعلك تارك بعض ما یوحی الیك:** (الأیة) دا دویم قول طرف ته اشاره ده ددې قول مطابق پوره سورت مکی دې،خو دوه آیتونه، یو خو فلعلك او دویم اولئك یؤمنون دا قول د مقاتل دې،

**قوله:هذا:** په دې کښې اشاره ده چې کتاب د مبتدأ محذوف خبر دې نه چې مبتدأ،څکه چې نکره صرف مبتدأ نه رازی، احکمت آیاته جمله د کتاب صفت دې

**قوله:ثم فصلت:** په ثم کښې دوه احتماله دی اول دا صرف د اخبار د پاره ده او معنی به دا وی چې الله تعالی مونږ له خبر راکړو چې قرآن په اوچته درجه کښې په احسن وجوه سره محکم دې،او بهترین تفصیل سره مفصل دې،څنګه چې عرب وائی فلان کریم الاصل ثم کریم الفصل،دویم احتمال دا دې چې "ثم" د نزول په اعتبار سره د ترتیب زمانی د پاره وی په داسې توګه چې د اول نزول یعنی د عرش نه لوح محفوظ پورې د نازلیدو په وخت کښې محکم کړې شو،بیا د موقع مناسب په تفصیل سره نازل شو.

**قوله:من لدن حکیم خبیر:** دا د کتاب دویم صفت دې

**قوله:بان:** په دې کښې اشاره ده چې ان مصدریه دې، ان تفسیریه هم کیدې شی، د "ان" تفسیریه د پاره دا شرط دې چې د ددې نه مخکښې قول یا د قول په شان معنی لرونکې څه لفظ وی، دلته اګرچې لفظ قول نشته،خو ددې معنی "فصلت" موجود دې،لهذا د "ان"

مفسره کیدل هم صحیح دی او دلته خو تفسیریه کیدل دیر ښه دی.

**قوله: قیل فی المنافقین:** که د منافقین نه معلوم منافقین مراد وی نو په دې کښې نظر دې خکه چې د معلوم منافقینو وجود په مکه کښې نه وو او آیت مکی دې، د حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چې دا آیت د اخنس بن شریق په باره کښې نازل شوې دې، چې د مکې د منافقینو نه وو، دا سړې تیزې ژبې والا او ښه خائسته شکل والا وو، او حضورپاک ﷺ ته به یې د خوشحالئ خبرې اوروله، او په زړه کښې به ئې مخالفت پټ ساتلو، دده باره کښې دا آیت نازل شو.

**قوله: یثنون، الثنی الطی،** د پټولو د پاره رانغاړل، یثنون په اصل کښې "یثنیون" وو، ضمه په یاء باندې ثقیله وه نو "نون" له مو ورکړه، د یاء او واؤ په مینځ کښې د ساکنینو د وجه یاء مو حذف کړه، نو یثنون شو.

**پاره نمبر ۱۲ [وَمَامِنْ دَآبَّةٍ] [ایاتونه: ۶ ـ ۸]**

{وَمَامِنْ} زَائِدَة {دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ} هِيَ مَا دَبَّ عَلَيْهَا {إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا} تَكَفَّلَ بِهِ فَضْلًا مِنْهُ تَعَالَى {وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا} مَسْكَنَهَا فِي الدُّنْيَا أَوِ الصُّلْبِ {وَمُسْتَوْدَعَهَا} بَعْدَ الْمَوْتِ أَوْ فِي الرَّحِمِ {كُلٌّ} مِمَّا ذُكِرَ {فِي كِتَابٍ مُبِينٍ} بَيِّنٍ هُوَ اللَّوْحُ الْمَحْفُوظُ {وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ} أَوَّلُهَا الْأَحَدُ وَآخِرُهَا الْجُمُعَةُ {وَكَانَ عَرْشُهُ} قَبْلَ خَلْقِهِمَا {عَلَى الْمَاءِ} وَهُوَ عَلَى مَتْنِ الرِّيحِ {لِيَبْلُوَكُمْ} مُتَعَلِّقٌ بِخَلَقَ أَيْ خَلَقَهُمَا وَمَا فِيهِمَا مِنْ مَنَافِعَ لَكُمْ وَمَصَالِحَ لِيَخْتَبِرَكُمْ {أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا} أَيْ أَطْوَعُ لِلَّهِ {وَلَئِنْ قُلْتَ} يَا مُحَمَّدُ لَهُمْ {إِنَّكُمْ مَبْعُوثُونَ مِنْ بَعْدِ الْمَوْتِ لَيَقُولَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ} مَا {هَٰذَا} الْقُرْآنُ النَّاطِقُ بِالْبَعْثِ أَوِ الَّذِي تَقُولُهُ {إِلَّا سِحْرٌ مُبِينٌ} بَيِّنٌ وَفِي قِرَاءَةٍ سَاحِرٌ وَالْمُشَارُ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وَلَئِنْ أَخَّرْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِلَىٰ} مَجِيءِ {أُمَّةٍ} جَمَاعَةِ أَوْقَاتٍ {مَعْدُودَةٍ لَيَقُولُنَّ} اسْتِهْزَاءً {مَا يَحْبِسُهُ} مَا يَمْنَعُهُ مِنَ النُّزُولِ قَالَ تَعَالَى {أَلَا يَوْمَ يَأْتِيهِمْ لَيْسَ مَصْرُوفًا} مَدْفُوعًا {عَنْهُمْ وَحَاقَ} نَزَلَ {بِهِمْ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ} مِنَ الْعَذَابِ

**ترجمه:** په زمکه باندې ګرځیدونکی چې څومره ژوندی سر دی د ټولو رزق د الله په ذمه دې "من" زائد دې، او دابه هغه ځناور نه وائی چې په زمکه باندې ګرځی، یعنی هم الله ددوی د روزئی په خپل فضل سره کفالت کوونکې دې هم هغه ددوی د اوسیدو ځائې پیژنی، که هغه دنیا کښې وی، یا د پلار په ملا کښې، او د مرګ نه پس د هغه د سپارلو ځائې یا د مور په رحم کښې دې (د هغه ځائې) پیژنی او هر څیز چې کوم ذکر شول په کتاب مبین کښې دی، او هغه لوح محفوظ دې او هم هغه دې چې آسمانونه او زمکه ئې په شپږ ورځو کښې پیدا کړل ددې اول ورځ د اتوار ورځ وه، او آخری ورځ د جمعې وه، او د آسمانونو او زمکې د پیدا کولو نه مخکښې دهغه عرش په اوبو باندې وو، او اوبه د هوا په اوګه باندې وه چې ستاسو نه امتحان واخلی، لیبلوکم د خلق متعلق دې یعنې دا دواړه او په دې کښې چې څه دی هغه ئې

ستاسو فائدې اوستاسو د مصلحتونو د پاره پیدا کړل چې ستاسو نه امتحان واخلي. چې په تاسو کښې څوک ښه عمل کولو والا دی؟ یعنی څوک د الله تعالی زیات تابعدار دی او که اې محمد ﷺ ته دوی ته اووائې چې تاسو به د مرګ نه پس په ژوندی کولو سره راپاڅولې شئ نو انکار کوونکی په زور اووائی چې دا قرآن چې د مرګ نه پس د پاسیدلو خبره کوی یا چې کومه خبره ته کوې هغه ښکاره جادو دې او په پو قرات کښې د سحر په ځائې ساحر دې، او ددې مصداق به نبی ﷺ وی او که چرې مونږ ددوی نه مقرر شوې عذاب لږ وخت د پاره لرې کړو نو د توقو په توګه به وائی چې دې عذاب لره د راوستلو نه چا منع کړې دې؟ الله تعالی اوفرمائیل یاد ساتئ چه په کومه ورځ عذاب په دوی باندې راشی نو په اخوا کولو په نشی اخوا کیدې، او چې کوم عذاب پسې دوی توقې کولې هم هغه به دوی راونیسی..

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: تکفل به فضلا منه:** دا اضافه د یو سوال مقدر جواب دې چې د الاعلی الله نه معلومیږی چې په الله تعالی باندې رزق رسول واجب دی حالانکه په الله باندې وجوب محال دې؟

**جواب:** حاصل دادې چې مخلوق ته روزی رسول په الله تعالی باندې لزوم وجوباً نه دی بلکه دا صرف د فضل او د شفقت د وجه دې،

**قوله: کل مما ذکر:** په دې کښې اشاره ده چې د "کل" تنوین د مضاف الیه په عوض کښې دې

**قوله: بین:** دمبین تفسیر په "بین" سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې متعدی په معنی د لازم دې

**قوله: جماعة اوقات:** په دې کښې اشاره ده چې د "امة" نه مراد د خلقو ډله نه ده، بلکه ددې نه د وختونو یو محدوده مجموعه مراد ده، "امة" په اصل کښې د خلقو یو ټولګی ته وائی، ای طائفة من الناس، دلته طائفة من الازمنة مراد ده، څنګه چې شارح رحمه الله لفظ د اوقات د اضافې کولو سره اشاره اوکړه.

**قوله: معدودة:** دمعدودة نه مراد قلیلة ده، ځکه چې حصر په عدد کښې په قلت باندې دلالت کوی..

[ایاتوله: ۹ ـ ۲۴]

(وَلَئِنْ أَذَقْنَا الْإِنْسَانَ) الْكَافِر (مِنَّا رَحْمَةً) غِنًى وَصِحَّة (ثُمَّ نَزَعْنَاهَا مِنْهُ إِنَّهُ لَيَئُوس) قَنُوط مِنْ رَحْمَة اللّه (كَفُور) شَدِيد الْكُفْر بِه (وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ نَعْمَاءَ بَعْدَ ضَرَّاءَ) فَقْر وَشِدَّة (مَسَّتْهُ لَيَقُولَنَّ ذَهَبَ السَّيِّئَات) الْمَصَائِب (عَنِّي) وَلَمْ يَتَوَقَّع زَوَالهَا وَلَا يَشْكُر عَلَيْهَا (إِنَّهُ لَفَرِح) بَطِر (فَخُور) عَلَى النَّاس بِمَا أُوتِيَ (إِلَّا) لَكِنْ (الَّذِينَ صَبَرُوا) عَلَى الضَّرَّاء (وَعَمِلُوا الصَّالِحَات) فِي النَّعْمَاء (أُولَئِكَ لَهُمْ مَغْفِرَة وَأَجْر كَبِير) هُوَ الْجَنَّة (فَلَعَلَّك) يَا مُحَمَّد (تَارِك بَعْض مَا يُوحَى إِلَيْك) فَلَا تُبَلِّغهُمْ إِيَّاهُ لِتَهَاوُنِهِمْ بِه (وَضَائِق بِهِ صَدْرك) بِتِلَاوَتِهِ عَلَيْهِمْ لِأَجْلِ

﴿أَنْ يَقُولُوا لَوْلَا﴾ هَلَّا ﴿أُنْزِلَ عَلَيْهِ كَنْزٌ أَوْ جَاءَ مَعَهُ مَلَكٌ﴾ يُصَدِّقُهُ كَمَا اقْتَرَحْنَا ﴿إِنَّمَا أَنْتَ نَذِيرٌ﴾ فَمَا عَلَيْكَ إِلَّا الْبَلَاغُ لَا الْإِتْيَانُ بِمَا اقْتَرَحُوهُ ﴿وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ﴾ حَفِيظٌ فَيُجَازِيهِمْ ﴿أَمْ﴾ بَلْ أ ﴿يَقُولُونَ افْتَرَاهُ﴾ أَيِ الْقُرْآنَ ﴿قُلْ فَأْتُوا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِثْلِهِ﴾ فِي الْفَصَاحَةِ وَالْبَلَاغَةِ ﴿مُفْتَرَيَاتٍ﴾ فَإِنَّكُمْ عَرَبِيُّونَ فُصَحَاءُ مِثْلِي تَحَدَّاهُمْ بِهَا أَوَّلًا ثُمَّ بِسُورَةٍ ﴿وَادْعُوا﴾ لِلْمُعَاوَنَةِ عَلَى ذَلِكَ ﴿مَنِ اسْتَطَعْتُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ أَيْ غَيْرِهِ ﴿إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ﴾ فِي أَنَّهُ افْتِرَاءٌ ﴿فَإِنْ لَمْ يَسْتَجِيبُوا لَكُمْ﴾ أَيْ مَنْ دَعَوْتُمُوهُمْ لِلْمُعَاوَنَةِ ﴿فَاعْلَمُوا﴾ خِطَابٌ لِلْمُشْرِكِينَ ﴿أَنَّمَا أُنْزِلَ﴾ مُلْتَبِسًا ﴿بِعِلْمِ اللَّهِ﴾ وَلَيْسَ افْتِرَاءً عَلَيْهِ ﴿وَأَنْ﴾ مُخَفَّفَةٌ أَيْ أَنَّهُ ﴿لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَهَلْ أَنْتُمْ مُسْلِمُونَ﴾ بَعْدَ هَذِهِ الْحُجَّةِ الْقَاطِعَةِ أَيْ أَسْلِمُوا ﴿مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا﴾ بِأَنْ أَصَرَّ عَلَى الشِّرْكِ وَقِيلَ هِيَ فِي الْمُرَائِينَ ﴿نُوَفِّ إِلَيْهِمْ أَعْمَالَهُمْ﴾ أَيْ جَزَاءَ مَا عَمِلُوهُ مِنْ خَيْرٍ كَصَدَقَةٍ وَصِلَةِ رَحِمٍ ﴿فِيهَا﴾ بِأَنْ نُوَسِّعَ عَلَيْهِمْ رِزْقَهُمْ ﴿وَهُمْ فِيهَا﴾ أَيِ الدُّنْيَا ﴿لَا يُبْخَسُونَ﴾ يُنْقَصُونَ شَيْئًا ﴿أُولَئِكَ الَّذِينَ لَيْسَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ إِلَّا النَّارُ وَحَبِطَ﴾ بَطَلَ ﴿مَا صَنَعُوا فِيهَا﴾ أَيِ الْآخِرَةِ فَلَا ثَوَابَ لَهُ ﴿وَبَاطِلٌ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ ﴿أَفَمَنْ كَانَ عَلَى بَيِّنَةٍ﴾ بَيَانٍ ﴿مِنْ رَبِّهِ﴾ وَهُوَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوِ الْمُؤْمِنُونَ وَهِيَ الْقُرْآنُ ﴿وَيَتْلُوهُ﴾ يَتْبَعُهُ ﴿شَاهِدٌ﴾ لَهُ بِصِدْقِهِ ﴿مِنْهُ﴾ أَيْ مِنَ اللَّهِ وَهُوَ جِبْرِيلُ ﴿وَمِنْ قَبْلِهِ﴾ الْقُرْآنِ ﴿كِتَابُ مُوسَى﴾ التَّوْرَاةُ شَاهِدٌ لَهُ أَيْضًا ﴿إِمَامًا وَرَحْمَةً﴾ حَالٌ كَمَنْ لَيْسَ كَذَلِكَ لَا ﴿أُولَئِكَ﴾ أَيْ مَنْ كَانَ عَلَى بَيِّنَةٍ ﴿يُؤْمِنُونَ بِهِ﴾ أَيْ بِالْقُرْآنِ فَلَهُمُ الْجَنَّةُ ﴿وَمَنْ يَكْفُرْ بِهِ مِنَ الْأَحْزَابِ﴾ جَمِيعِ الْكُفَّارِ ﴿فَالنَّارُ مَوْعِدُهُ فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ﴾ شَكٍّ ﴿مِنْهُ﴾ مِنَ الْقُرْآنِ ﴿إِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَبِّكَ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ﴾ أَيْ أَهْلَ مَكَّةَ ﴿لَا يُؤْمِنُونَ﴾ ﴿وَمَنْ﴾ أَيْ لَا أَحَدَ ﴿أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ كَذِبًا﴾ بِنِسْبَةِ الشَّرِيكِ وَالْوَلَدِ إِلَيْهِ ﴿أُولَئِكَ يُعْرَضُونَ عَلَى رَبِّهِمْ﴾ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِي جُمْلَةِ الْخَلْقِ ﴿وَيَقُولُ الْأَشْهَادُ﴾ جَمْعُ شَاهِدٍ وَهُمُ الْمَلَائِكَةُ يَشْهَدُونَ لِلرُّسُلِ بِالْبَلَاغِ وَعَلَى الْكُفَّارِ بِالتَّكْذِيبِ ﴿هَؤُلَاءِ الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَى رَبِّهِمْ أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ﴾ الْمُشْرِكِينَ ﴿الَّذِينَ يَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ﴾ دِينِ الْإِسْلَامِ ﴿وَيَبْغُونَهَا﴾ يَطْلُبُونَ السَّبِيلَ ﴿عِوَجًا﴾ مُعْوَجَّةً ﴿وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ﴾ تَأْكِيدٌ ﴿كَافِرُونَ﴾ ﴿أُولَئِكَ لَمْ يَكُونُوا مُعْجِزِينَ﴾ اللَّهَ ﴿فِي الْأَرْضِ وَمَا كَانَ لَهُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ أَيْ غَيْرِهِ ﴿مِنْ أَوْلِيَاءَ﴾ أَنْصَارٍ يَمْنَعُونَهُمْ مِنْ عَذَابِهِ ﴿يُضَاعَفُ لَهُمُ الْعَذَابُ﴾ بِإِضْلَالِهِمْ غَيْرَهُمْ ﴿مَا كَانُوا يَسْتَطِيعُونَ السَّمْعَ﴾ لِلْحَقِّ ﴿وَمَا كَانُوا يُبْصِرُونَ﴾ هُ أَيْ لِفَرْطِ كَرَاهَتِهِمْ لَهُ كَأَنَّهُمْ لَمْ يَسْتَطِيعُوا ذَلِكَ ﴿أُولَئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ﴾ لِمَصِيرِهِمْ إِلَى النَّارِ الْمُؤَبَّدَةِ عَلَيْهِمْ ﴿وَضَلَّ﴾ غَابَ ﴿عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ﴾ عَلَى اللَّهِ مِنْ دَعْوَى الشَّرِيكِ ﴿لَا جَرَمَ﴾ حَقًّا ﴿أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْأَخْسَرُونَ﴾ ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَأَخْبَتُوا﴾ سَكَنُوا وَاطْمَأَنُّوا أَوْ أَنَابُوا ﴿إِلَى رَبِّهِمْ أُولَئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾ ﴿مَثَلُ﴾ صِفَةُ ﴿الْفَرِيقَيْنِ﴾ الْكُفَّارِ وَالْمُؤْمِنِينَ ﴿كَالْأَعْمَى وَالْأَصَمِّ﴾ هَذَا مَثَلُ الْكَافِرِ ﴿وَالْبَصِيرِ وَالسَّمِيعِ﴾ هَذَا مَثَلُ الْمُؤْمِنِ ﴿هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا﴾ لَا ﴿أَفَلَا تَذَكَّرُونَ﴾ فِيهِ إِدْغَامُ التَّاءِ فِي الْأَصْلِ فِي الذَّالِ تَتَّعِظُونَ.

ترجمه: او که چرې مونږ کافر انسان ته د خپل رحمت لکه مالداری او صحت ورکولو نه پس هغه د رحمت نه محروم کړو نو هغه د الله د رحمت نه نا امیده کیدو سره ددې رحمت ډیره ناشکری

کوی، او که د هغه مصيبت نه پس کوم چې په ده باندې راغلې وو لکه غريبي، او سختې نو چې مونږ ورته نعمتونو مزه ورا وڅکوو نو وائي چې ځما خو ټول غمونه لرې شول او د دې نعمتونو د ختميدو ورته بالکل خيال نه وي، او نه په دې باندې شکر کوي او دوی تکبر کوي او څه چې دوی ته ورکړې شول د دې د وجه نه په خلقو باندې شيخي کوي، خو چې کوم خلق په مصيبتونو باندې صبر کوي او په نعمتونو کښې نيک عمل کوي نو هم دغه خلق دي چې د هغوی د پاره بخښنه ده، او ډير لوئي اجر دې هغه جنت دې، نو اې محمد ﷺ داسې د نه وی چې د قرآن نه د دوی د مخ اړولو د وجه د دې وحی څه حصې لره چې کومه تاته راليږلې شوې ده دوی ته رسول پريږدې او ته دوی ته د قرآن اورولو نه د دوی د دې خبرې د وجه نه تنګ زړه شې دوی وائي چې ولې په ده باندې خمونږ د خوښې مطابق خزانه نازله نشوه؟ يا ولې ده له فرشته رانغله، چې د ده تصديق ئې کړې وو ته خو صرف خبر ورکوونکې ئې ستا ذمه داري خو صرف رسول دی نه چې هر هغه څه ښکاره کول چې د کوم دوی مطالبه کوي او الله په هر څيز باندې پورا اختيار لرونکې دې نو هغه به دوی ته سزا ورکوي آيا دا خلق دا وائي چې ده قرآن په خپله جوړ کړې دې نو په جواب کښې ته اووايه چې تاسو هم په فصاحت کښې ځما په شان فصيح او بليغ يئ لهذا د دې په شان لس سورتونه جوړ کړئ او راوړئې په اول ځل ئې دوی ته د لس سورتونو چيلنج ورکړو او بيا د يو سورت او په دې کار کښې د مدد د پاره د الله نه سوا چې څوک تاسو راغوارئ، نو راوغوارئ که چرې تاسو په دې دعوه کښې رشتوني يئ چې دا ده په خپله جوړ کړې دې، اوس که هغه غير څوک چې تاسو د مدد د پاره راوغوښتلې وو تاسو ته د آواز جواب درنکړي نو پوهه شئ خطاب مشرکانو ته دې چې دا قرآن د الله تعالی په علم سره نازل شوې دې او په دې کښې دروغ نشته او دا هم يقين اوساتئ ان مخففه عن الثقيلة دې، چې د الله نه سوا بل څوک معبود نشته، نو آيا تاسو د دې مضبوط دليل نه پس مسلمانان کيږئ؟ يعنې مسلمانان شئ چا چې دنيا زندګی او د دې رونق د ژوند مقصد ګرځولې دې په داسې طريقه چې په شرک باندې ټينګ وو، او وئيلې شوې دی چې دا آيت د رياکارو په باره کښې نازل شوې دې نو مونږ د دوی د نيک عملونو لکه صدقه او صله رحمي بدله هم په دنيا کښې پورا پورا ورکوو په داسې توګه چې مونږ د دوی په رزق کښې فراخوالې راولو او په دنيا کښې د دوی په بدله کښې هيڅ کمې نه کيږي نو دا داسې خلق دی چې د دوی د پاره په آخرت کښې د جهنم د اور نه علاوه بل څه نشته، او څه چې دوی ته نيک عملونه کړی وی ټول به په آخرت کښې ضائع کړې شی نو د دوی په به هيڅ اجر ميلاؤ نشی او چې کوم د نيکئ کارونه دوی به کول ټول به باطل شی آيا هغه کس چې د خپل رب د طرف نه په دليل باندې وی او هغه دليل قرآن دې او دغه کس نبی ﷺ يا مومنان دې او ده سره د الله د طرف نه ګواه هم وی چې د ده تصديق کوی او هغه جبرئيل علیه السلام دې او د قرآن نه مخکښې د موسی علیه السلام کتاب تورات د دې ګواه دې

حال دادې چې هغه امام او رحمت دې د هغه کس به برابر چې داسې نه دې کيدې شي؟ نشي کيدې او هم دغه خلق په دليل باندې دی په قرآن باندې ايمان راوړی نو د هغوی د پاره جنت دې او په ټولو کافرانو کښې چې کومه ډله هم ددې نه انکار کوی نو دهغه د پاره چې د کوم ځائې وعده ده هغه دوزخ دې نو د قرآن په باره کښې په څه شک کښې مه کيږه په يقين سره ستا د رب د طرف نه ټول په ټوله حق دې خو ډير خلق يعنی اهل مکه يقين کولو والا نه دی او د هغه نه لوئې ظالم څوک وی چې الله طرف ته د شريک او د اولاد نسبت کولو سره په الله باندې دروغ الزام اولگوی؟ څوک به هم نه وی داسې خلق به د ټولو خلقو سره د قيامت په ورځ د خپل رب په مخکښې وړاندې کولې شی اشهاد د "شاهد" جمع ده مراد ترې فرشتې دی، د رسولانو په باره کښې د پيغام رسولو او د کافرانو په باره کښې د دروغ گنړلو گواهی به ورکوی گواه به وائی چې دا هغه خلق دی چا چې د خپل رب متعلق دروغې خبرې کړې وې ټول واورئی په داسې ظالمانو مشرکانو باندې د الله تعالی لعنت دې چې د الله د لارې دين اسلام نه به ئې منع کول او د کږې لارې په تلاش کښې به وو، او دا خلق د آخرت هم منکر دی "هم" د مخکښې "هم" د تاکيد د پاره دې دا خلق په مخ د زمکه باندې الله عاجزه کولې نشی، او نه به څوک د الله نه علاوه ددوی مددگار شی چې ددوی نه د الله عذاب لرې کړی، د نورو د گمراه کولو د وجه نه داسې خلقو ته به دوچنده سزا ورکولې شی دا خلق د نفرت د وجه نه حق خبره اوريدلې شی او نه کتلې شی د سخت نفرت والی د وجه نه گويا چې په دوی دا طاقت هم نه وو، دا هغه خلق دی چې د هميشکير اور ته د ورتلو د وجه ئې خپل ځان برباد کړو، په الله چې کوم د شريک دعوی کړې وه ټول به هير کړی يقينی خبره ده چې په آخرت کښې به دا خلق د ټولو نه زيات په تاوان کښې وی، بې شکه هغه خلق چې ايمان ئې راوړو او نيک عملونه ئې اوکړل او د زړه نه خپل رب ته راتيټ شول او دوی ته اطمينان اوشو او د هغه طرف ته ئې رجوع اوکړه داسې خلق اهل جنت دی او دوی به هميشه په دې کښې اوسيږی د دواړو ډلو يعنی د کافرانو او د مومنانو حالت داسې دې لکه يو کس ړوند او کونړ وی دا مثال د کافر دې او يو کس داسې وی چې گوری هم او اوری هم دا مثال د مومن دې آيا د دواړو کسانو حالت برابر کيدې شي؟ نشی برابر کيدلې آيا تاسو پوهيږئی نه؟ ددې په اصل کښې د تاء په ذال کښې ادغام دې، آيا تاسو نصيحت نه حاصلوئی؟

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ولئن اذقنا الانسان منا رحمة: (الأية) په "لئن" کښې لام قسميه دې، انه ليوس کفور جواب قسم دې او جواب شرط محذوف دې، منا حال دې، رحمة د اذقنا مفعول ثانی دې، منا په اصل کښې د رحمة صفت دې، خو د مقدم کيدو د وجه حال شو.

**قوله:** ليؤس اوکفور: دا دواړه د مبالغې صيغې دی او دا دواړه د "ان" خبرونه دی

**قوله:** الکافر: په دې کښې اشاره ده چې په الانسان کښې الف لام عهدی دې.

قوله: ولم يتوقع زوالها: په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې په "ذهب السيئات" کښې صرف د مصيبتونو ختميدلو طرف ته اشاره نه ده بلکه قائل ددې مصيبتونو د واپس نه راتللو اراده کړې ده، يعنی اوس د حاصل شوې نعمتونو د ختميدلو څه خطره نشته.

قوله: لکن: د الا تفسير په "لکن" سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې دا مستثنی منقطع ده، ځکه چې په لفظ الا الانسان کښې د انسان نه مراد انسان کافر دې لهذا الذين صبروا په هغې کښې به داخل نه وی

قوله: بيان: دبينة تفسير په "بيان" سره کولو کښې ئې يو سوال جواب ورکول مقصود وو

سوال: د الله قول "يتلوه" ضمير "بينة" ته راجع دې، په ضمير او مرجع کښې مطابقت نشته

جواب: جواب حاصل دا دې چې بينة په معنی د بيان دې

قوله: هوالنبي او المؤمنون: دا په من کان علی بينة کښې د "من" د مصداق وضاحت دې، د "من" په مصداق کښې دوه قوله دی، يو خو حضور ﷺ او بل مؤمنان او وهی القرآن دبينة د مصداق بيان دې.

قوله: حال: ای هما حالان من کتاب موسی علیه السلام

قوله: کمن ليس کذلک: مفسر علام ددې جملې په زياتوالی سره اشاره اوکړه چې "افمن کان الخ" د مبتدأ خبر محذوف دې، او هغه "کمن ليس کذلک" دې

قوله: لا: په دې کښې اشاره ده چې "افمن کان علی بينة" کښې همزه د استفهام انکاری ده

قوله: يطلبون السبيل: دا ددې سوال جواب دې:

سوال: "يبغونها" کښې ضمير "سبيل" طرف ته راګرځی، حالانکه ضمير مؤنث دې او سبيل مذکر دې؟

جواب: د جواب حاصل دا دې چې لفظ سبيل مذکر او مؤنث دواړه استعماليږی.

[ایاتونه ۲۵ - ۳۵]

{وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَى قَوْمِهِ إِنِّي} أَيْ بِأَنِّي وَفِي قِرَاءَة بِالْكَسْرِ عَلَى حَذْف الْقَوْل {لَكُمْ نَذِيرٌ مُبِينٌ} بَيِّن الْإِنْذَار {أَنْ} أَيْ بِأَنْ {لَا تَعْبُدُوا إِلَّا اللَّهَ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ} إن عبدتم غيره {عَذَابَ يَوْمٍ أَلِيمٍ} مُؤْلِم فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَة {فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ} وَهُمْ الْأَشْرَاف {مَا نَرَاكَ إِلَّا بَشَرًا مِثْلَنَا} وَلَا فَضْل لَك عَلَيْنَا {وَمَا نَرَاكَ اتَّبَعَكَ إِلَّا الَّذِينَ هُمْ أَرَاذِلُنَا} أَسَافِلنَا كَالْحَاكَةِ وَالْأَسَاكِفَة {بَادِيَ الرَّأْيِ} بِالْهَمْزِ وَتَرْكه أَيْ ابْتِدَاء مِنْ غَيْر تَفَكُّر فِيك وَنَصْبه عَلَى الظَّرْف أَيْ وَقْت حُدُوث أَوَّل رَأْيهمْ {وَمَا نَرَى لَكُمْ عَلَيْنَا مِنْ فَضْلٍ} فَتَسْتَحِقُّونَ بِهِ الِاتِّبَاع مِنَّا {بَلْ نَظُنُّكُمْ كَاذِبِينَ} فِي دَعْوَى الرِّسَالَة أَدْرَجُوا قَوْمه مَعَهُ فِي الْخِطَاب {قَالَ يَا قَوْمِ أَرَأَيْتُمْ} أَخْبِرُونِي {إِنْ كُنْتُ عَلَى بَيِّنَةٍ} بَيَان {مِنْ رَبِّي وَآتَانِي رَحْمَةً} نُبُوَّة {مِنْ عِنْدِهِ فَعُمِّيَتْ} خَفِيَتْ {عَلَيْكُمْ} وَفِي

قِرَاءَة بِتَشْدِيدِ الْمِيم وَالْبِنَاء لِلْمَفْعُولِ (أَنُلْزِمُكُمُوهَا) أَنُجْبِرُكُمْ عَلَى قَبُولِهَا (وَأَنْتُمْ لَهَا كَارِهُونَ) لَا نَقْدِر عَلَى ذَلِك (وَيَا قَوْمِ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ) عَلَى تَبْلِيغ الرِّسَالَة (مَالًا) تُعْطُونِيهِ (إِنْ) مَا (أَجْرِيَ) ثَوَابِي (إِلَّا عَلَى اللَّهِ وَمَا أَنَا بِطَارِدِ الَّذِينَ آمَنُوا) كَمَا أَمَرْتُمُونِي (إِنَّهُمْ مُلَاقُوا رَبِّهِمْ) بِالْبَعْثِ فَيُجَازِيهِمْ وَيَأْخُذ لَهُمْ مِمَّنْ ظَلَمَهُمْ وَطَرَدَهُمْ (وَلَكِنِّي أَرَاكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ) عَاقِبَة أَمْرِكُمْ (وَيَا قَوْمِ مَنْ يَنْصُرُنِي) يَمْنَعنِي (مِنَ اللَّهِ) أَيْ عَذَابه (إِنْ طَرَدْتُهُمْ) أَيْ لَا نَاصِر لِي (أَفَلَا) فَهَلَّا (تَذَكَّرُونَ) بِإِدْغَامِ التَّاء الثَّانِيَة فِي الْأَصْل فِي الذَّال تَتَّعِظُونَ (وَلَا أَقُولُ لَكُمْ عِنْدِي خَزَائِنُ اللَّهِ وَلَا) إِنِّي (أَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَا أَقُولُ إِنِّي مَلَكٌ) بَلْ أَنَا بَشَر مِثْلكُمْ (وَلَا أَقُولُ لِلَّذِينَ تَزْدَرِي) تَحْتَقِر (أَعْيُنُكُمْ لَنْ يُؤْتِيَهُمُ اللَّهُ خَيْرًا اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا فِي أَنْفُسِهِمْ) قُلُوبهمْ (إِنِّي إِذًا) إِنْ قُلْت ذَلِك (لَمِنَ الظَّالِمِينَ) (قَالُوا يَا نُوحُ قَدْ جَادَلْتَنَا) خَاصَمْتنَا (فَأَكْثَرْتَ جِدَالَنَا فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا) بِهِ مِنَ الْعَذَاب (إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ) فِيهِ (قَالَ إِنَّمَا يَأْتِيكُمْ بِهِ اللَّهُ إِنْ شَاءَ) تَعْجِيله لَكُمْ فَإِنَّ أَمْره إِلَيْهِ لَا إِلَيَّ (وَمَا أَنْتُمْ بِمُعْجِزِينَ) بِفَائِتِينَ اللَّه (وَلَا يَنْفَعُكُمْ نُصْحِي إِنْ أَرَدْتُ أَنْ أَنْصَحَ لَكُمْ إِنْ كَانَ اللَّهُ يُرِيدُ أَنْ يُغْوِيَكُمْ) أَيْ إِغْوَاءَكُمْ وَجَوَاب الشَّرْط دَلَّ عَلَيْهِ (وَلَا يَنْفَعُكُمْ نُصْحِي) (هُوَ رَبُّكُمْ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ) قَالَ تَعَالَى (أَمْ) بَلْ أَ (يَقُولُونَ) أَيْ كُفَّار مَكَّة (افْتَرَاهُ) اخْتَلَقَ مُحَمَّد الْقُرْآن (قُلْ إِنِ افْتَرَيْتُهُ فَعَلَيَّ إِجْرَامِي) إِثْمِي أَيْ عُقُوبَته (وَأَنَا بَرِيءٌ مِمَّا تُجْرِمُونَ) مِنْ إِجْرَامكُمْ فِي نِسْبَة الِافْتِرَاء إِلَيَّ

---

ترجمه: يقينا مونږ نوح علیه السلام لره د هغه قوم طرف ته په ښکاره توګه خبر ورکونکي اوليږلو اني په اصل کښې باني دي او په يو قراءت کښې د قول د حذف سره د همزې په کسرې سره دې دا چې تاسو د الله نه سوا د بل چا عبادت مه کوئ که چرې تاسو د الله نه سوا د بل چا عبادت اوکړو نو ما سره په تاسو باندې په دنيا او آخرت کښې د دردناک عذاب ويره ده، دهغه د کافر قوم سرادارانو اوئيل او هغه شريفان د قوم وومونږ تا د خپل ځان پشان انسان ګڼړو ستا په مونږ باندې هيڅ مرتبه نشته او ستا تابعداری کوونکی خلقو ته هم ګورو چې هغه د قوم لاندې خلق دی لکه جولاګان او موچيان سرسری رائې والا دی الرای د همزې سره او بغير د همزې نه دې، يعنی ستا باره کښې بغير د سوچ او پوهې نه عمل کوونکی دی، او د "بادی" منصوب کيدل د ظرفيت د وجه دې يعنی اول ظاهريدونکې رائې باندې بغير د سوچ نه عمل کوونکی، او مونږ خو په ځان باندې ستا هيڅ قسم اوچتوالې نه ګڼړو چې د هغې د وجه نه ته مونږ د تابعدارئی مستحق يئ ،بلکه مونږ خو تاسو لره د پيغمبرئی په دعوی کښې دروغژن ګڼړو په خطاب کښې د حضرت نوح علیه السلام قوم هم شامل کړو ګنی (نظنکم په ځائې به نظنك وو) نوح علیه السلام اوفرمائيل ای ځما د قوم خلقو تاسو ماته اووايئ که چرې څه د خپل رب د طرف نه په څه دليل باندې يم او هغه ماته په خپل فضل سره رحمت يعنی نبوت راکړو او په تاسو باندې هغه پټ وی او په يو قراءت کښې (عميت) دميم تشديد او د مجهول صيغې سره دې نو آيا دا رحمت په زور په تاسو لازمولې شم يعنی په دې باندې څه تاسو مجبوره کولې شم؟ په داسې حال کښې

چې تاسو دا ناخوښه ګڼرئی مونږ په دې باندې قدرت نه لرواو اې څما د قوم خلقو څه د پیغام په رسولو باندې ستاسو نه د مال مطالبه نه کوم چې هغه تاسو ماته راکوئی څما اجر اوثواب په الله باندې دې او نه څه ستاسو د وینه مطابق ایمان راوړونکی د خپل ځان نه شړلې شم د هغوی دوباره ژوندی کیدو نه پس د خپل رب سره میلاوېدل دی هغه به دوی ته بدله ورکړی او هغه خلقو ته چاچې په دوی باندې ظلم کړې وی او دوی ئې شړلې وی، هغوی ته به بدله ورکیږی خو تاسو د خپل انجام نه بې خبر خلق یئ، او اې څما د قوم خلقو که چرې څه دوی د خپل ځان نه اوشړلم نو مابه د الله د عذاب نه څوک بچ کړی؟ یعنی څما بچ کوونکی څوک هم نشته،تاسو ولې نصیحت نه حاصلوئی؟ دویم تا ء په اصل کښې په ذال کښې مدغم کولو شوې ده معنی د تتعظون او څه تاسو ته نه وایم چې ماسره د الله خزانې دی او نه څه عالم الغیب یم او نه څه دا وایم چې څه فرشته یم بلکه څه خو ستاسو په شان یو انسان یم او څه د هغه خلقو په باره کښې چاته چې تاسو د سپکوالی په نظر سره ګورئی دا نه وایم چې دوی ته به الله بدله نه ورکوی، څه چې د دوی په زړونو کښې دی الله تعالی ئې څه پیژنی، که څه داسې اووایم نو څه به بې شکه د ظالمانو نه شمیر یم د قوم خلقو اووئیل تا مونږ سره بحث او کړو او ډیر بحث دې اوکړو اوس چې د کوم عذاب مونږ ته دهمکی راکوې هغه عذاب په مونږ باندې راوله که چرې ته په دې ویرولو کښې رشتونې ئې حضرت نوح علیه السلام جواب ورکړو هغه به صرف الله راولی که چرې هغه په تاسو باندې زر راوستل اوغواړی د دې اختیار هم د هغه سره دې نه چې ماسره تاسو د الله نه بچ کیدې نشئ تاسو ته څما نصیحت هیڅ فائده درکولې نشی که چرې الله ته ستاسو ګمراهی مقصود وی اګر چې څه تاسو ته څومره هم نصیحتونه اوکړم او جواب شرط محذوف دې چې په هغې باندې لاینفعکم نصحی دلالت کوی هم هغه ستاسو پروردګار دې او هم د هغه طرف ته به واپس کیږئ الله تعالی اوفرمائیل آیا د مکې کافران وائی چې قرآن محمد صلی الله علیه وسلم په خپله تصنیف کړې دې اې محمد صلی الله علیه وسلم اووایه که چرې دا قرآن ما په خپله تصنیف کړې وی نو ددې جرم یعنی ددې سزا په ما باندې ده او څما طرف ته د تصنیف نسبت کولو سره چې تاسو کوم جرم کړې دې څه د هغې نه بری یم.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** فیه ادغام التاء الخ : یعنی تذکرون د باب تفعل نه دې نه چې د باب تفعیل نه

**قوله:** بین الانذار، د مبین تفسیر په "بین" سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې مبین دلته لازم دې

**قوله:** عذاب یوم الیم: د یوم تفسیر په الیم سره د اسناد مجازی په توګه دې،د ظرفیت د علاقیت د وجې

**قوله:** کالحاکة:دا د حاکک جمع ده په معنی د جولا

قوله: اسأكفة: دا د اسكاف جمع ده په معنى د موچى
قوله: بالهمزة وتركه: يعنى همزه پاتې كيدو سره (الراى) اوهمزه غورزيدو سره (الراى)
قوله: ابتدا النح: په دې كښې اشاره ده چې بادى د بدا نه دې په معنى د ابتدا نه چې بدو چې په معنى د ښكاره كيدو دې.
قوله: نصبه على ظرفية: يعنى بادى د اتبعک ظرف دې
قوله: وقت حدوث اول رايهم: وقت مضاف محذوف منلو سره د يو سوال جواب وركول مقصود دى
سوال: دادې چې ظرف يا خو زمان وى يا مكان، او بادى نه زمان دې او نه مكان؟
جواب: حاصل دادې چې د بادى نه مخكښې وقت محذوف دې لهذا اوس څه اعتراض پاتې نه شو.
قوله: ادرجو قومه معه: دا ددې سوال جواب دې چې نوح عليه السلام خو فرد واحد دې بيا د هغه د پاره نظنكم د جمع صيغه ولې استعمال شوه؟
جواب: حاصل دادې چې د كذب په نسبت كښې ئې د نوح عليه السلام سره د هغه قوم هم شريک كړې دې، ددې وجه نه ئې د جمع صيغه راوړه
قوله: والبناء للمفعول: اى اخفيت
قوله: على تبليغ الرسالة: ددې اضافې مقصد د عليه د ضمير مرجع بيانول دى
سوال: مخكښې د تبليغ الرسالة ذكر نشته، لهذا په دې كښې اضمار قبل الذكر لازميږى؟
جواب: حاصل دادې چې د تبليغ رسالت په ماقبل كښې اگرچې ذكر نشته مگر د كلام د اندازې (سياق) نه معلوميږى، لهذا اضمار قبل الذكر نه لازميږى.
قوله: انى: مفسر علام انى محذوف منلو سره اشاره اوكړه چې د لا اعلم عطف په عندى خزائن الله باندې دې نه چې په اقول باندې، ځكه مراد الى لا اقول لكم اعلم الغيب دې.
قوله: تزدرى، ازدراء: (افتعال) دا د زرى يزرى نه مشتق دې، ددې معنى غيب لگول، زرى عليه اى عابه، ددې اصل تزترى دې، تاء ئې دال سره بدله كړه
قوله: اغوائكم: په دې كښې اشاره ده چې په ان يعويكم كښې ان مصدريه دې
قوله: وجواب الشرط دل عليه: ولا ينفعكم نصحى، دويم شرط يعنى ان كان الله الخ جواب محذوف دې چې په هغې باندې ولا ينفعكم دلالت كوى، او دويم شرط د خپل جواب شرط سره د اولنې شرط، يعنى د "ان اردت" جواب دې او دا تركيب د بصريانو د مذهب مطابق دې، او د كوفيان په نيز د اول شرط جزاء ولا ينفعكم مقدم دې، په دې صورت كښې به

تقدير د كلام داسې وى ان الله يريد ان يغويكم فان اردت ان انصح لكم فلا ينفعكم نصحي. او دا تركيب ددې وجه نه دې چې كله دوه شرطونه او يو جواب يوځاى نو جواب د دويم شرط كرخولې شي، او شرط ثاني خپل جواب سره د اول شرط جزاء وى..

**[ايالتوله ۳٦ ـ ٤٩]**

﴿وَأُوحِيَ إِلَى نُوحٍ أَنَّهُ لَنْ يُؤْمِنَ مِنْ قَوْمِكَ إِلَّا مَنْ قَدْ آمَنَ فَلَا تَبْتَئِسْ﴾ تحزن ﴿بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ﴾ مِنَ الشِّرْكِ فَدَعَا عَلَيْهِمْ بِقَوْلِهِ ﴿رَبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ﴾ إلخ فاجاب الله دعاءه فقال ﴿وَاصْنَعِ الْفُلْكَ﴾ السَّفِينَة ﴿بِأَعْيُنِنَا﴾ بِمَرْأًى مِنَّا وَحِفْظِنَا ﴿وَوَحْيِنَا﴾ أمرنا ﴿وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا﴾ كَفَرُوا بِتَرْكِ إهلاكهم ﴿إِنَّهُمْ مُغْرَقُونَ﴾ ﴿وَيَصْنَعُ الْفُلْكَ﴾ حِكَايَة حَال مَاضِيَة ﴿وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ مَلَأٌ﴾ جَمَاعَة ﴿مِنْ قَوْمِهِ سَخِرُوا مِنْهُ﴾ استهزؤوا به ﴿قَالَ إِنْ تَسْخَرُوا مِنَّا فَإِنَّا نَسْخَرُ مِنْكُمْ كَمَا تَسْخَرُونَ﴾ إذا نجونا وغرقتم ﴿فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَنْ﴾ مَوْصُولَة مَفْعُول الْعِلْم ﴿يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَيَحِلُّ﴾ ينزل ﴿عَلَيْهِ عَذَابٌ مُقِيمٌ﴾ ﴿حَتَّى﴾ غَايَة لِلصُّنْعِ ﴿إِذَا جَاءَ أَمْرُنَا﴾ بِإِهْلَاكِهِمْ ﴿وَفَارَ التَّنُّورُ﴾ لِلْخَبَّازِ بِالْمَاءِ وَكَانَ ذَلِكَ عَلَامَة لِنُوحٍ ﴿قُلْنَا احْمِلْ فِيهَا﴾ فِي السَّفِينَة ﴿مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ﴾ ذَكَرًا وَأُنْثَى أَيْ مِنْ كُلّ أَنْوَاعهمَا ﴿اثْنَيْنِ﴾ ذَكَرًا وَأُنْثَى وَهُوَ مَفْعُول وَفِي الْقِصَّة أَنَّ اللَّه حَشَرَ لِنُوحٍ السِّبَاع وَالطَّيْر وَغَيْرهَا فَجَعَلَ يَضْرِب بِيَدَيْهِ فِي كُلّ نَوْع فَتَقَع يَده الْيُمْنَى عَلَى الذَّكَر وَالْيُسْرَى عَلَى الْأُنْثَى فَيَحْمِلهُمَا فِي السَّفِينَة ﴿وَأَهْلَكَ﴾ أَيْ زَوْجَته وَأَوْلَاده ﴿إِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ﴾ أَيْ مِنْهُمْ بِالْإِهْلَاكِ وَهُوَ زَوْجَته وَوَلَده كَنْعَان بِخِلَافِ سَام وَحَام وَيَافِث فَحَمَلَهُمْ وَزَوْجَاتهمْ الثَّلَاثَة ﴿وَمَنْ آمَنَ وَمَا آمَنَ مَعَهُ إِلَّا قَلِيلٌ﴾ قِيلَ كَانُوا سِتَّة رِجَال وَنِسَاءَهُمْ وَقِيلَ جَمِيع مَنْ كَانَ فِي السَّفِينَة ثَمَانُونَ نِصْفهمْ رِجَال وَنِصْفهمْ نِسَاء ﴿وَقَالَ﴾ نوح ﴿ارْكَبُوا فِيهَا بِسْمِ اللَّهِ مَجْرَاهَا وَمُرْسَاهَا﴾ بِفَتْحِ الْمِيمَيْنِ وَضَمّهمَا مَصْدَرَانِ أَيْ جَرْيهَا وَرَسْوهَا أَيْ مُنْتَهَى سَيْرهَا ﴿إِنَّ رَبِّي لَغَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ حَيْثُ لَمْ يُهْلِكنَا ﴿وَهِيَ تَجْرِي بِهِمْ فِي مَوْجٍ كَالْجِبَالِ﴾ فِي الِارْتِفَاع وَالْعِظَم ﴿وَنَادَى نُوحٌ ابْنَهُ﴾ كَنْعَان ﴿وَكَانَ فِي مَعْزِلٍ﴾ عن السفينة ﴿يَا بُنَيَّ ارْكَبْ مَعَنَا وَلَا تَكُنْ مَعَ الْكَافِرِينَ﴾ ﴿قَالَ سَآوِي إِلَى جَبَلٍ يَعْصِمُنِي﴾ يَمْنَعنِي ﴿مِنَ الْمَاءِ قَالَ لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ﴾ عَذَابه ﴿إِلَّا﴾ لَكِنْ ﴿مَنْ رَحِمَ﴾ اللَّه فَهُوَ الْمَعْصُوم قال تعالى ﴿وَحَالَ بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِينَ﴾ ﴿وَقِيلَ يَا أَرْضُ ابْلَعِي مَاءَكِ﴾ الَّذِي نَبَعَ مِنْك فَشَرِبَتْهُ دُون مَا نَزَلَ مِنَ السَّمَاء فَصَارَ أَنْهَارًا وَبِحَارًا ﴿وَيَا سَمَاءُ أَقْلِعِي﴾ أَمْسِكِي عَنِ الْمَطَر فَأَمْسَكَتْ ﴿وَغِيضَ﴾ نَقَصَ ﴿الْمَاءُ وَقُضِيَ الْأَمْرُ﴾ تَمَّ أَمْر هَلَاك قَوْم نوح ﴿وَاسْتَوَتْ﴾ وَقَفَتْ السَّفِينَة ﴿عَلَى الْجُودِيِّ﴾ جَبَل بِالْجَزِيرَةِ بِقُرْبِ الْمَوْصِل ﴿وَقِيلَ بُعْدًا﴾ هَلَاكًا ﴿لِلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ﴾ الْكَافِرِينَ ﴿وَنَادَى نُوحٌ رَبَّهُ فَقَالَ رَبِّ إِنَّ ابْنِي﴾ كَنْعَان ﴿مِنْ أَهْلِي﴾ وَقَدْ وَعَدْتنِي بِنَجَاتِهِمْ ﴿وَإِنَّ وَعْدَكَ الْحَقُّ﴾ الَّذِي لَا خُلْف فِيهِ ﴿وَأَنْتَ أَحْكَمُ الْحَاكِمِينَ﴾ أَعْلَمهمْ وَأَعْدَلهمْ ﴿قَالَ﴾ تَعَالَى ﴿يَا نُوحُ إِنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ﴾ النَّاجِينَ أَوْ مِنْ أَهْل دِينك ﴿إِنَّهُ﴾ أَيْ سُؤَالك إيَّايَ بِنَجَاتِهِ ﴿عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ﴾ فَإِنَّهُ كَافِر وَلَا نَجَاة لِلْكَافِرِينَ وَفِي قِرَاءَة بِكَسْرِ مِيم عَمِلَ فِعْل وَنَصْب غَيْر فَالضَّمِير لِابْنِهِ ﴿فَلَا تَسْأَلْنِ﴾ بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف ﴿مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ﴾ مِنْ انجاء ابنك ﴿إِنِّي أَعِظُكَ أَنْ تَكُونَ مِنَ الْجَاهِلِينَ﴾

بسؤالك ما لم تعلم ﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ﴾ من ﴿أَنْ أَسْأَلَكَ مَا لَيْسَ لِي بِهِ عِلْمٌ وَإِلَّا تغفر لي﴾ ما فرط مني ﴿وترحمني أكن من الخاسرين﴾ ﴿قِيلَ يَا نُوحُ اهْبِطْ﴾ انزل من السفينة ﴿بِسَلَامٍ﴾ بسلامة أو بتحية ﴿مِنَّا وَبَرَكَاتٍ﴾ خيرات ﴿عَلَيْكَ وَعَلَىٰ أُمَمٍ مِّمَّن مَّعَكَ﴾ في السفينة أي من أولادهم وذريتهم وهم المؤمنون ﴿وَأُمَمٌ﴾ بالرفع ممن معك ﴿سَنُمَتِّعُهُمْ﴾ في الدنيا ﴿ثُمَّ يَمَسُّهُم مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ في الآخرة وهم الكفار ﴿تِلْكَ﴾ أي هذه الآيات المتضمنة قصة نوح ﴿مِنْ أَنبَاءِ الْغَيْبِ﴾ أخبار ما غاب عنك ﴿نُوحِيهَا إِلَيْكَ﴾ يا محمد ﴿مَا كُنتَ تَعْلَمُهَا أَنتَ وَلَا قَوْمُكَ مِن قَبْلِ هَٰذَا﴾ القرآن ﴿فَاصْبِرْ﴾ على التبليغ وأذى قومك كما صبر نوح ﴿إِنَّ الْعَاقِبَةَ﴾ المحمودة ﴿للمتقين﴾.

ترجمه: او نوح عليه السلام ته وحی راوليږلې شوه چې ستا په قوم كښې چې چا ايمان راوړې وی ددوی نه علاوه نور څوک هم ايمان راوړونكی نه دی لهذا ته ددوی په شركيه كارونو باندې غم مه كوه چنانچه نوح عليه السلام په رب لا تذر فرمائيلو سره خيرې اوكړې او الله تعالى دده دا خيرې قبولې كړې او حكم ئې ورته اوكړو څوموږ په نگرانۍ او حفاظت كښې زموږ د حكم مطابق يوه كشتۍ جوړه كړه او اوگوره چې كومو خلقو كفر كړې دې ددوی د نه هلاكولو په باره كښې ماته څه سفارش مه كوه يقينا دوی غرقيدونكی دی نوح كشتۍ جوړوله دا د حال ماضی حكايت دې كله چې به د ده په خواه كښې د ده د قوم خلق تيريدل نو توقې به ئې واپسې كولې نوح عليه السلام اوفرمائيل كه چرې تاسو په موږ پورې خاندئ نو زر به موږ په تاسو پسې اوخاندو څنگه چې تاسو خاندئ چې كله موږ بچ شو او تاسو غرق شئ ډير زر به تاسو ته پته اولگی چې رسوا كونكې عذاب په چا باندې راځی من موصوله د تعلمون مفعول دې او هغه هيشگير عذاب په چا باندې راځی تردې چې ددوی د هلاكت زموږ حكم راغلو او تنور اوبه راؤخوټكولې اودا د نوح (ع) د پاره نښه وه.، موږ حكم اوكړو چې په حيواناتو كښې د هر قسم يوه جوړه كشتۍ ته اوخيژوه يعنی د نر او ښځې، الذين د احمل مفعول دې مختصر دا چې الله د نوح عليه السلام د پاره څناور او مارغان جمع كړل چنانچه نوح عليه السلام چې به په كوم قسم باندې لاس اينښودلو نو د نوح عليه السلام ښې لاس به په نر، او گس لاس به په ماده راتلو، اوهغه به يې په كشتۍ كښې سورول، او د خپل كور والو يعنی ښځه او بچی سوا د هغه چا نه چې په چا چه دوی كښې د هلاكت نافذ شوې دې. او دا د هغه ښځه او څوې كنعان وو، د حام سام او يافث نه علاوه، چې دوی او ددوی ښځو لره ئې كينول او ددې نه علاوه هغه هم چا چې ايمان راوړلو او سوا د لږ خلقو نه دوی سره چا هم ايمان راونړو، هغه هم څوک چې ايمان راوړلو او سوا د لږ خلقو نه دوی سره چا هم ايمان راونړو، وئيلې شوې دی چې شپږ سړی او د هغوی ښځې وې او وئيلې شوې دی چې په كشتۍ كښې ټول د ناستو كسانو تعداد اتيا وو، په دې كښې نيم سړی وو او نيمې ددوی ښځې، نوح عليه السلام اوفرمائيل په دې كښې سواره شئ د الله په نوم سره ددې تلل دی او ودريدل دی (مجريها ومرسها (دواړه د ميم په فتحې او ضمې سره مصدر دی يعنی

ددې تلل او اودرېدل يعنى آخرى منزل ته د تللو نه پس اودرېدل، د الله د حکم سره دى، ځما رب ډېر بخښونکې رحم کوونکې دې چې هغه مونږ هلاک نکړو او کشتۍ دوى اوچتولو سره په لوئې او اوچت والى کښې د غورونو په شان چپو کښې بوتلل، او نوح عليه السلام خپل ځوى کنعان ته آواز ورکولو سره اوفرمائيل او هغه د کشتۍ نه لرې وو اې ځما خوګه ځويا ځمونږ سره سور شه او کافرانو سره مه کېږه هغه جواب ورکړو چې څه اوس د يو غر پناه اخلم چې ما به په اوبو کښې د ډوبېدلو نه بچ کړى نوح عليه السلام اووئيل نن يو څيز د الله د عذاب نه بچکونکى نشته سوا ددې نه چې الله په چا باندې رحم اوکړى صرف هغه بچ کيدې شى الله تعالى اوفرمائيل، په دې کښې يو چپه د هغوى په مينځ کښې راغله، او هغه د ډوبېدلو والو کښې شامل شو، حکم اوشو چې اې زمکې چې څومره اوبه تا راوځکې دى، راکاږه، (جذب کړه) دغه شان زمکې ټولې اوبه راځکلې سوا د هغه اوبو نه چې اسمان نه راوريدلې وې نو د زمکې نه وتوونکې اوبه په نهرونو او سيندونو کښې شاملې شوې او اې آسمانه ته خپلې اوبه راوروول بند کړه نو هغې بندې کړې او اوبه کمې شوې او د قوم نوح د هلاکت فيصله باندې عمل اوشو، او کشتۍ په جودى غر باندې اودرېدله، جودى موصل ته نزدې د جزيرې يو غر دې او د کافرانو د هلاکت حکم اوشو او نوح (ع) خپل رب ته اواز اوکړو چې اې ځما ربه، ځما ځوې کنعان ځما د کور والؤ نه دې او تا ځما د کور والو د بچ کولو وعده کړې وه او بې شکه ستا وعده رښتونې ده چې به کښې روستوالې نشته او ته د ټولو حاکمانو نه لوئې حاکم يې يعنى د ټولو نه زيات علم والا او د ټولو نه زيات انصاف کولو والا ئې الله جواب ورکړو چې اې نوح، هغه ستا د نجات والو اهل نه دې يا ستا د دين نه دې بې شکه ستا ځما نه دده د خلاصۍ سوال مناسب نه دې ځکه چې هغه کافر دې او د کافر خلاصيدل نشته، او په يو قرات کښې "عمِل" فعل سره او "غير" نصب سره دې، په دې صورت کښې د ضمير "ابن" ته راجع وى لهذا ته ما ته د هغه خبرې درخواست مه کوه تسئلن د نون تخفيف او تشديد سره دې چې د کومې خبرې تا ته علم نشته، او هغه خبره ستا د ځوى د خلاصيدلو سوال دې څه تا ته نصيحت کوم چې کوم څيز ته نه پيژنې د هغې سوال سره خپل ځان په ناپوهه خلقو کښې مه شاملوه، نوح عليه السلام عرض اوکړو اې ځما ربه څه د دې خبرې نه ستا پناه غواړم چې ستا نه د څه داسې څيز سوال اوکړم چې د هغې ما ته علم نه وى او که ته ځما غلطى معاف نه کړې او رحم راباندې اونکړې زه نو به نقصان کوونکو کښې شمير شم حکم اوشو چې اې نوح عليه السلام ته د کشتۍ نه زمونږ په امن يا سلام سره، او په خپل ځان او په ډلو چې په کشتۍ کښې تاسره دى يعنى ددوى اولاد سره او هغه مومنان دى د برکت سره کوز شه، او څه خلق تاسره داسې هم دى چې هغوى ته به مونږ په دنيا کښې د عيش او عشرت سامان ورکړو او بيا به په آخرت کښې زمونږ د طرف نه هغوى ته دردناک عذاب ورسيږى او هغه کافران دى دا آياتونه چې د نوح عليه السلام په قصې باندې مشتمل دى اې محمد ﷺ ستا

طرف ته د غیب خبري دی یعني د هغه خیزونو خبري دی چې ستا نه پتې دی او د نازلیدلو د قرآن نه مخکښې نه تا دا پیژندلې او نه ستا قوم لهذا تاسو په تبلیغ باندې او د قوم تکلیف رسولو باندې صبر اوکړئ څنګه چې نوح علیه السلام کړې وو او دیر ښه انجام د نیکانو دې..

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: واوحی الی نوح انه لن یؤمن من قومك الا من قد آمن: اوحی فعل ماضی مجهول، انه لن یؤمن نائب فاعل ای اوحی الیه عدم ایمان بعض قومه

قوله: تبتئس: د افتعال نه مضارع واحد مذکر حاضر، چونکه دلته حرف نهی داخل دې څکه نهی دې، نو خفګان مه کوه

قوله: بمرای: منا، وحفظنا، دا اضافه د یو سوال جواب دې

سوال: دادې چې د باعیننا نه معلومیږی چې د الله تعالی اندامونه دی او چې د چا اندامونه وی هغه جسم لری، لهذا د الله تعالی د پاره جسم ثابت شول، څنګه چې د مجسمۀ عقیده ده؟

جواب: حاصل دادې چې باعیننا د حفظ او رؤیت نه کنایه ده، څنګه چې د بسط الله یده دې چې په د جود او سخاوت نه کنایه ده، باعیننا، محلا حال دې تقدیر دادې ملتبسا باعیننا

قوله: حکایة حال ماضیة: دا د یو سوال جواب دې

سوال: سوال دادې چې یصنع د مضارع صیغه ده، چې په حال او استقبال باندې دلالت کوی، ددې نه معلومیږی چې کشتئ جوړول د خبر ورکولو نه پس دی حالانکه کشتئ په تیره زمانه کښې جوړه شوې وه؟

جواب: جواب دادې چې د زمانۀ ماضی د حالت حکایت کوی، یعنی د کشتئ جوړولو منظر کشی کیږی

قوله: من موصوله مفعول العلم: په من باندې کښې من موصوله دې، اود تعلمون مفعول به دې ترکیب سره دا شبهه ختم شوه، چې من استفهامیه دې او دې ته د صدارت ضرورت دې

قوله: وغایة للصنع: یعنی حتی د صنع غایت دې، د یاتیه یا د یحل غایت نه دې لکه چې قرب د وجه نه شبه رازی، حتی ابتدائیه ده چې په جمله شرطیه باندې داخله ده، او د واصنع الفلک غایه ده.

قوله: فی السفینة: په دې اضافه کښې ددې سوال جواب طرف ته اشاره ده چې په فیها کښې ضمیر ماقبل کښې ذکرشوې الفلک طرف ته راجع دې، چې کوم مذکر دې، او حالانکه فیها ضمیر مؤنث دې، جواب دادې چې فلک د سفینة په معنی کښې دې، نو فلاشبهة

قوله: انه: سوالك ای بمالیه مفسر علام د انه د ضمیر د مرجع مقرر کولو سره اوفرمائیل

چې مرجع د خپل خوی کنعان د بچ کولو سوال دې یعنی ستا سوال مناسب نه دې،جمهور مفسرینو د "ه" ضمیر مرجع "ابن" گرځولې دې، یعنی کنعان ستاسو د اهل نه نه دې،ددې نه مجاز لازم راځی، ځکه چې حقیقة د اهل نه نفی کول صحیح نه دی،چې د هغې د وجه نه مجازی معنی یعنی دینی اهل به مراد وی.

قوله:وفی قراءة بکسر میم عمل فعل ونصب غیرفالضمیرلابنه: ددې عبارت د زیاتولو مقصد د عمل اعراب ښودل دی،د جمهورو په قرا ءت کښې عمل مصدر دې او "غیرصالح" ددې صفت دې مطلب دادې چې ستا د خپل خوی د کنعان د خلاصولو سفارش نامناسب دې ځکه چې هغه کافر دې او د کافر خلاصیدل نشته،او په یو قرا ءت کښې عمل د فعل ماضی صیغه ده په دې صورت کښې به "غیر"د مصدر محذوف صفت کیدو د وجه منصوب وی، تقدیری عبارت به دا وی انه عمل عملا غیرصالح په دې صورت کښې به د انه ضمیر ابن ته راجع وی، یعنی کنعان عمل غیر صالح کړې دې،مفسر علام رومبې صورت اختیار کړې دې،چې د نوح ﷺ د خپل کافر خوی د خلاصولو د پاره سفارش کول نامناسب دی،ځکه چه مخکښې وئیلې شوې دی انی اعظك ان تکون من الجاهلین ددې نه د نوح ﷺ طرف ته د جهالت نسبت لازم رازی.

قوله:فلا تسئلن بالتخفیف والتشدید:یعنی د نون تشدید سره او د ماقبل فتحې سره او دا د نافع قرا ءت دې ابن کثیر او ابن عامر او نورو د لام سکون او د نون تخفیف سره وئیلې دې او په حالت وصل کښې نون نه پس یاء ئې باقی لیکلې ده نه چې وقف کښې، او ورش او ابوعمرو په وقف او وصل دواړو کښې یاء پاتې کړې ده

قوله:بسلامة اوبتحیة: ددې اضافې مقصد د سلام دوه معنی بیان دی بسلامة وئیلو سره د امن او سلامتئ طرف ته اشاره کړې ده او بتحیة سره سلام او تحیه طرف ته اشاره کړې ده،مطلب دادې چې دلته دواړه معانی صحیح دی

قوله:امم بالرفع ممن معك: امم، په رفع سره، د مبتدأ د وجه، او سنمتعهم ددې خبر دې نه چې په امم سابق باندې د معطوف کیدو د وجه مجرور دې، ځکه چې دا خلق په امن او سلامتئ کښې داخل نه دی.

سوال: د امم نکره کیدلو د وجه مبتدأ واقع کیدل صحیح نه دی؟

جواب: امم موصوف دې او ممن معک ددې صفت دې، لهذا د امم نکره موصوفه کیدو د وجې مبتدأ جوړیدل صحیح دی، مفسر علام ممن معک اضافه کولو سره دې تقدیر طرف ته اشاره کړې ده.

قوله:ای هذه الایات المتضمنة:الخ دا د یو سوال مقدر جواب دې سوال دادې چې تلک اسم

اشاره مؤنث مبتدأ ده حالانکه ددې درې خبرونه دی او دریواړه مذکر دی ①من انباء الغيب ②نوحيها اليك ③ما كنت تعلمها، لهذا د خبر د رعايت كولو د پاره د مبتدأ مذكر هم پكار دې، د جواب حاصل دادې چې د هذه مشاراليه دا ذكر شوې خبرونه نه دی بلکه ددې مشاراليه الايات محذوف دې، چې هغې ته مفسر علام اشاره کړې ده.لهذا اوس هيڅ اعتراض پاتې نشو..

**[ايات نمبر: ۵۰-۶۰]**

{و} أرسلنا {إِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ} مِن القبيلة {هُودًا قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ} وحّدوه {مَا لَكُم مِّنْ} زائدة {إِلَٰهٍ غَيْرُهُ إِنْ} ما {أَنتُمْ} في عبادتكم الأوثان {إِلَّا مُفْتَرُونَ} كاذبون على الله {يَا قَوْمِ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ} على التوحيد {أَجْرًا إِنْ} ما {أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى الَّذِي فَطَرَنِي} خلقني {أَفَلَا تَعْقِلُونَ} {وَيَا قَوْمِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ} من الشرك {ثُمَّ تُوبُوا} ارجعوا {إِلَيْهِ} بالطاعة {يُرْسِلِ السَّمَاءَ} المطر وكانوا قد منعوه {عَلَيْكُم مِّدْرَارًا} كثير الدرور {وَيَزِدْكُمْ قُوَّةً إِلَىٰ} مع {قُوَّتِكُمْ} بالمال والولد {وَلَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِينَ} مشركين {قَالُوا يَا هُودُ مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ} برهان على قولك {وَمَا نَحْنُ بِتَارِكِي آلِهَتِنَا عَن قَوْلِكَ} أي لقولك {وَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ} {إِن} ما {نَّقُولُ} في شأنك {إِلَّا اعْتَرَاكَ} أصابك {بَعْضُ آلِهَتِنَا بِسُوءٍ} فخبلك لسبك إياها فأنت تهذي {قَالَ إِنِّي أُشْهِدُ اللَّهَ} عليّ {وَاشْهَدُوا أَنِّي بَرِيءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ} ه به {مِن دُونِهِ فَكِيدُونِي} احتالوا في هلاكي {جَمِيعًا} أنتم وأوثانكم {ثُمَّ لَا تُنظِرُونِ} تمهلون {إِنِّي تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ رَبِّي وَرَبِّكُم مَّا مِن} زائدة {دَابَّةٍ} نسمة تدب على الأرض {إِلَّا هُوَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا} أي مالكها وقاهرها فلا نفع ولا ضرر إلا بإذنه وخص الناصية بالذكر لأن من أخذ بناصيته يكون في غاية الذل {إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ} أي طريق الحق والعدل {فَإِن تَوَلَّوْا} فيه حذف إحدى التائين أي تعرضوا {فَقَدْ أَبْلَغْتُكُم مَّا أُرْسِلْتُ بِهِ إِلَيْكُمْ وَيَسْتَخْلِفُ رَبِّي قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّونَهُ شَيْئًا} بإشراككم {إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ} رقيب {وَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا} عذابنا {نَجَّيْنَا هُودًا وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ بِرَحْمَةٍ} هداية {مِّنَّا وَنَجَّيْنَاهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ} شديد {وَتِلْكَ عَادٌ} إشارة إلى آثارهم أي فسيحوا في الأرض وانظروا إليها ثم وصف أحوالهم فقال {جَحَدُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا رُسُلَهُ} جمع لأن من عصى رسولا عصى جميع الرسل لاشتراكهم في أصل ما جاءوا به وهو التوحيد {وَاتَّبَعُوا} أي السفلة {أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ} معاند للحق من رؤسائهم {وَأُتْبِعُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً} من الناس {وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ} لعنة على رؤوس الخلائق {أَلَا إِنَّ عَادًا كَفَرُوا} جحدوا {رَبَّهُمْ أَلَا بُعْدًا} من رحمة الله {لِّعَادٍ قَوْمِ هُودٍ}

ترجمه: او مونږ د عاديانو طرف ته ددوی خاندانی رور هود راوليږلو، هود اووئيل چې اې څما د قوم خلقو د الله بندگی وکړئ يعنی د هغه د توحيد اقرار وکړئ د هغه نه سوا ستاسو هيڅ څوک معبود نشته من زائده دې تاسو د بتانو بندگئ کولو سره په الله باندې بهتان تړئ، اې څما قومه تاسو ته د توحيد په تبليغ باندې هيڅ اجرت نه غوارم، څما اجر خو هغه باندې دې چا چې څه

پیدا کړي یم، آیا تاسو عقل نه کار نه اخلئ؟ اې څما د قوم خلقو تاسو د خپل رب نه د شرک معافی وغواړی، بیا د اطاعت په ذریعه سره هغه ته رجوع اوکړئ هغه به په تاسو باندې تیز باران اوکړی، حال دادې چې په دوی باندې باران بند شوې وو او ستاسو موجوده قوت کښې به د مال او اولاد په ذریعه سره نور قوت اضافه کړی، او مشرک جوړیدلو سره مخ مه اړوئی هغه خلقو جواب ورکړو اې هود تا مونږ ته په خپله دعوی باندې څه صفا دلیل راونړو او مونږ ستا په وینا خپل معبودان نه پریږدو او پې تاباندې ایمان راوړونکی نه یو او مونږ ستا باره کښې دا گنړو چې ته څمونږ په معبودانو کښې د چا په نیولو کښې راغلې ئې نو ستا ددې خراب وینه د وجه ته ئې لیونې کړې یې نو د دغه وجه نه ته دا بې هوده خبرې کوې، هود علیه السلام جواب ورکړو څه په خپل ځان الله گواه جوړوم او تاسو هم گواه اوسئ، چې څه د الله نه د غیر کوم چې تاسو شریک جوړ وئی بیزاره یم، تاسو او ستاسو بتان ټول میلاویدلو سره څما خلاف مکر اوکړئ څما د هلاکت چل جوړ کړئ او بیا ماله لږ شان مهلت راکړئ، حما بهروسه په الله باندې ده چې کوم څما هم رب دې او ستاسو هم، یو زنده سره په زمکه باندې تلونکې داسې نشته چې د هغه تندې د هغه په لاس کښې نه وی یعنی هغه ددوی مالک او په دوی باندې غالب دې لهذا هیڅ نفع اونقصان د هغه د اجازت نه بغیر نشته، ناصیة(تندې) خاص طور باندې ددې ذکر څکه اوکړو چې د چا تندې اونیولې شی هغه ډیر ذلالت کښې وی بې شکه څما رب په نیغه لار باندې دې یعنی د حق او انصاف په لار باندې دې که چرې تاسو مخ اړوئی نو چې کوم پیغام سره څه رالیږلې شوې یم هغه ما تاسو ته در اورسوو، او څما رب به ستاسو په ځائې بل قوم رالی، او په شرک سره تاسو د هغه هیڅ هم کولې نه شئ یقینا څما رب په هر څیز باندې نگران دې او کله چې څمونږ عذاب راغې نو مونږ هود علیه السلام او چې چا په هغه باندې ایمان راوړې وو، په خپل خاص رحمت سره بچ کړل، او دوی مو د یو سخت عذاب نه اوساتل او دادې قوم عاد؛ دا اشاره د هغوی آثارو او پاتې شوې خایونو طرف ته ده، نو تاسو په زمکه کښې وگرځی او د هغوی اثارو گورئی بیا ئې ددوی حالات بیان کړل چا چې د خپل رب آیتونه دروغ اوگنړل او د خپلو رسولانو ئې نافرمانی اوکړه (رسل) ئې جمع راوړې دې څکه چې چا د یو رسول نافرمانی اوکړه نو هغه دټولو رسولانو نافرمانی اوکړه، د ټولو رسولانو په اصولو کښې د شریک کیدو د وجه نه کوم چې هغوی راوړې وو، او هغه توحید دې او دا احمقان په خپلو مشرانو کښې د هر یو ظالم او د حق د دشمن تابعداری کوئی اخر کښې په دنیا کښې هم په دوی باندې لعنت پریوتلو او د قیامت په ورځ به د ټولو مخلوقاتو په مخکې کښې په دوی باندې لعنت وی واورئی! عادیانو د خپل رب نافرمانی اوکړه، واورئی اد هود علیه السلام قوم عادیانو د پاره د الله د رحمت نه لرې والې دې.

........

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** وارسلنا: ددې عطف په نوحا الى قومه باندې دې، او دې ته عطف قصه على القصه وائي.

**قوله:** هودا: داد اخاهم عطف بيان دې

**قوله:** لقولك: د "عن" تفسير په لام سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې "عن" تعليله دې

**قوله:** اعتراك: (اعتراء افتعال) ماضى واحد مذکر غائب، راپيښيدل، قصد کول، لګيدل، په مصيبت کښې اخته کيدل.

**قوله:** بسوء: دې کښې باء تعديت دپاره ده

**سوال:** د "اياها" ضمير لفظ د "بعض" ته راجع دې، حالانکه لفظ د بعض مذکر دې او په مرجع کښې مطابقت نشته؟

**جواب:** د مضاف اليه خيال ساتلو د پاره د "اياها" ضمير مو مؤنث راوړو

**قوله:** اشارة الى اثارهم: دا اضافه ددې سوال جواب دې چې تلک عاد مبتدا او خبر دى، عاد مذکر دې لهذا د تلک په ځائې هذا وئيل پکار وو،

د جواب حاصل دادې چې ددې خبر آثار دې چې کوم محذوف دې، اى تلك الآثار آثار عاد

**قوله:** عنيد: بغض لرونکې، سرکش او ضدى، جمع ئې عُنُدٌ.

[اياتو نمبر ٦١ـ٦٨]

(و) ارسلنا (إلى ثمود أخاهم) من القبيلة (صالحا قال يا قوم اعبدوا الله) وحدوه (ما لكم من إله غيره هو أنشأكم) ابتدأ خلقكم (من الأرض) بخلق ابيكم آدم منها (واستعمركم فيها) جعلكم عمارا تسكنون بها (فاستغفروه) من الشرك (ثم توبوا) ارجعوا (إليه) بالطاعة (إن ربي قريب) من خلقه بعلمه (مجيب) لمن سأله (قالوا يا صالح قد كنت فينا مرجوا) نرجو ان تكون سيدا (قبل هذا) الذي صدر منك (أتنهانا أن نعبد ما يعبد آباؤنا) من الأوثان (وإننا لفي شك مما تدعونا إليه) من التوحيد (مريب) موقع في الريب (قال يا قوم أرأيتم إن كنت على بينة) بيان (من ربي وآتاني منه رحمة) نبوة (فمن ينصرني) يمنعني (من الله) اي عذابه (إن عصيته فما تزيدونني) بامركم لي بذلك (غير تخسير) تضليل (ويا قوم هذه ناقة الله لكم آية) حال عاملها الإشارة (فذروها تأكل في أرض الله ولا تمسوها بسوء) عقر (فيأخذكم عذاب قريب) ان عقرتموها (فعقروها) عقرها قدار بامرهم (فقال) صالح (تمتعوا) عيشوا (في داركم ثلاثة أيام) ثم تهلكون (ذلك وعد غير مكذوب) فيه (فلما جاء أمرنا) باهلاكهم (نجينا صالحا والذين آمنوا معه) وهم اربعة آلاف (برحمة منا و) نجيناهم (من خزي يومئذ) بكسر الميم اعرابا وفتحها بناء لإضافته الى مبني وهو الأكثر (إن ربك هو القوي العزيز) الغالب (وأخذ الذين ظلموا الصيحة فأصبحوا في ديارهم جاثمين) باركين على

الرَّكب مُتعين {كَأَنْ} مخففة واسمها محذوف أي كأنهم {لَمْ يَغْنَوْا} يقيموا {فِيهَا} في دارهم {أَلَا إِنَّ ثَمُودَ كَفَرُوا رَبَّهُمْ أَلَا بُعْدًا لِثَمُودَ} بالصرف وتركه على معنى الحي والقبيلة

ترجمه: او مونږ ثموديانو ته ددوی خانداني رور صالح عليه السلام رسول جوړ کړې را وليږو، هغه او ويل اې ځما قومه د الله بندګي او کړئ يعني د هغه ذ توحيد اقرار او کړئی د هغه نه سوا ستاسو هيڅ څوک معبود نشته هغه تاسو پيدا کړئ يعني ستاسو تخليق ئې په اول کښې د خاوره نه او کړو ستاسو نيکه آدم عليه السلام ئې د خاورو نه پيدا کړو او هغه تاسو په زمکه کښې خواره کړئ يعني تاسو ئې د زمکې اوسيدونکی جوړ کړئ چې تاسو په دې کښې اوسيږئی نو تاسو د هغه نه معافي او غوارئی د شرک نه او بيا د تابعدارئی په ذريعه د هغه طرف ته رجوع او کړئ بې شکه ځما رب مخلوق ته د علم په اعتبار سره نزدې دې، او چې څوک د هغه نه سوال کوی د هغې قبلونکې دې هغه خلقو جواب ورکړو اې صالح ددې خبرې د کولو نه مخکښې مونږ ستا نه ډير اميدونه ساتلې وو ځمونږ اميد وو چې ته به زمونږ سردار جوړيږې نو ته مونږ د بتانو د بندګئ نه منع کوې چې کوم بندګی زمونږ خپل پلار نيکه کوله، د کوم توحيد طرف ته چې ته مونږ ته دعوت راکوې په هغې کښې ځمونږ ډير حيرانونکې شک دې صالح عليه السلام او فرمائيل اې ځما د قوم خلقو آيا تاسو په دې خبره باندې سوچ کړې دې چې زه د خپل رب د طرف نه په دليل سره يم او هغه ځه په خپل رحمت سره په نبوت سرفرازه کړم نو که ځه د هغه نافرماني او کړم نو ما به د الله د عذاب نه څوک بچ کړئ؟ تاسو خو ددې خبرې حکم کولو سره ځما ګمراهئ کښې يعني تاوان کښې زياتوالې کوئی، اې د قوم وروڼو دا د الله اوښه ستاسو د پاره نښه ده، "آية" حال دې ددې عامل اسم اشاره ده هغه پريږدئ چې د الله په زمکه باندې څرې ګرځی، او دې ته په بد يعني د هلاک کولو په ارادې سره لاس مه لګوئی که چرې تاسو دا مړه کړه نو په تاسو باندې به ډير زر عذاب راشی چنانچه هغه خلقو دا مړه کړه يعني د ددوی په حکم سره قدار دا مړه کړه په دې خبره باندې صالح او فرمائيل په خپل کورونو کښې درې ورځې اوسئ بيا به تاسو هلاک کړې شئ دا داسې وعده ده چې دروغ کيدلې نشی چنانچه هر کله چه ددوی د هلاک کولو زمونږ حکم راغلو نو مونږ په خپل رحمت سره صالح او هغه خلقو لره چې ده سره ئې ايمان راوړې وو بچ کړل او هغه خلورزره وو او مونږ دوی د هغه ورځې د رسوائی نه بچ کړل يومئذ د ميم کسرې سره معرب، او د ميم فتحې سره مبني، د مبني طرف ته د اضافت د وجه، او هم دا د اکثرو قول دې يقينا هم ستا رب طاقتور او غالب دې او ظالمانو لره يوې چغې راونيول نو هغوی په خپل کورونو کښې مړه پړمخ او غورزيدل، داسې چې بالکل په دې کورونو کښې آباد نه وو کان مخففه دې او ددې اسم محذوف دې ای کانهم، خبردار اوسيږئی ثموديانو د خپل رب کفر او کړو وا اورئی چې د ثموديانو د پاره لعنت ده، ثمود منصرف دې د "حی" په معنی کښې کيدو د وجه او غير منصرف هم دې، دقبيله په معنی کيدو د وجه.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: ثمود:** د یو قوم نوم دې او خپل بره نیکه ثمود عابر بن ارم بن سام بن نوح طرف ته منسوب دې، دحضرت صالح علیه السلام تعلق هم دې قوم سره وو، او هم دې طرف ته رسول رالیږلې شوې وو

**قوله: جعلكم عمارا تسكنون بها:** په دې کښې اشاره ده چې په استعمر کښې س، ت د تصییر د پاره دی یعنی مونږ تاسو ددې د آباد کولو د پاره جوړ کړې، اوبعضې حضراتو د عمر یعمر نه اخستلی دې په دې وخت کښې به ددې معنی وی چې تاسو مو اوسیدونکې جوړ کړئ یا به په دې صورت کښې س، او ت زائد وی.

**قوله: صالح:** علیه السلام په مشاهیر انبیاء کښې دی چې په قرآن مجید کښې دده نوم نهه پیرې راغلې دې، قوم ثمود طرف ته رالیږلې شوې وو

**قوله: حال:** یعنی آیة د نافة نه حال دې او په دې کښې عامل هذه په معنی د اشیر دې

**قوله: فعقروها:** (ض) عقرا، خپې پریکول، په عربو کښې دا دستور وو چې کله د یو اوبن مره کول به ئې غوښتل نو د هغه خپې به ئې کټ کړې، دې سره به د هغه مرګ لازم شو.

**قوله: بناء لا ضافة:** یعنی دیوم اضافت چې کله "اذ" طرف ته کیږی نو یومئذ به مبنی بر فتحه وی ځکه چې کله ظرف اسم مبهم طرف ته مضاف کیږی، نو د مضاف الیه نه بناء حاصله کړی، یوم د "اذ" طرف ته مضاف دې چې د هغې د وجه نه مبنی برفتحه شوې دې

**[ایاتونه: ۶۹ـ۸۳]**

---

﴿وَلَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُنَا إِبْرَاهِيمَ بِالْبُشْرَىٰ﴾ بِإِسْحَاق وَيَعْقُوب بَعْده ﴿قَالُوا سَلَامًا﴾ مَصْدَر ﴿قَالَ سَلَامٌ﴾ عَلَيْكُمْ ﴿فَمَا لَبِثَ أَنْ جَاءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ﴾ مَشْوِيّ ﴿فَلَمَّا رَأَىٰ أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ﴾ بِمَعْنَى أَنْكَرَهُمْ ﴿وَأَوْجَسَ﴾ أَضْمَرَ فِي نَفْسه ﴿مِنْهُمْ خِيفَةً﴾ خَوْفًا ﴿قَالُوا لَا تَخَفْ إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَىٰ قَوْمِ لُوطٍ﴾ لِنُهْلِكَهُمْ ﴿وَامْرَأَتُهُ﴾ أَيْ امْرَأَة إِبْرَاهِيم سَارَة ﴿قَائِمَةٌ﴾ تَخْدُمهُمْ ﴿فَضَحِكَتْ﴾ اسْتِبْشَارًا بِهَلَاكِهِمْ ﴿فَبَشَّرْنَاهَا بِإِسْحَاقَ وَمِنْ وَرَاءِ﴾ بَعْد ﴿إِسْحَاقَ يَعْقُوبَ﴾ وَلَده تَعِيش إِلَى أَنْ تَرَاهُ ﴿قَالَتْ يَا وَيْلَتَىٰ﴾ كَلِمَة تُقَال عِنْد أَمْر عَظِيم وَالْأَلِف مُبْدَلَة مِنْ يَاء الْإِضَافَة ﴿أَأَلِدُ وَأَنَا عَجُوزٌ﴾ لِي تِسْع وَتِسْعُونَ سَنَة ﴿وَهَٰذَا بَعْلِي شَيْخًا﴾ لَهُ مِائَة وَعِشْرُونَ سَنَة وَنَصْبه عَلَى الْحَال وَالْعَامِل فِيهِ مَا فِي ذَا مِنْ الْإِشَارَة ﴿إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عَجِيبٌ﴾ أَنْ يُولَد وَلَد لِهَرِمَيْنِ ﴿قَالُوا أَتَعْجَبِينَ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ﴾ قُدْرَته ﴿رَحْمَتُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ عَلَيْكُمْ﴾ يَا ﴿أَهْلَ الْبَيْتِ﴾ بَيْت إِبْرَاهِيم ﴿إِنَّهُ حَمِيدٌ﴾ مَحْمُود ﴿مَجِيدٌ﴾ كَرِيم ﴿فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ الرَّوْعُ﴾ الْخَوْف ﴿وَجَاءَتْهُ الْبُشْرَىٰ﴾ بِالْوَلَدِ أَخَذَ ﴿يُجَادِلُنَا﴾ يُجَادِل رُسُلنَا ﴿فِي﴾ شَأْن ﴿قَوْمِ لُوطٍ﴾ ﴿إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَحَلِيمٌ﴾ كَثِير الْأَنَاة ﴿أَوَّاهٌ مُنِيبٌ﴾ رَجَّاع فَقَالَ لَهُمْ أَتُهْلِكُونَ قَرْيَة فِيهَا ثَلَاثمِائَةِ مُؤْمِن قَالُوا لَا قَالَ أَفَتُهْلِكُونَ قَرْيَة فِيهَا مِائَتَا مُؤْمِن قَالُوا لَا قَالَ أَفَتُهْلِكُونَ قَرْيَة فِيهَا أَرْبَعُونَ مُؤْمِنًا قَالُوا لَا قَالَ

أَمُهْلِكُونَ قَرْيَةً فِيهَا أَرْبَعَةَ عَشَرَ مُؤْمِنًا قَالُوا لَا قَالَ أَفَرَأَيْتُمْ إِنْ كَانَ فِيهَا مُؤْمِنٌ وَاحِدٌ قَالُوا لَا قَالَ إِنَّ فِيهَا لُوطًا قَالُوا نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَنْ فِيهَا إِلَخْ فَلَمَّا أَطَالَ مُجَادَلَتَهُمْ قَالُوا ﴿يَا إِبْرَاهِيمُ أَعْرِضْ عَنْ هَذَا﴾ الْجِدَالِ ﴿إِنَّهُ قَدْ جَاءَ أَمْرُ رَبِّكَ﴾ بِهَلَاكِهِمْ ﴿وَإِنَّهُمْ آتِيهِمْ عَذَابٌ غَيْرُ مَرْدُودٍ﴾ ﴿وَلَمَّا جَاءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِيءَ بِهِمْ﴾ حَزِنَ بِسَبَبِهِمْ ﴿وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا﴾ صَدْرًا لِأَنَّهُمْ حِسَانُ الْوُجُوهِ فِي صُورَةِ أَضْيَافٍ فَخَافَ عَلَيْهِمْ قَوْمَهُ ﴿وَقَالَ هَذَا يَوْمٌ عَصِيبٌ﴾ شَدِيدٌ ﴿وَجَاءَهُ قَوْمُهُ﴾ لَمَّا عَلِمُوا بِهِمْ ﴿يُهْرَعُونَ﴾ يُسْرِعُونَ ﴿إِلَيْهِ وَمِنْ قَبْلُ﴾ قَبْلَ مَجِيئِهِمْ ﴿كَانُوا يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ﴾ وَهِيَ إِتْيَانُ الرِّجَالِ فِي الْأَدْبَارِ ﴿قَالَ﴾ لُوطٌ ﴿يَا قَوْمِ هَؤُلَاءِ بَنَاتِي﴾ فَتَزَوَّجُوهُنَّ ﴿هُنَّ أَطْهَرُ لَكُمْ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَلَا تُخْزُونِ﴾ تَفْضَحُونِ ﴿فِي ضَيْفِي﴾ أَضْيَافِي ﴿أَلَيْسَ مِنْكُمْ رَجُلٌ رَشِيدٌ﴾ يَأْمُرُ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَى عَنِ الْمُنْكَرِ ﴿قَالُوا لَقَدْ عَلِمْتَ مَا لَنَا فِي بَنَاتِكَ مِنْ حَقٍّ﴾ حَاجَةٍ ﴿وَإِنَّكَ لَتَعْلَمُ مَا نُرِيدُ﴾ مِنْ إِتْيَانِ الرِّجَالِ ﴿قَالَ لَوْ أَنَّ لِي بِكُمْ قُوَّةً﴾ طَاقَةً ﴿أَوْ آوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ﴾ عَشِيرَةٍ تَنْصُرُنِي لَبَطَشْتُ بِكُمْ فَلَمَّا رَأَتِ الْمَلَائِكَةُ ذَلِكَ ﴿قَالُوا يَا لُوطُ إِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ لَنْ يَصِلُوا إِلَيْكَ﴾ بِسُوءٍ ﴿فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ﴾ طَائِفَةٍ ﴿مِنَ اللَّيْلِ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ أَحَدٌ﴾ لِئَلَّا يَرَى عَظِيمَ مَا يَنْزِلُ بِهِمْ ﴿إِلَّا امْرَأَتَكَ﴾ بِالرَّفْعِ بَدَلٌ مِنْ أَحَدٍ وَفِي قِرَاءَةٍ بِالنَّصْبِ اسْتِثْنَاءٌ مِنَ الْأَهْلِ أَيْ فَلَا تَسْرِ بِهَا ﴿إِنَّهُ مُصِيبُهَا مَا أَصَابَهُمْ﴾ فَقِيلَ لَمْ يَخْرُجْ بِهَا وَقِيلَ خَرَجَتْ وَالْتَفَتَتْ فَقَالَتْ وَاقَوْمَاهُ فَجَاءَهَا حَجَرٌ فَقَتَلَهَا وَسَأَلَهُمْ عَنْ وَقْتِ هَلَاكِهِمْ فَقَالُوا ﴿إِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ﴾ فَقَالَ أُرِيدُ أَعْجَلَ مِنْ ذَلِكَ قَالُوا ﴿أَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيبٍ﴾ ﴿فَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا﴾ بِإِهْلَاكِهِمْ ﴿جَعَلْنَا عَالِيَهَا﴾ أَيْ قُرَاهُمْ ﴿سَافِلَهَا﴾ أَيْ بِأَنْ رَفَعَهَا جِبْرِيلُ إِلَى السَّمَاءِ وَأَسْقَطَهَا مَقْلُوبَةً إِلَى الْأَرْضِ ﴿وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِنْ سِجِّيلٍ﴾ طِينٍ طُبِخَ بِالنَّارِ ﴿مَنْضُودٍ﴾ مُتَتَابِعٍ ﴿مُسَوَّمَةً﴾ مُعَلَّمَةً عَلَيْهَا اسْمُ مَنْ يُرْمَى بِهَا ﴿عِنْدَ رَبِّكَ﴾ ظَرْفٌ لَهَا ﴿وَمَا هِيَ﴾ الْحِجَارَةُ أَوْ بِلَادُهُمْ ﴿مِنَ الظَّالِمِينَ﴾ أَيْ أَهْلِ مَكَّةَ ﴿بِبَعِيدٍ﴾

---

ترجمه: زمونږ فرشتې ابراهيم علیه السلام ته د اسحق او د هغه نه پس د يعقوب (عليهما السلام) زيرې وركولو سره راغلې وئې وئيل چې په تاسو باندې دې سلام وى سلام مصدر دې ابراهيم علیه السلام اوفرمائيل چې په تاسو باندې دې هم سلام وى څه وخت تير شوې نه وو چې ابراهيم علیه السلام وريتكړې شوې سخې راوړو،. خو چې كله ئې اوكتل چې دوى روټئ طرف ته لاس نه راغځكنبې كوى نو هغوى ئې ناآشنا اوګنړل نكر په معنى د انكر دې نو ابراهيم علیه السلام د دوى د طرف نه په خپل زړه كښې ويره محسوس كړه، فرشتو اوئيل چې ويره مه كوه مونږ قوم د لوط طرف ته راليږلې شوې يوو، چې مونږ هغوى هلاک كړو او د ابراهيم علیه السلام ښځه ساره ددوى په خدمت كښې لګيا وه نو هغې د قوم هلاكت او د نوح علیه السلام د بچكيدلو زيرې چې واوريدلو نو وئې خاندل،نو مونږ هغې ته د اسحق او د هغه نه پس ددې خوئې يعقوب علیه السلام زيرې وركړو او هغه به ژوندئ وى ترڅې چې هغه به هم دا اوينى هغې اووئيل هائې څما كمبختئ دا يو كلمه ده چې د غټ كار د باره استعماليږى او د (ويلتى) الف د ياء اضافت نه راغلې دې آيا څما اولاد به كيږى حالانكه څه د ۹۹ كالو بوډئى يم او څما خاوند هم بوډا دې د هغه عمر ۱۲۰ كاله دې شيخا د

حال کيدو د وجه منصوب دي او ددي عامل هذا په معنی د أشير دي دا يقينا ډيره عجيبه خبره ده چي د بوډا خاوند او ښځي بچي وشي، فرشتو اوفرمائيل چي آيا ته د الله د قدرت او د هغه د رحمت او په خپل ځان باندي د برکتونو نه حيرانيږي؟ اې د ابراهيم عليه السلام کور والو بي شکه هغه د پيرزوني قابل او کريم دې، چي کله د ابراهيم عليه السلام ويره ختمه شوه او هغه ته د هلک زيري اورسيدلو نو هغه د قوم لوط په معامله کښي مونږ ته يعني فرشتو ته وئيل اوريدل شروع کړل يقينا ابراهيم عليه السلام ډير برداشت والا ډير صبر والا نرم زړه دالله طرف ته ټيټيدونکي وو ابراهيم عليه السلام هغوی ته اوفرمائيل تاسو به داسي کلی والا هلاک کړئ چي په هغي کښي درې سوه مومنان موجود دی، فرشتو جواب ورکړو چي نه، بيا ئې اووئيل آيا تاسو به داسي کلی والا هلاک کړئ چي په هغي کښي دوه سوه مومنان موجود دی؟ فرشتو ووئيل چي نا، بيا ابراهيم اووئيل چي تاسو به داسي کلی والا تباه کړئ چي په هغي کښي څلويښت مومنان موجود دی؟ جواب ئې ورکړو چي نه،بيا ئې اوفرمائيل چي تاسو به داسي کلي تباه کړئ چي په هغي کښي څورلس مومنان موجود دی؟جواب ئې ورکړو چي نۀ بيا ابراهيم اووئيل چي تاسو داسي کلي تباه کول مناسب ګڼرئ چي په هغي کښي يو مومن وی؟ جواب ئي ورکړو چي نه،بيا ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل چي په دې کلی کښي لوط عليه السلام هم دې فرشتو جواب ورکړو چي مونږ ته ښه پته ده چي په دې کلی کښي څوک دي، چي کله د هغوی په مينځ کښي خبري ډيري شوې، نو فرشتو اوفرمائيل اې ابراهيم عليه السلام ددې بحث او تکرار لره پريږده، ددوی د هلاکت د پاره ستا د رب حکم راغلي دې او په دوی باندي نه واپس کيدونکي عذاب راتلونکي دې، او چي کله زمونږ ليږلي شوي لوط عليه السلام ته راغلي نو هغهٔ ددوی د وجه نه خفه شو او په زړه کښي ئې دا خبره تيريدله څکه چي د ښکلي ځوانانو په شکل کښي وې چي د هغي د وجه نه ددوی په باره کښي د خپل قوم نه ويريدلو او وې وئيل چي نن ورځ ډير د لوئ مصيبت ورځ ده، هر کله چي قوم ته د ميلمنو د راتلو علم اوشو نو په منډه باندي د لوط عليه السلام خواله راغلل او دوی ددې ميلمنو د راتلو نه مخکښي په بدکارئ کښي اخته وو او هغه بدکاری د سړو سره د هم جنسئ کار وو، لوط عليه السلام اوفرمائيل اې څما د قوم خلقو دا څما لوريانې دی دوی سره نکاح اوکړئ دا ستاسو د پاره پاکي دی، د الله نه ويريږئ او ما د ميلمنو په مخکښي رسوا کوی ما،آيا په تاسو کښي يو هم هوښيار سړې نشته؟ چي د څو خبرو حکم اوکړي او د بدو نه منع کړي هغوی جواب ورکړو چي تاته ښه پته ده چي زمونږ ستا لوريانو ته هيڅ حاجت نشته او مونږ چي څه غواړو د هغي نه ته ښه خبر ئې يعنی د هم جنسئ عمل، نوح عليه السلام اوفرمائيل کاش چي په ماکښي ستاسو د مقابلي طاقت وو،يا ما د څه طاقتور قبيلي سهاره نيولي وې چي څما مدد ئې کړې وې نو ما به ستاسو مقابله کړې وه، چي فرشتو دا صورت حال اوکتلو نو وئي وئيل چي مونږ ستا د رب د طرف نه راليږلي شوي يوو دوی د نقصان رسولو

په اراده تاته هيڅ کله رارسيدلې نشي نو ته خپل کور والا ځان سره واخله او د شپې اوزه، په تاسو کښې چاته هم شاته کتل پکار نه دي چې دا لوټې عذاب اونه وينی چې کوم په دوی باندې نازليدونکې دې سوا ستا دښځې نه د رفع په صورت کښې د احد نه بدل دې، او په يو قرات کښې نصب دې د اهل نه استثناء د وجه نه، يعنی ته دا ځان سره مه بوځه، ځکه چې دې ته هم هغه رسی کوم چې به دوی ته ورسيږي، ونيلې شوې دی چې لوط عليه السلام خپل ښځه ځان سره بوتلې نه وه،او ونيلې شوې دی چې هغه هم وتلې وه خو هغې شاته مخ راړولو سره اوکتل او وې وئيل چې اې څما قومه، نو يو کاڼړې پرې راپريوتلو او هغه ئې قتل کړه حضرت لوط عليه السلام د فرشتو نه ددوی د هلاکت وخت معلوم کړو نو هغوی اوفرمائيل چې ددوی هلاکت به د سحر په وخت کښې وی لوط عليه السلام اوفرمائيل چې څه خو ددې نه هم زيات زر غواړم، نو جواب ئې ورکړو چې آيا سحر دير نزدې نه دې؟ کله چې ددوی د هلاکت څمونږ حکم راورسيدلو نو مونږ ددوی کلی لاندې باندې کړل په داسې صورت چې جبرائيل عليه السلام ددوی کلی اوچت کړل او اولته ئې زمکې ته راواچول،او مونږ په دې کلی والو باندې په اور کښې پخ کړې شوې مسلسل کاڼړی راوروړل، چې ستا د رب د طرف نه نښه دار وو يعنی په دې باندې د هغه کس نوم ليکلې شوې وو چې څوک به ددې په ذريعه سره هلاک کيدلو ،عند ربك دمسومة ظرف دې، او هغه کاڼړی يا ددوی کلی د ظالمانو يعنی د مکې والو نه لرې نه دی (شام ته تلو راتلو باندې په هغه ځائې باندې تيريدنه کيږی)

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:مصدر:** په دې کښې اشاره ده چې سلاما ،د سلمنا فعل محذوف مصدر دې، په دې کښې د اعتراض جواب هم اوشو چې سلاما د قالو مقوله ده،حالانکه مقوله مفرد نه وی، ددې اضافې نه دا هم معلومه شوه چې سلاما مفرد نه دې، بلکه د سلمنا د وجه جمله ده،

**قوله:عليكم:** مفسر علام عليكم محذوف منلو سره اشاره اوکړه چې سلام مبتدأ ده او عليكم ددې خبر محذوف دې

**سوال:** سلام نکره ده او د نکرې مبتدأ راتلل صحيح نه وی؟

**جواب:** حاصل دادې چې په سلام کښې تنوين د تعظيم د پاره دې ای سلام عظيم، لهذا د سلام مبتدأ راتلل صحيح شول، دا د شراهرذاناب د قبيلې نه دې، دارنګ دلته هم د مقولې د مفرد کيدلو اعتراض ختم شو.

**قوله:بشري:** د خوشحالئی خبر، د خوشحالئ د خبر اثر چونکه په مخ باندې کيږی څکه ئې دې ته بشری اووئيل، د بشری نه دلته ابراهيم عليه السلام ته د اسحق او د يعقوب خوشخبری ورکول دی چې هغه ئې روستو په فبشرناه باسحق الخ سره بيان کړې دې، او دا هم احتمال دې

چې د بشرى نه عام خوشخبرى مراد وى نو په دې كښې به د لوط عليه السلام وغيره خلاصيدل او د هغوى د بدكاره قوم د هلاكت خوشخبرى هم شامله وى، مفسر علام هم دغه آخرى معنى مراد اخستلې ده.

**سوال:** حضرت ابراهيم عليه السلام دلته جمله اسميه استعمال كړې ده،او فرشتو جمله فعليه، ددې څه وجه ده؟

**جواب:** حاصل دادې چې د سلام جواب د ښه نه ښه پكار دې ځكه د شريعت دا اصول دى، د سلام جواب به هله د سلام نه ښه وى چې كله جمله اسميه استعمال كړې شى،جمله اسميه د جملې فعليې نه بهتره وى،ځكه چې جمله اسميه په هميشوالى او ثابتوالى باندې دلالت كوى.

**قوله:انكرهم:** د نكرهم تفسير په انكرهم سره كولو كښې ئې اشاره اوكړه چې لازم په معنى د متعدى دې

**قوله:ياويلتا:** په اصل كښې ياويلتى وو، ياء د اضافت په الف سره بدله كړې شوه

**قوله:رحمة الله الخ:** دا كلام مستانف دې او د تعجب د انكار علت دې يعنى ته ددې نه تعجب مه كوه،ځكه چې دا په تا باندې د الله رحمت او بركت دې.

**قوله:اخذ يجادلنا:** دا د هغه سوال مقدر جواب دې چې د لما جواب ماضى وى نه چې مضارع، او دلته د لما جواب يجادلنا مضارع راغلې ده.

جواب دا دې چې دلته اخذ ماضى محذوف دې، او هم هغه د لما جواب دې،اگر چې ماضى مجازا هم د لما جواب راتلې شى،په داسې طريقه چې په مضارع باندې لم يا لما داخل شى،خو بهتره داده چې حقيقة په ماضى كښې جواب راشى،

**قوله:شان:** چونكه په لفظ د قوم كښې د ظرف جوړيدلو صلاحيت نشته، ځكه مو لفظ شان محذوف اوگڼړلو، چې د "فى" ظرف جوړيدل صحيح شى

**قوله:لبطشت:** په دې كښې اشاره ده چې د "لو" جواب محذوف دې

**قوله:بالرفع بدل:** الخ ځكه چې اشتثناء په كلام غير موجب كښې بدل مختار وى

**قوله:اشتثنا من الاهل:** يعنى الا امراتک، د من الاهل نه استثناء ده، نه چې د احد نه، ځكه چې د "احد" نه اشتثناء گرځولو سره "امراة" ته به د التفات حكم وركول لازم شى،حالانكه داسې نه ده.

**قوله:الاامراتك:** په نصب سره دا د جمهورو قراءت دې او د ابوعمرو او ابن كثير په نيز "احد" نه د بدل كيدلو د وجه مرفوع دې، د اولنى قراءت په صورت كښې "امراتک" به د

فاسر باهلک نه مستثنی وي، ای اسر باهلك جميعا الا امراتك فلا تسر بها او رفع د قرات نه يو جماعت انکار کړي دي، په هغې کښې ابو عبيد هم شامل دي.

**[ایاتونه: ۸۴ ـ ۹۵]**

(وَ) ارسلنا (إِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ) وحدوه (مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ وَلَا تَنقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ إِنِّي أَرَاكُم بِخَيْرٍ) بنعمة تغنيكم عن التطفيف (وَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ) ان لم تؤمنوا (عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيطٍ) بكم يهلككم ووصف اليوم به مجاز لوقوعه فيه (وَيَا قَوْمِ أَوْفُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ) اتموهما (بِالْقِسْطِ) بالعدل (وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ) لا تنقصوهم من حقهم شيئا (وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ) بالقتل وغيره من عثي بكسر المثلثة افسد ومفسدين حال مؤكدة لمعنى عاملها تعثوا (بَقِيَّتُ اللَّهِ) رزقه الباقي لكم بعد ايفاء الكيل والوزن (خَيْرٌ لَّكُمْ) من البخس (إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ وَمَا أَنَا عَلَيْكُم بِحَفِيظٍ) رقيب اجازيكم باعمالكم انما بعثت نذيرا (قَالُوا) له استهزاء (يَا شُعَيْبُ أَصَلَاتُكَ تَأْمُرُكَ) بتكليف (أَن نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ آبَاؤُنَا) من الاصنام (أَوْ) نترك (أَن نَّفْعَلَ فِي أَمْوَالِنَا مَا نَشَاءُ) المعنى هذا امر باطل لا يدعو اليه داعي خير (إِنَّكَ لَأَنتَ الْحَلِيمُ الرَّشِيدُ) قالوا ذلك استهزاء (قَالَ يَا قَوْمِ أَرَأَيْتُمْ إِن كُنتُ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّي وَرَزَقَنِي مِنْهُ رِزْقًا حَسَنًا) حلالا افاشوبه بالحرام من البخس والتطفيف (وَمَا أُرِيدُ أَنْ أُخَالِفَكُمْ) واذهب (إِلَىٰ مَا أَنْهَاكُمْ عَنْهُ) فارتكبه (إِنْ) ما (أُرِيدُ إِلَّا الْإِصْلَاحَ) لكم بالعدل (مَا اسْتَطَعْتُ وَمَا تَوْفِيقِي) قدرتي على ذلك وغيره من الطاعات (إِلَّا بِاللَّهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ) ارجع (وَيَا قَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ) يكسبنكم (شِقَاقِي) خلافي فاعل يجرم والضمير مفعول اول والثاني (أَن يُصِيبَكُم مِّثْلُ مَا أَصَابَ قَوْمَ نُوحٍ أَوْ قَوْمَ هُودٍ أَوْ قَوْمَ صَالِحٍ) من العذاب (وَمَا قَوْمُ لُوطٍ) اي منازلهم او زمن هلاكهم (مِّنكُم بِبَعِيدٍ) فاعتبروا (وَاسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ إِنَّ رَبِّي رَحِيمٌ) بالمؤمنين (وَدُودٌ) محب لهم (قَالُوا) ايذانا بقلة المبالاة (يَا شُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ) نفهم (كَثِيرًا مِّمَّا تَقُولُ وَإِنَّا لَنَرَاكَ فِينَا ضَعِيفًا) ذليلا (وَلَوْلَا رَهْطُكَ) عشيرتك (لَرَجَمْنَاكَ) بالحجارة (وَمَا أَنتَ عَلَيْنَا بِعَزِيزٍ) كريم عن الرجم وانما رهطك هم الاعزة (قَالَ يَا قَوْمِ أَرَهْطِي أَعَزُّ عَلَيْكُم مِّنَ اللَّهِ) فتتركوا قتلي لاجلهم ولا تحفظوني لله (وَاتَّخَذْتُمُوهُ) اي الله (وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا) منبوذا خلف ظهوركم لا تراقبونه (إِنَّ رَبِّي بِمَا تَعْمَلُونَ مُحِيطٌ) علما فيجازيكم (وَيَا قَوْمِ اعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ) حالتكم (إِنِّي عَامِلٌ) على حالتي (سَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن) موصولة مفعول العلم (يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَمَنْ هُوَ كَاذِبٌ وَارْتَقِبُوا) انتظروا عاقبة امركم (إِنِّي مَعَكُمْ رَقِيبٌ) منتظر (وَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا) باهلاكهم (نَجَّيْنَا شُعَيْبًا وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَأَخَذَتِ الَّذِينَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ) صاح بهم جبريل (فَأَصْبَحُوا فِي دِيَارِهِمْ جَاثِمِينَ) باركين على الركب ميتين (كَأَن) مخففة اي كانهم (لَّمْ يَغْنَوْا) يقيموا (فِيهَا أَلَا بُعْدًا لِّمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُودُ)

**ترجمه:** او مونږه اوليږل مدين ته د هغوی رور شعيب عليه السلام، هغه او وئيل اې ځما قومه د الله عبادت او کړئ هغه يو او کنړئ نشته د هغه نه علاوه بل خدائې، او مه کوئ په پيمانه کښې او په تله کښې

کمې، ځکه تاسو په خوشحالئ کښې وينم چې د هغې د وجه تاسو د کم تللو او د کم ناپ کولو نه مستغنی ئې، که چرې تاسو ايمان راونړو نوماته ستاسو په باره کښې ستاسو لره راګيرونکي ورځې دعذاب ويره ده چې تاسو به هلاک کړي، او د يوم صفت محيط مجاز دې، د عذاب په دې کښې د راتلو د وجه او اې ځما د قوم رونړو تاسو په انصاف سره پورا پورا ناپ کوئې او تلئې،او خلقو ته د هغوی په څيزونو کښې نقصان مه رسوئې يعنی د هغوی په حق کښې هيڅ کمی مه کوئې او د قتل وغيره په ذريعه په ملک کښې فساد خورونکی مه ګرځئ (تعثو) د عثی د ثاء په کسرې سره دې، په معنی د افسد ، او مفسدين د خپل عامل تعثوا د معنی نه حال مؤکد دې، د پورا تللو او ناپ کولو نه پس د الله تعالی ورکړې شوې چې تاسو سره بچ پاتې شی هغه د کم ورکولو نه ډير غوره دې که چرې تاسو ته يقين راغلو او ځه په تاسو باندې څوکيدار نه يم چې تاسو ته ستاسو د عملونو بدله درکړم څه خو صرف تاسو ته د خبر ورکولو د پاره راليږلې شوې يم نو هغوی شعيب عليه السلام ته د توقو په توګه اووئيل اې شعيب عليه السلام آيا ستا مونځ صرف تاته ددې خبرې حکم درکوی چې مونږ ددې خبرې مکلف جوړ کړې چې مونږه دا بتان پريږدو؟ د چا چې زمونږ پلار نيکه عبادت کولو، يا دا چې مونږ په خپلو مالونو کښې په خپله تصرف کول پريږدو؟مطلب دادې چې دا غلطه خبره ده، د خير دعوت ورکولو والا داسې خبره نه کوی واقعی ته ډير عقلمند په دين باندې تلونکې ئې هغوی دا خبره د توقو په توګه اوکړه شعيب عليه السلام اوفرمائيل اې ځما دقوم خلقو اګورئې چې ځه د الله د طرف نه په دليل روښانه سره راغلې يم او هغه ماته د خپل طرف نه حلاله روزی راکړې ده آيا په دې کښې څه د حرام چې هغه پليت او کم ناپ تول دې ملاوټ اوکړم او ځما دا اراده بالکل نه ده چې ستاسو مخالفت اوکړم او چې څه کوم څيز نه تاسو منع کوم د هغې مخالفت کولو سره په خپله د هغې طرف ته لاړ شم يعنی په خپله په هغې کښې مبتلا شم او ځما اراده د خپل وس مناسب ستاسو اصلاح کول دی او ځما توفيق يعنی ځما قدرت په دې باندې او ددې نه علاوه په نورو طاعاتو باندې د الله په مدد دې او هم په هغه ځما بهروسه ده او هم هغه طرف ته به رجوع کوم،.او اې ځما د قوم خلقو داسې اونشی چې ځما مخالفت تاسو لره مجرمان جوړ کړی (شقاقی) د بجرم فاعل دې او "کم" ضمير مفعول اول دې او دويم مفعول "ان يصيبکم" الخ دې، او تاسو ته هغه شان عذاب اورسيږی څنګه چې قوم د نوح يا قوم د هود يا قوم د صالح ته رسيدلې وو او قوم لوط يعنی د هغوی مکانات يا د هغوی د هلاکت زمانه ستاسو نه لرې نه دې لهذا عبرت حاصل کړئ او د خپل رب نه معافی اوغوړئې او بيا هغه طرف ته رجوع اوکړئ يقين اوساتئ ځما رب په مومنانو باندې ډير مهربانه او هغوی سره محبت کوونکې دې د بې توجهی بنکاره کولو د پاره دې خلقو اووئيل اې شعيب عليه السلام ستا ډيرې خبرې څمونږ په سوچ کښې نه رازی،او مونږ تالره په خپل مينځ کښې ډير کمزورې ګنړو، که ستا د قبيلې خيال نه وو نو مونږ به ته سنګسار کړې وې او

ستا سنگسارول ځمونږ د پاره څه گرانه نه ده،البته ستا قبيله ډيره عزت داره ده شعيب ﷺ جواب ورکړو اې ځما د قوم خلقو آيا تاسو ته ځما قبيله د الله نه هم زياته خوښه ده؟ چې د هغې د وجه نه تاسو ځما دقتل نه روستو کيږئ او د الله د پاره ځما حفاظت نه کوې او تاسو الله شاته کړې دې يعنې تاسو هغه روستو غورزولې گڼرئ چې د هغې د وجه نه تاسو سره د هغه خيال نشته بې شکه ځما رب په تاسو باندې د علم په اعتبار سره احاطه کړې ده يعنې هغه به تاسوله بدله درکړي او اې ځما د قوم خلقو تاسو په خپله طريقه عمل کوئ او ځه په خپل طريقه عمل کوم تاسو ته به ډير زر معلوم شي "من" موصوله د تعلمون مفعول دې چې څوک هغه دې چې هغوی طرف ته به دا رسوا کن عذاب راځي؟ او دروغژن څوک دی؟ او تاسو په خپله معامله کښې د انجام انتظار کوئ ځه هم تاسو سره انتظار کوم او چې کله ددوی د هلاکت ځمونږ حکم راغلو نو مونږ شعيب ﷺ او هغه کسان چې د دوی سره ئې ايمان راوړې وو په خپل رحمت سره بچ کړل او ظالمانو لره يوې چغې کومه چې جبرائيل ﷺ وهلې وه اونيول نو هغوی په خپلو کورونو کښې د گونډو په سر مړه پراته پاتې وو (کان) مخففه ده يعنې په اصل کښې کانهم وو داسې چې دوی په دې کورونو کښې هډو اوسيدلې نه وو، ښه واورئ اوسيدونکی د مدين والو د پاره د رحمت نه لرې والې دې،څنگه چې لرې والې د ثموديانو د پاره وو..

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:مدين،اهل مدين:** شعيب ﷺ ددې قوم يو کس وو، چې هغوی طرف ته راليږلې شوې وو، مدين د حضرت ابراهيم ﷺ د يو ځوی نوم دې چې د هاجره او ساره نه علاوه د دريمې ښځې د قطورا د بطن نه وو،هم دده په نوم سره د يو ښار نوم کيخودلې شو،ددې محل وقوع د عقبه نه مشرقی طرف ته وه،نن وخت هغې ته معان وئيلې شي، دا خلق تاجران وو او د مصر، فلسطين او د لبنان سره به ئې تجارت کولو.

**قوله:وصف اليوم به مجازا لوقوعه فيه:** دا عبارت ددې سوال جواب دې چې محيط د عذاب صفت دې نه چې د يوم، حالانکه د محيط اضافت 'يوم' طرف ته شوې دې؟

د جواب حاصل دادې چې په دې کښې مجاز دې چونکه عذاب به په 'يوم' کښې راځي او يوم به د عذاب ظرف وی، ددې مناسبت سره د مظروف اضافت ظرف طرف ته شوې دې،

**قوله:حال مؤکدة:** دا ددې سوال جواب دې چې د تعثوا معنی فساد دې، او د مفسدين معنی هم فساد ده، لهذا په دې کښې تکرار دې؟

د جواب حاصل دادې چې دا تکرار نه دې بلکه په اعتبار د معنی سره تاکيد دې

**قوله:لاتعثوا عنی:** د عثی نه دې،نهی جمع مذکر حاضر، تاسو فساد مه خوروئ

**قوله:لمعنی عاملها:** يعنی مفسدين د خپل عامل لا تعثوا د معنی نه حال دې، او معنی ئې

فساد دي

**قوله: بقیت الله:** په اوږده تاء سره، او ابوعمرو، کسائي او نورو په تاء مدوره سره لوستلې دي، بقیة "پاتې شوي مال" د فعلیه په وزن د صفت مشبه صیغه ده، یعني پورا تللو او د حقوقو د ادا کولو نه پس چې کوم پاتې شي هغه ستاسو لره د هغه نه ډیر زیات بهتر دي کوم چې تاسو په کم ناپ تول سره د خلقو حقوق وهلو سره جمع کړي دي، د بقیت اضافت د الله طرف ته ځکه شوي دي چې هم هغه رزق ورکړي دي، دلته د اعمال صالحه او اطاعت په معنی کښې نه دي،

**قوله: بتکلیفنا:** ای بتکلیفک ایانا، بتکلیفنا مقدر منلو سره مفسر علام د یو سوال جواب ورکړي دي

**سوال:** دا دي چې پرېښودل (ترک) د کافرانو کار دي او اصلوتك تأمرك کښې شعیب علیه السلام مامور دي، د ترک ترجمه به دا وی چې اې شعیب علیه السلام آیا ستا مونځ تاته دا حکم کوی چې مونږ د بتانو بندګی پرېږدو؟ او دا ممکن نه ده چې د پرېښودلو حکم شعیب علیه السلام ته وی او عمل په دي باندې کافر وکړی.

**جواب:** حاصل دادي چې دلته مضاف محذوف دي او هغه بتکلیفنا دي، اوس به ترجمه دا وی چې اې شعیب علیه السلام آیا ستا مونځ تاته ددي خبرې حکم کوی، چې ته مونږ د بتانو بندګئ نه د منع کولو مکلف اوګرځوئې؟

**قوله: نترك:** دي سره اشاره اوکړې شوه چې "ان نفعل" په تاویل د مصدر سره په "ما" باندې عطف دي.

**قوله: افأشوبه:** ددې په حذف اشاره کښې ده چې د "ان" شرطیه جواب محذوف دي.

**قوله: واذهب:**

**سوال:** د اذهب مقدر ګڼړلو څه ضرورت وو؟

**جواب:** ځکه چې دلته د "اخالف" صله "الی" راوړلې شوې ده حالانکه د اخالف صله الی نه راځی بلکه "عن" رازی، اذهب محذوف منلو سره ئې دا اوونیل چې اخالف د "اذهب" په معنی کښې دي، لهذا "الی" صله راوړل صحیح دي

**قوله: ظهریاً:** شاته غورځول شوي، الظهري ظهر ته منسوب دي، د عربو دا عادت دي چې د یو څیز طرف ته نسبت کولو سره په تلفظ کښې تبدیلی کوی، خو په دي باندې بل لفظ قیاس کیدلې نشی، ځکه چې دا تبدیلی د څه قاعدې مطابق نه ده بلکه غیر قیاسی ده، مثلا "بصری" د کسرې سره وائی، حالانکه قیاس د فتحې سره دي او په دي طریقه باندې "ظهری" دي حالانکه "ظهری" د ظاء فتحې سره دي،،

**[ایاتوله ۹۶ ـ ۱۰۹]**

﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَى بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُبِينٍ﴾ بُرْهَان بين ظاهر ﴿إِلَى فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ فَاتَّبَعُوا أَمْرَ فِرْعَوْنَ وَمَا أَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيدٍ﴾ سَدِيد ﴿يَقْدُمُ﴾ يَتَقَدَّم ﴿قَوْمَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ فَيَتْبَعُونَهُ كَمَا اتَّبَعُوهُ فِي الدُّنْيَا ﴿فَأَوْرَدَهُمُ﴾ أدخلهم ﴿النَّارَ وَبِئْسَ الْوِرْدُ الْمَوْرُودُ﴾ هِيَ ﴿وَأُتْبِعُوا فِي هَذِهِ﴾ أي الدُّنْيَا ﴿لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ لعنة ﴿بِئْسَ الرِّفْدُ﴾ العَون ﴿الْمَرْفُودُ﴾ رفدهم ﴿ذَلِكَ﴾ المَذكُور مبتدأ خبره ﴿مِنْ أَنْبَاءِ الْقُرَى نَقُصُّهُ عَلَيْكَ﴾ يَا مُحَمَّد ﴿مِنْهَا﴾ أي القرى ﴿قَائِمٌ﴾ هلك اهله دونه ﴿وَ﴾ مِنْهَا ﴿حَصِيدٌ﴾ هَلَكَ بِأَهْلِهِ فَلا أثر لَهُ كَالزَّرْعِ الْمَحْصُود بِالْمَنَاجِلِ ﴿وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ﴾ بِإهْلاكِهِمْ بِغَيْرِ ذَنْب ﴿وَلَكِنْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ﴾ بالشرك ﴿فَمَا أَغْنَتْ﴾ دفعت ﴿عَنْهُمْ آلِهَتُهُمُ الَّتِي يَدْعُونَ﴾ يَعْبُدُونَ ﴿مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ أي غيره ﴿مِنْ﴾ زَائِدَة ﴿شَيْءٍ لَمَّا جَاءَ أَمْرُ رَبِّكَ﴾ عذابه ﴿وَمَا زَادُوهُمْ﴾ بِعِبَادَتِهِمْ لَهَا ﴿غَيْرَ تَتْبِيبٍ﴾ تخسير ﴿وَكَذَلِكَ﴾ مِثْل ذَلِكَ الأخذ ﴿أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَى﴾ أريد أهلها ﴿وَهِيَ ظَالِمَةٌ﴾ بالذُّنُوب أي فَلا يُغْنِي عَنْهُمْ مِنْ أخذه شَيْء ﴿إِنَّ أَخْذَهُ أَلِيمٌ شَدِيدٌ﴾ رَوَى الشَّيْخَانِ عَنْ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيّ قَالَ قَالَ رَسُول اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الله لَيُمْلِي لِلظَّالِمِ حَتَّى إِذَا أَخَذَهُ لَمْ يُفْلِتهُ ثُمَّ قَرَأَ رَسُول اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿وَكَذَلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ﴾ الآية ﴿إِنَّ فِي ذَلِكَ﴾ الْمَذْكُور مِنَ الْقَصَص ﴿لَآيَةً﴾ لَعِبْرَة ﴿لِمَنْ خَافَ عَذَابَ الْآخِرَةِ ذَلِكَ﴾ أي يَوْم الْقِيَامَة ﴿يَوْمٌ مَجْمُوعٌ لَهُ﴾ فِيهِ ﴿النَّاسُ وَذَلِكَ يَوْمٌ مَشْهُودٌ﴾ يشهده جميع الخلائق ﴿وَمَا نُؤَخِّرُهُ إِلَّا لِأَجَلٍ مَعْدُودٍ﴾ لِوَقْتٍ مَعْلُوم عِنْد الله ﴿يَوْمَ يَأْتِ﴾ ذَلِكَ الْيَوْم ﴿لَا تَكَلَّمُ﴾ فِيهِ حَذْف إحْدَى التَّاءَيْنِ ﴿نَفْسٌ إِلَّا بِإِذْنِهِ﴾ تَعَالَى ﴿فَمِنْهُمْ﴾ أي الْخَلْق ﴿شَقِيٌّ وَ﴾ مِنْهُمْ ﴿سَعِيدٌ﴾ كُتِبَ كُلّ ذلك فِي الأَزَل ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ شَقُوا﴾ فِي عِلْمه تَعَالَى ﴿فَفِي النَّارِ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ﴾ صَوْت شَدِيد ﴿وَشَهِيقٌ﴾ صوت ضعيف ﴿خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ﴾ أي مُدَّة دَوَامهمَا فِي الدُّنْيَا ﴿إِلَّا﴾ غير ﴿مَا شَاءَ رَبُّكَ﴾ مِنَ الزِّيَادَة عَلَى مُدَّتهمَا مِمَّا لا مُنْتَهَى لَهُ وَالْمَعْنَى خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ﴿إِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِمَا يُرِيدُ﴾ ﴿وَأَمَّا الَّذِينَ سُعِدُوا﴾ بِفَتْحِ السِّين وَضَمّهَا ﴿فَفِي الْجَنَّةِ خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ إِلَّا﴾ غير ﴿مَا شَاءَ رَبُّكَ﴾ كَمَا تَقَدَّمَ وَدَلَّ عَلَيْهِ فِيهِمْ قَوْله ﴿عَطَاءً غَيْرَ مَجْذُوذٍ﴾ مَقْطُوع وَمَا تَقَدَّمَ مِنَ التَّأْوِيل هُوَ الَّذِي ظَهَرَ وَهُوَ خَال مِنَ التَّكَلُّف وَاللَّهُ اعلم بمراده ﴿فَلَا تَكُ﴾ يَا مُحَمَّد ﴿فِي مِرْيَةٍ﴾ شَكّ ﴿مِمَّا يَعْبُدُ هَؤُلَاءِ﴾ مِنَ الأَصْنَام إنَّا نُعَذِّبهُمْ كَمَا عَذَّبْنَا مَنْ قَبْلهمْ وَهَذَا تَسْلِيَة لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿مَا يَعْبُدُونَ إِلَّا كَمَا يَعْبُدُ آبَاؤُهُمْ﴾ أي كَعِبَادَتِهِمْ ﴿مِنْ قَبْلُ﴾ وَقَدْ عَذَّبْنَاهُمْ ﴿وَإِنَّا لَمُوَفُّوهُمْ﴾ مِثْلهمْ ﴿نَصِيبَهُمْ﴾ حَظّهمْ مِنَ الْعَذَاب ﴿غَيْرَ مَنْقُوصٍ﴾ أي تَامًّا

---

ترجمه: او يقينا مونږ موسى عليه السلام ته هم خپلو معجزاتو او روښانه دليلونو سره فرعون او د هغه د سردارانو طرف ته راوليږلو خو هغوى هم د فرعون خبره اومنله حالانكه د فرعون خبره صحيح نه وه، د قيامت په ورځ به فرعون د خپل قوم نه مخكښې مخكښې وى او دا خلق به د هغه شا شا ته وى څنګه چې ئې په دنيا كښې د هغه اتباع كوله بيا به دې تولو لره دوزخ ته بوځى او دوزخ ډير

سخت ځائې د ورتلو دې چې په هغې کښې به دا خلق وراچولې شي په دې دنيا کښې هم په هغوی باندې لعنت وئيلې شوې دې او د قيامت په ورځ به هم لعنت پرې وئيلې شي، ډير خراب انعام دې چې کوم دوی ته ورکړې شو دا تير شوې د څو کلو قصې دی چې کوم مونږ اې محمد ﷺ تاته اوروو، په دې کلو کښې بعضې خو اوس هم قائم دی چې دهغې اوسيدونکی هلاک شول خو کلی موجود دی، او په دې کښې بعضې سره د اوسيدونکو ختم شول چې د لور باندې وهلې شوې پتې پشان ئې نوم او نخښه هم پاتې نشوه، بغير د جرم نه مونږ هغوی هلاک کولو سره هغوی باندې ظلم اونکړو خو شرک کولو سره هغوی په خپله په خپل ځان باندې ظلم اوکړو نو اوس د هغوی هغه معبودان د چا چې هغوی د الله نه بغير بندګی کوله، ددوی هيڅ دفاع اونکړه، هر کله چې ستا د رب عذاب راغلو او دوی ته د بتانو د عبادت بربادئ نه سوا هيڅ فائده ورنکړه ددې نيولو په شان ستا د رب د نيولو طريقه ده هر کله چې هغه د کلو ظالمانو اوسيدونکو له د ګناهونو په وجه نيسی، د کلو نه دکلو اوسيدونکی خلق مراد دی يعنی د هغه د نيولو نه دوی څوک بچ کولې نشی، بې شکه د هغه نيول ډير دردناک دی او بخاری او مسلم د ابوموسی اشعری نه روايت کړې دې چې الله تعالی ظالم ته مهلت ورکوی او هر کله چې هغه اونيسی نو بيا هغه پيرډی نه، بيا حضور ﷺ (وکذلک اخذ ربک الخ) تلاوت اوفرمائيلو يقينا په دې قصو کښې د هغه کسانو د پاره د عبرت نخښه ده څوک چې د آخرت دعذاب نه ويرېږی دا يعنی قيامت ورځ هغه ورځ ده چې په هغې به ټول خلق راجمع کړې شی او هغه ورځ د حاضرئی ده، په دغه ورځ به ټول مخلوق حاضرېږی، او مونږ دا صرف لګو ورځو د پاره کوم چې الله ته معلومې دی روستو کړې ده، بيا چې کله هغه ورځ راشی نو څوک به د الله د اجازت نه بغير خبرې کولې نه شی، په تکلم کښې ئې يوه تاء حذف کړې شوې ده بيا به په مخلوق کښې بعضې بدنصيب وی او بعضې به په هغې کښې خوش نصيبه وی، او دا ټول د اولې ورځې نه ليکلې شوې دی نو چې کوم خلق د الله په علم کښې بديصيبه وی هغوی به په دوزخ کښې په داسې حالت کښې وی چې د هغوی به په اور کښې په زور او په کم آواز چغې سورې وی او دوی به په دې حالت کښې هميشه وی تر څو چې زمکه او آسمان قائم وی په دنيا کښې ددوی د هميشه نيتې پورې (دا د هميش د پاره يو محاوره ده) سوا د (مع) ه هغې نورې نيتې نه کوم چې ستا رب اوغواړی، د زمکې او د آسمان نيتې باندې چې د هغې څه حد نشته او معنی د ايت داده چې هغوی به په دوزخ کښې هميشه وی، يقينا چې زما رب څه اوغواړی نو هغه کوی خو چې کوم کسان نيک بخت اوګرځيدل دسين د فتحې او ضمې سره، هغوی به په جنت کښې وی هميشه به هلته کښې اوسيږی تر څو چې زمکه او آسمان قائم وی خو چې کله ستا رب اوغواړی، خنګه چې مخکښې تير شول، او په دې باندې د الله تعالی قول (عطاء غير مجذوذ) دلالت کوی دا ټول بې انتهاء ورکړه ده يعنی نه ختم کيدونکې، او چې کوم تاويل

مخکښې بيان شوې دې (يعنى الا په معنى د غير) نو دا هغه دې کوم چې زما په سوچ کښې راغې او دا د تکلف نه خالي دې، او الله خپل مراد خپله خه پيژنى، لهذا اې محمد ﷺ چې د کوم بتانو دوى عبادت کوى د هغې نه په شک کښې مه پريوزه، مونږ به خامخا دوى ته عذاب ورکوو څنګه چې ددوى نه مخکښې خلقو ته مو عذاب ورکړې وو او دا نبى ﷺ ته تسلى ده، ددوى عبادت خو داسې دې څنګه چې ددوى نه مخکښې ددوى پلار نيکه کولو او مونږ هغوى ته عذاب ورکړو او مونږ دوى ته د عذاب بغير د کمى نه پورا پورا حصه ورکونکى يوو، يعنى مکمل.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ:** د آيات نه مراد تورات او د (سلطان مبين) نه مراد معجزات دى،

**قوله: المرفود:** په معنى د ورکړه، انعام، مدد، معاون، لعنت ته ئې مرفود استهزاء وئيلې دى.

**قوله: الورد:** دګوزيدو ځاې، ګودر.

**قوله: منها:** علامه سيوطى منها محذوف منلو سره اشاره اوکړه چې د (حصيد) عطف په (قائم) باندې دې (حصيد) مبتدأ مؤخر او منها خبر مقدم دې.

**قوله: حصيد:** فعيل صفت مشبه په معنى د مفعول، کټ کړې شوې فصل.

**قوله: يفلته:** افلات (افعال) پريخودل.

**قوله: فيه:** په دې کښې اشاره ده چې په (له) کښې (لام) په معنى د (فى) دې

**قوله: يشهده اى يشهد فيه**

**قوله: غيرما شاء ربك:** کښې الا په معنى د غير دې،

**سوال:** الا په معنى د غير اخستلو کښې څه مصلحت دې؟دا د يو سوال جوا ب دې.

**سوال:** سوال دادې که چرې د الا په ذريعې سره استثناء د خلود نه وى څنګه چې بعضو وئيلې دى، نو دا به د کافرانو په جهنم عدم خلود (هميشوالې) باندې دلالت وکړى، حالانکه امر واقعى داسې نه دې، او که د حکم اصلى نه استثناء وى کوم چې د الله تعالى قول (فى النار) دې نو ددې نه دا خبره په ذهن کښې راځى چې کافران به جهنم نه د داخليدو نه پس بعضې وخت د د جهنم نه رواځى، حالانکه دا هم خلاف واقعې ده.

**جواب:** حاصل دا دې چې الا په معنى د غير دې او دا د عربو د قول على الف الا الفان المتقدمان يعنى په ما باندې د فلانکى کس زر دى سره د مخکښې دوو زرو. يعنى يو زر دوو زرو سره ملاؤ شوې نو درې زره شوې نو په دغه وخت کښې به د ايت معنى داوې ان لهم عذاب مدة دوام السموت والارض فى الدنيا مع زيادة التى لا آخر لها على مدة بقاء السموت والارض.

**قوله:** كما تقدم من قوله من الزيادة على مدتهما ما لا منتهى له: يعنې چې کوم تاويل مخکښې شوې دې هم هغه به دلته وي.

**قوله:** انا نعذبهم: الغ دا ددې سوال جواب دې چې شک حکم سره متعلق وي او (مرية) حکم نه دې؟

**جواب:** حاصل دا دې چې تقدير عبارت څه داسې دې اى لاتك يا محمد ﷺ في مرية انا نعذبهم الخ

**قوله:** كعبادتهم: په دې کښې اشاره ده چې (مايعبدون) کښې ما مصدريه ده يعنى دا خلق د پلار نيکه د عبادت مطابق عبادت کوي.

**قوله:** تاما: د اضافې مقصد دا خودل دى چې بعضې وخت کل ونيلو سره بعضې مراد وي، خو دلته داسې نه ده.

[اياتونه: ۱۱۰ _ ۱۲۲]

(وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ) التَّوْرَاة (فَاخْتُلِفَ فِيهِ) بِالتَّصْدِيقِ وَالتَّكْذِيبِ كَالْقُرآن (وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَبِّكَ) بِتَأْخِيرِ الْحِسَابِ وَالْجَزَاءِ لِلْخَلَائِقِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ (لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ) فِي الدُّنْيَا فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ (وَإِنَّهُمْ) أَيِ الْمُكَذِّبِينَ بِهِ (لَفِي شَكٍّ مِنْهُ مُرِيبٍ) مُوقِعٍ فِي الرِّيبَةِ (وَإِنْ) بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ (كُلًّا) أَيْ كُلَّ الْخَلَائِقِ (لَمَّا) مَا زَائِدَةٌ وَاللَّامُ مُوَطِّئَةٌ لِقَسَمٍ مُقَدَّرٍ أَوْ فَارِقَةٌ وَفِي قِرَاءَةٍ بِتَشْدِيدِ لَمَّا بِمَعْنَى إِلَّا فَإِنْ نَافِيَةٌ (لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ أَعْمَالَهُمْ) أَيْ جَزَاءَهَا (إِنَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ خَبِيرٌ) عَالِمٌ بِبَوَاطِنِهِ كَظَوَاهِرِهِ (فَاسْتَقِمْ) عَلَى الْعَمَلِ بِأَمْرِ رَبِّكَ وَالدُّعَاءِ إِلَيْهِ (كَمَا أُمِرْتَ وَ) لِيَسْتَقِمْ (مَنْ تَابَ) آمَنَ (مَعَكَ وَلَا تَطْغَوْا) تُجَاوِزُوا حُدُودَ اللّٰهِ (إِنَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ) فَيُجَازِيكُمْ بِهِ (وَلَا تَرْكَنُوا) تَمِيلُوا (إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا) بِمَوَدَّةٍ أَوْ مُدَاهَنَةٍ أَوْ رِضًا بِأَعْمَالِهِمْ (فَتَمَسَّكُمُ) تُصِيبَكُمُ (النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِنْ دُونِ اللّٰهِ) أَيْ غَيْرِهِ (مِنْ) زَائِدَةٌ (أَوْلِيَاءَ) يَحْفَظُونَكُمْ مِنْهُ (ثُمَّ لَا تُنْصَرُونَ) تُمْنَعُونَ مِنْ عَذَابِهِ (وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ) الْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ أَيِ الصُّبْحَ وَالظُّهْرَ وَالْعَصْرَ (وَزُلَفًا) جَمْعُ زُلْفَةٍ أَيْ طَائِفَةٍ (مِنَ اللَّيْلِ) الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ (إِنَّ الْحَسَنَاتِ) كَالصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ (يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ) الذُّنُوبَ الصَّغَائِرَ نَزَلَتْ فِيمَنْ قَبَّلَ أَجْنَبِيَّةً فَأَخْبَرَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِلِيَ هٰذَا فَقَالَ لِجَمِيعِ أُمَّتِي كُلِّهِمْ رَوَاهُ الشَّيْخَانِ (ذٰلِكَ ذِكْرَى لِلذَّاكِرِينَ) عظة للمتعظين (وَاصْبِرْ) يَا مُحَمَّدُ عَلَى أَذَى قَوْمِكَ أَوْ عَلَى الصَّلَاةِ (فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ) بِالصَّبْرِ عَلَى الطَّاعَةِ (فَلَوْلَا) فَهَلَّا (كَانَ مِنَ الْقُرُونِ) الْأُمَمِ الْمَاضِيَةِ (مِنْ قَبْلِكُمْ أُولُو بَقِيَّةٍ) أَصْحَابُ دِينٍ وَفَضْلٍ (يَنْهَوْنَ عَنِ الْفَسَادِ فِي الْأَرْضِ) الْمُرَادُ بِهِ النَّفْيُ أَيْ مَا كَانَ فِيهِمْ ذٰلِكَ (إِلَّا) لٰكِنْ (قَلِيلًا مِمَّنْ أَنْجَيْنَا مِنْهُمْ) نهوا فَنَجَوْا وَمِنْ لِلْبَيَانِ (وَاتَّبَعَ الَّذِينَ ظَلَمُوا) بِالْفَسَادِ وَتَرْكِ النهي (ما أترفوا) نعموا (فيه وكانوا مجرمين) (وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرَى بِظُلْمٍ) مِنْهُ لَهَا (وَأَهْلُهَا مُصْلِحُونَ) مُؤْمِنُونَ (وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ أُمَّةً وَاحِدَةً) اهل دين واحد (ولا يزالون مختلفين) فِي الدِّينِ (إِلَّا مَنْ رَحِمَ رَبُّكَ) أَرَادَ لَهُمُ الْخَيْرَ فَلَا يَخْتَلِفُونَ فِيهِ (وَلِذٰلِكَ خَلَقَهُمْ) أَيْ أَهْلَ الِاخْتِلَافِ لَهُ

وأهل الرحمة لها ﴿وتمت كلمة ربك﴾ وهي ﴿لأملأن جهنم من الجنة والناس أجمعين﴾ ﴿وكلا﴾ نصب بنقص وتنوينه عوض عن المضاف إليه أي كل ما يحتاج إليه ﴿نقص عليك من أنباء الرسل ما﴾ بدل من كلا ﴿نثبت﴾ نطمئن ﴿به فؤادك﴾ قلبك ﴿وجاءك في هذه﴾ الأنباء أو الآيات ﴿الحق وموعظة وذكرى للمؤمنين﴾ خصوا بالذكر لانتفاعهم بها في الإيمان بخلاف الكفار ﴿وقل للذين لا يؤمنون اعملوا على مكانتكم﴾ حالتكم ﴿إنا عاملون﴾ على حالتنا تهديد لهم ﴿وانتظروا﴾ عاقبة أمركم ﴿إنا منتظرون﴾ ذلك ﴿ولله غيب السماوات والأرض﴾ أي علم ما غاب فيهما ﴿وإليه يرجع﴾ بالبناء للفاعل يعود وللمفعول يرد ﴿الأمر كله﴾ فينتقم ممن عصى ﴿فاعبده﴾ وحده ﴿وتوكل عليه﴾ ثق به فإنه كافيك ﴿وما ربك بغافل عما يعملون﴾ وإنما يؤخرهم لوقتهم وفي قراءة بالفوقانية

ترجمه: امر يقيني دا دې چې مونږ موسى عليه السلام ته هم كتاب تورات وركړې وو په هغې كښې هم د قرآن په شان د تصديق او تكذيب كولو سره اختلاف كړې شوې وو، كه د قيامت پورې د مخلوق د حساب او د بدلې د روستو والى ستا د رب فيصله نه وه كړې شوې نوپه كومه معامله كښې چې دوى اختلاف كوى، هم په دنيا كښې به د هغې فيصله شوې وه او دا د قرآن تكذيب كونكى د قرآن د طرف نه په شک كښې اچولو والا تردد او شبه كښې پراته دى او دا هم يقيني ده ان د تخفيف او تشديد سره دې چې پوره مخلوق كله (د هغې مخې ته حاضر كړى) نو ستا رب به ددوى د اعمالو پوره پوره بدله وركړى په لما كښې (ما) زائده ده او (لام) قسم مقدر طرف ته اشارې د پاره دې، او لام فارقه دې يا په يو قراءت كښې لما په تشديد سره په معنى د الا دې، او (ان) نافيه دې.يقينا الله چې هغوى څه كوى د هغې د ظاهر او د باطن نه خبردار دې لهذا د خپل رب په حكم سره په عمل او په دعوت الى الحق باندې د حكم مطابق ثابت قدم اوسه.او هغه څوک دې هم ثابت قدم وى چې تا سره ئې ايمان راوړې دې، اود الله د حدودو نه تجاوز مه كوئ يقينا چې تاسو څه كوئى هغه ئې گورى لهذا هغه به ددې بدله دركړى،او اوگورئى ظالمانو طرف ته مه تيتيږئ دوى سره دوستى يا نرمى كولو سره يا ددوى په اعمالو باندې رضامندى ښكاره كولو سره، گنى تاسو ته به هم د دوزخ اور اولگى او د الله نه سوا به بل څوک ستاسو مددگار نه وى چې تاسو د الله نه بچ كړى او نه به تاسو د هغه د عذاب نه بچ كولې شئ او اې محمد صلى الله عليه وسلم د ورځې په دواړه طرفونو كښې سحر او مابنام، يعنى د سحرې، ماسپښن، او د مازيگر د مونځونو پابندى ساتئ او دشپې په يو حصه كښې يعنى د مابنام او ماسخوتن هم (زلفا) د زلفة جمع ده، ددې معنى (حصه) ده بې شكه نيكئى مثلا پنځه وخته مونځونه واړه گناهونه ختموى ذكر شوې ايت د هغه سړى ابو اليسر باره كښې نازل شوې دې چا چې د يوې پردئ ښځې نه بوسه اخستې وه بيا ئې ددې اطلاع نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته وكړه نو دا آيت نازل شو،نو هغه كس اووئيل چې دا حكم

زما د پاره خاص دي نو حضور ﷺ اوفرمائیل چې زما ټول امت د پاره دي، شیخینو دا روایت نقل کړې دې دا یو نصیحت دې نصیحت حاصلولو والو د پاره او اې محمده قوم په تکلیف رسولو او یا د مونځ په پابندئ صبر کوه په تابعدارئی باندې د صبر په ذریعه د نیکی کونکو اجر الله تعالی ضائع کوی نه، نو ولې ستاسو نه مخکښې امتونو کښې ولې داسې دیندار او د مرتبې خاوندان نه وو چې خلقو لره ئې د فساد فی الارض نه منع کولې؟ مراد د استفهام نفی ده، یعنی په دوی کښې داسې خلق نه وو، خو ډیر کم، کوموته چې مونږ خلاصې ورکړو چې هغوی د بدئ نه منع اوکړه چې د هغې په وجه هغوی خلاصې اومندلو او (من) بیانیه دې او کوم خلقو چې د فساد په ذریعه یا د ترک نهی په ذریعه ظلم اوکړو هغوی هم دې سامان عیش پسې شاته روان وو کوم چې دوی ته ورکړې شوې وو او هغوی مجرمان وو او ستا رب داسې نه دې چې یو کلې په ظلم سره هلاک کړی او دې کلی والا دې مومنان وی، او که ستا رب غوښتلے نو ټول خلق به ئې په یو دین باندې کړې وو او هغوی د دین په معامله کښې مسلسل اختلاف کړې وو سوا د هغې چا نه چې ستا رب پرې رحم اوکړو چې هغوی سره ئې د خیر اراده اوکړه نو هغوی په دین کښې اختلاف اونکړو، او هم دې د پاره دوی لره یعنی اهل اختلاف د اختلاف د پاره او اهل رحمت د رحمت د پاره پیدا کړل او ستا د رب دا خبره به پوره شی او هغه دا چې زه به جهنم د پیریانو او انسانانو نه ډکوم او مونږ د رسولانو په قصو کښې دا ټولې ذکر شوې قصې اوروو، (کلا) د نقص د وجه منصوب دې او ددې تنوین د مضاف الیه په عوض کښې دې یعنی هر هغه قصئ چې د هغې د اورولو ضرورت وی (ما) د کلا نه بدل دې چې مونږ ددې په ذریعه ستا زړه ته (تقویت) تسلی ورکړو او په دې واقعاتو او ایتونو کښې هم حق تاته رارسیدلې دې او مومنانو د پاره وعظ او نصیحت دې مومنان ځکه خاص کړې شوې دی چې هغوی په نصیحت سره په خپل ایمان کښې فائده حاصلوی. په خلاف د کافرانو ته ایمان نه راوړونکو ته اووایه چې تاسو په خپلې طریقې عمل کوئی او مونږ په خپله طریقه عمل کوو، دا د دوی د پاره تهدید او دهمکی ده تاسو د خپل عمل د انجام انتظار کوئی مونږ هم د هغې انتظار کوو، د زمکې او د اسمانو د پټو څیزونه علم صرف الله تعالی ته دې او د ټولو کارونه به هم د هغه طرف ته رجوع وی (یرجع) معروف او مجهول دواړه دی، لهذا هغه به نافرمانی کونکو نه انتقام واخلی نو ته صرف د هغه بندګی کوه او هم هغه باندې بهروسه کوه ځکه چې هم هغه ستاد پاره کافی دې او ستا رب د دهغه خبرو نه غافله نه دې کوم چې دوی کوی دا بله خبره ده چې هغه دوی ته د یو مقرر وخت پورې مهلت ورکړې دې، او په یو قرات کښې د (تاء) فوقانیې سره دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** وان بالتشدید والتخفیف کلاای کل الخلائق لما: په (ان) او (لما) کښې ټول څلور قراتونه دی

①ان او لما دواړه مخفف، ②ان مخففه، او لما مشدده ③ان مشدده او لما مخففه، ④دواړه مشدد،
دا څلور واړه قراتونه متواتر دي په څلور واړه قراتونو کښې (کلا) د ان اسم کیدو د وجه منصوب دي، او د ان خبر به جمله قسمیه لیوفینهم ربك اعمالهم وی، او لما مشدده کیدو په صورت کښې لیوفینهم جمله کیدو سره بهٔ د ان خبر وی.
قوله: الخلائق: لفظ خلائق محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه چې د (کل) تنوین د مضاف الیه په عوض کښې دې.
قوله: ما زائدة: د لما مخففه کیدو په صورت کښې ما زائده ده، او که ما زائده حذف کړې شي نو په یو لفظ باندې به د دوو لامونو داخلیدل لازم شي کوم چې موجب د ثقل دې، او تقدیری عبارت به للیوفینهم وی.
قوله: واللام موطئة لقسم مقدر: یعنی لیوفینهم کښې لام د قسم په حذف باندې دلالت کوی، یعنی په دې خبره باندې دلالت کوی چې قسم محذوف دې.
قوله: او فارقة: یعنی لیوفینهم کښې لام فارقه دې، دا د لیوفینهم په لام کښې د دویم مذهب طرف ته اشاره ده د لام فارقه مطلب دادې، د ان مخففه او ان نافیه په مینځ کښې فرق کولو والا، یعنی که په خبر باندې لام داخل وی نو دې نه به معلومه شي چې ان مخففه عن المثقله دې.
تنبیه: دا خبره دې یاده وی چې لام مفارقه د ان په خبر باندې هغه وخت داخلیږی چې کله ان مخففه د عمل نه منع کړې شوې وی (یعنی د اهمال په صورت کښې) لکه ان زید لقائم اوکه ان زیدا القائم ءې ولوستلونو د التباس نه کیدو په وجه به د لام مفارقه ضرورت نه وی، او ایت کریمه ان کلا لما لیوفینهم کښې چونکه ان عامله ده لهذا لام مفارقه ګرځول صحیح نه دی، ځکه د ان نافیه او مخففه په مینځ کښې هغه وخت التباس وی چې کلکه دوی د عمل نه منع کړې شي او بعضې حضراتو د ذکر شوی عبارت مطلب دا بیان کړې دې چې د واللام مؤطیة تعلق د ان مشدده په صورت کښې دې او د فارقه تعلق مخففه سره دې،
قوله: کلا نصب بنقص: یعنی د کلا نه مخکښې نقص محذوف دې کوم چې د کلا ناصب دې،

..............

## [۱۲] سورة يوسف

### سورة يوسف مكية مائة واحدى عشرة اية

### سورة يوسف مكي دي، يوسل يوولس (۱۱۱) آيتونه دي.

### [اياتونه:۱ - ۶]

بسم الله الرحمن الرحيم (الر) الله اعلم بمرادهٖ بذٰلك (تِلْكَ) هٰذهِ الايات (آيَاتُ الْكِتَابِ) القرآن وَالإضافة بمعنى مِنْ (الْمُبِينِ) المظهر للحق من الباطل (اِنَّا أَنْزَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيًّا) بلغة العرب (لَعَلَّكُمْ) يا اهل مكة (تَعْقِلُونَ) تفقهون معانيه (نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ أَحْسَنَ الْقَصَصِ بِمَا أَوْحَيْنَا) بايحائنا (اِلَيْكَ هٰذَا الْقُرآنَ وَإِنْ) مخففة اي وانه (كُنْتَ مِنْ قَبْلِهِ لَمِنَ الْغَافِلِيْنَ) اذكر (اِذْ قَالَ يُوْسُفُ لِأَبِيْهِ) يعقوب (يَا أَبَتِ) بالكسر دلالة على ياء الإضافة المحذوفة والفتح دلالة على الف محذوفة قلبت عن الياء (اِنِّي رَأَيْتُ) في المنام (أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ رَأَيْتُهُمْ) تاكيد (لِي سَاجِدِيْنَ) جمع بالياء والنون للوصف بالسجود الذي هو من صفات العقلاء (قَالَ يَا بُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُؤْيَاكَ عَلَى إِخْوَتِكَ فَيَكِيْدُوْا لَكَ كَيْدًا) يحتالون في هلاكك حسدا لعلمهم بتاويلها من انهم الكواكب والشمس امك والقمر ابوك (اِنَّ الشَّيْطَانَ لِلْإِنْسَانِ عَدُوٌّ مُبِيْنٌ) ظاهر العداوة (وَكَذٰلِكَ) كما رأيت (يَجْتَبِيْكَ) يختارك (رَبُّكَ وَيُعَلِّمُكَ مِنْ تَأْوِيْلِ الْأَحَادِيْثِ) تعبير الرؤيا (وَيُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ) بالنبوة (وَعَلَى آلِ يَعْقُوْبَ) اولاده (كَمَا أَتَمَّهَا) بالنبوة (عَلَى أَبَوَيْكَ مِنْ قَبْلُ إِبْرَاهِيْمَ وَإِسْحَاقَ إِنَّ رَبَّكَ عَلِيْمٌ) بخلقه (حَكِيْمٌ) في صنعه بهم

**ترجمه:** شروع كوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم كولو والا دي، الر، الله خه پوهيږي په مراد ددې باندې دا ايتونه د كتاب مبين د حق او باطل په مينځ كښې فرق كولو والا كتاب دي (آيات الكتاب) كښې اضافت په معنى د (من) دي مونږ دې كتاب لره د عربۍ ژبې قرآن رواليږلو چې اې اهل مكې والو تاسو ددې معانې اول اوپيږنئ، مونږ ددې قرآن وحې ستا طرف ته كولو سره تاته يو ډيره ښه قيصئ اورول غوارو، او يقيني خبره ده چې ته د دې نه مخكښې بالكل ناخبره وې او ان مخففه دې اى وانه، هغه وخت قابل ذكر دې چې كله يوسف عليه السلام خپل پلار يعقوب ته اووئيل چې اې ابا جان، ابت د تاء په كسرې سره دې كوم چې د ياء اضافت محذوفه باندې دال دې، او د تاء په فتحې سره چې كوم چې په الف محذوفه باندې دال دې كوم چې د ياء نه بدل راغلې دې ما په خوب كښې يوولس ستورى او نور او سپوږمئ ځان ته په سجده ليدلې دى (ساجدين) د ياء او نون سره جمع راوړلې شوې ده د ستورو د سجدې په صفت سره متصف كيدو د وجې، كوم چې د عقلمندو صفت دې (يعقوب عليه السلام اوفرمائيل اې ځما خوګه بچيه ته د دې خپل خوب حال خپلو رونړو ته مه وايه، هسې نه چې هغوى تاسره څه دهوكه اوكړى د حسد د وجې نه ستا د هلاكت چال جوړ كړى ددوى ددې خوب نه د خبريدو په وجه چې ددې ستورو نه مراد دوى خپله دى او نمر ستا مور او سپوږمئ ستا شيطان د

انسان ښکاره دشمن دې یعنی د هغه دشمنی ښکاره ده، او ددې مطابق کوم چې تا خوب کښې اولیدل ستا رب به تالره چونړ کړی (خوښ کړی) او تاته به د خوب د تعبیرونو علم درښائی او تاته به ستا رب د نبوت په ذریعه ډیر نعمتونه درکړی او آل یعقوب یعنی د هغه اولاد ته هم څنګه چې ئې د دې نه مخکښې د نبوت په ذریعه ستا پلار نیکه ابراهیم او اسحق ته نعمتونه ورکړي وو بیې شکه ستا رب د خپل مخلوق نه خبردار دې او دوی سره ددوی تدبیر په باره کښې باحکمت دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: هذه الایات:** په دې کښې تلک اسم اشارې د مؤنث روارلو وجې ته اشاره شوې ده،

**قوله: المظهر للحق:** په دې کښې اشاره ده چې مبین د ابان نه متعدی دې.

**قوله: بایحائنا:** په دې کښې اشاره ده چې ما مصدریه ده نه چې موصوله، چې ددې په صله کښې د عائد ضرورت وی.

**قوله: مخففة ای انه:** په دې کښې اشاره ده چې ان مخففه عن المثقلة، او د ان اسم ضمیر شان محذوف دې، ای انه او لمن الغفلین کښې لام فارقه دې.

**قوله: دلالة علی الف محذوفة:** څکه چې ددې اصل یا ابتا وو، الف حذف کړې شو فتحه باقی پاتې شو، چې د الف په حذف کیدو باندې دلالت وکړی.

**قوله: فی المنام:** په دې اضافه کښې اشاره ده چې رائت د رؤیا نه بدل دې نه چې د رؤیت نه

**قوله: تاکید:** رایتهم د رایت تاکید دې،لهذا اوس دبې فائدې تکرار راتلو اعتراض ختم شو،

**قوله: یحتالوا:** اضافه ددې خبرې جواب دې چې (کید) متتعدی بنفسه وی، حالانکه دلته متعدی باللام راوړلې شوې دې

د جواب حاصل دا دې چې کید د احتیال معنې لره متضمن کیدو د وجه نه متعدی باللام راوړل صحیح دی.،

**[ایاتونه: ۷ - ۲۰]**

﴿لَقَدْ كَانَ فِي﴾ خَبَر ﴿يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ﴾ وَهُمْ أَحَد عَشَر ﴿آيَاتٌ﴾ عِبَر ﴿لِلسَّائِلِينَ﴾ عَنْ خَبَرهمْ اُذْكُرْ ﴿إِذْ قَالُوا﴾ أَيْ بَعْض إِخْوَة يُوسُف لِبَعْضِهِمْ ﴿لَيُوسُفُ﴾ مبتدا ﴿وَأَخُوهُ﴾ شَقِيقه بِنْيَامِين ﴿أَحَبُّ﴾ خَبَر ﴿إِلَى أَبِينَا مِنَّا وَنَحْنُ عُصْبَةٌ﴾ جَمَاعَة ﴿إِنَّ أَبَانَا لَفِي ضَلَالٍ﴾ خطأ ﴿مُبِينٍ﴾ بَيِّن بإيثارهما علينا ﴿اقْتُلُوا يُوسُفَ أَوِ اطْرَحُوهُ أَرْضًا﴾ أَيْ بِأَرْضٍ بَعِيدَة ﴿يَخْلُ لَكُمْ وَجْهُ أَبِيكُمْ﴾ بِأَنْ يُقْبِل عَلَيْكُمْ وَلَا يَلْتَفِت لِغَيْرِكُمْ ﴿وَتَكُونُوا مِنْ بَعْدِهِ﴾ أَيْ بَعْد قَتْل يُوسُف أَوْ طَرْحه ﴿قَوْمًا صَالِحِينَ﴾ بِأَنْ تَتُوبُوا ﴿قَالَ قَائِلٌ مِنْهُمْ﴾ هُوَ يَهُوذَا ﴿لَا تَقْتُلُوا يُوسُفَ وَأَلْقُوهُ﴾ اطرحوه ﴿فِي غَيَابَتِ الْجُبِّ﴾ مُظْلِم الْبِئْر وَفِي قِرَاءَة بِالْجَمْعِ ﴿يَلْتَقِطْهُ بَعْضُ السَّيَّارَةِ﴾ الْمُسَافِرِينَ ﴿إِنْ كُنْتُمْ فَاعِلِينَ﴾

ما أردتم من التفريق فاكتفوا بذلك ﴿قَالُوا يَا أَبَانَا مَا لَكَ لَا تَأْمَنَّا عَلَىٰ يُوسُفَ وَإِنَّا لَهُ لَنَاصِحُونَ﴾ لقائمون بمصالحه ﴿أَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا﴾ إلى الصحراء ﴿نَرْتَعْ وَنَلْعَبْ﴾ بالنون والياء فيهما ننشط ونتسع ﴿وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾ ﴿قَالَ إِنِّي لَيَحْزُنُنِي أَنْ تَذْهَبُوا﴾ أي ذهابكم ﴿بِهِ﴾ لفراقه ﴿وَأَخَافُ أَنْ يَأْكُلَهُ الذِّئْبُ﴾ المراد به الجنس وكانت أرضهم كثيرة الذئاب ﴿وَأَنْتُمْ عَنْهُ غَافِلُونَ﴾ مشغولون ﴿قَالُوا لَئِنْ﴾ لام قسم ﴿أَكَلَهُ الذِّئْبُ وَنَحْنُ عُصْبَةٌ﴾ جماعة ﴿إِنَّا إِذًا لَخَاسِرُونَ﴾ عاجزون فأرسله معهم ﴿فَلَمَّا ذَهَبُوا بِهِ وَأَجْمَعُوا﴾ عزموا ﴿أَنْ يَجْعَلُوهُ فِي غَيَابَتِ الْجُبِّ﴾ وجواب لما محذوف أي فعلوا ذلك بأن نزعوا قميصه بعد ضربه وإهانته وإرادة قتله وأدلوه فلما وصل إلى نصف البئر ألقوه ليموت فسقط في الماء ثم أوى إلى صخرة فنادوه فأجابهم يظن رحمتهم فأرادوا رضخه بصخرة فمنعهم يهوذا ﴿وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ﴾ في الجب وحي حقيقة وله سبع عشرة سنة أو دونها تطمينا لقلبه ﴿لَتُنَبِّئَنَّهُمْ﴾ بعد اليوم ﴿بِأَمْرِهِمْ﴾ بصنيعهم ﴿هَٰذَا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ بك حال الإنباء ﴿وَجَاءُوا أَبَاهُمْ عِشَاءً﴾ وقت المساء ﴿يَبْكُونَ﴾ ﴿قَالُوا يَا أَبَانَا إِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ﴾ نرمي ﴿وَتَرَكْنَا يُوسُفَ عِنْدَ مَتَاعِنَا﴾ ثيابنا ﴿فَأَكَلَهُ الذِّئْبُ وَمَا أَنْتَ بِمُؤْمِنٍ﴾ بمصدق ﴿لَنَا وَلَوْ كُنَّا صَادِقِينَ﴾ عندك لاتهمتنا في هذه القصة لمحبة يوسف فكيف وأنت تسيء الظن بنا ﴿وَجَاءُوا عَلَىٰ قَمِيصِهِ﴾ محله نصب على الظرفية أي فوقه ﴿بِدَمٍ كَذِبٍ﴾ أي ذي كذب بأن ذبحوا سخلة ولطخوه بدمها وذهلوا عن شقه وقالوا إنه دمه ﴿قَالَ﴾ يعقوب لما رآه صحيحا وعلم كذبهم ﴿بَلْ سَوَّلَتْ﴾ زينت ﴿لَكُمْ أَنْفُسُكُمْ أَمْرًا﴾ ففعلتموه به ﴿فَصَبْرٌ جَمِيلٌ﴾ لا جزع فيه وهو خبر مبتدأ محذوف أي أمري ﴿وَاللَّهُ الْمُسْتَعَانُ﴾ المطلوب منه العون ﴿عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ﴾ تذكرون من أمر يوسف ﴿وَجَاءَتْ سَيَّارَةٌ﴾ مسافرون من مدين إلى مصر فنزلوا قريبا من جب يوسف ﴿فَأَرْسَلُوا وَارِدَهُمْ﴾ الذي يرد الماء ليستقي منه ﴿فَأَدْلَىٰ﴾ أرسل ﴿دَلْوَهُ﴾ في البئر فتعلق بها يوسف فأخرجه فلما رآه ﴿قَالَ يَا بُشْرَىٰ﴾ وفي قراءة بشرى ونداؤها مجاز أي احضري فهذا وقتك ﴿هَٰذَا غُلَامٌ﴾ فعلم به إخوته فأتوه ﴿وَأَسَرُّوهُ﴾ أي أخفوا أمره جاعليه ﴿بِضَاعَةً﴾ بأن قالوا هذا عبدنا أبق وسكت يوسف خوفا من أن يقتلوه ﴿وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِمَا يَعْمَلُونَ﴾ ﴿وَشَرَوْهُ﴾ باعوه منهم ﴿بِثَمَنٍ بَخْسٍ﴾ ناقص ﴿دَرَاهِمَ مَعْدُودَةٍ﴾ عشرين أو اثنين وعشرين ﴿وَكَانُوا﴾ أي إخوته ﴿فِيهِ مِنَ الزَّاهِدِينَ﴾ فجاءت به السيارة إلى مصر فباعه الذي اشتراه بعشرين دينارا وزوجي نعل وثوبين

ترجمه: حقیقت دا دې چې یوسف علیه السلام او د هغه د رونړو په قصو کښې چې هغه یولس وو سوال کونکو د پاره ډیر عبرتونه دی د هغه وخت تذکره اوکړه چې کله د یوسف علیه السلام رونړو په خپل مینځ کښې اوونیل چې یوسف او د هغه سکه رور بن یامین زمونږ پلار ته زمونږ نه زیات ګران دی لیوسف مبتدأ او احب ددې خبر دې حالانکه زمونږ یوه ډله ده، زمونږ پلار دې دوارو له په مونږ باندې ترجیح ورکولو کښې ښکاره غلطی کوی داسې اوکړئ چې یوسف علیه السلام قتل کړئ یا لرې یو ملک ته ئې ورسوئ په دې چال سره ستاسو د پلار توجه به ټوله تاسو ته شی په داسې طریقې سره چې هغه به تاسو طرف ته متوجه وی او ستاسو نه علاوه به بل چاته توجه نه

کوی د یوسف ﷺ قتل کولو یا د لرې رسولو نه پس توبه وکړئ او نیکان جوړ شئ، په دوی کښې یو کس اووئیل چې یوسف ﷺ مه قتلوئی بلکه په یو تیارې واله کوهی کښې ئې وغورزوئې او په یو قراءت کښې (غیابات) جمع سره دې (د ابا جان نه) د جدا کولو په سلسله کښې که تاسو څه کول غوارئې هم په دې باندې اکتفاء اوکړئ دې به مسافرو یوه قافله راویاسی او ځان سره به ئې بوځی. (ددې تجویز مطابق) هغوی لاړل او وئې وئیل چې اباجان څه وجه ده چې تاسو دیوسف په باره کښې په مونږ باندې اعتماد نه کوئې؟ حالانکه مونږ د هغه رشوتونې خیرخواه یوو، یعنی د هغه د مصلحتونو خیال ساتو، سبا دې مونږ سره جنګل طرف ته اولیږه چې مزې اوکړی څه وخوری لوبې وکړی او په یو قراءت کښې دواړه فعل په نون سره دی، چې مونږ غښی اولو او لوبې اوکړو او دده د حفاظت مونږ ذمه دار یو یعقوب ﷺ جواب ورکړو چې ستاسو دې بوتللو سره د جدائی د وجې نه به څه دیر خفه شم او ماته دا هم خطره ده چې چرته دې شرمخ اونخوری، اود (ذئب) نه جنس ذئب مراد دې او د هغوی په علاقه کښې شرمخان دیر وو او تاسو به د ده غافله یئ، یعنی په لوبو توقو کښې به مشغول یئ هغه خلقو جواب ورکړو والله که چرې دې شرمخ اوخورو په داسې حالت کښې چې مونږ یوه غټه دله یوو نو بیا خو مونږ دیر بې کاره شو مختصر دا چې یعقوب ﷺ یوسف ﷺ هغوی سره پریښودلو چنانچه چې بوې تللو او پخه اراده ئې اوکړه چې یو تور کوهی ته ئې وغورزوی (د لما) جواب محذوف دې او هغه (فعلوا ذلک) دې یعنی هغوی دا اوکړل چې د هغه قمیص کوزولو، هغه تنګولو او دهغه سپکاوی کولو نه پس ئې د قتل په ارادې سره کوهی ته وغورزولو چې کله یوسف ﷺ د کوهی مینځ ته اورسیدلو نو پریښودلو ئې چې مړ شی مقصد دادې چې یوسف ﷺ کوهی ته پریوتلو بیا هغه د یو کانړی سهاره واخستله نو رونړو هغه ته آواز ورکړو، یوسف ﷺ د هغوی په آواز باندې دا خیال اوشو چې ددوی په ما باندې رحم راغلو، لبیک ئې اوئیل، نو هغوی د کانړی په ذریعې د سر د ماتولو اراده اوکړه، خو یهودا دوی ددې حرکت نه منع کړل، او مونږ هم په کوهی کښې یوسف ﷺ ته د زړه د سکون د پاره حقیقة وحی نازله کړه او یوسف ﷺ هغه وخت د اولس یا ددې نه څه کم عمر وو چې اې یوسف ﷺ ته به په مستقبل کښې دوی ته ددې حرکت خبر ورکړې حال دا چې د خبر ورکولو په وخت کښې به هغوی تا اونه پیژنی، او د ماښامې تولو رونړو پلار ته په ژړا راغلل، او وې وئیل چې اې ابا جان، مونږ د غښی ویشتلو په مقابله کښې مشغول وو او یوسف ﷺ مو خپلو کپړو وغیره سامان سره پریښودلو نو شرمخ هغه اوخوړلو، ته زمونږ په خبره یقین کولو والا نه ئې اګرچې مونږ ستا په نیز په رشتونی باندې یوو، خو دې معامله کښې د یوسف ﷺ د محبت د وجې به ته مونږ یقینا دروغ ګنړې او ته زمونږ په خبره یقین چرته کولې شې. ځکه چې ته زمونږ په باره کښې بد ګمانی کوې او د یوسف ﷺ رونړو په قمیص باندې د دروغو وینه اولګوله

على قميصه د ظرفيت د وجې نه په محل د نصب كښې دې اى فوق قميصه، يعنى دروغژنه وينه په داسې طريقې سره چې د گډې يو بچې ئې حلال كړو او هغه قميص ئې هغه وينه كښې ككړ كړو خو قميص شلول هغوى دخيال نه اوتل او وئې وئيل چې دا د يوسف وينه ده، يعقوب عليه السلام چې كله قميص روغ اوليدلو نو ددوى دروغ ئې اوپيژندل يعقوب عليه السلام اوفرمائيل څه چې تاسو وائى خبره داسې نه ده بلكه تاسو د خپل ځان نه خبره جوړه كړې ده چې هغې ته تاسو عملى جامه اغوستلې ده، (اوس خو) ځما د پاره صبر ډير ښه دې صبر جميل هغه دې چې په هغې كښې څه شكوه نه وى (شور غوبل نه وى) فصبرجميل (امرى) د مبتدأ محذوف خبر دې او د يوسف عليه السلام په معامله كښې كومې خبرې چې تاسو جوړوئى د هغې باره كښې هم د الله نه مدد غوښتلې شى يعنى د هغه نه مدد مطلوب دې او د مدين د مسافرو يو قافله مصر ته تللو د پاره راغله او دغه كوهى سره نيزدې ئې ډيره واچوله چې په كوم كښې يوسف عليه السلام پروت ووا و قافلې والا خپل سقه د اوبو راوړلو د پاره اوليږلو چې د هغه ذمه دارى د اوبو انتظام وو چې د هغې نه سيراب شى نو سقه چې كله كوهى ته دولچه اوغورزوله نو هغې سره يوسف اونختو او يوسف عليه السلام سقه راوويستلو او هغې سقه چغې كړې چې مبارك شئ او په يو قرامت كښې بشرى دې اودې ته ندا مجازا دې چې اې ځما خوشخبرئى ته حاضره شه دا ستاد حاضرئ وخت دې دا خو هلک دې چنانچه ددې علم د يوسف عليه السلام رونړو ته هم اوشو نو هغوى قافلې والو ته راغلل او رونړو يوسف عليه السلام لره مال تجارت گرځولو سره د واقعې اصل حقيقت پټ كړو په دې طريقه چې دا زمونږ تختيدلې غلام دې او يوسف عليه السلام خكه چپ پاتې شو چې چرته دوى ئې قتل نه كړى حالانكه هغوى چه څه كول الله تعالى په هغې باندې عالم وو او د يوسف عليه السلام روريانو يوسف عليه السلام لره په قافله كښې يو د يو كس په لاس باندې په ډير كم قيمت يعنى د شمير په څو درهمه باندې يعنى شل يا دوينشن درهم په عوض باندې خرڅ كړو او د يوسف عليه السلام رونړو د يوسف عليه السلام سره هيڅ مينه نه ساتله چنانچه قافلې يوسف عليه السلام مصر ته راوستلو او كوم كس چې يوسف عليه السلام اخستې وو هغه په شل ديناره او دوه جوړه چپړو او دوه جوړه كپړو باندې يوسف عليه السلام خرڅ كړو.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: خبر: مفسر علام خبر محذوف گنړلو سره د يو سوال جواب وركړې دې سوال دادې چې په آيت كښې يوسف عليه السلام ظرف واقع شوې دې حالانكه يوسف عليه السلام چونكه ذات دې په دې كښې د ظرف جوړيدو صلاحيت نشته.

د جواب حاصل دادې چې يوسف عليه السلام ظرف نه دې بلكه د يوسف عليه السلام نه مخكښې خبر محذوف دې څنگه چې مفسر علام ظاهره كړې ده، لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته.

قوله: مبتدأ: په دې کښې اشاره ده چې په لیوسف کښې لام ابتدائیه دې نه چې قسمیه دې.
قوله: شقیقة: په دې کښې اشاره ده چې بنامین د یوسف ﷺ حقیقی رور وو او باقی نور ټول ئې علاتی روره وو.
قوله: بأرض بعیدة، دبعیدة په اضافه کښې اشاره ده چې د ارضا تنوین د تعظیم د پاره دې.
قوله: غیابة الجب: د تیارې کوهی، دوبوالې
قوله: فأکتفوا بذلك: دا د (ان کنتم) جواب دې کوم چې محذوف دې.
قوله: یرتع: مضارع واحد مذکر غائب (فتح) میوې خوړل، مزې اخستل، راتع (خرونکې)
قوله: فعلوا ذلك: دا د لما جواب دې.
قوله: بأن نزعوا قمیصه: با تصویریه ده، کوم چه د فعل صورت بیانولو د پاره ده، یعنی په کوهی کښې ئې یوسف ﷺ څنګه اوغورزولو؟
قوله: بالنون والیاء فیهما ننشط ونتسع: ددې اضافې مقصد په یرتع اویلعب کښې دوه قراتونه بیانول دی یعنی یرتع ویلعب واحد مذکر غائب او جمع متکلم دواړه قراتونه دی او ننشط د نلعب تفسیر دې، یعنی چې مونږ په غشی ویشتلو کښې مقابله وکړو او نتسع دا د نرتع تفسیر دې، چې مونږ اوخورو او مزې اوکړو، په دې تفسیر کښې لف نشر مرتب دې.
قوله: المراد به الجنس: ددې اضافې مقصود دادې چې په الذئب کښې الف لام د عهد نه دې څکه چې د یعقوب ﷺ په ذهن کښې څه متعین شرمخ نه وو، بلکه الف لام د جنس دې، یعنی د شرمخ هر یو فرد دې خوړلې شی.
قوله: انا اذا لخاسرون: جواب قسم دې،
قوله: جواب لما محذوف: دا ددې اعتراض جواب دې چې کلام تام نه دې څکه چې د (فلما ذهبوا) جواب ذکر نه دې، د جواب حاصل دادې چې د لما جواب محذوف دې، او هغه فعلوا ذلک دې.
قوله: رطنه: (ف) رطنا: په کانړی تکول، جنګول
قوله: ولو کنا صادقین: ای فرضا
قوله: لاتهمتنا: دا د لوکنا جواب محذوف دې.
قوله: محله نصب علی الظرفیة: یعنی علی قمیصه د ظرف کیدو د وجه محلا منصوب دې تقدیری عبارت دا دې: وجاءوا فوق قمیصه بدم کذب)
قوله: ای ذی کذب: ددې اضافې مقصد دا اعتراض لرې کول دی چې په بدم کذب کښې د

مصدر حمل په ذات باندې دې کوم چې صحيح نه دې، د (ذي) اضافه کولو سره ئې اوئيل چې مصدر په معنى د اسم فاعل دې لهذا اوس څه اعتراض نشته، او که (ذي) محذوف اونه ګڼرلې شي نو په طور د مبالغې حمل صحيح دې، څنګه چې په (زيد عدل) کښې دې.

**قوله: الذي يرد الماء:** دا د وارد تفسير دې، يعنى هغه سړې چې د اوبو انتظام کوى چاته چې سقا وئيلې شي د دغې سقا نوم مالک ابن ذعر خزاعى وو.

**قوله: ليستقى منه:** چې د کوهى نه اوبه راوباسى، په بعضې نسخو کښې ليسقى دې، د دوارو له (من) رازى، استقى من النهر: د نهر نه ئې اوبه راورې.

**قوله: في قراءة بشري:** يعنى څما خوشخبرى، بشارت ته ئې ندا مجازا اووئيل، څکه چې په بشارت کښې د مخاطب کولو صلاحيت موجود نه دې.

**[ايات قوله: ۲۱ - ۲۹]**

(وَقَالَ الَّذِي اشْتَرَاهُ مِنْ مِصْرَ) وَهُوَ قطفير العَزِيز (لِامْرَأَتِهِ) زُلَيْخَا (أَكْرِمِي مَثْوَاهُ) مُقامه عِندنا (عَسَى أَنْ يَنْفَعَنَا أَوْ نَتَّخِذَهُ وَلَدًا) وَكَانَ حَصُورًا (وَكَذَٰلِكَ) كَمَا نَجَّيْنَاهُ مِنَ القَتلِ وَالجُبّ وَعَطَفْنَا عَلَيْهِ قَلْبَ العَزِيزِ (مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ) أرض مِصر حَتَّى بَلَغَ مَا بَلَغَ (وَلِنُعَلِّمَهُ مِنْ تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ) تَعبِير الرُّؤيَا عُطِفَ عَلَى مُقَدَّر مُتَعَلِّق بِمَكَّنَّا أي لِنُمَكِّنَهُ أَوِ الوَاو زَائِدَة (وَاللَّهُ غَالِبٌ عَلَىٰ أَمْرِهِ) تَعَالَى لَا يُعجِزُهُ شَيء (وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ) وَهُمُ الكُفَّار (لَا يَعْلَمُونَ) ذَلِكَ (وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُ) وَهُوَ ثَلَاثُونَ سَنَة أَو وَثَلَاث (آتَيْنَاهُ حُكْمًا) حِكمَة (وَعِلْمًا) فِقهًا فِي الدِّين قَبلَ أَن يُبعَثَ نَبِيًّا (وَكَذَٰلِكَ) كَمَا جَزَيْنَاهُ (نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ) لِأَنفُسِهِم (وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا) هِيَ زُلَيْخَا (عَنْ نَفْسِهِ) أَي طَلَبَت مِنهُ أَن يُوَاقِعَهَا (وَغَلَّقَتِ الْأَبْوَابَ) لِلبَيتِ (وَقَالَتْ) لَهُ (هَيْتَ لَكَ) أَي هَلُمَّ وَاللَّامُ لِلتَّبيِين وَفِي قِرَاءَة بِكَسرِ الهَاء وَأُخرَى بِضَمِّ التَّاء (قَالَ مَعَاذَ اللَّهِ) أَعُوذ بِاللَّهِ مِن ذَلِكَ (إِنَّهُ) الَّذِي اشتَرَانِي (رَبِّي) سَيِّدِي (أَحْسَنَ مَثْوَايَ) مُقَامِي فَلَا أَخُونُهُ فِي أَهلِهِ (إِنَّهُ) أَي الشَّأن (لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ) الزُّنَاة (وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهِ) قَصَدَت مِنهُ الجِمَاع (وَهَمَّ بِهَا) قَصَدَ ذَلِكَ (لَوْلَا أَنْ رَأَىٰ بُرْهَانَ رَبِّهِ) قَالَ ابن عَبَّاس مُثِّلَ لَهُ يَعقُوب فَضَرَبَ صَدرَه فَخَرَجَت شَهوَته مِن أَنَامِله وَجَوَاب لَولَا لَجَامَعَهَا (كَذَٰلِكَ) أَرَيْنَاهُ البُرهَان (لِنَصْرِفَ عَنْهُ السُّوءَ) الخِيَانَة (وَالْفَحْشَاءَ) الزِّنَى (إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُخْلَصِينَ) فِي الطَّاعَة وَفِي قِرَاءَة بِفَتحِ اللَّام أَي المُختَارِينَ (وَاسْتَبَقَا الْبَابَ) بَادَرَ إِلَيهِ يُوسُف لِلفِرَارِ وَهِيَ لِلتَّشَبُّثِ بِهِ فَأَمسَكَت ثَوبَه وَجَذَبَتهُ إِلَيهَا (وَقَدَّتْ) شَقَّت (قَمِيصَهُ مِنْ دُبُرٍ وَأَلْفَيَا) وَجَدَا (سَيِّدَهَا) زَوجَهَا (لَدَى الْبَابِ) فَنَزَّهَت نَفسَهَا ثُمَّ (قَالَتْ مَا جَزَاءُ مَنْ أَرَادَ بِأَهْلِكَ سُوءًا) زِنًا (إِلَّا أَنْ يُسْجَنَ) يُحبَس فِي سِجن (أَوْ عَذَابٌ أَلِيمٌ) مُؤلِم بِأَن يُضرَب (قَالَ) يُوسُف مُتَبَرِّئًا (هِيَ رَاوَدَتْنِي عَنْ نَفْسِي وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِنْ أَهْلِهَا) ابن عَمِّهَا رُوِيَ أَنَّهُ كَانَ فِي المَهد فَقَالَ (إِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ قُبُلٍ) قُدَّام (فَصَدَقَتْ وَهُوَ مِنَ الْكَاذِبِينَ) (وَإِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ) خَلف (فَكَذَبَتْ وَهُوَ مِنَ الصَّادِقِينَ) (فَلَمَّا رَأَىٰ) زَوجُهَا (قَمِيصَهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ قَالَ

إِنَّهُ ابن الملك (مَا جَزَاءُ مَنْ أَرَادَ) الخ (من كيدكن) ايها النساء (إن كيدكن عظيم) ثم قال يا (يُوسُفُ أَعْرِضْ عَنْ هَذَا) الأمر ولا تذكره لئلا يشيع (وَاسْتَغْفِرِي) يا زليخا (لِذَنبِكِ إِنَّكِ كُنتِ مِنَ الْخَاطِئِينَ) الآثمين واشتهر الخبر وشاع

ترجمه: وهغه مصري سړی چاچې یوسف عليه السلام اخستې وو چې د هغه نوم قطفير او لقب ئې عزيز وو خپلې ښځې زليخا ته اووئيل چې دې په عزت او حترام سره ساته، يعنې ده ته د عزت مقام ورکړه او ښه طريقې سره دده خيال ساته، لرې نه ده چې زمونږ پاره د فائده مند اوګرځي يا مونږ دې خپل ځوئې جوړ کړو او عزيز عنين (نامرد) وو او څنګه چې مونږ يوسف عليه السلام ته د قتل او کوهي نه خلاصې ورکړو او دعزيز مصر زړه مو هغه طرف ته مائل کړو دغه شان مونږ يوسف عليه السلام ته په ملک مصر کښې مشري ورکړه تردې چه هغه اورسيدلو کوم ځائې ته رسيدل وو، او مونږ هغه ته قدرت ورکړو چې مونږ هغه ته د خوبونو تعبير اوخايو، د لنعلمه عطف په لنمکنه باندې دې کوم چې د مکنا متعلق دې، تقديري عبارت دادې اى مكنا لنعلمه يا واؤ زائد دې او الله په خپله اراده باندې غالب دې هغه څوک عاجزه کولې نه شي، خو ډير خلق چې هغه کافران دی هغوی ددې نه ناخبر دی او يوسف عليه السلام چې کله پوخ عمر ته اورسيدلو او هغه ۳۰ يا ۳۳ کاله دی، نو مونږ هغه ته حکمت او پوهه په دين کښې، د نبوت په منصب باندې د مقرر کولو نه مخکښې ورکړل او مونږ خپل اعمالو کښې نيکانو خلقو لره دغه شان بدله ورکوو، او هغه ښځه چې د چا په کور کښې دې وو هغه زليخا وو په ده باندې جال اچول شروع کړل، يعنې دده د ګيرولو کوشش ئې شروع کړو، يعنې دده نه ئې خپل مقصد پورا کولو مطالبه اوکړه او يو ورځ ئې دروازې بندې کړې او وئې وئيل چې زر رازه، اې يوسف عليه السلام هم تاته وايم د (لک) لام د تبيين دپاره دې، او په يو قراءت کښې (هيت) د هاء کسرې سره ده، او په بل قراءت کښې د تاء په ضمې سره دې، (يوسف عليه السلام اووئيل چې د الله پناه، يعنې زه د زنا نه د الله پناه غواړم هغه ذات چا چې خه واخستم، اوعزت ئې راکړو ځما مالک دې د هغه په عزت کښې خيانت نشم کولې، خبره داده چې ظالم يعنې زنا کار کاميابي نه مومي، او هغې پخه اراده کړې وه، يعنې ده سره ئې د زنا پورا قصد کړې وو، يوسف عليه السلام به هم دا اراده کړې وه که د خپل رب دليلونه ئې کتلې نه وو ابن عباس رضي الله عنه فرمائيلې دی چې د يوسف عليه السلام مخکښې د يعقوب عليه السلام شکل مبارک راغلو او هغه د يوسف عليه السلام په سينه باندې لاس اووهلو چې د هغې د وجې نه د هغه شهوت د ګوتو په ذريعه اووتلو، او د (لولا) جواب (لجامعها) محذوف دې مونږ دليل ځکه ښکاره کړو چې مونږ دې د زنا او د خيانت نه لرې اوساتو، په حقيقت کښې هغه زمونږ د مخلصانو بندګانو نه وو يعنې په اطاعت کښې، او په يو قراءت کښې (مخلصين) د لام په فتحې سره دې يعنې په خوښو بندګانو کښې او دواړه مخکښې روستو دروازې طرف ته منډه کړې يوسف عليه السلام د تيښتې د پاره او هغې د نيولو د پاره، چنانچه ښځې د يوسف

عليه السلام کېږي او نیولي او هغه ئې خپل طرف ته رانښکلو په آخر کښې ښځې د یوسف عليه السلام قمیص د شا طرف نه اوشلولو، او دواړو د هغې خاوند دروازې سره اولیدلو، نو ښځې خپله صفائی پېش کولو سره اووئیل، چې څه سزا ده د هغه کس چې ستا ښځې سره د زنا اراده اوکړي؟ سوا د دې نه چې هغه دې قید کړې شي یا دا چې هغه ته ډېره سخته سزا ورکړې شي یعنی اووهلې شي یوسف عليه السلام خپله صفائی (بیزاری) ښکاره کولو د پاره اووئیل چې دې څه خپل جال کښې د ګیرولو کوشش اوکړو، نو د هغه ښځې په خاندان والو کښې یو ګواه یعنی د هغې د تره خوی چې په خانګو کښې وو ګواهي ورکړه چې که چرې دده قمیص د مخکښې نه شلیدلې وی نو ښځه رشتونې ده او دې درغژن دې او که دده قمیص د شا طرف نه شلیدلې وی نو ښځه دروغژنه ده، او دې رشتونې دې چنانچه چې کله د هغې خاوند د یوسف عليه السلام کرته د روستو نه شلیدلې اولیده نو وئې وئیل چې ستا دا وینا ما جزاء من اراد الخ ستاسو ښځو مکر دې، اې ښځې بې شکه ستاسو مکر هم ډېر لوې دې بیا ئې اووئیل اې یوسف ته دې خبرې له پرېږده یعنی ددې تذکره مه کوه چې ددې شهرت اونشی او اې زلیخا ته د خپلې خطاء معافی اوغواړه هم ته په خطاکارو کښې ئې.او دا خبر خور او مشهور شو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** وقال: واؤ عاطفه دې معطوف علیه (فاشتراه عزیز مصر) دې ای فاشتراه وقال لامرأته الذی اشتراه د قال فاعل دې. من مصر د کائناً متعلق کېدو سره د فاعل نه حال دې، بعضې حضراتو د لفظ مصر نه مخکښې (اهل) محذوف ګڼرلې دې، تقدیر به دا رنګه وی الذی اشتراه من اهل مصر، اوبعضو (من) د (فی) په معنی کښې اخستې دې ای اشتراه فی مصر په دې صورت کښې هیڅ التباس نه پاتې کیږي. لامرأته د قال سره متعلق دی او اکرمی مثواه مقوله ده.

**قوله:** قطفیر: بروزن قندیل، د مصر د وزیر خزانه نوم دې، د هغه لقب عزیز دې.

**قوله:** اکرمی مقامه عندنا: یعنی دې په عزت او احترام سره اوساته.

**قوله:** حصورا: دا د مبالغې صیغه ده، په جماع باندې قدرت نه لرونکې

**قوله:** لنعلمه: فعل مضارع ده کومه چې د لام نه پس د (ان) مقدره د وجه منصوب ده، علامه سیوطی په لنعلمه کښې دوو ترکیبونو طرف ته اشاره کړې ده، اول دا چې واؤ عاطفه وی په دې صورت کښې به تقدیری عبارت څه داسې وی، مکناه فی الارض لنملکه ما فیها ولنعلمه من تأویل الاحادیث، په دې صورت کښې به د لنعلمه عطف په لنملکه محذوف باندې وی، د مفسر د قول (عطف علی مقدر) هم دغه مطلب دې، دویم صورت دا چې واؤ زائد وی نو په دې صورت کښې به تقدیری عبارت داسې وی مکنا فی الارض لنعلمه تأویل الاحادیث

ملکه کړي د ملک (میم د کسرې سره) نه مشتق وی نو معنی به دا وی چې دې د پاره چې دې مونږ مالک جوړ کړو، او که ملک (په ضمې د میم سره) نه مشتق وی، نو معنی به وی چې دې مونږ بادشاه جوړ کړو

**قوله: اشده**: دا واحد په وزن د جمع دې.

**تنبیه**: د احقر سره موجود د جلالین په نسخې کښې عبارت لنمکنه دې، صحیح نسخه لنملکه دې،

**قوله: راودته**: هغې ښځې دې وغولولو ماضی واحد مؤنث غائب، او ضمیر واحد مذکر غائب دې،

**قوله: طلبت منه**: سره ئې اشاره اوکړه، چې مفاعله دلته د یو طرف د پاره ده.

**قوله: هیت لك**: دا کلمه د دوو لفظو نه مرکبه ده، هیت او لک، هیت اسم فاعل دې په معنی د راشه، لک کښې لام جاره دې، او کاف محرور دې، جار مجرور د (اقول) فعل محذوف سره متعلق دې، ددې معنی ده (زه تاته وایم چې زر راشه) (روح) سراج کښې خطیب لیکلې دی چې هیت لک پورا اسم فعل دې دا د هلم په معنی کښې دې چې د هغې معنی ده (راشه) او د هیت په تاء کښې دریواړه اعراب دی، په لک کښې لام د مخاطب د وضاحت د پاره دې، یعنی په هیت کښې چې کوم مخاطب دې هغه ئې په لک سره واضح کړو، کاف مخاطب د ضرورت نه کیدو باوجود د وضاحت د پاره راوړلې شو، ځکه چې د هیت معنی هم هغه ده کومه چې د هیت لک معنی ده، څنګه چې سقیا لك وئیلې شی، حالانکه سقیا د کاف خطاب محتاج نه دې، ځکه چې د سقیا معنی ده سقاك الله سقیا، (لك) د صرف د تاکید د پاره راوړلې دې.(اعراب القرآن للدرویش)

**قوله: معاذ الله**: دا د (عاذ یعوذ) د مصادرو نه یو مصدر دې.

**قوله: وجواب لولا لجامعها**: د ا اضافه کول دې طرف ته اشاره ده چې د (لولا) جواب محذوف دې، نه چې په ماقبل کښې مذکور (هم بها) ځکه چې د (لولا) جواب په (لولا) باندې مقدم کیدې نشی،

**قوله: اریناه**: په دې کښې اشاره ده، چې کذلک د محذوف مفعول کیدو د وجې په محل د نصب کښې دې، ای اریناه کذلك، او لنصرف لاد أرینا محذوف سره متعلق دې.

**[ایاتوله: ۳۰ ـ ۳۵]**

(وَقَالَ نِسْوَةٌ فِي الْمَدِينَةِ) مَدِينَة مِصْر (امْرَأَتُ الْعَزِيزِ تُرَاوِدُ فَتَاهَا) عَبْدَهَا (عَنْ نَفْسِهِ قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا) تَمْيِيز أَيْ دَخَلَ حُبّه شِغَاف قَلْبهَا أَيْ غِلَافه (إِنَّا لَنَرَاهَا فِي ضَلَالٍ) أَيْ فِي خَطَأ (مُبِينٍ) بَيِّن بِحُبِّهَا إِيَّاهُ (فَلَمَّا سَمِعَتْ

بِمَكْرِهِنَّ) غيبتهن لها (أَرْسَلَتْ إِلَيْهِنَّ وَأَعْتَدَتْ) أعدت (لَهُنَّ مُتَّكَأً) طعاما يقطع بالسكين للاتكاء عنده وهو الأترج (وَآتَتْ) أعطت (كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّينًا وَقَالَتْ) ليوسف (اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ فَلَمَّا رَأَيْنَهُ أَكْبَرْنَهُ) أعظمنه (وَقَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ) بالسكاكين ولم يشعرن بالألم لشغل قلبهن بيوسف (وَقُلْنَ حَاشَ لِلَّهِ) تنزيها له (مَا هَذَا) أي يوسف (بَشَرًا إِنْ) ما (هَذَا إِلَّا مَلَكٌ كَرِيمٌ) لما حواه من الحسن الذي لا يكون عادة في النسمة البشرية وفي الحديث أنه أعطي شطر الحسن (قَالَتْ) امرأة العزيز لما رأت ما حل بهن (فَذَلِكُنَّ) فهذا هو (الَّذِي لُمْتُنَّنِي فِيهِ) في حبه بيان لعذرها (وَلَقَدْ رَاوَدتُّهُ عَن نَّفْسِهِ فَاسْتَعْصَمَ) امتنع (وَلَئِن لَّمْ يَفْعَلْ مَا آمُرُهُ) به (لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُونًا مِّنَ الصَّاغِرِينَ) الذليلين فقلن له أطع مولاتك (قَالَ رَبِّ السِّجْنُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا يَدْعُونَنِي إِلَيْهِ وَإِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ أَصْبُ) أمل (إِلَيْهِنَّ وَأَكُن) أصر (مِّنَ الْجَاهِلِينَ) المذنبين والقصد بذلك الدعاء فلذا قال تعالى (فَاسْتَجَابَ لَهُ رَبُّهُ) دعاءه (فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ) للقول (الْعَلِيمُ) بالفعل (ثُمَّ بَدَا) ظهر (لَهُم مِّن بَعْدِ مَا رَأَوُا الْآيَاتِ) الدالات على براءة يوسف أن يسجنوه دل على هذا (لَيَسْجُنُنَّهُ حَتَّى) إلى (حِينٍ) ينقطع فيه كلام الناس فسجن

---

**ترجمه:** او د مصر ښار ښځو خپله کښې مشهوره کړه چې د عزيز ښځه خپل ځوان غلام پسې شوې ده او محبت هغه بې قراره کړې ده د هغه محبت د هغې د زړه په پټو خانو پورې پيوست شوې دې زمونږ په خيال کښې هغه ده سره محبت کولو کښې ښکاره په غلطه ده، چې کله د عزيز ښځې ددوی د مکر خبرې واوريدلې يعنې هغې پسې د بدو ردو خبرې ئې واوريدلې نو هغوی پسې ئې خبر اوليږلو او د هغوی د پاره ئې په چاړې سره د کټ کيدلو والا خوراک انتظام اوکړو، دې خوراک ته متکا ځکه وئيلې شی چې د هغې خوړلو سره به ئې تکيه وهله،

**دويمه ترجمه:** او د هغوی د پاره ئې د تکياګانو نه ډک مجلسونه تيار کړل او هغه خوراک د ترنجو (نارنج) وو، او په هغوی کښې ئې هرې يوې ته چاړه ورکړه او يوسف عليه السلام ته ئې اوئيل چې ددوی مخکښې راوزه، چنانچه چې کله د هغوی نظر په يوسف عليه السلام باندې پريوتلو نو هغوی حيرانه شوې او په چاړه باندې ئې خپل لاسونه کټ کړل او هغوی ته د يوسف سره د مشغوليدو د وجه د تکليف احساس هم اونشو او چغې ئې کړې حاشا لله پاکی ده الله د پاره، دا يعنې يوسف عليه السلام انسان نه دې دا خو ځوک بزرګه فرشته ده ځکه چې دا خو داسې حسن ګير کړنې ده چې عادتا په انسان کښې نه وی او په صحيح حديث کښې دی چې يوسف عليه السلام ته ټول حسن نه نيم حسن ورکړې شوې وو، د عزيز ښځې چې کله ددوی دا حالت اوليدلو نو وئيل وې چې دا هغه هم دې د چا په محبت کښې چې تاسو ماته پيغورونه کوئی، دا د خپل عذر بيان دې او بې شکه ما دده د غولولو کوشش کړې وو، خو دې بچ شو او که دې هغه کار اونه کړی کوم چې زه غوارم نو يقينا دې به قيد کړې شی، او ډير ذليل او خواره به شی، نو هغې ښځو يوسف عليه السلام ته اووئيل چې د خپلې مالکې خبرې اومنه، يوسف عليه السلام دعا اوکړه اې

خدایه زما جیل خوښ دي د هغې کار په مقابله کښې کوم ته چې دوی ما راغواړي، او که تا څما نه ددوی دا چال بازي لرې نه کړه نو څه به ددوی په چال کښې ګیر شم، او په ګناهګارانو کښې به شامل شم، او د (والاتصرف) نه د دعا مقصد دې، او هم څکه الله تعالی فاستجاب اوفرمائیل، نو د هغه رب د هغه دعاء قبول کړه، چې د هغه نه ئې ددوی مکر او فریب لرې کړو، بې شکه هغه خبرو له اوریدونکې د عمل کتونکې دې، بیا هغوی دا فیصله اوکړه چې خامخا به دې جیل کښې اچوی دیر وخت پورې، باوجود ددې چې د یوسف ﷺ په پاکدامنۍ باندې دلالت کونکې نښې ئې کتلې وې، په دې کښې حذف د فاعل باندې لیسجننه دلالت کوی، چې ددې خبرې چرچا ختمه شی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: نسوة: د ښځو ټولګې، دا اسم جمع ده، ددې په د خپلو الفاظو نه واحد نشته، او په اعتبار د معنې سره (امرأة) ددې واحد دې، نسوة مؤنث غیرحقیقی دې، ددې د فعل مذکر او مؤنث دواړه راوړل جائز دی، ددې وجې ئې د (قالت) په ځائې (قال) راوړلو.

قوله: مدینةمصر: په دې کښې اشاره ده چې په (المدینة) کښې الف لام د عهد دې.

قوله: امراة العزیز: مبتدأ دې، او (تراود ددې خبر دې، تراود، مضارع واحد مؤنث غائب دې، (مفاعلة) غولول، دوکه ورکول، مائله کول.

قوله: تمیز: دا ددې اعتراض جواب دې چې (شعف) متعدی بیک مفعول دې، حالانکه دلته دوه مفعول دی، اول (ها) او دویم (حبا)، جواب دادې چې (حبا) تمیز دې نه چې مفعول، دا د فاعل نه منتقل شوې دې، اصل عبارت دا وو، دخل حبه فی شغاف قلبها

قوله: شغاف: شغاف القلب، هغه جالئ چې د زړه نه ګیر چاپیره وی.

قوله: اعتدت: دا د اعتاد نه، په معنی د تیارولو، ماضی واحد مؤنث غائب،

قوله: متکا: اسم مکان د تکیه وهلو ځائې، تولائی بالخت، مسند، عربیان متکا هغه څیز ته وائی، چې د خبرو یا د روټی په وخت کښې هغې ته ددې لګولې شی، د امام رازی په نیز هغه خوراک چې د هغې د خوړلو د پاره د چاړې ضرورت وی، (تفسیر کبیر) څنګه چې نن سبا د د خوراک د پاره میز او کرسئ لګولې شی، دغه شان به مخکښې د مهذب دسترخوانو نه ګیرچاپیره تکیې لګولې شوې، او څنګه چې نن سبا د میز او دسترخوان لګولو نه مراد خوراک کول دی، او په میز یا په دسترخوان باندې د ناستې نه د روټئ د پاره ناسته مراد ده، دغه شان په هغه زمانه کښې د بالخت تکیه لګولو نه مراد د روټئ دپاره کیناستل مراد وو، هم په دې معنی کښې د جمیل شعر دې،

فظللنا بنعمة واتکانا وشربنا الحلال من قلله

(مونږ په عیش کښې ورځې تیرې کړې او روټئ مو اوخوړله، او د منګو نه مو شراب راویستل او اومو څکل.)

علامه سیوطی د (متکا) تفسیر په طعاماً یقطع بالسکین سره کړې دې او هم دغه قول د امام رازی دې خو دغې نه پس لیکی (وهو الاترج) علامه سوطی هم دغه شان د وهب په اتباع کښې کړې ده ابوعبیده او نورو اهل لغتو ددې نه انکار کړې دې ځکه چې ترنج ته متک یا متکة وئیلې شی ضرار ابن نهشل هم متکة په معنی د ترنج کښې اخستې دې فاهدت متکة لبنی ابیها هغه د خپل تره ځامونو د پاره ترنج په هدیه کښې اولیږل.

قوله: للاتکاء: دا روټۍ ته متکا وئیلو د وجه تسمیه ده.چونکه عربو به د روټئ په تایم کښې تکیه لګوله ځکه دغې روټئ ته د استعارې په طور سره متکا اووئیلې شو.

قوله: حاش لله: حاشا حرف تنزیه دې، دغه وخت به دا اسم وی. او که ددې استعمال داستثناء په طور سره وی نو دا به حرف وی.

قوله: بیان لعذرها: ددې جواب دې چې مصری ښځو ته خو پته وه چې دعزیز ښځه په غلام باندې عاشقه شوې ده بیا (فذلکن الذی لمتننی فیه) دادې هغه د چا په باره کښې چې تاسو ما ملامته کوئی، ددې وئیلو څه ضرورت دې؟

جواب: د جواب حاصل دا دې چې ددې مقصد خبر ورکول نه دی بلکه خپله مجبوری او بې وسی بیانول دی، چې د چا په یو نظر سره تاسو حیرانه شوئی او خپل لاسونه مو زخمی کړل، نو تاسو اووایئ چې څوک ما سره هر وخت په کور کښې اوسیږی نوځما به څه حال وی؟ لهذا تاسو ما په دې معامله کښې معذوره اوګنړئی.

قوله: به:دا د یو سوال مقدر جواب دې

سوال: دا دې چې د (آمره) ضمیر په ظاهره خو یوسف علیه السلام ته راجع دې او که داسې وی نو (ما) موصوله به بغیر د عائد نه پاتې شی؟

جواب: د جواب حاصل داد ې، چې د (آمره) ضمیر په ظاهره یوسف علیه السلام ته راجع نه دې بلکه (ما) موصوله ته راجع دې.او (آمره) په اصل کښې (آمر به) وو، باء مو حذف کړه ځنګه چې په (امرتک الخیر) یه اصل کښې (امرتک بالخیر) وو

قوله: لهم:ای للعزیز واهله

قوله: ان یسجنوه:دا د یو اعتراض جواب دې، اعتراض دادې چې (بدا) فعل دې او ددې فاعل لیسجننه دې، حالانکه فعل د فاعل نه بغیر نه راځی، لهذا فعل د فاعل نه بغیر پاتې شو کوم چې ناجائز ده.

جواب: د جواب حاصل داد ې، چې د (بدا) فاعل لیسجننه نه دې، بلکه فاعل ئې مقدر دې

او هغه (ان یسجنوه) دې.(ان یسجنوه) د (ان) مصدریه د وجه په تاویل د مصدر سره د (بدا) فاعل دې، تقدیري عبارت دادې بداسجنه.

**[ایاتوله:۳۶ـ۴۲]**

(وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيَانِ) غلامان للملك احدهما ساقيه والآخر صاحب طعامه فرأياه يعبر الرؤيا فقالا لنختبرنه (قَالَ أَحَدُهُمَا) وهو الساقي (إِنِّي أَرَانِي أَعْصِرُ خَمْرًا) اي عنبا (وَقَالَ الْآخَرُ) وهو صاحب الطعام (إِنِّي أَرَانِي أَحْمِلُ فَوْقَ رَأْسِي خُبْزًا تَأْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ نَبِّئْنَا) خبرنا (بِتَأْوِيلِهِ) بتعبيره (إِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ) (قَالَ) لهما مخبرا انه عالم بتعبير الرؤيا (لَا يَأْتِيكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقَانِهِ) في منامكما (إِلَّا نَبَّأْتُكُمَا بِتَأْوِيلِهِ) في اليقظة (قَبْلَ أَنْ يَأْتِيَكُمَا) تأويله (ذَٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِي رَبِّي) فيه حث على ايمانهما ثم قواه بقوله (إِنِّي تَرَكْتُ مِلَّةَ) دين (قَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ) تأكيد (كَافِرُونَ) (وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ آبَائِي إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ مَا كَانَ) ينبغي (لَنَا أَنْ نُشْرِكَ بِاللَّهِ مِنْ) زائدة (شَيْءٍ) لعصمتنا (ذَٰلِكَ) التوحيد (مِنْ فَضْلِ اللَّهِ عَلَيْنَا وَعَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ) وهم الكفار (لَا يَشْكُرُونَ) الله فيشركون ثم صرح بدعائهما إلى الإيمان فقال (يَا صَاحِبَيِ) ساكني (السِّجْنِ أَأَرْبَابٌ مُتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ) خير استفهام تقرير (مَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِهِ) اي غيره (إِلَّا أَسْمَاءً سَمَّيْتُمُوهَا) سميتم بها اصناما (أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ بِهَا) بعبادتها (مِنْ سُلْطَانٍ) حجة وبرهان (إِنِ) ما (الْحُكْمُ) القضاء (إِلَّا لِلَّهِ) وحده (أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ذَٰلِكَ) التوحيد (الدِّينُ الْقَيِّمُ) المستقيم (وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ) وهم الكفار (لَا يَعْلَمُونَ) ما يصيرون إليه من العذاب فيشركون (يَا صَاحِبَيِ السِّجْنِ أَمَّا أَحَدُكُمَا) اي الساقي فيخرج بعد ثلاث (فَيَسْقِي رَبَّهُ) سيده (خَمْرًا) على عادته (وَأَمَّا الْآخَرُ) فيخرج بعد ثلاث (فَيُصْلَبُ فَتَأْكُلُ الطَّيْرُ مِنْ رَأْسِهِ) هذا تأويل رؤياكما فقالا ما رأينا شيئا فقال (قُضِيَ) تم (الْأَمْرُ الَّذِي فِيهِ تَسْتَفْتِيَانِ) سألتما عنه صدقتما ام كذبتما (وَقَالَ لِلَّذِي ظَنَّ) ايقن (أَنَّهُ نَاجٍ مِنْهُمَا) وهو الساقي (اذْكُرْنِي عِنْدَ رَبِّكَ) سيدك فقل له إن في السجن غلاما محبوسا ظلما فخرج (فَأَنْسَاهُ) اي الساقي (الشَّيْطَانُ ذِكْرَ) يوسف عند (رَبِّهِ فَلَبِثَ) مكث يوسف (فِي السِّجْنِ بِضْعَ سِنِينَ) قيل سبعا وقيل اثنتي عشرة

ترجمه: چنانچه یوسف علیه السلام ئې جیل کښې واچولو هغه سره دوه نور ځوانان هم جیل ته داخل شول، کوم چې د بادشاه غلامان وو، یو په هغوی کښې د بادشاه ساقي وو،او دویم د بادشاه د مطبخ ذمه دار،دې دوارو ته معلومه شوه چې یوسف علیه السلام د خوبونو تعبیر اوباسي نو دوارو مشوره اوکړه چې مونږ به ده نه خامخا امتحان اخلو، په دې کښې یو کوم چې ساقي وو اووئیل چې ما خپل ځان اولیدلو چې ځه انګور نچوړوم، او دویم د مطبخ ذمه دار اووئیل چې ما په سر باندې روټۍ ایښودلې دی د هغې نه مرغۍ خوري، نو مونږ ته تاسو ددې تعبیر راکړئ، مونږ تاسو نیک کس ګڼړو،یوسف علیه السلام هغوی ته دا ښودلو د پاره چې زه د خوبونو

تعبیر پیژنم، وې وئیل چې کوم خوراکونو (د څکلو څیز) تاسو ته په خوب کښې درکولې شي د بیداریدو نه پس ما د هغې تعبیر اوخودلو، د هغې تعبیر په خارج کښې د ښکاره کیدو نه مخکښې، دا هغه علم دې کوم چې ماته خپل رب خودلې دې، په دې مقوله کښې دې دوارو لره په ایمان باندې آماده کول وو، بیا ئې د دې تائید په خپل قول (انی ترکت ملة، الخ) سره کړې دې، ما خو د هغه خلقو دین پریښودې دې څوک چې په الله باندې ایمان نه ساتی، او دا خلق د آخرت هم منکر دی، دویم (هم) د اولنی (هم) تاکید دې. او ما خو د خپل پلار نیکه ابراهیم، اسحق او د یعقوب (علیهم السلام) دین اختیار کړې دې، زمونږ د پاره زمونږ د عصمت د وجې هیڅ کله مناسب نه ده چې مونږ الله سره څوک شریک اونیسو، دا توحید په مونږ او په ټولو خلقو باندې د الله فضل دې، خو اکثر خلق چې هغه کافران دی د الله شکر نه اوباسی، چې د هغې د وجې نه هغوی شرک کوی، بیا ئې په ښکاره هغوی ته د ایمان دعوت ورکولو سره اووئیل اې څما د قید خانې ملګرو تاسو خپله سوچ اوکړئ چې ډیر جدا جدا خدیان ښه دی که یو، چې هغه الله دې بهتر دې چې څوک په ټولو باندې غالب دې استفهام د تقریر دپاره دې د هغه نه علاوه د چا چې تاسو عبادت کوئی هغه دد ې نه سوا نور هیڅ نه دی، چې یو څو نومونه دی کوم چې تاسو او ستاسو پلار نیکه ایښودې دی، او الله د هغوی په عبادت باندې څه سند او دلیل نازل کړې نه دې، حکم (فیصله) صرف د الله وحده لاشریک له دې، هغه حکم ورکړې دې چې صرف د هغه بندګی به کوئی، او دا توحید صحیح دین دې خو اکثر خلق چې هغه کافران دی هغه عذاب لره نه پیژنی، کوم طرف ته چې دوی ځی، د دغه وجه نه دوی شرک کوی، اې څما د جیل ملګرو په تاسو کښې یو یعنی ساقی به درې ورځو نه پس د جیل نه خلاص شی، نو دې به د مخکښې پشان خپل مالک باندې شراب ورڅکوی، دا د هغه د خوب تعبیر دې، اودویم به هم درې ورځې پس د جیل نه خلاص شی نو هغه به په پهانسۍ باندې خیژولې شی، مرغۍ به د هغه سر په شکولو شکولو سره خوری، دا د هغه دخوب تعبیر دې، نو هغه دوارو اووئیل چې مونږ خو څه خوب موب لیدلې نه دې، نو یوسف ﷺ اوفرمائیل چې د څه چه تاسو سوال کړې وو د هغې فیصله کړې شوې ده، اګرچې تاسو رشتیا وئیلې وی یا دروغ، او په دوارو کښې چې د چا د خلاصیدولو یقین وو هغه ته ئې اووئیل، او هغه ساقی وو، خپل مالک سره څما ذکر اوکړه، او هغه ته اووایه چې یو غلام په جیل کښې په ظلم سره بند دې، چنانچه هغه د قید خانې نه خلاص شو، خو شیطان د ساقی نه د خپل مالک مخې ته د یوسف ﷺ ذکر کول هیر کړل، چې د هغې د وجې نه یوسف ﷺ په قید کښې څوکاله نور پاتې شو وئیلې شوې دی چې اووه کاله وو، او وئیلې شوې دی چې دولس کاله پاتې شو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** فجن: په دې حذف کښې اشاره ده چې واؤ عاطفه دې، اود (دخل) عطف په

محذوف باندي دي، او محذوف سجن دي،

قوله: الملك: د هغې بادشاه نوم ریان بن الولید وو.

قوله: ای عنبا: دا د مایؤل الیه په اعتبار سره مجاز دي، لهذا دا شبه ختمه شوه چې خمر د نچوړولو څیز نه دي.

قوله: فبرانه عالم بتعبیر الرؤیا: دا د دې سوال جواب دې چې د یوسف علیه السلام جواب د سوال مطابق نه دي؟

قوله: فی منامکما: ددې اضافې مقصد هغه تفسیر دفع کول دی چې کوم بعضې مفسرینو د «طعام ترزقانه» په هغه خوراک سره کړې دې کوم چې قیدیانو ته ورکولې شی، ځکه ددې تفسیر مطابق د دواړو قیدیانو په سوال او د یوسف علیه السلام په تعبیر کښې هیڅ مطابقت نه معلومیږي، ځکه چې سوال په خوب کښې د خوراک د څیزونو په باره کښې وو او جواب په بیدارئی کښې د خوراک باره کښې دې.

قوله: ذلکما: دا اسم اشاره د بعید دپاره ده، او مراد تري نه د خوب د تعبیر علم دي

قوله: ذلك التوحید: د اسم اشاره بعید په ځائې اسم اشاره قریب راوړل د توحید اوچتې مرتبې او د عظمت ښکاره کولو د پاره دی،

قوله: ثم صرح بدعائهما الی الایمان: یعنی په ماقبل کښې د توحید دعوت ته کنایة اشاره وه، اودلته ښکاره طور سره دې،لهذا دتکرار شبه ختمه شوه.

قوله: صاحبی: دا د صاحب تثنیه ده، په اصل کښې صاحبین وو، منادی مضاف کیدو د وجه د آخر نه نون اوغورزیدلو.

قوله: لعصمتنا: ددې اضافې مقصد د یو سوال جواب دې.

سوال: دا دې چې حضرت یوسف علیه السلام دا خبره چې زمونږ د پاره دا بالکل مناسب نه دی چې مونږ څوک د الله تعالی سره شریک کړو، نو دا نامناسب کیدل صرف یوسف علیه السلام او د هغه د پلار نیکه د پاره نامناسب او ناخوښه نه دی بلکه دا خو د ټولو انسانانو د پاره نامناسب دی، بیا د یوسف «خپل خان سره خاص کول څرنګه صحیح دی؟

جواب: لعصمتنا، اضافه کولو سره د دې سوال جواب ورکول دی چې د کفر او شرک نامناسب کیدل زمونږ د پاره ځکه نه دی چې هغه حرام دی، بلکه ځکه نامناسب دی چې مونږ د هغې نه پاک او صفا ساتلې شی یو،په خلاف د غیر د انبیاء، چې هغوی د کفرنه پاک او صفا نه دی ساتلې شوې،اګر چې کفر اوشرک د هغوی د پاره حرام کړې شوی دی.

قوله: سمیتموها: د سمیتموها تفسیر په سمیتم بها سره د کولو مقصد د یو اعتراض جواب

دي، اعتراض دادې چې د (ها) ضمیر مرجع (اسماء) ده، لهذا معنی به داسې شي چې هغه یو څو نومونه دي کوم چې تاسو اېښودلي دي، دغه شان د اسماؤ د پاره د اسماء کېدل لازمیږي، او دا صحیح نه ده؟

د جواب حاصل دا دې چې حرف جر د ضمیر منصوب نه مخکښې محذوف دې، تقدیری عبارت څه دا رنګه دې، سمیتم بها، او دا داسې ده څنګه چې ونیلې شي، سمیته زیدا ای سمیت بزید.

**قوله**: ما یصبرون: دا د یعلمون مفعول دې.

**[ایاتوله: ۴۳ـ ۵۲]**

(وَقَالَ الْمَلِكُ) مَلِك مِصْر الرَّيَّان بن الْوَلِيد (إِنِّي أَرَى) أَيْ رَأَيْت (سَبْعَ بَقَرَاتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ) يَبْتَلِعهُنَّ (سَبْعٌ) مِنْ الْبَقَر (عِجَافٌ) جَمْع عَجْفَاء (وَسَبْعَ سُنْبُلَاتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ) أَيْ سَبْع سُنْبُلَات (يَابِسَاتٍ) قَدْ الْتَوَتْ عَلَى الْخُضْر وَعَلَتْ عليها (يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ أَفْتُونِي فِي رُؤْيَايَ) بَيِّنُوا لِي تَعْبِيرهَا (إِنْ كُنْتُمْ لِلرُّؤْيَا تَعْبُرُونَ) فاعبُرُوهَا (قَالُوا) هذه (أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ) اخلاط (وَمَا نَحْنُ بِتَأْوِيلِ الْأَحْلَامِ بِعَالِمِينَ) (وَقَالَ الَّذِي نَجَا مِنْهُمَا) أَيْ مِنَ الْفَتَيَيْنِ وَهُوَ السَّاقِي (وَادَّكَرَ) فِيهِ إبْدَال التَّاء فِي الْأَصْل دَالًا وَإِدْغَامهَا فِي الدَّال أَيْ تَذَكَّرَ (بَعْدَ أُمَّةٍ) حِين حَال يُوسُف (أَنَا أُنَبِّئُكُمْ بِتَأْوِيلِهِ فَأَرْسِلُونِ) فَأَرْسَلُوهُ فَأَتَى يُوسُف فَقَالَ يَا (يُوسُفُ أَيُّهَا الصِّدِّيقُ) الْكَثِير الصِّدْق (أَفْتِنَا فِي سَبْعِ بَقَرَاتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَسَبْعِ سُنْبُلَاتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ يَابِسَاتٍ لَعَلِّي أَرْجِعُ إِلَى النَّاسِ) أَيْ الْمَلِك وَأَصْحَابه (لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُونَ) تَعْبِيرهَا (قَالَ تَزْرَعُونَ) أَيْ ازْرَعُوا (سَبْعَ سِنِينَ دَأَبًا) مُتَتَابِعَة وَهِيَ تَأْوِيل السَّبْع السِّمَان (فَمَا حَصَدْتُمْ فَذَرُوهُ) أَيْ اُتْرُكُوهُ (فِي سُنْبُلِهِ) لِئَلَّا يَفْسُد (إِلَّا قَلِيلًا مِمَّا تَأْكُلُونَ) فَادْرُسُوهُ (ثُمَّ يَأْتِي مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ) أَيْ السَّبْع الْمُخْصِبَات (سَبْعٌ شِدَادٌ) مُجْدِبَات صِعَاب وَهِيَ تَأْوِيل السَّبْع الْعِجَاف (يَأْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ لَهُنَّ) مِنْ الْحَبّ الْمَزْرُوع فِي السِّنِينَ الْمُخْصِبَات أَيْ تَأْكُلُونَهُ فِيهِنَّ (إِلَّا قَلِيلًا مِمَّا تُحْصِنُونَ) تَدَّخِرُونَ (ثُمَّ يَأْتِي مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ) أَيْ السَّبْع الْمُجْدِبَات (عَامٌ فِيهِ يُغَاثُ النَّاسُ) بِالْمَطَرِ (وَفِيهِ يَعْصِرُونَ) الْأَعْنَاب وَغَيْرهَا لِخِصْبِهِ (وَقَالَ الْمَلِكُ) لَمَّا جَاءَهُ الرَّسُول وَأَخْبَرَهُ بِتَأْوِيلِهَا (ائْتُونِي بِهِ) أَيْ بِالَّذِي عَبَّرَهَا (فَلَمَّا جَاءَهُ) أَيْ يُوسُف (الرَّسُولُ) وَطَلَبَهُ لِلْخُرُوجِ (قَالَ) قَاصِدًا إظْهَار بَرَاءَته (ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ) أَنْ يَسْأَل (مَا بَالُ) حَال (النِّسْوَةِ اللَّاتِي قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ إِنَّ رَبِّي) سَيِّدِي (بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ) فَرَجَعَ فَأَخْبَرَ الْمَلِك فَجَمَعَهُنَّ (قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ) شَأْنكُنَّ (إِذْ رَاوَدْتُنَّ يُوسُفَ عَنْ نَفْسِهِ) هَلْ وَجَدْتُنَّ مِنْهُ مَيْلًا إلَيْكُنَّ (قُلْنَ حَاشَ لِلَّهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِنْ سُوءٍ قَالَتِ امْرَأَتُ الْعَزِيزِ الْآنَ حَصْحَصَ) وَضَحَ (الْحَقُّ أَنَا رَاوَدْتُهُ عَنْ نَفْسِهِ وَإِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ) فِي قَوْله (هِيَ رَاوَدَتْنِي عَنْ نَفْسِي) فَأُخْبِرَ يُوسُف بِذَلِكَ فَقَالَ (ذَلِكَ) أَيْ طَلَب الْبَرَاءَة (لِيَعْلَمَ) الْعَزِيز (أَنِّي لَمْ أَخُنْهُ) فِي أَهْله (بِالْغَيْبِ) حَال (وَأَنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي كَيْدَ الْخَائِنِينَ)

**ترجمه**: د مصر بادشاه ریان ابن ولید اووئیل چې ما خوب لیدلې دې چې اووه موټې غواګانې اووه تېپې غواګانې خوری عجاف د عجفاء جمع ده، او اووه شنه وږی دی، او نور اووه اوچ وږی

دي او اوچ وگی شنو وګو پوري انښتي دي او شنه وګی، او اوچ وګی په شنو وګو باندې غالب شوی دي، اې درباريانو تاسو ما ته د خوب تعبير اوښايئ که چرې تاسو تعبير ورکولې شئ نو اووايئ درباريانو جواب ورکړو دا د منتشر خيالاتو خوبونه دي، او مونږ د منتشر خيالاتو خوبونو تعبير نشو ورکولې، او هغه ځوان کوم چې په دوو ځوانانو کښې د جيل نه خلاص شوې وو او هغه ساقی وو هغه ته اوږدې مدې نه پس د يوسف عليه السلام حال ورياد شو. په (وادکر) کښې اصل کښې تاء په دال سره بدله شوې ده، او د دال په دال کښې ادغام شوی دې، يعنی را ياد شو هغه اووئيل چې زه به تاسو ته ددې تعبير درکړم ماته اجازت راکړئ، چنانچه هغه ته يوسف عليه السلام خواله د تلو اجازت ورکړې شو. هغه لاړو او وې وئيل اې رشتونی يوسف عليه السلام! تاسو مونږ ته ددې خوب تعبير اوښايئ چې اووه موټې غواګانې دی چې هغه اووه تېټې غواګانې خوری، او اووه شنه وګی دی او اووه نور اوچ، چې څه خلقو ته يعنی بادشاه او د هغه درباريانو ته لاړ شم او د خوب تعبير ورته واوروم، او هغوی د خوب تعبير اوپيژنی.يوسف عليه السلام اوفرمائيل چې تاسو اووه کاله پټی اوکرئ (دابا) د همزې سکون سره او فتحې سره، په معنی د مسلسل، دا د اووه موټې غواګانو تعبير دې او چې کوم فصل تاسو ريبئ نو هغه په خوشو (بهنړو) کښې کيږدئ چې غله خرابيږی نه، صرف د خوراک د ضرورت مطابق هم غله د خوشې نه اوباسئ، بيا دې فراخه اووه کالو نه پس اووه کالو نه د قحط يعنی د تکليف ورځې به راځی او دا د اووه کمزورو غواګانو تعبير دې، د فراخ سالئ د کالونو راختلې غله کوم چې تاسو د قحط کالونو د پاره جمع کړې ده، د قحط کالونو په هغه وخوری، يعنی تاسو په دې کالونو کښې هغه جمع شوې غله اوخورئ، خو په دې کښې ډير لږه چې تاسو به حفاظت سره وساتئ پاتې به وی بيا دې نه پس به يو کال داسې راځی يعنی د خشک سالئ د اووه کالونو نه پس په دې کښې به په خلقو باندې د باران په ذريعه فرياد رسی کولې شی يعنی ښه باران به کيږی او په دې کال کښې به خلق د فراخوالی د وجې نه ډير انګور وغيره نچوړوی چې کله قاصد واپس راغلو او بادشاه ته ئې تعبير واورولو نو بادشاه اووئيل چا چې ددې خوب تعبير ورکړې دې هغه ماته راولئ، کله چې قاصد يوسف عليه السلام ته راغلو او ده ته ئې د جيل نه د بهر راتلو درخواست اوکړو نو يوسف عليه السلام قاصد ته د خپل ځان د بې ګناه ثابتولو د پاره اوفرمائيل خپل بادشاه ته واپس لاړ شه او د هغه نه تپوس اوکړه چې د هغه ښځو حقيقی واقعه څه ده چا چې خپل لاسونه کټ کړې وو؟ ځما آقا (عزيز) ددې ښځو د چال نه ډير ښه خبردار دې چنانچه قاصد واپس لاړو او بادشاه ته ئې دا صورت حال بيان کړو بادشاه هغه ښځې راجمع کړې او د هغوی نه ئې تپوس اوکړو ستاسو څه معامله وه چې تاسو يوسف عليه السلام د هغه د نفس په باره کښې دهوکه کولو او د غولولو کوشش کړې وو آيا تاسو د هغه لږ شوق هم ځان طرف ته کتلې وو؟ هغوی جواب ورکړو چې معاذ الله حاشا وکلا مونږ په هغه کښې هيڅ خرابی

ليدلې نه ده، د عزيز ښځې اووئيل اوس خو رشتيا خبره ښکاره شوه، ما هغه لره د خپل ذات په باره کښې د دهوکه کولو کوشش کړې وو هغه يقينا په خپل خبره (هى راودتنى عن نفسى) کښې رشتونې دې، يوسف ﷺ ته ددې اطلاع ورکړې شوه نو وئې وئيل دا بې گناهى ثابتول وو خکه چې عزيز ته پته اولگى چې د هغه پشې شاه ما د هغه سره خيانت نه دې کړې (بالغيب) د (اخنه) فاعل يا د مفعول نه حال دې او دا چې يقينا الله د خيانت کونکو مکر چلولو ته نه پرېږدى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** رايت: په دې کښې اشاره ده چې مضارع د ماضى په معنى کښې ده د ماضى د حالت د منظرکشئ د پاره په مضارع سره تعبير اوکړې شو.

**قوله:** عجاف جمع عجفاء: د عجفاء جمع ده نه چې د عجيف،، خکه چې دا د بقره صفت دې،

**سوال:** د افعل او فعلاء جمع د فعال په وزن نه راځى، د قياس مطابق عجف پکار وو، څنگه چې د حمراء جمع حمر راځى.

**جواب:** دادحمل النقيض على النقيض د قبيلې نه دې، عجاف چونکه د سمان ضد دې، خکه ئې عجاف په سمان قياس کولو سره عجاف جمع راوړه.

**قوله:** سبع سنبلات: ئې په سبع بقرات باندې قياس کړو د سنبلات نه ئې سبع حذف کړو، کوم چې مفسر علام ښکاره کړې ده.

**سوال:** د غواگانو حالت ئې بيان کړو چې اووه تيې (لاغرې) غواگانې به اووه موټې غواگانې خورى، خو د سنبلات حالت ئې بيان نه کړو کوم چې مفسر علام په التوت سره ذکر کړې دې؟

**جواب:** د بقرات په حالت باندې قياس د وجې د سنبلات حالت ئې بيانول پرېښودل

**قوله:** فاعبروها: دا حذف د جزاء طرف ته اشاره ده.

**قوله:** هذه: په دې کښې اشاره ده چې (اضغاث) د مبتدأ محذوف خبر دې، لهذا د کلام د غير مفيد کېدلو شبه ختمه شوه، اضغاث د ضغث جمع ده، د وښو گېډئى ته وائى، چې په هغې کښې اوچ او لوند هر قسمه وابنه وى، دلته هغه پريشانه خوبونه مراد دى چې په هغې کښې د وسوسو او د نفس د خبرو بيان وى.

**قوله:** احلام: د حلم جمع ده، خوب ته وائى

**قوله:** امة: د امت نه، دلته د خلقو ډله مراد نه ده، بلکه د ورځو ډله يعنى اوږده زمانه مراد ده، مفسر علام د امة تفسير په (حين) سره کولو کښې دې طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله:** حال يوسف: په دې کښې اشاره ده چې په (وادکر) کښې واؤ حاليه دې، لهذا د عامل (قال) او معمول (انا انبئکم) په مينځ کښې د فصل اعتراض ختم شو.

قوله: يوسف: دا د (ادكر) مفعول دې.

قوله: بالمطر: په دې كښې اشاره ده چې يغاث، د غيث نه دې، نه چې د غوث نه.

قوله: سيدي: د (ربي) تفسير ئې په (سيدي) سره كولو كښې اشاره اوكړه چې د (ربي) نه سردار (عزيز) مراد دې، نه چې خالق، الله.

پاره نمبر ۱۳ [وَمَا أُبَرِّئُ نَفْسِي] [ايات قوله: ۵۳ - ۵۷]

ثُمَّ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ فَقَالَ ﴿وَمَا أُبَرِّئُ نَفْسِي﴾ مِنَ الزَّلَلِ ﴿إِنَّ النَّفْسَ﴾ الْجِنس ﴿لَأَمَّارَةٌ﴾ كَثِيرَةُ الْأَمْرِ ﴿بِالسُّوءِ إِلَّا مَا﴾ بمعنى من ﴿رَحِمَ رَبِّي﴾ فعصمه ﴿إِنَّ رَبِّي غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ ﴿وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ أَسْتَخْلِصْهُ لِنَفْسِي﴾ أجعَلهُ خالِصًا لِي دُون شَرِيك فَجَاءَهُ الرَّسُول وَقَالَ أَجِبِ الْمَلِك فَقَامَ وَوَدَّعَ أَهْلَ السِّجْنِ وَدَعَا لهم ثم اغتسل ولبس ثيابا حسنا وَدَخَلَ عَلَيْهِ ﴿فَلَمَّا كَلَّمَهُ قَالَ﴾ لَهُ ﴿إِنَّكَ الْيَوْمَ لَدَيْنَا مَكِينٌ أَمِينٌ﴾ ذُو مَكَانَة وَأَمَانَة عَلَى أمرنَا فَمَاذَا تَرَى أَنْ نَفْعَل قَالَ اجْمَعْ الطَّعَام وَازْرَعْ زَرْعًا كَثِيرًا فِي هَذِهِ السِّنِينَ الْمُخْصِبَة وَادَّخِرْ الطَّعَام فِي سُنْبُله فَتَأْتِي إِلَيْك الْخَلْق لِيَمْتَارُوا مِنْك فَقَالَ وَمَنْ لِي بِهذا ﴿قَالَ﴾ يُوسُف ﴿اجْعَلْنِي عَلَى خَزَائِنِ الْأَرْضِ﴾ أَرْض مِصْر ﴿إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٌ﴾ ذُو حِفْظ وَعِلْم بِأَمْرِهَا وَقِيلَ كَاتِب حَاسِب ﴿وَكَذَٰلِكَ﴾ كَإِنْعَامِنَا عَلَيْهِ بِالْخَلَاصِ مِنَ السِّجْن ﴿مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ﴾ أَرْض مِصْر ﴿يَتَبَوَّأُ﴾ يَنْزِل ﴿مِنْهَا حَيْثُ يَشَاءُ﴾ بَعْد الضِّيق وَالْحَبْس وَفِي الْقِصَّة أَنَّ الْمَلِك تَوَّجَهُ وَخَتَّمَهُ وَوَلَّاهُ مَكَان الْعَزِيز وَعَزَلَهُ وَمَاتَ بَعْد فَزَوَّجَهُ امْرَأَته فَوَجَدَهَا عَذْرَاء وَوَلَدَتْ لَهُ وَلَدَيْنِ وَأَقَامَ الْعَدْل بِمِصْرَ ودانت له الرقاب ﴿نُصِيبُ بِرَحْمَتِنَا مَنْ نَشَاءُ وَلَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ﴾ ﴿وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ﴾ من اجر الدنيا ﴿لِلَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ﴾

ترجمه: بيا ئې د الله ته عاجزي پيش كړه او بيا يوسف عليه السلام اووئيل څه د خپل نفس د كوتاهو نه پاكوالې نه بيانوم جنس نفس خو بې شكه د خرابو كارونو په دير والى سره حكم كولو والا دې، خو دا چې څما پروردگار رحم اوكړي، نو هم هغه بچ كوي، (ما) په معنى د (من دې. بادشاه اووئيل دې ماته راولئ چې دې څه د خپل ځان د پاره خاص كړم، يعنى هغه څه بغير د شريک نه حاصل كړم، چنانچه قاصد يوسف عليه السلام ته راغلو او وئې وئيل چې د بادشاه حكم اومنه، نو حضرت يوسف عليه السلام پاسيدلو او د جيل د ملګرو نه ئې رخصت واخستلو، او هغوى ته ئې دعا اوكړه بيا ئې غسل اوكړو او ښه لباس ئې واچولو او د بادشاه په خدمت كښې حاضر شو، چنانچه چې كله په خپل مينځ كښې خبرې اوشوې نو بادشاه اووئيل چې تاسو څما په خوا كښې اوچت قدر لرئ، او ستاسو په ايماندارئ باندې مونږ ته پورا بهروسه ده، يعنى تاسو زمونږ په معاملاتو كښې بااختيار او امين يئ، اوس ستاسو څه مشوره ده؟مونږ له څه كول پكار دي؟ حضرت يوسف عليه السلام اوفرمائيل چې غله ذخيره كړئ، او په دې شنو كالونو كښې ښه پټى اوكرئ، او غله هم د هغې په وږو كښې وساتئ، خلق به تاسو ته د غلې د پاره راځي، نو بادشاه اووئيل چې څما د طرف نه به ددې څوک ذمه وار

وی، ؟حضرت یوسف علیه السلام اوویل د مصر د ملک خزانې ما حواله کړئ زه حفاظت کولو والایم، او علم هم لرم، یعنی محافظ هم یم او د دې معاملاتو او طریقه کار نه خبردار هم یم، او ونیلې شوی دی چې زه لیکل هم پیژنم او حساب دان هم یم څنګه چې مونږ د جیل نه د راویستلو په صورت کښې په هغه باندې انعام اوکړو دغه شان مونږ یوسف علیه السلام ته په مصر کښې دتنګئ او قید نه پس حکومت ورکړو په داسې طریقه چې په ملک کښې کوم ځائې غواړی اوسیږی دې.قصه دا چې بادشاه هغه ته تاج وریسر کړو او هغه ته ئې خپل د بادشاهئ مهر ورکړو او د عزیز په منصب باندې ئې هغه کینولو، او عزیز ئې معزول کړو، د هغه نه پس عزیز وفات شو نو بادشاه یوسف علیه السلام سره د زلیخې بی بی نکاح اوکړه، حضرت یوسف علیه السلام هغه جینئ اوموندله، د حضرت یوسف علیه السلام د هغې نه دوه بچی اوشول، او یوسف علیه السلام په مصر کښې داسې انصاف قائم کړو چې ښځونه د هغه مخکښې تیټ شول مونږ چې چاته غواړو خپل رحمت وررسوو، او د نیکوکارو اعمال نه ضائع کوو، او یقینا د ایمان والو او د پرهیزګارانو په آخرت کښې اجر د دنیا د اجر نه ډیر بهتر دې

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** وماأبرءنفسي: دا جمله د (ذلک لیعلم) نه حال دې، یعنی د ذلک عامل مقدر یعنی اطلب البراة لیعلم، الخ نه حال دې، مطلب دادې چې اطلب البراءة نه چې کوم تنزیه د نفس معلومیږی، دهغې نه د عزیز مصر د ښځې په معامله کښې بې ګناهی مراد ده، نه چې مطلقا د لغزشو اوخطاګانو نه، خلاصه دا ده، چې په ماقبل کښې ما کوم طلب برا ت کړې دې د هغې نه تنزیه نفس مراد نه دې

**قوله:** الجنس: ای الذی فی ضمن جمیع الافراد: که مفسر علام د جنس په ځائې د استغراق نه تعبیر کړې وو نو ښه به وه.

**قوله:** ما: په معنی د (من) کښې دې ځکه چې د نفس نه مراد ذوی العقول دی او دا هم جائز ده چې (ما رحم) په معنی کښې د زمانې وی، نو په دې صورت کښې به (ما)، د (من) په معنی کښې داخستلو ضرورت نه وی، ای الاوقت رحمة ربی، تقدیری عبارت به دا وی انها امارة فی کل وقت الاوقت العصمة

**قوله:** اجعله: په دې کښې اشاره ده چې استخلصه په معنی د تصییر کښې دې، ځکه چې د طلب معنی صحیح نه ده.

**قوله:** فقال من لی بهذا: ای من یضمن هذاالاجل؟

**قوله:** ومات بعده: ای بعدالعزل.

[ايات ونه ۵۸ ـ ۶۸]

وَدَخَلَتْ سِنُو الْقَحْطِ وَأَصَابَ أَرْضَ كَنْعَانَ وَالشَّامَ ﴿وَجَاءَ إِخْوَةُ يُوسُفَ﴾ إِلَّا بِنْيَامِينَ لِيَمْتَارُوا لِمَا بَلَغَهُمْ أَنَّ عَزِيزَ مِصْرَ يُعْطِي الطَّعَامَ بِثَمَنِهِ ﴿فَدَخَلُوا عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ﴾ أَنَّهُمْ إِخْوَتُهُ ﴿وَهُمْ لَهُ مُنْكِرُونَ﴾ لَا يَعْرِفُونَهُ لِبُعْدِ عَهْدِهِمْ بِهِ وَظَنِّهِمْ هَلَاكَهُ فَكَلَّمُوهُ بِالْعِبْرَانِيَّةِ فَقَالَ كَالْمُنْكِرِ عَلَيْهِمْ مَا أَقْدَمَكُمْ بِلَادِي فَقَالُوا لِلْمِيرَةِ فَقَالَ لَعَلَّكُمْ عُيُونٌ قَالُوا مَعَاذَ اللهِ قَالَ فَمِنْ أَيْنَ أَنْتُمْ قَالُوا مِنْ بِلَادِ كَنْعَانَ وَأَبُونَا يَعْقُوبُ نَبِيُّ اللهِ قَالَ وَلَهُ أَوْلَادٌ غَيْرُكُمْ قَالُوا نَعَمْ كُنَّا اثْنَيْ عَشَرَ فَذَهَبَ أَصْغَرُنَا هَلَكَ فِي الْبَرِّيَّةِ وَكَانَ أَحَبَّنَا إِلَيْهِ وَبَقِيَ شَقِيقُهُ فَاحْتَبَسَهُ لِيَتَسَلَّى بِهِ عَنْهُ فَأَمَرَ بِإِنْزَالِهِمْ وَإِكْرَامِهِمْ ﴿وَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ﴾ وَفَّى لَهُمْ كَيْلَهُمْ ﴿قَالَ ائْتُونِي بِأَخٍ لَكُمْ مِنْ أَبِيكُمْ﴾ أَيْ بِنْيَامِينَ لِأَعْلَمَ صِدْقَكُمْ فِيمَا قُلْتُمْ ﴿أَلَا تَرَوْنَ أَنِّي أُوفِي الْكَيْلَ﴾ أُتِمُّهُ مِنْ غَيْرِ بَخْسٍ ﴿وَأَنَا خَيْرُ الْمُنْزِلِينَ﴾ ﴿فَإِنْ لَمْ تَأْتُونِي بِهِ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِنْدِي﴾ أَيْ مِيرَةٌ ﴿وَلَا تَقْرَبُونِ﴾ نَهْيٌ أَوْ عَطْفٌ عَلَى مَحَلِّ فَلَا كَيْلَ أَيْ تُحْرَمُوا وَلَا تَقْرَبُوا ﴿قَالُوا سَنُرَاوِدُ عَنْهُ أَبَاهُ﴾ سَنَجْتَهِدُ فِي طَلَبِهِ مِنْهُ ﴿وَإِنَّا لَفَاعِلُونَ﴾ ذَلِكَ ﴿وَقَالَ لِفِتْيَتِهِ﴾ وَفِي قِرَاءَةٍ لِفِتْيَانِهِ غِلْمَانِهِ ﴿اجْعَلُوا بِضَاعَتَهُمْ﴾ الَّتِي أَتَوْا بِهَا ثَمَنَ الْمِيرَةِ وَكَانَتْ دَرَاهِمَ ﴿فِي رِحَالِهِمْ﴾ أَوْعِيَتِهِمْ ﴿لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُونَهَا إِذَا انْقَلَبُوا إِلَى أَهْلِهِمْ﴾ وَفَرَّغُوا أَوْعِيَتَهُمْ ﴿لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾ إِلَيْنَا لِأَنَّهُمْ لَا يَسْتَحِلُّونَ إِمْسَاكَهَا ﴿فَلَمَّا رَجَعُوا إِلَى أَبِيهِمْ قَالُوا يَا أَبَانَا مُنِعَ مِنَّا الْكَيْلُ﴾ إِنْ لَمْ تُرْسِلْ أَخَانَا إِلَيْهِ ﴿فَأَرْسِلْ مَعَنَا أَخَانَا نَكْتَلْ﴾ بِالنُّونِ وَالْيَاءِ ﴿وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾ ﴿قَالَ هَلْ﴾ مَا ﴿آمَنُكُمْ عَلَيْهِ إِلَّا كَمَا أَمِنْتُكُمْ عَلَى أَخِيهِ﴾ يُوسُفَ ﴿مِنْ قَبْلُ﴾ وَقَدْ فَعَلْتُمْ بِهِ مَا فَعَلْتُمْ ﴿فَاللهُ خَيْرٌ حِفْظًا﴾ وَفِي قِرَاءَةٍ حَافِظًا تَمْيِيزٌ كَقَوْلِهِمْ لِلهِ دَرُّهُ فَارِسًا ﴿وَهُوَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ﴾ فَأَرْجُو أَنْ يَمُنَّ بِحِفْظِهِ ﴿وَلَمَّا فَتَحُوا مَتَاعَهُمْ وَجَدُوا بِضَاعَتَهُمْ رُدَّتْ إِلَيْهِمْ قَالُوا يَا أَبَانَا مَا نَبْغِي﴾ مَا اسْتِفْهَامِيَّةٌ أَيْ أَيَّ شَيْءٍ نَطْلُبُ مِنْ إِكْرَامِ الْمَلِكِ أَعْظَمَ مِنْ هَذَا وَقُرِئَ بِالْفَوْقَانِيَّةِ خِطَابًا لِيَعْقُوبَ وَكَانُوا ذَكَرُوا لَهُ إِكْرَامَهُ لَهُمْ ﴿هَذِهِ بِضَاعَتُنَا رُدَّتْ إِلَيْنَا وَنَمِيرُ أَهْلَنَا﴾ نَأْتِي بِالْمِيرَةِ لَهُمْ وَهِيَ الطَّعَامُ ﴿وَنَحْفَظُ أَخَانَا وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيرٍ﴾ لِأَخِينَا ﴿ذَلِكَ كَيْلٌ يَسِيرٌ﴾ سَهْلٌ عَلَى الْمَلِكِ لِسَخَائِهِ ﴿قَالَ لَنْ أُرْسِلَهُ مَعَكُمْ حَتَّى تُؤْتُونِ مَوْثِقًا﴾ عَهْدًا ﴿مِنَ اللهِ﴾ بِأَنْ تَحْلِفُوا ﴿لَتَأْتُنَّنِي بِهِ إِلَّا أَنْ يُحَاطَ بِكُمْ﴾ بِأَنْ تَمُوتُوا أَوْ تُغْلَبُوا فَلَا تُطِيقُوا الْإِتْيَانَ بِهِ فَأَجَابُوهُ إِلَى ذَلِكَ ﴿فَلَمَّا آتَوْهُ مَوْثِقَهُمْ﴾ بِذَلِكَ ﴿قَالَ اللهُ عَلَى مَا نَقُولُ﴾ نَحْنُ وَأَنْتُمْ ﴿وَكِيلٌ﴾ شَهِيدٌ وَأَرْسَلَهُ مَعَهُمْ ﴿وَقَالَ يَا بَنِيَّ لَا تَدْخُلُوا﴾ مِصْرَ ﴿مِنْ بَابٍ وَاحِدٍ وَادْخُلُوا مِنْ أَبْوَابٍ مُتَفَرِّقَةٍ﴾ لِئَلَّا تُصِيبَكُمُ الْعَيْنُ ﴿وَمَا أُغْنِي﴾ أَدْفَعُ ﴿عَنْكُمْ﴾ بِقَوْلِي ذَلِكَ ﴿مِنَ اللهِ مِنْ﴾ زَائِدَةٌ ﴿شَيْءٍ﴾ قَدَّرَهُ عَلَيْكُمْ وَإِنَّمَا ذَلِكَ شَفَقَةٌ ﴿إِنِ﴾ مَا ﴿الْحُكْمُ إِلَّا لِلهِ﴾ وَحْدَهُ ﴿عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ﴾ بِهِ وَثِقْتُ ﴿وَعَلَيْهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُونَ﴾ قَالَ تَعَالَى ﴿وَلَمَّا دَخَلُوا مِنْ حَيْثُ أَمَرَهُمْ أَبُوهُمْ﴾ أَيْ مُتَفَرِّقِينَ ﴿مَا كَانَ يُغْنِي عَنْهُمْ مِنَ اللهِ﴾ أَيْ قَضَائِهِ ﴿مِنْ﴾ زَائِدَةٌ ﴿شَيْءٍ إِلَّا﴾ لَكِنْ ﴿حَاجَةً فِي نَفْسِ يَعْقُوبَ قَضَاهَا﴾ وَهِيَ إِرَادَةُ دَفْعِ الْعَيْنِ شَفَقَةً ﴿وَإِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ لِمَا عَلَّمْنَاهُ﴾ لِتَعْلِيمِنَا إِيَّاهُ ﴿وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ﴾ وَهُمُ الْكُفَّارُ ﴿لَا يَعْلَمُونَ﴾ إِلْهَامَ اللهِ لِأَصْفِيَائِهِ

ترجمه: و د قحط کالونه شروع شول او ددې اثرات ملک کنعان او شام ته هم اورسیدل،

هر کله چې اهل کنعان ته دا اطلاع اورسیدله چې عزیز مصر په قیمت سره غله ورکوي نو د یوسف علیه السلام رونړو د غلې اخستلو د پاره مصر ته راغلل، چنانچه کله چې د رور یوسف علیه السلام په خدمت کښې حاضر شول، نو یوسف علیه السلام خپل رونړو اوپیژندل او رونړو یوسف علیه السلام اونه پیژندلو، د هغه د جدائی ډیر وخت تیریدلو دوجه او د هغه باره کښې د دې گمان د وجه چې هغه به هلاک شوې وی، رونړو یوسف علیه السلام سره په عبرانئ ژبه کښې خبرې اوکړې، یوسف علیه السلام ځان ناغرضه کولو سره دا معلومه کړه چې څما ملک ته د راتلو څه سبب جوړ شو؟ هغوی جواب ورکړو چې غله اخستلو د پاره راغلې یو، حضرت یوسف علیه السلام اوفرمائیل چې داسې معلومیږی چې تاسو جاسوسان یئ، وئې وئیل د الله پناه، بیا ئې د هغوی نه تپوس اوکړو چې تاسو د کوم ځائې نه راغلې یئ هغوی جواب ورکړو د کنعان د ښار نه، او زمونږ والد یعقوب علیه السلام د الله نبی دې، یوسف علیه السلام د هغوی نه معلومه کړه چې تاسو نه علاوه نور هم د هغه اولاد شته؟ جواب ئې ورکړو چې آو مونږ دولس رونړه وو، زمونږ وړوکې رور ځنګل ته لاړو او هلته هلاک شو هغه زمونږ پلار ته د ټولو نه زیات خوښ وو او د هغه حقیقی رور موجود دې، هغه زمونږ والد صاحب ځان سره هسار کړې دې چې د هغه نه تسلی حاصله کړی، نو یوسف علیه السلام هغوی په عزت سره د هسارولو حکم اوکړو او چې کله د هغوی سازوسامان تیار کړې شو او هغوی ته پیمانه ښه ډکه ډکه ورکړې شوه نو وئې فرمائیل چې تاسو آئنده خپل میرنې رور هم راولئ یعنی بنامین هم، چې څه ستاسو د خبرې رشتونوالې معلوم کړم آیا تاسو اونه کتل چې زه پورا ناپ کوم بغیر د کمی نه صحیح تلم، او زه بهترین میلمستیا کونکې یم که تاسو هغه ماته رانولئ نو ماسره ستاسو دپاره هیڅ غله نشته او زما خواله هم رانشی ﴿فلا تقربون﴾ نهی ده د ﴿فلا کیل﴾ په محل باندې عطف دې یعنی تاسو به محروم کړې شئ او نزدې هم مه راځئ نو رونړو جواب ورکړو چې مونږ به د هغه باره کښې پلار نه مطالبه اوکړو پوره به ئې کړو، او د هغه نه د اخستلو د پاره به پورا کوشش کوو او مونږ به دا کار خامخا کوو او یوسف علیه السلام خپلو خادمانو ته اووئیل اوپه یو قرات کښې لفتیانه ای لغلمانه دې چې تاسو د هغوی پنګا (قیمت) کوم چې هغوی د غلې د پاره راوړلې وو او هغه دراهم وو د هغوی په بورو کښې کیږدئ کیدې شی چې هغوی خپل کور ته اورسیږی او خپل بوجونه ﴿بورئ﴾ خالی کړی نو خپله پنګا (قیمت) به اوپیژنی نو ممکن ده چه هغوی مونږ ته واپس راشی ځکه چه هغوی دا پنګا ﴿قیمت﴾ دخپل ځان سره ایخودل حلال نه ګنړی. چنانچه کله چې هغوی خپل پلار ته راورسیدل نو وئې وئیل چې اې اباجان راروان وخت کښې مونږ د غلې راوړلو نه منع کړې شو که تاسو مونږ سره بنیامین د هغه خواله نه لیږئ، لهذا تاسو مونږ سره زمونږ رور اولیږئ چې مونږ غله حاصله کړو، (نکتل نون اویاء سره دې، او مونږ به یقینا د هغه حفاظت کوو، یعقوب علیه السلام اوفرمائیل چې زه په تاسو باندې د بنیامین

په باره کښې اعتماد نشم کولې څنګه چې ما د هغه د رور يوسف عليه السلام باره کښې کړې وو او هغه سره تاسو هغه څه اوکړل کوم چې مو کول غوښتل، لهذا الله بهتر محافظ دې او په يو قراءت کښې د حفيظ په ځاى حافظا دې، څنګه چې د عربو قول لله دره فارسا دې او هغه په رحم کونکو کښې د ټول نه زيات رحم کونکې دې ماته اميد چې هغه به دده حفاظت کولو سره مونږ باندې احسان کوى، او کله چې رونړو خپل سامان کولاؤ کړو نو هغوى اوکتل چې د هغوى پيسې هغوى ته واپس کړې شوې دى او رورياڼو اووئيل چې اې زمونږ اباجان د بادشاه د طرف نه ددې نه زيات مونږ ته نور څه اکرام پکار دې؟ په (مانبغى) کښې (ما) استفهاميه ده، او نبغى په (تا) سره هم وئيلې شى حضرت يعقوب عليه السلام ته خطاب کولو سره، او رونړو د پلار سره د بادشاه ددې اکرام ذکر کړې وو، اوګورئ دا زمونږ سرمايه هم مونږ ته واپس کړې شوې ده او مونږ به د خپل خاندان د پاره غله راوړو، او (ميره) غلې ته وئيلې شى، او د خپل رور به حفاظت کوو، او د خپل رور يو اوښ د بار به بل هم راولو، او دا مقدار د بادشاه د پاره د هغه د سخاوت دوجې آسان دې يعقوب عليه السلام اوفرمائيل چې دې به څه هيڅ کله تاسو سره نه پرېږدم ترڅو چې تاسو په الله قسم خوړلو سره وعده اونکړئ چې تاسو به دې خامخا ماته واپس راولئ خو دا چې تاسو ګير شئ يعنى مړه شئ يا درباندې څوک غالب شى چې د هغې د وجې تاسو دې ماته واپس رانولئ، چنانچه رونړو شرطونو منظور کړل چې کله رونړو د پلار سره عهد اوپيمان اوکړو نو يعقوب عليه السلام اوفرمائيل مونږ او تاسو چې کوم عهد اوپيمان کوو الله په هغې باندې ګواه دې، او يعقوب اوئيل اې ځما بچو تاسو ټول په مصر کښې په يو دروازې باندې مه داخليږئ بلکه جدا جدا دورازو باندې داخل شئ چې په تاسو نظر اونه لګى ځکه په دې خپل قول سره د الله د طرف نه يو کيدو والا څيز منع کولې نشم، (من) زائده دې يعنى کوم څيز چې هغه تاسو له مقدر کړې دې هغه لرې کولې نشم، دا خو صرف د پلار مينه ده، حکم صرف د الله وحده چليږى، او ځما بهروسه هم په هغه باندې ده، يعنى په هغه باندې اعتماد دې، او هر بهروسه کونکې له هغه باندې بهروسه کول پکار دى الله تعالى اوفرمائيل چې کله رونړه د پلار د حکم مطابق په جدا جدا دروازو باندې داخل شول، نو د الله د تقدير نه هغوى هيڅ څيز بچ نه کړې شو، خو د يعقوب عليه السلام په زړه کښې يو خيال پيدا شو کوم چې هغوى پورا کړو، (ښکاره کړو)، او هغه شفقة د بد نظر د دفع کولو اراده وه بې شکه هغه زمونږ د خودلې شوې علم عالم وو خو اکثر خلق اوهغه کافران دى، په خپلو وليانو باندې د الله الهام نه منى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** **وجاء اخوة يوسف**: واؤ عاطفه دې ددې په عطف باندې محذوف دې کوم چې مفسر علام ظاهر کړې دې، يعنى د فراغت او د خوشحالئ د کالونو د ختميدو سره چې کله د قحط او د تنګئ کالونه شروع شول، نو ددې اثرات په کنعان او شام وغيره کښې هم

محسوس کړې شول، چې هغې سره د یعقوب ﷺ او د هغه په اهل خانه باندې هم تنګی راغله، نو حضرت یعقوب ﷺ خپل خامنو ته اووئیل چې ماته معلومه شوه چې د مصر نیک دل بادشاه په مناسب قیمت باندې غله خرخوی، لهذا تاسو هم لاړشئ او د خپل حاجت په قدر راوړئ، چنانچه د یوسف ﷺ رونړه راغلل، (ای وجاء اخوة یوسف)

**قوله**: یمتاروا: ای لیشتروا المیرة میرة، هغه غلې ته وئیلې شی کومه چې د یو ښار نه بل ښار ته اوړلې شي.

**قوله**: لا تقربون: یا خو د نهی د وجه نه مجزوم دې ددې (نون) د وقایه دې، یا (فلا کیل) باندې عطف دې، په دې صورت کښې به د جزاء په محل باندې دعطف د وجې مجزوم وی.

**قوله**: تحرموا: دا د یو سوال جواب دې

**سوال**: (فلا کیل لکم) تفسیر ئې په (تحرموا) سره ولې اوکړو؟

**جواب**: ځکه چې د (لاتقربوا) عطف په (لاکیل لکم) باندې دې او دا عطف الفعل علی الاسم قبیلې نه دې، کوم چې جائز نه دې، لهذا (لاکیل لکم) ئې (لا تحرموا) په تاویل کښې کړو، چې د فعل عطف په فعل باندې شی.

**قوله**: لتعلمینا: په دې کښې اشاره ده، چې د (لما) (ما) مصدریه ده، نه چې موصوله.

**[ایاتونه: ۶۹ ـ ۷۹]**

---

{وَلَمَّا دَخَلُوا عَلَى يُوسُفَ آوَى} ضَمَّ {إِلَيْهِ أَخَاهُ قَالَ إِنِّي أَنَا أَخُوكَ فَلَا تَبْتَئِسْ} تَحْزَن {بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} مِنَ الْحَسَدِ لَنَا وَأَمَرَهُ أَنْ لَا يُخْبِرَهُمْ وَتَوَاطَأَ مَعَهُ عَلَى أَنَّهُ سَيَحْتَالُ عَلَى أَنْ يُبْقِيَهُ عِنْدَهُ {فَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ جَعَلَ السِّقَايَةَ} هِيَ صَاعٌ مِنَ الذَّهَبِ مُرَصَّعٌ بِالْجَوْهَرِ {فِي رَحْلِ أَخِيهِ} بِنْيَامِينَ {ثُمَّ أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ} نَادَى مُنَادٍ بَعْدَ انْفِصَالِهِمْ عَنْ مَجْلِسِ يُوسُفَ {أَيَّتُهَا الْعِيرُ} الْقَافِلَةُ {إِنَّكُمْ لَسَارِقُونَ} {قَالُوا} وَ قَدْ {أَقْبَلُوا عَلَيْهِمْ مَاذَا} مَا الَّذِي {تَفْقِدُونَ} هُ {قَالُوا نَفْقِدُ صُوَاعَ} صَاعَ {الْمَلِكِ وَلِمَنْ جَاءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ} مِنَ الطَّعَامِ {وَأَنَا بِهِ} بِالْحِمْلِ {زَعِيمٌ} كَفِيلٌ {قَالُوا تَاللَّهِ} قَسَمٌ فِيهِ مَعْنَى التَّعَجُّبِ {لَقَدْ عَلِمْتُمْ مَا جِئْنَا لِنُفْسِدَ فِي الْأَرْضِ وَمَا كُنَّا سَارِقِينَ} مَا سَرَقْنَا قَطُّ {قَالُوا} أَيِ الْمُؤَذِّنُ وَأَصْحَابُهُ {فَمَا جَزَاؤُهُ} أَيِ السَّارِقِ {إِنْ كُنْتُمْ كَاذِبِينَ} فِي قَوْلِكُمْ مَا كُنَّا سَارِقِينَ وَوُجِدَ فِيكُمْ {قَالُوا جَزَاؤُهُ} مبتدا خبره {مَنْ وُجِدَ فِي رَحْلِهِ} يُسْتَرَقُّ ثُمَّ أُكِّدَ بِقَوْلِهِ {فَهُوَ} أَيِ السَّارِقُ {جَزَاؤُهُ} أَيِ الْمَسْرُوقِ لَا غَيْرُ وَكَانَتْ سُنَّةَ آلِ يَعْقُوبَ {كَذَلِكَ} الْجَزَاءِ {نَجْزِي الظَّالِمِينَ} بِالسَّرِقَةِ فَصَرَّحُوا لِيُوسُفَ بِتَفْتِيشِ أَوْعِيَتِهِمْ {فَبَدَأَ بِأَوْعِيَتِهِمْ} فَفَتَّشَهَا {قَبْلَ وِعَاءِ أَخِيهِ} لِئَلَّا يُتَّهَمَ {ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا} أَيِ السِّقَايَةَ {مِنْ وِعَاءِ أَخِيهِ} قَالَ تَعَالَى {كَذَلِكَ} الْكَيْدِ {كِدْنَا لِيُوسُفَ} عَلَّمْنَاهُ الْاِحْتِيَالَ فِي أَخْذِ أَخِيهِ {مَا كَانَ} يُوسُفُ {لِيَأْخُذَ أَخَاهُ} رَقِيقًا عَنِ السَّرِقَةِ {فِي دِينِ الْمَلِكِ} حُكْمِ مَلِكِ مِصْرَ لِأَنَّ جَزَاءَهُ عِنْدَهُ الضَّرْبُ وَتَغْرِيمُ مِثْلَيِ الْمَسْرُوقِ لَا الْاِسْتِرْقَاقُ {إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ} أَخْذَهُ بِحُكْمِ أَبِيهِ أَيْ لَمْ يَتَمَكَّنْ مِنْ أَخْذِهِ إِلَّا بِمَشِيئَةِ اللَّهِ

بالهامه سؤال اخوته وجوابهم بسنتهم ﴿نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَّن نَّشَاءُ﴾ بالاضافة والتنوین في العلم کیوسف ﴿وَفَوْقَ كُلِّ ذِي عِلْمٍ﴾ من المخلوقین ﴿عَلِيمٌ﴾ اعلم منه حتی ینتهي الی الله تعالی ﴿قَالُوا إِن يَسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ أَخٌ لَّهُ مِن قَبْلُ﴾ ای یوسف وکان سرق لابي امه صنما من ذهب فكسره لئلا یعبده ﴿فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِي نَفْسِهِ وَلَمْ يُبْدِهَا﴾ یظهرها ﴿لَهُمْ﴾ والضمیر للکلمة التي في قوله ﴿قَالَ﴾ في نفسه ﴿أَنتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا﴾ من یوسف واخیه لسرقتکم اخاکم من ابیکم وظلمکم له ﴿وَاللَّهُ أَعْلَمُ﴾ عالم ﴿بِمَا تَصِفُونَ﴾ تذکرون من امره ﴿قَالُوا يَا أَيُّهَا الْعَزِيزُ إِنَّ لَهُ أَبًا شَيْخًا كَبِيرًا﴾ یحبه اکثر منا ویتسلی به عن ولده الهالك ویحزنه فراقه ﴿فَخُذْ أَحَدَنَا﴾ استعبده ﴿مَكَانَهُ﴾ بدلا منه ﴿إِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ﴾ في الفعال ﴿قَالَ مَعَاذَ اللَّهِ﴾ نصب علی المصدر حذف فعله واضیف الی المفعول ای نعوذ بالله من ﴿أَن نَّأْخُذَ إِلَّا مَن وَجَدْنَا مَتَاعَنَا عِندَهُ﴾ لم یقل من سرق تحرزا من الکذب ﴿إِنَّا إِذًا﴾ إن اخذنا غیره ﴿لَّظَالِمُونَ﴾

---

**ترجمه:** او هر کله چې د یوسف علیه السلام رونړو د یوسف علیه السلام خوا ته اورسیدل، نو یوسف علیه السلام خپل رور بنیامین ځان سره ایسار کړو او وئې وئیل چې څه ستا هغه رور یم -کوم چې روک شوې وو لهذا اوس ته په هغه حرکت باندې کوم چې دوی مونږ سره د حسد په وجه کولو په هغې خفه کیږه مه، او هغه ته ئې دا هم اووئیل چې ته ددې خبر دوی ته مه ورکوه، او دواړو په دې خبره باندې اتفاق اوکړو چې ډیر زر به یو حیله جوړه کړې شی چې د هغې د وجې نه به دې ځان سره ایسار کړی او هر کله چې یوسف علیه السلام خپلو رونړو ته سامان برابر کړو نو د خپل رور بنیامین په سامان کښې ئې پیالۍ کیخودله، هغه پیالۍ د سرو وه او په هغې باندې قیمتی ملغلرې لګیدلې وې بیا یو آواز کونکی د یوسف علیه السلام د مجلس نه د جدا کیدو په خت کښې آواز اوکړو اې قافلې والو تاسو خلق غلان یئ هغوی شاته اوکتل چې ستاسو کوم څیز ورک شوې دې؟ جواب ئې ورکړو چې د بادشاه پیمانه ورکه شوې ده، او کوم سړی چې راوړه هغه ته به یو اوښ د غلې ډک انعام ورکولې شی او ددې اوښ ذمه دار زه یم، نو هغوی اووئیل چې د الله قسم په دې قسم کښې د حیرانتیا معنی ده تاسو ته ښه پته ده چې مونږ ملک ته د فساد په نیت راغلې نه یو، او نه مونږ غلان یو، یعنی مونږ هیڅ کله غلا کړې نه ده، اعلان کونکی او د هغه ملګرو اووئیل، د غل ستاسو په نیز څه سزا ده؟ که چرې تاسو خپله خبره (ما کنا سارقین) کښې دروغژن اوونلئ، او غل هم په تاسو کښې اووتلو نوهغوی جواب ورکړو ددې جزاء خپله هغه دې د چا په سامان کښې چې هغه پیالۍ راوتله، یعنی هغه دې غلام جوړ کړې شی (جزاوه) مبتدأ ده (من وجد الخ) ددې خبر دې بیا ئې دې لره په خپل قول (فهو جزاؤه) سره مؤکد کړو یعنی هغه غل ددې غلا د مال بدله ده نه چې بل او د آل یعقوب هم دغه دستور وو، مونږ خو داسې ظالمان غلانو ته هم داسې سزا ورکوو، چنانچه چې کله د یوسف علیه السلام په وړاندې د تلاشۍ دپاره راوستلې شو نو د خپل حقیقی رور نه تلاشۍ د مخکښې یوسف(ع*) د نورو د

سامان تلاشي شروع كړه چې د تهمت شک نه وی، بيا ئې دغه پيالۍ لره خپل حقيقي رور په سامان كښې اوموندله، الله تعالى اوفرمائيل مونږ د يوسف عليه السلام د پاره داسې تدبير اوكړو يعنى د خپل رور ايسارولو دپاره يوسف عليه السلام ته مو داسې تدبير اوخودلو يوسف عليه السلام لره د مصر د ملک د قانون د وجې داسې ممكن نه وو چې د غلې په بدله كښې خپل رور غلام جوړ كړى، ځكه چې د غل سزا د هغوى په نيز وهل ټكول او د غلا د مال دوچنده مقدار تاوان اخستل وو، نه چې غلام جوړول خو دا چې الله د يوسف عليه السلام د والد د قانون مطابق هغه نيول وغوارى يعنى يوسف عليه السلام د خپل رور په ايسارولو باندې صرف د الله په خوښې سره قادر شو، يوسف عليه السلام د خپلو رونړو نه د سوال د الهام په ذريعه او د هغوى د قانون مطابق د جواب په ذريعه، چې مونږ چاته اوغوارو په علم كښې درجې اوچتې كړو لكه د يوسف عليه السلام په (درجات من) كښې اضافت او تنوين دواړه صحيح دى، په مخلوق كښې هر علم لرونكې باندې بل علم لرونكې اوچتې درجې والا موجود دې،يعنى د هر ذى عالم دپاسه عالم موجود دې، تردې چې دا سلسله په الله تعالى باندې ختميږى. قالوان يسرق فقد سرق اخ له من قبل. رونړو اووئيل كه دې غلا اوكړى نو هيڅ د خيرانتيا خبره نه ده، ددې نه مخكښې دده رور يوسف عليه السلام هم غلا كړې وه، يعنى هغه د نيكه د سرو بت پټ كړې وو او بيا ئې مات كړې وو، چې هغه دددې عبادت اونه كړى. يوسف عليه السلام دا خبره په خپل زړه كښې اوساتله يعنى دې خبرې لره ئې اوځكله د هغوى مخكښې ئې هغه ظاهره نه كړه او (ها) ضمير هغه كلمې ته راجع دې كوم چې دده د قول نه معلوميږى، (پس د شوندې لاندې) دومره ئې اووئيل چې تاسو خو د يوسف او د هغه د رور نه بدتره يئ ستاسو د خپل رور دپلار نه راپټولو د وجې او په هغه باندې د ظلم كولو د وجې نه او څه چې تاسو وايئ الله د هغې په حقيقت باندې ډير ښه خبردار دې، رونړو اووئيل اې د اقتدار خاونده، دده پلار ډير بوډا سړې دې زمونږ په نسبت د ده سره ډيره مينه كوى، او د مرشوى خوى په ځائې د ده سره زړه ته تسلى وركوى، او د ده جدائى هغه لره ډير خفه كړى، لهذا دده په ځائې زمونږ نه څوک غلام جوړ كړئ مونږ په اخلاقو كښې تاسو ډير نيک نفس ګڼړو، يوسف عليه السلام اوفرمائيل، هسې بې انصافى ده، الله مو دې اوساتى(معاذ الله) د مصدريت د وجه منصوب دې، او ددې فعل (نعوذ) حذف كړې شوې دې، او مفعول طرف اضافت كړې شوې دې، (اى نعوذ بالله) (يعنى الله دې مونږ اوساتى، د دې خبرې نه مو دې بچ كړى، چې مونږ دهغه چا نه علاوه چا سره چې مونږ سامان ګير كړې دې، بل څوک اونيسو حضرت يوسف عليه السلام د دروغو نه د بچ كيدو د وجې (من سرق) لفظ استعمال نه كړو، كه مونږ بل څوک اونيسو نو په دغه صورت كښې به مونږ ډير بې انصافه اوګڼړلې شو.

..........

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: تواطأمعه: تواطأ: اى توافق، دوارو اتفاق اوکړو.

قوله: السقاية: د اوبو څکولو لوخښ، د اوبو څکولو ځائ، اوبه څکلول، دلته د اوبو پيالئ مراد ده، روستو دا پيالئ به د پيمانې په طور سره استعمالوليده، صاع په دې يو لغت صواع هم دې.

قوله: لئلايتهم: چې د سازش تهمت اونه لګی،

قوله: علمناه الكيد: مونږ يوسف ﷺ ته حيله اوښودله،

قوله: بحكم ابيه: يعنى د يوسف ﷺ د پلار د يعقوب ﷺ د شريعت مطابق ددوى په شريعت کښې د غل سزا غلام جوړول وو.

قوله: بالهامه سوال اخوته وجوابهم بسنتهم: د مصرى قانون مطابق بنيامين د غلام په صورت کښې ځان سره ايسارولې نه شو، ځکه چې د مصرى قانون مطابق غل وهل تکول، او د غلا د مال دوچنده مال اخستل وو، الله تعالى د يوسف ﷺ په زړه کښې د الهام په ذريعه دا خبره واچوله چې پخپله ددوى نه تپوس اوکړه چې د غلا سزا څه ده؟ چې هغوى د خپل قانون مطابق جواب ورکړى، کنعانى قانون کښې د غل سزا استرقاق (يعنى غلام جوړول) وو، دغه شان د يوسف ﷺ رونړو په خپله د بنيامين سزا غلام جوړول اوخودل.

قوله: من المخلوقين: بعضې فلاسفو چې په هغې کښې معتزله هم شامل دى د الله تعالى قول (فوق كل ذى علم عليم) نه استدلال کړې دې چې الله تعالى عالم بالذات دې، نه چې عالم بالصفات، ځکه که الله تعالى عالم بالصفت وى نو د هر عالم د پاسه يو اعلم دې، ددې نه لازميږى، چې د الله تعالى نه بره څوک هم عالم شته، حالانکه دا باطله خبره ده.

جواب: مفسرعلام د (من المخلوقين) اضافه کولو سره ددې سوال جواب ورکړې دې چې د هغې خلاصه داده چې د هر ذى علم اوچتوالې د مخلوق په اعتبار سره دې، نه چې د خالق په اعتبار سره، (من المخلوقين) قيد لګولو سره بيا روستو د (حتى ينتهى) قيد د لګولو څه ضرورت نه وو.

قوله: والضمير للكلمة التى فى الخ) په دې کښې (ما اضمر عامله على شريطة التفسير) طرف ته اشاره ده، تفسير خازن کښې دى چې د فأسرها په ضمير مفعولى کښې درې اقوال دى.

①ضمير د روستو راتلونکې کلمې يعنى (انتم شر مکانا) طرف ته راجع دې.

②فقد اسرق اخ، الخ ته راجع دې.

③ضمير حجة طرف ته راجع دې، مطلب به دا وى چې يوسف ﷺ احتجاج پريښودلو.

**[ایاتونہ: ۸۰-۹۳]**

(فلما استيأسوا) يئسوا (منه خلصوا) اعتزلوا (نجيا) مصدر يصلح للواحد وغيره أي يناجي بعضهم بعضا
(قال كبيرهم) سنا روبيل أو رأيا يهوذا (ألم تعلموا أن أباكم قد أخذ عليكم موثقا) عهدا (من الله) في
أخيكم (ومن قبل ما) زائدة (فرطتم في يوسف) وقيل ما مصدرية مبتدأ خبره من قبل (فلن أبرح) أفارق
(الأرض) أرض مصر (حتى يأذن لي أبي) بالعود إليه (أو يحكم الله لي) بخلاص أخي (وهو خير الحاكمين)
أعدلهم (ارجعوا إلى أبيكم فقولوا يا أبانا إن ابنك سرق وما شهدنا) عليه (إلا بما علمنا) تيقنا من مشاهدة
الصاع في رحله (وما كنا للغيب) لما غاب عنا حين إعطاء الموثق (حافظين) ولو علمنا أنه يسرق لم
نأخذه (واسأل القرية التي كنا فيها) هي مصر أي أرسل إلى أهلها فاسألهم (والعير) أصحاب العير (التي
أقبلنا فيها) وهم قوم من كنعان (وإنا لصادقون) في قولنا فرجعوا إليه وقالوا له ذلك (قال بل سولت)
زينت (لكم أنفسكم أمرا) ففعلتموه اتهمهم لما سبق منهم من أمر يوسف (فصبر جميل) صبري (عسى
الله أن يأتيني بهم) بيوسف وأخويه (جميعا إنه هو العليم) بحالي (الحكيم) في صنعه (وتولى عنهم) تاركا
خطابهم (وقال يا أسفى) الألف بدل من ياء الإضافة أي يا حزني (على يوسف وابيضت عيناه) انمحق
سوادهما وبدل بياضا من بكائه (من الحزن) عليه (فهو كظيم) مغموم مكروب لا يظهر كربه (قالوا تالله)
لا (تفتأ) تزال (تذكر يوسف حتى تكون حرضا) مشرفا على الهلاك لطول مرضك وهو مصدر يستوي فيه
الواحد وغيره (أو تكون من الهالكين) الموتى (قال) لهم (إنما أشكو بثي) هو عظيم الحزن الذي لا يصبر
عليه حتى يبث إلى الناس (وحزني إلى الله) لا إلى غيره فهو الذي تنفع الشكوى إليه (وأعلم من الله ما
لا تعلمون) من أن رؤيا يوسف صدق وهو حي ثم قال (يا بني اذهبوا فتحسسوا من يوسف وأخيه) اطلبوا
خبرهما (ولا تيأسوا) تقنطوا (من روح الله) رحمته (إنه لا ييأس من روح الله إلا القوم الكافرون) فانطلقوا
نحو مصر ليوسف (فلما دخلوا عليه قالوا يا أيها العزيز مسنا وأهلنا الضر) الجوع (وجئنا ببضاعة مزجاة)
مدفوعة يدفعها كل من رآها لرداءتها وكانت دراهم زيوفا أو غيرها (فأوف) أتم (لنا الكيل وتصدق علينا)
بالمسامحة عن رداءة بضاعتنا (إن الله يجزي المتصدقين) يثيبهم فرق لهم وأدركته الرحمة ورفع الحجاب
بينه وبينهم ثم (قال) لهم توبيخا (هل علمتم ما فعلتم بيوسف) من الضرب والبيع وغير ذلك (وأخيه)
من هضمكم له بعد فراق أخيه (إذ أنتم جاهلون) ما يؤول إليه أمر يوسف (قالوا) بعد أن عرفوه لما ظهر
من شمائله متثبتين (أإنك) بتحقيق الهمزتين وتسهيل الثانية وإدخال ألف بينهما على الوجهين (لأنت
يوسف قال أنا يوسف وهذا أخي قد من) أنعم (الله علينا) بالاجتماع (إنه من يتق) يخف الله (ويصبر)
على ما يناله (فإن الله لا يضيع أجر المحسنين) فيه وضع الظاهر موضع المضمر (قالوا تالله لقد آثرك)
فضلك (الله علينا) بالملك وغيره (وإن) مخففة أي إنا (كنا لخاطئين) آثمين في أمرك فأذللناك (قال لا
تثريب) عتب (عليكم اليوم) خصه بالذكر لأنه مظنة التثريب فغيره أولى (يغفر الله لكم وهو أرحم

الراحمین) وَسَأَلَهُمْ عَنْ أَبِيهِ فَقَالُوا ذَهَبَتْ عَيْنَاهُ فَقَالَ (اذْهَبُوا بِقَمِيصِي هٰذَا) وَهُوَ قَمِيصُ اِبْرَاهِيمَ الَّذِي لَبِسَهُ حِيْنَ أُلْقِيَ فِي النَّارِ كَانَ فِي عُنُقِهِ فِي الْجُبِّ وَهُوَ مِنَ الْجَنَّةِ أَمَرَهُ جِبْرِيْلُ بِإِرْسَالِهِ وَقَالَ إِنَّ فِيهِ رِيحَهَا وَلَا يُلْقٰى عَلٰى مُبْتَلًى إِلَّا عُوفِيَ (فَأَلْقُوهُ عَلٰى وَجْهِ أَبِي يَأْتِ) يَصِرْ (بَصِيرًا وَأْتُونِي بِأَهْلِكُمْ أَجْمَعِينَ)

ترجمه: چې کله د یوسف ﷺ رونړو د یوسف ﷺ نه بالکل نااميده شول نو په یوګوټ کښې ئې مشوره اوکړه، (نجيا) مصدر واحد او غير واحد، په ټولو باندې د دې اطلاق صحيح دې، يعنی هغوی خپلو کښې مشوره اوکړه، چې په دوی کښې د عمر په لحاظ سره يا د رائې په اعتبار سره لوئې وو، چې د هغه نوم روبيل يا يهودا وو، اووئيل آيا تاسو ته پته نشته چې ستاسو پلار تاسو نه ستاسو د رور په باره کښې د الله په نوم باندې پوخ لوظ اخستلې وو؟ او ددې نه مخکښې تاسو د يوسف ﷺ په باره کښې زياتې هم کړې دې هغه هم تاسو ته معلوم دې، (ما) زائده دې، او وئيلې شوې دی چې (ما) مصدريه مبتدأ ده، او ددې خبر (من قبل) دې، اوس خو زه ملک د مصر بالکل نه پرېږدم تردې چې اباجان ماته د واپس راتلو اجازت رانکړی، يا الله زما رور راخلاص کړی او زما په باره کښې څه فيصله اونکړی، او هغه د ټولو نه ښه فيصله کونکی دې، تاسو خپل اباجان ته واپس لاړشئ او هغوی ته اووايئ چې ستاسو ځوی غلا کړې ده. (ځکه ګرفتار شو، او مونږ صرف هغه ګواهی ورکوو د څه چې مونږ ته يقينی علم شوې دې، د هغه د سامان نه د پيالئ د رواتلو په وجه، او د لوظ او وعدې په وخت، مونږ څه په غيبو باندې عالمان خو نه وو، او که مونږ ته معلومه وه چې دې به غلا کوی نو مونږ به هيڅ کله وعده کړې نه وه، او د هغه کلی والو نه معلومه کړئ د چا په کلی کښې چې مونږه وو، او هغه د مصر بستی وه، يعنی هلته څوک اوليږه چې معلومات اوکړی، او د هغه قافلې والو نه معلومه کړئ چې د کومې سره مونږ راغلې يو، او هغه کنعانی خلق دی، او د (عير) نه اصحاب عير مراد دی، او مونږ په خپل بيان کښې بالکل رشتونې يو، چنانچه نهه رونړه د يعقوب ﷺ په خدمت کښې حاضر شول، او ذکر شوې ټولې خبرې ئې اباجان ته اوکړې، (يعقوب اوفرمائيل چې حقيقت داسې نه دې، بلکه تاسو د خپل ځان نه يوه خبره جوړه کړې دې، چې هغې ته تاسو عملی جامه اچولې ده، په دوی باندې د تهمت لګولو په وجه د رونړو هغه حرکت وو، کوم چې يوسف ﷺ سره ئې کړې وو، لهذا اوس صبر ښه ځيز دې، تقديری عبارت داسې دې (فصبری صبر جميل) ماته اميد دې چې الله به يوسف ﷺ او د هغه دواړه رونړه (بنيامين او يهودا) ماته راورسوئی، هم هغه ځما د حالت نه خبردار او په خپل کارونو کښې باحکمت دې، او دوی سره ئې خبرې کولو نه پس مخ واړولو، او وئې وئيل چې هائې يوسفا، د (اسفى) الف د ياء اضافت نه بدل راغلې دې، په معنی د (يا حزنى) کښې دې، د يوسف ﷺ په غم کښې په ژړا ژړا د هغه سترګې سپينې شوې يعنی د سترګو تورو الې په سپينوالی کښې بدل شو، او په زړه زړه کښې وېلې کيدلو يعنی په غم کښې بې

چینه، او د خپل بې چینۍ اظهار به ئې کولو نه، ځامنو اووئیل والله، تاسو خو به همیشه یوسف علیه السلام یاده وئی، تر دې چې د اوږد مرض د وجې وفات شئ، (حرضا، مصدر دې په دې کښې واحد او غیر واحد دواړه برابر دی، یا به هلاک شئ (یعقوب علیه السلام هغوی ته اووئیل څه خو د خپلې پریشانۍ او د خفگان فریاد صرف الله تعالی ته کوم نه چې بل چا ته، (بث) هغه سخت غم ته وائی چې په هغې باندې صبر اونکړی شی، تردې چې خلقو ته هم دهغې پته اولګی، صرف هم هغه ذات داسې دې چې هغه ته فریاد کول د فائدې دی، او دالله نه څنګ چې څه خبریم داسې تاسو نه یئ، ددې خبرې نه چې یوسف علیه السلام په خوب کښې ربښتونې دې او هغه ژوندې دې، یعقوب علیه السلام وفرمائیل ځما خوږو بچو الاړشئ او یوسف علیه السلام او د هغه رور صحیح طریقې سره تلاش کړئ، یعنی د هغوی خبر راوباسئ او د الله د رحمت نه مایوسه کیږئ مه، یقینا د الله رحمت نه هغه خلق نا امیده کیږی کوم چې کافران دی، چنانچه د یوسف علیه السلام رونړه مصر طرف ته روان شول، هر کله چې دا خلق د یوسف علیه السلام په مخکښې حاضر شول، نو عرض ئې اوکړو اې سردار واکمنده، مونږ او زمونږ بچی په لوږه کښې مبتلاء دی، او مونږ څه لږ غوندې پنګا (پیسې) راوړې ده، چې هغه د کوره کیدو د وجه نه هرځوک واپس کوی، څوک چې دا ګوری، او یا هغه کوټا دراهم ددې نه علاوه وو، تاسو مونږ ته ډیره غلئ راکړئ او زمونږ کوټه درهمو ته خیال نه کولو سره په مونږ باندې خیرات اوکړئ، الله تعالی خیرات کونکو ته ښه بدله ورکوی یعنی هغوی ته ثواب ورکوی، چنانچه یوسف علیه السلام ته په دوی باندې ترس راغلو او د یوسف علیه السلام زړه په دوی باندې نرم شو، او د یوسف علیه السلام او د هغه د رونړو په مینځ کښې چې کومه پرده وه هغه ئې لرې کړه، بیا ئې د زورنې د پاره هغوی ته اووئیل چې تاسو ته پته ده چې یوسف علیه السلام سره د وهلو ټکولو او د خرڅولو څه سلوک کړې وو؟ او د هغه رور سره مو د ظلم معامله کړې وه، د هغه د رور نه د جدا کیدو نه پس، چې کله تاسو ته معلومه نه وه، چې یوسف علیه السلام به کومې مرتبې ته رسی، د یوسف علیه السلام د پیژندلو نه پس د یوسف علیه السلام عادتونه ښکاره شول، نو اقرار کولو سره ئې اووئیل آیا ته په رشتیا یوسف علیه السلام ئې؟ (ءانک) کښې د دواړو همزو تحقیق او د دویم تسهیل، او د دواړو په مینځ کښې په دواړه صورتونو کښې الف داخلولو سره، هغه اووئیل آو چې څه یوسف یم او دا بنیامین ځما رور دې، بې شکه الله تعالی په میلاویدو سره په مونږ باندې ډیر انعام اوکړو، واقعی چې کوم سړې د الله نه ویریږی او په راتلونکی مصیبتونو باندې صبر کوی نو الله تعالی د داسې نیکانو خلقو ثواب نه ضائع کوی، په دې کښې د ضمیر په ځائې اسم ظاهر ذکر شوې دې، وئې وئیل چې قسم په الله، الله تاسو ته په مونږ باندې په بادشاهئ وغیره سره فضیلت درکړې دې، او بې شکه، مونږ ستا په معامله کښې خطاوار او ګنهګار وو، (ان مخففة عن الثقیلة) دې، نو الله مونږ ستا په مخکښې ذلیله کړو، یوسف علیه السلام اوفرمائیل نن په تاسو

باندې هيڅ ملامتيا (الزام) نشته، د عدم ملامتيا د پاره ئې اليوم ځکه راوړلو چې هغه ورځ د ملامتيا وه لهذا نورې ورځې به په ملامتيا کښې په طريقه اولى داخلې دی، الله دې ستاسو خطا معاف کړی او هغه په رحم کونکو کښې د ټولو نه زيات رحم کونکې دې او يوسف ﷺ د خپل پلار په باره کښې تپوس اوکړو نو وې وئيل چې د هغه دواړه سترګې سپينې شوې دی يعنی (ړوند شوې دې) اوس تاسو څما دا قميص يوځئ او دا د ابراهيم ﷺ هغه قميص وو کوم چې ابرهيم ﷺ په اور کښې د غورزيدو په وخت کښې اچولې وو، او په کوهی کښې هم يوسف اچولې وو، او دا جنتی لباس وو، او جبرائيل ﷺ دې قميص لره د يعقوب ﷺ خوا ته د ليږلو وئيلې وو، او دا ئې هم وئيلې وو چې په دې کښې يو قسم خوشبو ده، هرکله چې يو مصيبت زده سړې دا استعمال کړی نو هغه ته عافيت نصيب کيږی، تاسو دا څما د پلار په سترګو باندې واچوئ د هغه نظر به واپس راشی او تاسو خپل ټول کوروالا هم ماله راولئ.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** استيئسوا: هغوی نا اميده شول، د (استئياس) نه د ماضی مذکر غائب صيغه

**قوله:** يئسوا: په دې کښې اشاره ده چې استفعل په معنی د فعل کښې دې، او سين اوتاء د مبالغې د پاره دی. ای ياسا کاملا،

**قوله:** مصدر صالح، الخ: دا ددې سوال جواب دې چې خلصوا جمع ده، او نجيا واحد دې، او د واحد حمل په جمع باندې جائز نه دې؟

د جوا ب حاصل دادې چې نجيا مصدر دې او د مصدر اطلاق په واحد جمع په ټولو باندې کيږی.

**قوله:** اي يناجي بعضهم بعضا: په دې کښې اشاره ده، چې نجيا حال دې، تقدير د عبارت داسې دې، خلصوا متناجين.

**قوله:** صبري: په دې کښې اشاره ده، چې فصبر جميل (صبری) د مبتدأ محذوف خبر دې، بعضې حضراتو د صبری په ځائې (امری) محذوف ګنړلې دې.

**قوله:** المحق: انمحاق (انفعال) دا د(محق) نه ماخوذ دې په معنی د ختمولو اوباطل کولو سره.

**قوله:** لا: په دې کښې اشاره ده چې د (تفتئو) نه مخکښې حرف نهی (لا) محذوف دې، ګنی ترجمه به داسې وه (چې تاسو هيروئ او يادوئ) حالانکه ددې هيڅ مفهوم نشته، دويمه خبره داده چې (تفتئوا) جواب قسم دې، او جواب قسم چې کله ماضی مثبت واقع شی، نو په دې باندې د لام او نون راوړل ضروری وی حالانکه دلته دا دواړه نشته.

**قوله:** حرضا: حرضا مصدر دې لهذا په جمع باندې حمل صحيح دې.

قوله: مزجاة: دا زجيت نه ماخوذ دي (ازجيته اى دفعته)

قوله: مستثبتين:: او په بعضي نسخو كښې متثبتين دي، په دې كښې اشاره ده چې هل علمتم او افعلتم يوسف كښې (ما) د استفهام تقريرى ده.

قوله: فاذلنالك: الخ: اى جعلنا ذليلا. (ترويح الارواح)

[ايا تونه: ۹٤ - ۱۰٤]

(وَلَمَّا فَصَلَتِ الْعِيرُ) خَرَجَتْ مِنْ عَرِيشِ مِصْرَ (قَالَ أَبُوهُمْ) لِمَنْ حَضَرَ مِنْ بَنِيهِ وَأَوْلَادِهِمْ (إِنِّي لَأَجِدُ رِيحَ يُوسُفَ) أَوْصَلَتْه إِلَيْهِ الصَّبَا بِإِذْنِهِ تَعَالَى مِنْ مَسِيرِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ أَوْ ثَمَانِيَةٍ أَوْ أَكْثَرَ (لَوْلَا أَنْ تُفَنِّدُونِ) تُسَفِّهُونِ لصدقتموني (قَالُوا) له (تَاللَّهِ إِنَّكَ لَفِي ضَلَالِكَ) خَطَئِكَ (الْقَدِيمِ) مِنْ إِفْرَاطِكَ فِي مَحَبَّتِه وَرَجَاءِ لِقَائِهِ عَلَى بُعْدِ الْعَهْدِ (فَلَمَّا أَنْ) زَائِدَة (جَاءَ الْبَشِيرُ) يَهُوذَا بِالْقَمِيصِ وَكَانَ قَدْ حَمَلَ قَمِيصَ الدَّمِ فَأَحَبَّ أَنْ يُفَرِّحَهُ كَمَا أَحْزَنَهُ (أَلْقَاهُ) طَرَحَ الْقَمِيصَ (عَلَى وَجْهِهِ فَارْتَدَّ) رَجَعَ (بَصِيرًا قَالَ أَلَمْ أَقُلْ لَكُمْ إِنِّي أَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ) (قَالُوا يَا أَبَانَا اسْتَغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا إِنَّا كُنَّا خَاطِئِينَ) (قَالَ سَوْفَ أَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّي إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ) أَخَّرَ ذَلِكَ إِلَى السَّحَرِ لِيَكُونَ أَقْرَبَ إِلَى الْإِجَابَةِ أَوْ إِلَى لَيْلَةِ الْجُمُعَةِ ثُمَّ تَوَجَّهُوا إِلَى مِصْرَ وَخَرَجَ يُوسُفُ وَالْأَكَابِرُ لتلقيهم (فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَى يُوسُفَ) فِي مَضْرِبِهِ (آوَى) ضَمَّ (إِلَيْهِ أَبَوَيْهِ) أَبَاهُ وَأُمَّهُ أَوْ خَالَتَهُ (وَقَالَ) لَهُمْ (ادْخُلُوا مِصْرَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ آمِنِينَ) فَدَخَلُوا وَجَلَسَ يُوسُفُ عَلَى سَرِيرِهِ (وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ) أَجْلَسَهُمَا مَعَهُ (عَلَى الْعَرْشِ) السَّرِيرِ (وَخَرُّوا) أَيْ أَبَوَاهُ وَإِخْوَتُه (لَهُ سُجَّدًا) سُجُودَ انْحِنَاءٍ لَا وَضْعِ جَبْهَةٍ وَكَانَ تَحِيَّتَهُمْ فِي ذَلِكَ الزمان (وَقَالَ يَا أَبَتِ هَذَا تَأْوِيلُ رُؤْيَايَ مِنْ قَبْلُ قَدْ جَعَلَهَا رَبِّي حَقًّا وَقَدْ أَحْسَنَ بِي) إِلَيَّ (إِذْ أَخْرَجَنِي مِنَ السِّجْنِ) لَمْ يَقُلْ مِنَ الْجُبِّ تَكَرُّمًا لِئَلَّا تَخْجَلَ إِخْوَتُه (وَجَاءَ بِكُمْ مِنَ الْبَدْوِ) الْبَادِيَةِ (مِنْ بَعْدِ أَنْ نَزَغَ) أَفْسَدَ (الشَّيْطَانُ بَيْنِي وَبَيْنَ إِخْوَتِي إِنَّ رَبِّي لَطِيفٌ لِمَا يَشَاءُ إِنَّهُ هُوَ الْعَلِيمُ) بِخَلْقِهِ (الْحَكِيمُ) فِي صُنْعِهِ وَأَقَامَ عِنْدَهُ أَبُوهُ أَرْبَعًا وَعِشْرِينَ سنة او سبع عشرة سنة وكان مُدَّةُ فِرَاقِهِ ثَمَانِيَ عَشْرَةَ أَوْ أَرْبَعِينَ أَوْ ثَمَانِينَ سَنَةً وَحَضَرَهُ الْمَوْتُ فَوَصَّى يُوسُفَ أَنْ يَحْمِلَهُ وَيَدْفِنَهُ عِنْدَ أَبِيهِ فَمَضَى بِنَفْسِهِ وَدَفَنَهُ ثَمَّةَ ثُمَّ عَادَ إِلَى مِصْرَ وَأَقَامَ بَعْدَهُ ثَلَاثًا وَعِشْرِينَ سَنَةً وَلَمَّا تَمَّ أَمْرُهُ وَعَلِمَ أَنَّهُ لَا يَدُومُ تَاقَتْ نَفْسُهُ إِلَى الْمُلْكِ الدائم فقال (رَبِّ قَدْ آتَيْتَنِي مِنَ الْمُلْكِ وَعَلَّمْتَنِي مِنْ تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ) تعبير الرؤيا (فَاطِرَ) خالق (السماوات والأرض أنت وليي) مُتَوَلِّي مَصَالِحِي (فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ تَوَفَّنِي مُسْلِمًا وَأَلْحِقْنِي بِالصَّالِحِينَ) مِنْ آبَائِي فَعَاشَ بَعْدَ ذَلِكَ أُسْبُوعًا أَوْ أَكْثَرَ وَمَاتَ وَلَهُ مِائَةٌ وَعِشْرُونَ سَنَةً وَتَشَاحَّ الْمِصْرِيُّونَ فِي قَبْرِهِ فَجَعَلُوهُ فِي صُنْدُوقٍ مِنْ مَرْمَرٍ وَدَفَنُوهُ فِي أَعْلَى النِّيلِ لِتَعُمَّ الْبَرَكَةُ جَانِبَيْهِ فَسُبْحَانَ مَنْ لَا انْقِضَاءَ لملكه (ذَلِكَ) الْمَذْكُورُ مِنْ أَمْرِ يُوسُفَ (مِنْ أَنْبَاءِ) أَخْبَارِ (الْغَيْبِ) مَا غَابَ عَنْكَ يَا مُحَمَّد (نُوحِيهِ إِلَيْكَ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ) لَدَى إِخْوَةِ يُوسُفَ (إِذْ أَجْمَعُوا أَمْرَهُمْ) فِي كَيْدِهِ أَيْ عَزَمُوا عَلَيْهِ (وَهُمْ يَمْكُرُونَ) بِهِ أَيْ لَمْ تَحْضُرْهُمْ فَتَعْرِفَ قِصَّتَهُمْ فَتُخْبِرَ بِهَا وَإِنَّمَا حَصَلَ لَكَ عِلْمُهَا مِنْ جِهَةِ الْوَحْيِ (وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ) أَيْ أَهْلِ مَكَّةَ (وَلَوْ حَرَصْتَ) على إيمانهم (بِمُؤْمِنِينَ) (وَمَا تَسْأَلُهُمْ عَلَيْهِ) أَيِ الْقُرْآنِ (مِنْ أَجْرٍ) تَأْخُذُهُ (إِنْ) مَا (هُوَ) أَيِ الْقُرْآنُ (إِلَّا ذِكْرٌ) عظة (لِلْعَالَمِينَ)

ترجمه: او چې کله قافله د مصر د آبادۍ نه باهر راوتله نو د هغوی پلار چه په حاضرينو کښې د نوسو او خامنو په مينځ کښې موجود وو، وې وئيل چې څه د يوسف عليه السلام خوشبو محسوسوم که چرې تاسو ما ناپوهه نه گنړئ نو څما تصديق به اوکړئ، د سحر باد د الله په حکم سره د درې ورځو يا د اته ورځو په فاصلې د يوسف عليه السلام خوشبو يعقوب عليه السلام ته اورسوله، نو حاضرينو هغوی ته اووئيل والله تاسو په مخکښينۍ ناپوهۍ کښې مبتلاء يئ د هغه د ډير محبت د وجه نه، باوجود د ډيرې مودې تيريدلو، چنانچه چې کله خوشخبری ورکولو والا يهودا قميص راوړلو او هم يهودا د وينو هغه قميص راوړې وو، لهذا دغه شان هغه اوغوښتل چې څنګه هغه اباجان ته غم رسولې وو دغه شان هم څه بهٔ هغه ته د خوشحالۍ خبر ورکوم او د يعقوب عليه السلام په مخ يې قميص واچولو نو د هغه نظر واپس شولو يعقوب عليه السلام اووئيل چې ما تاسو ته وئيل نه چې څه د الله د طرف نه هغه څه پيژنم د کوم چې تاسو ته علم نشته، هغوی اووئيل چې اباجان د الله نه څمونږ د خطاګانو معافی اوغوارئ بې شکه مونږ قصور واريو، وې فرمائيل چې څه به ډير زر د خپل رب نه معافی اوغوارم هغه ډير بخښونکې دې او ډير مهربان دې، دا استغفار ئې د سحر وخت پورې روستو کړو چې قبوليت ته زياته نزدې وی او وئيلې شوی دی چې د جمعې شپې پورې ئې روستو کړو، بيا مصر طرف ته متوجه شو او يوسف عليه السلام او د ملک سرداران د دوی ملاقات د پاره باهر راوتل، چې کله د يوسف عليه السلام رونړو ټول خاندان د يوسف عليه السلام خيمې خوا ته رواورسيدل نو خپلو والدينو ته ئې څان سره ځاې ورکړو يعنی خپل پلار، مور يا خپل ترور، او وې وئيل د الله په خوښه تاسو په امن او امان سره مصر ته راشئ، چنانچه دا خلق داخل شول، او يوسف عليه السلام په تحت باندې کيناستلو او خپل مور پلار ئې هم په تحت باندې کينول او د هغوی والدين او رونړه د يوسف عليه السلام مخکښې په سجده پريوتل،او دا سجده د ټيټيدلو په توګه وه نه چې په زمکه باندې د تندې اينبودلو سره، او په دغه وخت کښې د سلام هم دغه طريقه وه، نو بيا يوسف عليه السلام اووئيل چې اباجان دا څما د مخکښيني خوب تعبير دې، څما پروردګار دا رشتيا اوښودلو، هغه ماسره ډيره احسان اوکړو، کله چې هغه څه د جيل نه راويستلم، او دا ئې اونه ووئيل چې د کوهئ نه ئې راويستلم، د خپلو رونړو عزت د وجې چې هغوی شرمنده نه شی، او تاسو خلقو لره ئې د هغه اختلاف نه پس کوم چې شيطان په ما کښې او څما په رونړو کښې اچولې وو صحراء راوستلې، څما رب چې څه اوغواړی د هغې د پاره بهترين تدبير جوړونکې دې او هغه د خپل مخلوق باره کښې ډير علم والا او د خپل صنعت په باره کښې حکمت والا دې او يوسف عليه السلام خپل مور بلار خان سره ۲۴ يا ۲۷ کاله اوساتل، او د جدائی موده ۱۸ کاله يا ۴۰ کاله يا ۸۰ کاله وه، په مصر کښې د يعقوب عليه السلام انتقال اوشو او يوسف عليه السلام ته ئې وصيت کړې وو چې څما تابوت يوځئ او د زما د پلار اسحق عليه السلام سره ئې دفن کړئ، چنانچه يوسف عليه السلام

په خپله هغه یوړلو او د وصیت مطابق ئې دفن کړو، بیا مصر ته واپس راغلو، او ددې نه پس په مصر کښې ۲۳ کاله پاتې وو، او چې کله کار په مصر کښې پوره شو او پوهه شو چې هغه څه همیشه پاتې کیدونکې نه دي او هغه باندې د همیشه بادشاهۍ (جنت) شوق غالب شو نو یوسف عليه السلام اووئیل اې ځما پروردګاره تا ماته بادشاهي راکړه او د خوبونو تعبیر دې راته اوخودلو اې د آسمانونو او د زمکې پیدا کونکیه، هم ته ځما د مصلحتونو مالک یې او ته ما د اسلام په په حالت کښې وفات کړې او ته مالره نیکانو خلقو یعنې پلار نیکه سره میلاو کړې، ددې نه پس حضرت یوسف عليه السلام یو هفته یا ددې نه لږ څه زیاتې ورځې ژوندې وو او د هغوی عمر ۱۲۰ کاله شو، او د مصر خلقو د یوسف عليه السلام د دفن په ځائې کښې اختلاف اوکړو، چنانچه هغوی د سنګ مرمر په یو صندوق کښې کیخودلو سره د دریائې نیل اوچت طرف باندې دفن کړې شو، چې دواړه طرفو ته برکت حاصل وی، پاک دې هغه ذات د چا د بادشاهۍ چې کله هم ختمیدل نشته، د یوسف عليه السلام دا واقعه د غیب د هغه خبرو نه ده اې محمد ﷺ کومه چې تانه پته ده، چې د هغې مونږ تاته وحی کوو، او تا ته د یوسف عليه السلام رونړو سره نه وئې، کله چې هغوی د یوسف عليه السلام په باره کښې سازش کړې وو، یعنې ددې ئې پخه اراده کړې وه، حال دا چې هغوی یوسف عليه السلام سره چل (مکر) کولو، یعنې اې محمد ﷺ ته د یوسف عليه السلام رونړو سره موجود نه وئې چې د هغوی د قصې نه واقف وې او ددې دې خبر ورکړې وو، تا ته ددې علم په ذریعه دوحی اوشو. او اکثر خلق یعنې اهل مکه اګرچې ته ددوی د ایمان خواهشمند یې، په قرآن باندې ایمان راوړنکی نه دی. او تاسو په قرآن باندې د دی د بدلې سوال نه کوئی، چې تاسو دا وصول کوئې، دا یعنې قرآن د ټولو جهانونو د پاره ټول په ټوله نصیحت دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: خرج من عریش مصر:** عریش د یو قول مطابق د مصر او شام په ملک کښې په سرحد باندې د یو ښار نوم دې، دویم قول دادې چې عریش آبادۍ ته وئیلې شی او ددې نه مراد د مصر آبادی ده.

**قوله: من بنیه واولادهم:** ددې نه معلومه شوه چې د یوسف عليه السلام په رونړو کښې څه د خپل پلار سره پاتې شوې وو، حالانکه مخکښې معلومه شوې ده چې ټول رونړو مصر ته تلې وو، په تفسیر خازن کښې دی من اولادبنیه او د شیخ زاده عبارت دا دې، (من ولدولده)

**قوله: اوصلته الیه الصبا:** ای ریح الصباء، مضاف محذوف دې، یعنې بادصبا، دلته یوه قوی شبه داده چې صبا د مشرق نه مغرب طرف ته چلیدونکې هوا ته وائی، او د مغرب نه مشرق طرف ته چلیدونکې هوا ته دبور وائی. او شام د مصر نه مشرق طرف ته واقع دې، لهذا د شام د طرف نه راتلونکی هوا ته به صبا وئیلې شی، لهذا صبا د شام (کنعان) نه

مصر طرف ته خوشبو خو را ورلې شي خو اورلې ئې نشي، البته دبور د مصر نه شام طرف نه خوشبو ورلې شي، مناسبه به وه چې مفسر علام د (صبا) په ځائې دبور فرمائيلې وو.

**قوله**: تفندون: (تفعيل، تفنيد) صيغه جمع مذكر حاضر، د لوئې عمر د وجې نه د عقل كمزورې كيدل، په عقل كښې كمې راتلل، نقصان راتلل.

**قوله**: لصدقتمونى: دا د (لولا) جواب دې.

**قوله**: فى مضربة: لويه خيمه

**سوال**: مضربة، د محذوف گرځولو څه ضرورت راغلو؟

**جواب**: ځكه چې د دخلوا على يوسف وئيلو نه پس ادخلوا مصر د وئيلو هيڅ ضرورت نه پاتې كيږي، ځكه چې د دخول نه پس د دخول څه مطلب نه وي، ځكه مو (فى مضربة) محذوف اوگرځولو چې د اول دخول نه په خيمه كښې داخليدل مراد وي، كومه چې د استقبال د پاره د ښار نه بهر جوړه شوې وه، ددې نه پس بل دخول په ښار د مصر كښې اوشو.

**قوله**: امه او خالته: په دې كښې دې اختلاف طرف ته اشاره ده چې آيا د يوسف عليه السلام مور (راحيل) په دغه وخت كښې ژوندئ وه كه نه، بعضې حضراتو وئيلې دى چې ژوندئ وه، خو د جمهور مفسرينو رائې ده چې د بنيامين د پيدا كيدو په وخت كښې وفات شوې وه، د هغې د وفات نه پس يعقوب عليه السلام د راحيل خور (ليا) سره نكاح كړې وه، او مجازا ترور ته هم مور وئيلې شي لكه څرنگه چه تره ته مجازا پلار وئيلې شي په عبرانئ ژبه كښې بنيام د ماشوم دپيدا كيدو درد ته وائي په دې مناسبت سره د بينامين نوم اينبودلې شوې وو، دا هم ددې خبرې دليل دې چې د يوسف عليه السلام د مور انتقال شوې وو.

**قوله**: آمنين: اى آمنين من القحط وسائر المكاره.

**[اياتونه: ۱۰۵ ـ ۱۱۱]**

---

(وَكَأَيِّنْ) وَكَمْ (مِنْ آيَةٍ) دَالَّةٍ عَلَى وَحْدَانِيَّةِ اللهِ (فِى السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا) يُشَاهِدُونَهَا (وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُونَ) لَا يَتَفَكَّرُونَ بِهَا (وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُمْ بِاللَّهِ) حَيْثُ يُقِرُّونَ بِأَنَّهُ الخالق الرزاق (إِلَّا وَهُمْ مُشْرِكُونَ) بِهِ بِعِبَادَةِ الْأَصْنَامِ وَلِذَا كَانُوا يَقُولُونَ فِي تَلْبِيَتِهِمْ لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ إِلَّا شَرِيكًا هُوَ لَكَ تَمْلِكُهُ وَمَا ملك يعنونها (أَفَأَمِنُوا أَنْ تَأْتِيَهُمْ غَاشِيَةٌ) نِقْمَةٌ تَغْشَاهُمْ (مِنْ عَذَابِ اللَّهِ أَوْ تَأْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً) فَجْأَةً (وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ) بِوَقْتِ إِتْيَانِهَا قَبْلَه (قُلْ) لَهُمْ (هَٰذِهِ سَبِيلِي) وَفَسَّرَهَا بِقَوْلِهِ (أَدْعُو إِلَى) دِينِ (اللَّهِ عَلَىٰ بَصِيرَةٍ) حُجَّةٍ وَاضِحَةٍ (أَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِي) آمَنَ بِي عُطِفَ عَلَى أَنَا الْمُبْتَدَأِ الْمُخْبَرِ عَنْهُ بِمَا قَبْلَه (وَسُبْحَانَ اللَّهِ) تَنْزِيهًا لَهُ عَنِ الشُّرَكَاءِ (وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ) مِنْ جُمْلَةِ سَبِيلِه أَيْضًا (وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُوحِي) وَفِي قِرَاءَةٍ بِالنُّونِ وَكَسْرِ الْحَاءِ (إِلَيْهِمْ) لَا مَلَائِكَةً (مِنْ أَهْلِ الْقُرَىٰ) الْأَمْصَارِ لِأَنَّهُمْ أَعْلَمُ وَأَحْلَمُ بِخِلَافِ أَهْلِ الْبَوَادِي لِجَفَائِهِمْ وَجَهْلِهِمْ (أَفَلَمْ يَسِيرُوا) أَهْلُ مَكَّةَ (فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ أيْ آخِر أمْرِهِمْ مِنْ إهْلَاكِهِمْ بِتَكْذِيبِهِمْ رُسُلَهُمْ ﴿وَلَدَارُ الْآخِرَةِ﴾ أيْ الْجَنَّة ﴿خَيْرٌ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا﴾ الله ﴿أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ بِالْيَاء وَالتَّاء يَا أهْل مَكَّة هَذَا فَتُؤْمِنُونَ ﴿حَتَّى﴾ غَايَة لِمَا دَلَّ عَلَيْهِ ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا﴾ أيْ فَتَرَاخَى نَصْرهمْ حَتَّى ﴿إِذَا اسْتَيْأَسَ﴾ يَئِسَ ﴿الرُّسُلُ وَظَنُّوا﴾ أيْقَنَ الرُّسُل ﴿أَنَّهُمْ قَدْ كُذِّبُوا﴾ بِالتَّشْدِيدِ تَكْذِيبًا لَا إيمَان بَعْده وَالتَّخْفِيف أيْ ظَنَّ الْأُمَم أنَّ الرُّسُل أُخْلِفُوا مَا وُعِدُوا بِهِ مِنْ النَّصْر ﴿جَاءَهُمْ نَصْرُنَا فَنُنْجِي﴾ بِنُونَيْنِ مُشَدَّدًا وَمُخَفَّفًا وَبِنُونٍ مُشَدَّدًا مَاضٍ ﴿مَنْ نَشَاءُ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُنَا﴾ عَذَابنَا ﴿عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ﴾ الْمُشْرِكِينَ ﴿لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ﴾ أيْ الرُّسُل ﴿عِبْرَةٌ لِأُولِي الْأَلْبَابِ﴾ أصْحَاب الْعُقُول ﴿مَا كَانَ﴾ هَذَا الْقُرْآن ﴿حَدِيثًا يُفْتَرَى﴾ يُخْتَلَق ﴿وَلَكِنْ﴾ كَانَ ﴿تَصْدِيقَ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ قَبْله مِنْ الْكُتُب ﴿وَتَفْصِيلَ﴾ تَبْيِين ﴿كُلِّ شَيْءٍ﴾ يُحْتَاج إلَيْهِ فِي الدِّين ﴿وَهُدًى﴾ مِنْ الضَّلَالَة ﴿وَرَحْمَةً لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾ خُصُّوا بِالذِّكْرِ لِانْتِفَاعِهِمْ بِهِ دُون غَيْرهمْ

---

**ترجمه:** په آسمانون او زمکه کښې د الله په وحدانیت باندې دلالت کونکې بې شماره نښې دی هغې ته د کتلو باوجود مخ اړولو سره تیریږی په دې کښې غور او فکر نه کوی او په دوی کښې ډیر خلق په الله باندې ایمان لرونکی یعنی هغه خالق اورزاق منلو باوجود د بتانو عبادت کولو سره مشرکان دی او هم دغه وجه ده چې دوی به په تلبیه کښې وئیل لبیك لا شریك لك الا شریکا هو لك تملکه وما ملك، (ترجمه) مونږ ستا په حضور کښې حاضر یو، ستا څوک شریک نشته سوا د هغه شریک نه چې د هغه ته مالک ئې او د هغه څه هم ته مالک ئې چې د چا هغه مالک دې، او دوی به د الاشریکانه بتان مراد اخستل، آیا دوی ددې خبرې نه بې ویره شوی دی چې په دوی باندې به د الله د عذابونو نه یو راخوریدونکې عذاب راشی، یا په دوی باندې اچانک قیامت راشی او دوی د مخکښې نه ددې د راتلو احساس هم اونه کړی، ته دوی ته اووایه چې دا څما طریقه ده، او د طریقه تفسیر په ادعوا الله، الخ سره کړې دې چې څما او څما اتباع کونکی چا چې ما باندې ایمان راوړې دې د الله دین طرف ته علی وجه البصیرة حجة واضحة سره دعوت ورکوی، د (من) عطف په (انا) مبتدأ باندې دې چې د هغې خبر ماقبل (علی وجه البصیرت) دې او الله پاک دې هغه د شریک د نقص نه پاک دې او زه د مشرکانو نه نه یم، دا هم د نبی علیه السلام په طریقو کښې یوه طریقه ده، ستاسو نه مخکښې په کلی والو کښې چې مونږ څومره رسولان اولیږل هغه ټول سړی وو، نه چې فرشتې او ښځې، او یو قراءت کښې (نوحی) د نون او حاء مکسوره سره دې، یعنی د ښارونو اوسیدونکی وو، ځکه چې ښاریان د کلی والو په نسبت ډیر پوهیدونکی او صبر کونکی وی، نه چې کلی وال د خپل جهالت او ظلم د وجې، آیا مکې والو په زمکه کښې ګرځیدلو سره اونه کتل، چې د دوی نه د مخکښې خلقو د خپل رسولانو د نه منلو د وجه څه انجام اوشو؟ دوی هلاک کولو سره یقینا د آخرت کور یعنی جنت د الله نه د ویرونکی خلقو د پاره بهتر دې، اې مکې والو آیا تاسو په دې

پوهيږئ نه،؟ چې ايمان راوړئي، (يعقلون) ياء او تاء سره دي، (حتی) ددې د غايت د پاره ده، چې په هغې باندې وما ارسلنا من قبلك الارجالا) دلالت کوي، يعنی ددوی نصرت روستو کړې شو، تردې چې کله رسولان نااميده شو، او رسولانو يقين اوکړو چې ددوی تکذيب وکړې شو، (کذبوا د ذال تشديد سره) داسې تکذيب چې د هغې نه پس د ايمان توفيق نه وی، او د ذال تخفيف سره هم، يعنی امتونو ګمان اوکړو چې رسولانو د هغه مدد وعده خلافی اوکړه، د کوم چې هغوی وعده کړې وه، نو دوی ته زمونږ مدد اورسيدلو نو کوم چې مونږ غواړو، خلاصي ورکوو، (ننجی) دوه نونونو سره او د جيم تشديد سره، او د جيم تخفيف سره هم، او يو نون او جيم مشدد سره د ماضی مجهول هم صيغه ده، او زمونږ عذاب د مشرکانو نه به نه اخوا کيږی، بې شکه د دې رسولانو په قصو کښې د عقلمندو د پاره عبرت دې، دا قرآن د ځان نه ليکلې شوې نه دې، بلکه د مخکښينی کتابونو د تصديق دپاره دې، او هرڅيز صفا صفا بيانونکی دې، او د ايمان راوړونکو د پاره رحمت دې، د مومنانو ذکر ئې خاص طور سره ځکه اوکړو چې په حقيقت کښې هم دوی د دې نه فائده اخلی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: کاين**: دا په اصل کښې (کای) وو، تنوين مو په نون سره بدل کړو، کاين جوړ شو، دا د کاف تشبيه او د (ای) نه مرکب دې، دا اکثر د (کم) خبريه په معنی کښې راځی، کوم چې د کثرت معنی ورکوی، مثلا کای من رجل رايت،ما ډير سړی اوکتل، او کله کله د استفهام په معنی کښې استه ماليږی، څنګه چې ابی بن کعب ﷺ د عبدالله بن مسعود ﷺ نه معلومه کړه، کای تقراسورة الاحزاب، تا سورة احزاب څو ځله اولوستلو، کاين مبتدأ ده، او (من آية) تميز مجرور په (من) سره دې.

**قوله: يمرون عليها**: په جمله کيدلو سره د کاين خبر دې، او (وهم عنها معرضون) جمله کيدو سره د يمرون د ضمير نه حال دې.

**قوله: المخبرعنه بما قبله**: (انا) او (من) مبتدأ مؤخر. او (علی بصيرة) خبر مقدم دې، کما صرح،

**قوله: بخلاف اهل البواد**: په دې کښې اشاره ده چې د اهل القری نه د ښارونو مقابل مراد دې، لهذا اوس به دا اعتراض نه راځی، چې انبياء اکثر په ښارونو کښې راليږلې شوې وو،

**قوله: يئس**، استئس، (س-ت) دطلب د پاره نه دې،

**قوله: تکذيبا لاايمان بعده**: په دې کښې ددې شبهې جواب دې چې تکذيب خو د مخکښې نه موجود وو، يعنی اوس داسې تکذيب اوشو چې د هغې نه پس د ايمان توقع ختمه شوه، او: (ظنوا) ترجمه، به ايقن الرسل قدکذبوا د تشديد په صورت کښې وی، د تخفيف په صورت کښې به ظنوا په خپله معنی کښې وی

قوله: فنجي :د جيم تشديد سره، (تنجية) د تفعيل نه، (مونږ بچ کوو) فنجي مخففاً (افعال) مضارع جمع متکلم، (نجي) ماضی مجهول واحد مذکر غائب (تنجية تفعيل) نه، (هغه بچ کړې شو) د (مشددا) تعلق په هر قرا ت کښې د جيم سره دې.د ماضي مجهول په صورت کښې (من نشاء) نائب فاعل وی، په اولنی دوو صورتونو کښې به مفعول به وی. بعضې حضراتو مشددا د (نون) صفت ګرځولې دې،کومه چې خطا ده.

**[۱۳] سورة الرعد**

سُورَة الرَّعْد مَكِّيَّة إِلَّا (وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا) الآية (ويقول الذين كفروا لست مرسلا) الآية أَوْ مَدَنِيَّة إِلَّا (وَلَوْ أَنَّ قرآنا) الآيتين ٤٣ او ٤٤ او ٤٥ او ٤٦ الآية

سورة رعد مکی دې علاوه د ولا يزال الذين كفروا پورې آيت نه،اود يقول الذين كفروا لست مرسلا پورې آيت نه، يا مدني دې د ولو ان قرآنا دوه آيتونو نه چه هغه ۴۳، ۴۴ يا ۴۵، ۴۶ آيتونه دی.

**[اياتونه: ۱ - ۷]**

بسم الله الرحمن الرحيم (المر) اللَّه أَعْلَم بِمُرَادِهِ بِذَلِكَ (تِلْكَ) هَذِهِ الْآيَات (آيَاتُ الْكِتَابِ) الْقُرْآن وَالْإِضَافَة بِمَعْنَى مِنْ (وَالَّذِي أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ) أَيْ الْقُرْآن مبتدأ خبره (الْحَقُّ) لَا شَكَّ فِيهِ (وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ) أَيْ أَهْل مَكَّة (لَا يُؤْمِنُونَ) بِأَنَّهُ مِنْ عِنْده تَعَالَى (اللَّهُ الَّذِي رَفَعَ السَّمَاوَاتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا) أَيْ الْعَمَد جَمْع عِمَاد وَهُوَ الْأُسْطُوَانَة وَهُوَ صَادِق بِأَنْ لَا عَمَد أَصْلًا (ثُمَّ اسْتَوَى عَلَى الْعَرْشِ) اسْتِوَاء يَلِيق بِهِ (وَسَخَّرَ) ذَلَّلَ (الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ) مِنْهُمَا (يَجْرِي) فِي فَلَكه (لِأَجَلٍ مُسَمًّى) يَوْم الْقِيَامَة (يُدَبِّرُ الْأَمْرَ) يَقْضِي أَمْر مُلْكه (يُفَصِّلُ) يُبَيِّن (الْآيَاتِ) دَلَالَات قُدْرَته (لَعَلَّكُمْ) يَا أَهْل مَكَّة (بِلِقَاءِ رَبِّكُمْ) بِالْبَعْثِ (توقنون) (وَهُوَ الَّذِي مَدَّ) بَسَطَ (الْأَرْضَ وَجَعَلَ) خَلَقَ (فِيهَا رَوَاسِيَ) جِبَالًا ثَوَابِت (وَأَنْهَارًا وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ جَعَلَ فِيهَا زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ) مِنْ كُلّ نَوْع (يُغْشِي) يُغَطِّي (اللَّيْلَ) بِظُلْمَتِهِ (النَّهَارَ إِنَّ فِي ذَلِكَ) الْمَذْكُور (لَآيَاتٍ) دَلَالَات عَلَى وَحْدَانِيّته تَعَالَى (لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ) فِي صُنْع اللَّه (وَفِي الْأَرْضِ قِطَعٌ) بِقَاع مُخْتَلِفَة (مُتَجَاوِرَاتٌ) مُتَلَاصِقَات فَمِنْهَا طَيِّب وَسَبْخ وَقَلِيل الرِّيع وَكَثِيره وَهُوَ مِنْ دَلَائِل قُدْرَته تَعَالَى (وَجَنَّاتٌ) بَسَاتِين (مِنْ أَعْنَابٍ وَزَرْعٌ) بِالرَّفْعِ عَطْفًا عَلَى جَنَّات وَالْجَرّ عَلَى أَعْنَاب وَكَذَا قَوْله (وَنَخِيلٌ صِنْوَانٌ) جَمْع صِنْو وَهِيَ النَّخَلَات يَجْمَعهَا أَصْل وَاحِد وَتَتَشَعَّب فُرُوعهَا (وَغَيْرُ صِنْوَانٍ) منفردة (تُسْقَى) بِالتَّاءِ أَيْ الْجَنَّات وَمَا فِيهَا وَالْيَاء أَيْ الْمَذْكُور (بِمَاءٍ وَاحِدٍ وَنُفَضِّلُ) بِالنُّونِ وَالْيَاء (بَعْضَهَا عَلَى بَعْضٍ فِي الْأُكُلِ) بِضَمِّ الْكَاف وَسُكُونهَا فَمِنْ حُلْو وَحَامِض وَهُوَ مِنْ دَلَائِل قُدْرَته تَعَالَى (إِنَّ فِي ذَلِكَ) الْمَذْكُور (لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ) يتدبرون (وَإِنْ تَعْجَبْ) يَا مُحَمَّد مِنْ تَكْذِيب الْكُفَّار لَك (فَعَجَبٌ) حقيق بالعجب (قَوْلُهُمْ) منكرين البعث (ءَإِذَا كُنَّا تُرَابًا أَئِنَّا لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ) لِأَنَّ الْقَادِر عَلَى إِنْشَاء الْخَلْق وَمَا تَقَدَّمَ عَلَى غَيْر مِثَال

قادر عَلَى إعَادَتِهِمْ وَفِي الْهَمْزَتَيْنِ فِي الْمَوْضِعَيْنِ التَّحْقِيقِ وَتَحْقِيقِ الْأُولَى وَتَسْهِيلِ الثَّانِيَةِ وَإِدْخَالِ أَلِفٍ بَيْنَهُمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ وَتَرْكِهَا وَفِي قِرَاءَةٍ بِالْاسْتِفْهَامِ فِي الأول والخبر في الثاني واخرى وعكسه (أولئك الذين كفروا بربهم وأولئك الأغلال في أعناقهم وأولئك أصحاب النار هم فيها خالدون) وَنَزَلَ فِي اسْتِعْجَالِهِمْ الْعَذَابَ اسْتِهْزَاءً (وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالسَّيِّئَةِ) العذاب (قبل الحسنة) الرحمة (وقد خلت من قبلهم الْمَثُلَاتُ) جَمْعُ الْمَثُلَةِ بِوَزْنِ السَّمُرَةِ أَيْ عُقُوبَاتُ أَمْثَالِهِمْ مِنَ الْمُكَذِّبِينَ أفلا يَعْتَبِرُونَ بِهَا (وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغْفِرَةٍ لِلنَّاسِ عَلَى) مَعَ (ظُلْمِهِمْ) وَإِلَّا لَمْ يَتْرُكْ عَلَى ظَهْرِهَا دَابَّةً (وَإِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيدُ الْعِقَابِ) لِمَنْ عَصَاهُ (وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْلَا) هَلَّا (أُنْزِلَ عَلَيْهِ) عَلَى مُحَمَّدٍ (آيَةٌ مِنْ رَبِّهِ) كَالْعَصَا وَالْيَدِ والناقة قال تعالى (إِنَّمَا أَنْتَ مُنْذِرٌ) مُخَوِّفُ الْكَافِرِينَ وَلَيْسَ عَلَيْكَ إِتْيَانُ الْآيَاتِ (وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ) نَبِيٌّ يَدْعُوهُمْ إِلَى رَبِّهِمْ بِمَا يُعْطِيهِ مِنَ الْآيَاتِ لَا بِمَا يَقْتَرِحُونَ

---

**ترجمه:** شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم والا دې، المر الله ښه پوهيږي په مراد ددې باندې دا ايتونه د قرآن کريم آيتونه دی او په (آيات الکتاب) کښې اضافت په معنی د (من) دې. او څه چې ستا د رب د طرف نه تاته نازلې شی، تول په حق سره دی، يعنی په دې کښې هيڅ شک نشته، (والذي انزل اليک) مبتدأ ده، او (الحق) ددې خبر دې. خو اکثر خلق په دې باندې ايمان نه راوړی. چې دا د الله دطرف نه دې، او د اهل مکه دی الله هغه دې کوم چې اسمانونو لره بغير د ستنو نه اوچت کړل کوم چې تاسو ته په نظر راځی. (العمد ،د عماد جمع ده، او هغه ستنې دی، او نه کتل هغه وخت هم صادق راځی، چې ستنې هډو وې نه. بيا هغه د بادشاهئ په تحت باندې جلوه افروز شو،داسې جلوه ئې اوخودله کومه چې د هغه شان سره مناسب ده. او هغه نور اوسپوږمئ دواړو لره د قانون پابند جوړ کړل، او په دې کښې يو يو په خپل مدار باندې يو نيټې پورې يعنی قيامت پورې جاری وی،هم هغه الله د هر يو کار انتظام کوی، يعنی د خپلې باشاهئ معاملات برابر کوی او هغه د خپل قدرتونو دليلونه ښکاره بيانوی، چې اې هل مکه!د قبر نه د پاسيدو په ذريعه تاسو د خپل رب ملاقات باندې يقين اوکړئ، او هغه داسې ذات دې چا چې زمکه خوره کړه او په دې کښې ئې نه رکيدونکی غورونه پيدا کړل، او په زمکه کښې د هر قسم ميوو دوه دوه جوړې پيدا کړې او هغه دشپې د تيارې په وجه د ورځې رڼرا پټوی، يقينا په دې ذکر شوې څيزونو کښې د الله د وحدانيت ډيرې نښې دی، د الله په کارونو کښې د غور اوفکر کولو والو دپاره، او په زمکه کښې جدا جدا علاقې موندلې کيږی کومې چې يو بل سره يو ځائې دی، په هغې کښې زرخيز هم دی، او بنجر هم او قليل النفع هم، او کثير النفع هم، دا هم د الله د قدرتونو نه دې او د انګور باغانو هم دی، او پټئ هم، (زرع) په رفع سره، په جنات باندې د عطف د وجې، او جر سره هم، په اعناب باندې د عطف دوجې، او د کهجورو اونې هم دی. (صنوان) صنو جمع

ده، د کهجورو هغه اونو ته وائی د چا چې جرړه یوه وی، او هغې باندې ډیرې څانګې وی. او څه جدا هم دی، تول یو اوبو سره خړوب کوی، د (تسقی) ضمیر د مذکور طرف ته راجع دې. خو په مزه کښې بعضې مونږ بهترې جوړې کړو، او بعضې کمترې هم، (ننفصل) د نون او یاء سره، (الاکل) د کاف ضمې او سکون سره، (دوه قراتونه دی) بعضې په دې کښې خوږې او بعضې ترخې وی، دا هم د الله د قدرت د دلائلو نه دی، بې شکه دې ذکر شوې خبرو کښې د غور او فکر کولو دپاره نښې دی، او که اې محمد ﷺ تاسو ته د کفار د انکار کولو نه حیرانتیا کیږی، نو په حقیقت کښې د منکرینو د بعث دا خبره د حیرانتیا قابله ده، چې کله مونږ مړه شو او خاورې شو، نو آیا مونږ به بیا په دوباره راوژندی کیږو؟ ځکه چې کوم ذات د مخکښې نمونې نه بغیر په اول ځل پیدا کولو او مذکوره څیزنو باندې قادر دې نو هغه ددوی په دوباره پیدا کولو باندې هم قادر دې، او په دواړو همزو کښې په دوراه ځایونو کښې تحقیق، او د اولنی تحقیق او د دویمې تسهیل، او په دواړو صورتونو کښې په دواړو همزو کښې الف داخلولو سره، او د داخلیدلو پریښودلو سره (تول جائز دی) او یو قراءت کښې اول کښې استفهام او په دویم کښې خبر، اوپه دویم قراءت کښې ددې اله، دا هغه خلق دی چا چې په خپل رب کفر اوکړو او دا هغه خلق دی چې د چا په ستونو کښې طوق دې، دا جهنمیان دی او همیشه به جهنم کښې وی او ددوی د تړقو په توګه د عذاب د زر غوختلو په باره کښې دا راروان آیت نازل شو، داخلق نیکی یعنی رحمت نه مخکښې د بدو دپاره جلدی کوی، حالانکه ددوی نه مخکښې عبرتناک مثالونه تیر شوې دی مثلات، د مثلة جمع ده، د سمرة په وزن، یعنی ددوی په شان د تکذیب کونکو سزاګانې (تیر شوې دی) آیا دهغې نه عبرت نه حاصلوی؟ حقیقت دادې چې ستا رب د خلقو د زیادتی باوجود هغوی لره معاف کوی، ګنی د زمکې په سر باندې به ئې یو زنده سره پریښې نه وو او دا هم حقیقت دې چې ستا رب نافرمانی کولو والا ته سخت عذاب ورکونکې دې، او کافران وائی، ولې په محمد ﷺ باندې نازل شوې نه دی د هغه د رب د طرف نه نښې،لکه چې عصا د موسی ﷺ او سپین لاس هم، او اوښه د صالح ﷺ الله تعالی اوفرمائیل ته صرف کافرانو لره خبر ورکونکې یې، یعنی ویرونکې یې د معجزاتو راوړل ستا کار نه دې، او د هر قوم د پاره یو هدایت ورکونکې وی یعنی نبی ﷺ وی،چې خلق د هغه معجزاتو په وجه کوم چې الله هغه ته ورکړې وی، د هغوی رب طرف ته رابلی، نه چې د هغه معجزاتو د وجه کوم چې ددوی خوښوی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: سورة الرعد مكية:** سورة رعد مبتدأ ده مکیة خبر اول، او ثلث الخ خبر ثانی دې، د مکی مدنی کیدو په باره کښې پنځه قوله دی،

(۱) پوره سورت مکی سوا د (ولایزال الذین کفروا (الأیة) نه،

(۲)پوره سورت مکی دې، سوا د (هوالذی یریکم البرق، الی قوله،له دعوة الحق نه.
(۳)پوره سورت مدنی دې، سوا د (ولوانأقرآنا(دوه آیتونو) نه
(۴)ونیلې شوی دی چې پوره سورت مدنی دې
(۵) ونیلې شوی دی چې پوره سورت مکی دې.

**قوله:** الاضافة: بمعنی من: دا ددې سوال جواب دې چې په آیات الکتاب کښې اضافت (اضافة الشئ الی نفسه) لازمیږی، ځکه چې آیات او کتاب دواړه یو شیز دې، د جواب حاصل دا دې چې اضافة الشئ الی نفسه هغه وخت لازمیږی چې کله اضافت په معنی د لام وی، دلته په معنی د (من) دې، فلا حرج.

**قوله:** بأنه من عنده: دا جمله د یؤمنون مفعول به دې.

**سوال:** یؤمن متعدی بأل استعمالیږی، نه چې متعدی بالباء؟

**جواب:** یؤمنون، دیقرون، معنی لره متضمن دې، لهذا تعدیت بالباء صحیح ده.

**قوله:** الله الذی رفع السموات، الخ: الله مبتدأ ده، او الذی الخ ددې خبر دې.

**قوله:** وهوصادق بأن لاعمد اصلا: دا ددې شبهې جواب دې چې

**شبه:** د جمع نفی د مفهوم په توګه په ثبوت واحد باندې دلالت کوی، یعنی یوه ستنه ده،

**جواب:** د جواب حاصل دادې چې دمقید نفی د مطلق په نفی باندې دلالت کوی، دلته نفی موصوف او صفت دواړو طرف ته راجع ده،

**قوله:** جعل: دا ددې شبهې جواب دې

**شبه:** چې جعل متعدی په دوه مفعول سره دې، حالانکه دلته دوه مفعول نشته؟

**جواب:** جعل په معنی د خلق دې، نه چې په معنی د صیر

**قوله:** من کل نوع، کښې د من کل الثمرات تفسیر دې،

**قوله:** یغشی اللیل النهار: دا جمله مستانفه ده، او په ماقبل کښې د مذکوره افعالو د فاعل نه حال هم کیدې شی، د یغشی فاعل ضمیر مستتر (هو) دې، کوم چې د الله طرف ته راجع دې، اللیل مفعول اول، او النهار مفعول ثانی، یعنی الله تعالی د شپې په ذریعې سره ورځ لره پټوی،

**قوله:** صنوان: بالتثلیث نخلة لها راسان واصلها واحد، د یو داسې کهجورې اونه چې د هغې جره یوه وی، او سرونه ئې دوه وی.

**قوله:** بالتاء، والیاء تسقی: د مؤنث په صورت کښې ددې نائب فاعل الجنات به وی، او یسقی مذکر په صورت کښې ددې فاعل به مذکور وې.

**قوله**: بالياء: يعنى په تُغفل كښې ياء او نون دواړه جائز دی، دمذکر غائب په صورت کښې به د مُدبّرسره مطابقت وی.

**قوله**: حقيق: بالعجب.

**سوال**: د فعجبٌ تفسير په حقيقٌ سره په کوم قصد سره شوې دې؟

**جواب**: ددې مقصد د يو سوال جواب دې: سوال دادې چه چه عجبٌ خبرمقدم دې او قولهم مبتداء مؤخر ده، او عجبٌ مصدردې اود مصدر حمل په قولهم باندې صحيح نه دې؟

**جواب**: ؟: حقيقٌ محذوف اومنلې شو دې دپاره چه حمل صحيح شی.

**[اياتونه: ۸ ـ ۱۸]**

{اللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ أُنثَى} مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى وَوَاحِدٍ وَمُتَعَدِّدٍ وَغَيْرِ ذَلِكَ {وَمَا تَغِيضُ} تَنْقُصُ {الْأَرْحَامُ} مِنْ مُدَّةِ الْحَمْلِ {وَمَا تَزْدَادُ} مِنْهُ {وَكُلُّ شَيْءٍ عِندَهُ بِمِقْدَارٍ} بِقَدْرٍ وَحَدٍّ لَا يَتَجَاوَزُهُ {عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ} مَا غَابَ وَمَا شُوهِدَ {الْكَبِيرُ} العظيم {الْمُتَعَالِ} عَلَى خَلْقِهِ بِالْقَهْرِ بِيَاءٍ وَدُونِهَا {سَوَاءٌ مِّنكُم} فِي عِلْمِهِ تَعَالَى {مَّنْ أَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَن جَهَرَ بِهِ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍ} مُسْتَتِرٌ {بِاللَّيْلِ} بِظَلَامِهِ {وَسَارِبٌ} ظَاهِرٌ بِذَهَابِهِ فِي سِرْبِهِ أي طريقه {بِالنَّهَارِ} {لَهُ} لِلْإِنْسَانِ {مُعَقِّبَاتٌ} مَلَائِكَةٌ تَتَعَقَّبُهُ {مِّن بَيْنِ يَدَيْهِ} قُدَّامِهِ {وَمِنْ خَلْفِهِ} وَرَائِهِ {يَحْفَظُونَهُ مِنْ أَمْرِ اللّٰهِ} اي بامره من الجن وغيره {إِنَّ اللّٰهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ} لَا يَسْلُبُهُمْ نِعْمَتَهُ {حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا مَا بِأَنفُسِهِمْ} مِنَ الْحَالَةِ الْجَمِيلَةِ بِالْمَعْصِيَةِ {وَإِذَا أَرَادَ اللّٰهُ بِقَوْمٍ سُوءًا} عَذَابًا {فَلَا مَرَدَّ لَهُ} مِنَ الْمُعَقِّبَاتِ وَلَا غَيْرِهَا {وَمَا لَهُم} لِمَنْ أَرَادَ اللّٰهُ بِهِمْ سُوءًا {مِّن دُونِهِ} أَيْ غَيْرِ اللّٰهِ {مِن} زَائِدَةٌ {وَالٍ} يَمْنَعُهُ عَنْهُمْ {هُوَ الَّذِي يُرِيكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا} لِلْمُسَافِرِينَ مِنَ الصَّوَاعِقِ {وَطَمَعًا} لِلْمُقِيمِ فِي الْمَطَرِ {وَيُنشِئُ} يَخْلُقُ {السَّحَابَ الثِّقَالَ} بِالْمَطَرِ {وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ} هُوَ مَلَكٌ مُوَكَّلٌ بِالسَّحَابِ يَسُوقُهُ مُتَلَبِّسًا {بِحَمْدِهِ} أَيْ يَقُولُ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ {وَ} يُسَبِّحُ {الْمَلَائِكَةُ مِنْ خِيفَتِهِ} أَيِ اللّٰهِ {وَيُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ} وَهِيَ نَارٌ تَخْرُجُ مِنَ السَّحَابِ {فَيُصِيبُ بِهَا مَن يَشَاءُ} فَتُحْرِقُهُ نَزَلَ فِي رَجُلٍ بَعَثَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَدْعُوهُ فَقَالَ مَنْ رَسُولُ اللّٰهِ وَمَا اللّٰهُ أَمِنْ ذَهَبٍ هُوَ أَمْ مِنْ فِضَّةٍ أَمْ نُحَاسٍ فَنَزَلَتْ بِهِ صَاعِقَةٌ فَذَهَبَتْ بِقِحْفِ رَأْسِهِ {وَهُمْ} أَيِ الْكُفَّارُ {يُجَادِلُونَ} يُخَاصِمُونَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {فِي اللّٰهِ وَهُوَ شَدِيدُ الْمِحَالِ} الْقُوَّةِ أَوِ الْأَخْذِ {لَهُ} تَعَالَى {دَعْوَةُ الْحَقِّ} أَيْ كَلِمَتُهُ وَهِيَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ {وَالَّذِينَ يَدْعُونَ} بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ يَعْبُدُونَ {مِن دُونِهِ} أَيْ غَيْرِهِ وَهُمُ الْأَصْنَامُ {لَا يَسْتَجِيبُونَ لَهُم بِشَيْءٍ} مِمَّا يَطْلُبُونَهُ {إِلَّا} اسْتِجَابَةً {كَبَاسِطِ} أَيْ كَاسْتِجَابَةِ بَاسِطِ {كَفَّيْهِ إِلَى الْمَاءِ} عَلَى شَفِيرِ الْبِئْرِ يَدْعُوهُ {لِيَبْلُغَ فَاهُ} بِارْتِفَاعِهِ مِنَ الْبِئْرِ إِلَيْهِ {وَمَا هُوَ بِبَالِغِهِ} أَيْ فَاهُ أَبَدًا فَكَذٰلِكَ مَا هُمْ بِمُسْتَجِيبِينَ لَهُمْ {وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِينَ} عِبَادَتُهُمُ الْأَصْنَامَ أَوْ حَقِيقَةُ الدُّعَاءِ {إِلَّا فِي ضَلَالٍ} ضَيَاعٍ {وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا} كَالْمُؤْمِنِينَ {وَكَرْهًا} كَالْمُنَافِقِينَ وَمَنْ أُكْرِهَ بِالسَّيْفِ {وَ} يَسْجُدُ {ظِلَالُهُم بِالْغُدُوِّ} الْبُكَرِ {وَالْآصَالِ} الْعَشَايَا {قُلْ} يَا مُحَمَّدُ لِقَوْمِكَ {مَن رَّبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ

قُلِ اللّٰه﴾ إن لَم يَقُولُوهُ لا جَوَاب غَيره ﴿قُل﴾ لَهُم ﴿أَفَاتَّخَذتُم مِن دُونه﴾ اي غَيره ﴿أَولِيَاء﴾ اصنامًا تَعبُدُونَهَا ﴿لَا يَملِكُونَ لِأَنفُسِهِم نَفعًا وَلَا ضَرًّا﴾ وَتَرَكتُم مَالِكَهُمَا استِفهَام تَوبِيخ ﴿قُل هَل يَستَوِي الأَعمَى وَالبَصِير﴾ الكَافِر وَالمُؤمِن ﴿أَم هَل تَستَوِي الظُّلُمَات﴾ الكُفر ﴿وَالنُّور﴾ الإِيمَان لا ﴿أَم جَعَلُوا لِلّٰهِ شُرَكَاء خَلَقُوا كَخَلقِهِ فَتَشَابَهَ الخَلق﴾ اي خَلق الشُّرَكَاء بِخَلقِ الله ﴿عَلَيهِم﴾ فَاعتَقَدُوا استِحقَاق عِبَادَتِهِم بِخَلقِهِم استِفهَام إنكَار اي لَيسَ الأَمر كَذٰلِكَ وَلَا يَستَحِق العِبَادَة إلا الخَالِق ﴿قُلِ اللّٰه خَالِقُ كُلِّ شَيء﴾ لا شَرِيك لَهُ فِيهِ فَلَا شَرِيك لَه فِي العِبَادَة ﴿وَهُوَ الوَاحِدُ القَهَّار﴾ لِعِبَادِهِ ثُمَّ ضَرَبَ مَثَلًا لِلحَقِّ وَالبَاطِل فَقَالَ ﴿أَنزَلَ﴾ تَعَالَى ﴿مِنَ السَّمَاء مَاء﴾ مَطَرًا ﴿فَسَالَت أَودِيَة بِقَدَرِهَا﴾ بِمِقدَار مِلئِهَا ﴿فَاحتَمَلَ السَّيل زَبَدًا رَابِيًا﴾ عَالِيًا عَلَيهِ هُوَ مَا عَلَى وَجهِه مِن قَذَر وَنَحوه ﴿وَمِمَّا يُوقِدُونَ﴾ بِالتَّاء وَاليَاء ﴿عَلَيهِ فِي النَّار﴾ مِن جَوَاهِر الأَرض كَالذَّهَبِ وَالفِضَّة وَالنُّحَاس ﴿ابتِغَاء﴾ طَلَب ﴿حِليَة﴾ زِينَة ﴿أَو مَتَاع﴾ يُنتَفَع بِهِ كَالأَوَانِي إذَا أُذِيبَت ﴿زَبَد مِثلُه﴾ اي مِثل زَبَد السَّيل وَهُوَ خَبَثه الَّذِي يَنفِيه الكِير ﴿كَذٰلِكَ﴾ المَذكُور ﴿يَضرِبُ اللّٰه الحَقَّ وَالبَاطِل﴾ اي مَثَلَهُمَا ﴿فَأَمَّا الزَّبَد﴾ مِنَ السَّيل وَمَا أُوقِدَ عَلَيهِ مِنَ الجَوَاهِر ﴿فَيَذهَبُ جُفَاء﴾ بَاطِلًا مَرمِيًّا بِهِ ﴿وَأَمَّا مَا يَنفَعُ النَّاس﴾ مِنَ المَاء وَالجَوَاهِر ﴿فَيَمكُث﴾ يَبقَى ﴿فِي الأَرض﴾ زمانا كذلك الباطل يضمحل وينمحق وَإن عَلَا عَلَى الحَقِّ فِي بَعض الأَوقَات وَالحَقّ ثَابِت بَاقٍ ﴿كَذٰلِكَ﴾ المَذكُور ﴿يَضرِب﴾ يُبَيِّن ﴿اللّٰه الأَمثَال﴾ ﴿لِلَّذِينَ استَجَابُوا لِرَبِّهِم﴾ أَجَابُوهُ بِالطَّاعَةِ ﴿الحُسنَى﴾ الجَنَّة ﴿وَالَّذِينَ لَم يَستَجِيبُوا لَهُ﴾ وَهُمُ الكُفَّار ﴿لَو أَنَّ لَهُم مَا فِي الأَرضِ جَمِيعًا وَمِثلَهُ مَعَهُ لَافتَدَوا بِهِ﴾ مِنَ العَذَاب ﴿أُولٰئِكَ لَهُم سُوءُ الحِسَاب﴾ وَهُوَ المُؤَاخَذَة بِكُلِّ مَا عَمِلُوهُ لَا يُغفَر مِنهُ شَيء ﴿وَمَأوَاهُم جَهَنَّمُ وَبِئسَ المِهَاد﴾ الفِرَاش هِيَ

---

ترجمه: الله ته ښه پته ده چې ماده د څه نه حامله ده؟ آيا هلک دې يا جينئ، يو دې يا دوه وغيره او په موده د حمل کښې چې کوم کمې زياتې کيږی هغه ورته هم پته ده، هر څيز د هغه په نيز په مقدار او حد سره دې، چې د هغه مقرر مقدار نه تجاوز نشی کيدې، په پټ او په ښکاره باندې علم لرونکې دې او هغه لوئې او په خپل مخلوق باندې د طاقت په ذريعه غالب دې، په المتعال کښې ياء او بغير د ياء دواړه قراتونه دی، په تاسو کښې يو کس که په مزه خبره اوکړی يا په زوره، د الله په علم کښې ټول برابر دی، او هغه څوک چې د شپې په تياره کښې پټ وی يا په ورځ کښې په لار کښې د تلو راتلو د وجه ښکاره وی، د هر انسان سره مخکښې روستو د نګرانئ دپاره، د شپې ورځې ديوټئ والا فرشتې لګيدلې وی، کوم چې د الله په حکم سره نګرانی کوی، يعنی د هغه په حکم سره د جناتو وغيره نه حفاظت کوی، حقيقت دا دې چې الله د يو قوم حالات نه بدلوی يعنی د هغوی نعمتونه نه سلب کوی، تردې چې دوی خپله دې صفاتو لره بدل نه کړی کوم چې په دوی کښې دی، يعنی خپل ښه صفات په بدو صفاتو سره بدل نه کړی، او چې کله د يو قوم د عذاب فيصله اوکړی نو هغه څوک بدلولې نشی، اګرچې نګران فرشتې وی يا نور څوک الله تعالی چې چاته د سزا ورکولو اراده اوکړی نو د هغوی په

مقابله کښې د هغه څوک مددګار نه وی چې هغوی د عذاب نه بچ کړی(من وال) کښې (من) زائده دې، هم هغه ذات دې کوم چې ستاسو مخې ته بجلی پرکوی، چې هغې سره مسافرو ته فکراولګی او مقیمینو ته د باران امید وی، او هم هغه دې چې د اوبو نه ډکې اوريځې پيدا کوی او د اوريځو هغه آواز چې هغه يو فرشته ده کومه چې د اوريځو په چلولو باندې مقرره ده، د حمد سره تسبيح بيانوی يعنی هغه سبحان الله وبحمده وائی، او فرشتې د هغه يعنی د الله د ويرې نه د هغه تسبيح بيانوی، او هغه بجلئ ليږی، او دا يو قسم اور دې، کوم چې د اوريځو نه راوځی، نو چی بيا هغه په چا باندې اوغواړی اوغورزوی ئې، نو هغوی اوسوزوی، مخکښې آيت د هغه سړی په باره کښې نازل شو چې د هغه د دعوت د پاره حضور ﷺ يو کس اوليږلو نو هغه کس اووئيل چې د الله رسول څوک؟ او الله څوک؟ آيا هغه د سرو زرو دې يا د سپينو يا د تانبې دې؟ نو هغه باندې د اسمان بجلی راپريوتله، او د هغه سر او کهوپړئی ئې والوزوله، او کافران د الله په باره کښې نبی ﷺ سره جګړې کوی، په واقع کښې هغه زبردست قوت والا دې، يا نيولو والا دې او د الله کلمه برحق ده، او هغه کلمه لا اله الا الله ده، او هغه هستيانې کومو ته چې دوی آواز کوی چې هغه بتان دی، دوی د هغوی عبادت کوی او دوی ته هيڅ جواب ورکولې نشی د هغه څيز په باره کښې کوم چې دوی غواړی، دوی ته آواز کول خو د قبوليت په باره کښې داسې دی چې څوک اوبو طرف ته لاس غزولو سره د کوهی په ژاړې باندې اودرېږی او اوبو ته اووائی چې اې اوبو تاسو د کوهی نه راوزئی څما خولې ته راشئ، حالانکه هغه اوبه به د هغه خولې ته چرې هم اونه رسيږی، دغه شان دا بتان هم ددوی اواز باندې جواب ورکولو والا نه دی، او د کافرانو د بتانو عبادت کول يا په حقيقت کښې هغوی ته اواز کول بې ضائع دی صرف يعنی غښې بې هدف دې، او هم الله دې چې د هغه د پاره د اسمانونو او زمکې هر څيز په خوشحالئ سره لکه چې مومنان او په ناخوشحالئ سره لکه منافقان او څوک چې د تورې په ذريعه مجبوره کړې شوی وی، او د ټولو څيزونو سورې سحر او ماښام الله ته سجده کوی اې محمد ﷺ د خپل قوم نه تپوس اوکړه چې د اسمانونو او د زمکې رب څوک دې؟ او که هغوی جواب درنکړی نو پخپله ورته اووايه چې هغه الله دې څکه چې ددې نه علاوه بل څه جواب نشته، بيا دوی ته اووايه چې کله حقيقت دادې نو آيا تاسو د الله نه غير يعنی بتانو لره مو کارساز جوړ کړې دی چې د چا عبادت کوئی کوم چې د خپلې ګټې او نقصان مالکان نه دی او تاسو د ګټې او نقصان مالک پرېښې دې؟ دا استفهام توبيخی دې، (دوی نه تپوس اوکړه) آيا ړوند او روغ يعنی کافر او مومن، او د کفر تياره او د ايمان رڼا برابر کيدې شی نشی کيدلې، او که داسې نه وی، نو آيا دوی داسې شريکان جوړ کړې دی چې هغوی د الله په شان څه پيدا کړې وی، چې د هغې د وجې نه د شريکانو پيدا کړی څيزونه او د الله پيدا کړی څيزونه په دوی باندې مشتبه (ګډوډ) شول؟

چې د هغې د وجې نه دوی ئې مستحق د عبادت وګنړل، دا استفهام انکاری دې، یعنی خبره داسې نه ده، او د خالق حقیقی نه علاوه څوک د عبادت لائق نشته، اووایه چې د ټولو څیزونو خالق صرف الله دې، په دې کښې د هغه سره څوک شریک نشته، لهذا په عبادت کښې هم د هغه شریک نشته، هغه یو دې، او خپلو بندګانو باندې غالب دې، بیا ئې د حق او د باطل مثال بیانولو سره اوفرمائیل الله تعالی د اسمان نه اوبه راوورولې، نو نالو ندی د خپل ګنجائش مناسب هغه اوبیولې، بیا دې سیلاب په اوبو باندې اوچت شوې زګ اوچت کړو، او هغه د اوبو په سر باندې راتلونکې بڅله ده، او د زمکې په دهاتونو کښې سره زر، سپین زر او تانبا چې هغه په اور کښې ګرموی، د زرو جوړولو دپاره یا د نور سازوسامان دپاره، چې د هغې نه فائده اوخستلې شی، مثلا لوښې کله چې دا ویلې کړې شی، دغه شان یعنی دسیلاب د رګونو په پښان زګونه دی او هغه خیرې دی کوم چې بهټئ جدا کوی، د ذکر شوې مثال په شان الله تعالی د حق او باطل مثال بیانوی، د سیلاب او د ویلې شوې دهات زګ هغه ناکاره کیدو نه پس ختم شی، یعنی بیکار اوګنړلې شی او اوغوورزولې شی، او چې د څه نه خلق فائده اوچتوی، چې هغه اوبه او دهاتونه دی، نو هغه په زمکه باندې څه موده پورې ایسار وی، او حق ثابت او باقی وی، الله تعالی د مذکوره مثال په شان مثالونه بیانوی، او کومو خلقو چې د خپل رب حکم اومنلو، یعنی داطاعت په ذریعه ئې تابعداری اوکړه، دهغوی دپاره جنت دې، اوکومو خلقو چه هغوی کافران دی دهغه حکم اونه منلو که ددوی د پاره په زمکه کښې چې څه دی دې سره دومره نور هم وی، نو هغه به د عذاب په بدله کښې ورکړی، هم دغه هغه خلق دی چې د هغوی دپاره بد حساب دې، او دا د دوی د ټولو عملونو مواخذه ده، په دې کښې به هیڅ نه معاف کیږی، او چې د چا ځائې جهنم دې نو هغه ډیر بد ځائې دې، ډیر خراب د ملاستې ځائې دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: المتعال: اسم فاعل واحد مذکر غائب، (تفاعل نه) مصدر تعالی، المتعال، په اصل کښې المتعالی وو، د آخر نه یاء حذف شوه، ماده ئې علو ده، دلته ثلاثی مجرد ثلاثی مزید ته دا اوړلو مقصد په معنی کښې زیاتوالې بیانول دی، ددې معنی ده (ډیر اوچت، ډیر بزرګ، په المتعال کښې دوه قراتونه دی، یاء سره المتعالی، او بغیر د یاء نه یعنی المتعال.

**قوله**: سوآء منکم: الخ په دې کښې دوه ترکیبونه دی

① سواء خبر مقدم او (من اسرومن جهر) مبتدا مؤخر

**سوال**: چې مبتدا دوه دی نو خبر به مو هم تثنیه راوړې وو، یعنی سواءان وئیل پکار وو؟

**جواب**: سواء چونکه مصدر په معنی د مستوِ دې، لهذا په دې کښې واحد، تثنیه، جمع

برابر دی.
④ سواء مبتدأ، او اسر القول، الخ ددې خبر.
**سوال:** سواء نکره ده، ددې مبتدأ راتلل صحیح نه دی؟
**جواب:** د سواء صفت چونکه منکم موجود دې لهذا په دې کښې تخصیص پیدا شو، چې د هغې د وجې نه د سواء مبتدأ جوړیدل صحیح شول.
**قوله:** سارب «دا د سرب نه اسم فاعل دې، په معنی د (لار کښې تلونکې، په کوځو کښې ګرځیدونکې، د سارب جمع سَرَب دې، څنګه چې د راکب جمع رکب راځی، د سارب عطف په (من هو مستخف) باندې دې نه چې په مستخف باندې.
**قوله:** معقبات: دا د اسم فاعل صیغه ده، او د معقبة جمع ده، (تفعیل) نه تعقیب مصدر دې، (په نمبر نمبر د شپې ورځې راتلونکی فرشتې
**قوله:** تعتقب: په دې کښې اشاره ده چې معقبات د اعتقب نه دې، په اصل کښې متعقبات وو، تاء ئې په قاف کښې مدغم کړه، هغه فرشتې چې په تلو راتلو کښې په یو بل پسې وی، مراد هغه فرشتې دی چې د شپې ورځې ډیوټی بدلوی.
**قوله:** مرد: اسم فعل، واپس کول،
**قوله:** من وال: (من) زائده دې، وال اسم فاعل، په اصل کښې والی وو، (ض) یاء حذف کړې شوه، مددګار، حمایتی
**قوله:** خوفا وطمعا: بعضې خلقو وئیلو دی چې دواړه د مصدریت د وجې نه منصوب دی، تقدیری عبارت داسې دې لتخافوا خوفا، ولتطمعوا طمعا، او وئیلې شوی دی چې د یریکم د کاف نه حال دې، ای حال کونکم خائفین وطامعین، ابو البقاء وئیلې دی چې دا دواړه د خپل خپل فعلونو مفعول هم کیدې شی، (خو زمحشری انکار کړې دې) او بعضې حضراتو د البرق نه هم حال ګرځولې دی.
**قوله:** تسبح: په دې کښې اشاره ده چې د الملائکة عطف په الرعد باندې دې نه په قریب باندې.
**قوله:** بقحف: قحف کهوپری، کاسه، سر (جمع) اقحاف، قحوف
**قوله:** اي کلمة: په دې کښې اشاره ده چې دعوت د (دعاء) په معنی کښې نه دې، او نه د الدعوة المجابة په معنی کښې دې.
**قوله:** استجابة: **سوال:** استجابة د مقدر ګرځولو څه ضرورت وو؟
**جواب:** دوو وجو نه، اول دا چې مستثنی د مستثنی منه د جنس نه شی، څکه چې مستثنی متصل اصل دې او مستثنی منه (استجابة) دې کوم چې دیستجیبون نه معلومیږی، څکه چې فعل په مصدر باندې دلالت کوی، دویم دا چې که استجابة مقدر او نه ګنړلې شی، نو

تشبيه العرض بالذات به لازم شي، کوم چې جائز نه دي ځکه چې استجابة عرض دي، او باسط کفيه ذات دي، د بتانو نه غوښتونکې ئې هغه سړي سره يو شان کړې دي چې اوبو ته واني چې ته ځما خولې ته راشه، ښکاره ده چې دا بېوقوفي او کم عقلتوب دي، ځکه چې اوبه جماد دي، په دې کښې د چا د فرياد اوريدلو صلاحيت نشته، دغه شان هغه کس چې د بتانو نه مرادونه غواړي هغه هم کم عقل او بيوقوف دي، ځکه بتان هم بې حسه او جماد دي.

**قوله:** غدو: دغداة جمع ده، د سحرې وخت

**قوله:** الاصال: داداصيل جمع ده، د شپې وخت

**قوله:** جفاء: بروزن غراب، باطل، بې فائده، يقال جفا الوادي والقدر، يعنې وادي، او کټوئ (هانډئ) خپل زګ بهر کړو.

**قوله:** اجابوه بالطاعة: په دې کښې اشاره ده، چې استجابوا (استفعال) د افعال په معنی کښې دي لهذا دا اعتراض ختم شو چه دلته د طلب معنی مقصود نه ده.

**قوله:** الجنة: ددې اضافې سره دې خبرې طرف ته اشاره ده چې الحسنى د الجنة محذوف صفت دي، الجنة الحسنى، مبتدأ مؤخر او للذين الخ خبر مقدم دي.

**[اياتونه: ۱۹ ـ ۲۶]**

وَنَزَلَ فِي حَمْزَةَ وَأَبِي جَهْل ﴿أَفَمَنْ يَعْلَمُ أَنَّمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ الْحَقُّ﴾ فَآمَنَ بِهِ ﴿كَمَنْ هُوَ أَعْمَىٰ﴾ لَا يَعْلَمُهُ وَلَا يؤمن به لا ﴿إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ﴾ يتعظ ﴿أُولُو الْأَلْبَابِ﴾ أَصْحَاب الْعُقُول ﴿الَّذِينَ يُوفُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ﴾ الْمَأْخُوذ عَلَيْهِمْ وَهُمْ فِي عَالَم الذَّرّ أَوْ كُلّ عَهْد ﴿وَلَا يَنْقُضُونَ الْمِيثَاقَ﴾ بِتَرْكِ الْإِيمَان أَوْ الْفَرَائِض ﴿وَالَّذِينَ يَصِلُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَنْ يُوصَلَ﴾ مِنْ الْإِيمَان وَالرَّحِم وَغَيْر ذَلِكَ ﴿وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ﴾ أَيْ وَعِيده ﴿وَيَخَافُونَ سُوءَ الْحِسَابِ﴾ تَقَدَّمَ مثله ﴿وَالَّذِينَ صَبَرُوا﴾ عَلَى الطَّاعَة وَالْبَلَاء وَعَنْ الْمَعْصِيَة ﴿ابْتِغَاءَ﴾ طَلَب ﴿وَجْهِ رَبِّهِمْ﴾ لَا غَيْره مِنْ أَعْرَاض الدُّنْيَا ﴿وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَنْفَقُوا﴾ فِي الطَّاعَة ﴿مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً وَيَدْرَءُونَ﴾ يَدْفَعُونَ ﴿بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ﴾ كَالْجَهْلِ بِالْحِلْمِ وَالْأَذَى بِالصَّبْرِ ﴿أُولَٰئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ﴾ أَيْ الْعَاقِبَة الْمَحْمُودَة فِي الدَّار الْآخِرَة هي ﴿جَنَّاتُ عَدْنٍ﴾ إِقَامَة ﴿يَدْخُلُونَهَا﴾ هُمْ ﴿وَمَنْ صَلَحَ﴾ آمَنَ ﴿مِنْ آبَائِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ﴾ وَإِنْ لَمْ يَعْمَلُوا بِعَمَلِهِمْ يَكُونُونَ فِي دَرَجَاتهمْ تَكْرِمَة لَهُمْ ﴿وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ﴾ مِنْ أَبْوَاب الْجَنَّة أَوْ الْقُصُور أَوَّل دُخُولهمْ لِلتَّهْنِئَةِ يَقُولُونَ ﴿سَلَامٌ عَلَيْكُمْ﴾ هَذَا الثَّوَاب ﴿بِمَا صَبَرْتُمْ﴾ بِصَبْرِكُمْ فِي الدُّنْيَا ﴿فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ﴾ عُقْبَاكُمْ ﴿وَالَّذِينَ يَنْقُضُونَ عَهْدَ اللَّهِ مِنْ بَعْدِ مِيثَاقِهِ وَيَقْطَعُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَنْ يُوصَلَ وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ﴾ بِالْكُفْرِ وَالْمَعَاصِي ﴿أُولَٰئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ﴾ الْبُعْد مِنْ رَحْمَة اللَّه ﴿وَلَهُمْ سُوءُ الدَّارِ﴾ الْعَاقِبَة السَّيِّئَة فِي الدَّار الْآخِرَة وَهِيَ جهنم ﴿اللَّهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ﴾ يُوَسِّعهُ ﴿لِمَنْ يَشَاءُ وَيَقْدِرُ﴾ يُضَيِّقهُ لِمَنْ يَشَاء ﴿وَفَرِحُوا﴾ أَيْ أَهْل مَكَّة فَرَح بَطَر ﴿بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ أَيْ بِمَا نَالُوهُ فِيهَا ﴿وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا فِي﴾ جَنْب حَيَاة ﴿الْآخِرَةِ إِلَّا مَتَاعٌ﴾ شَيْء قَلِيل يُتَمَتَّع بِهِ ويذهب

ترجمه او دا راروان آیت د (حضرت) حمزه او ابوجهل په باره کښې نازل شو آیا هغه کس چې دا علم لري چې تاته ستا د رب د طرف نه څه نازل شوی دی هغه په حقه دی او په هغې باندې ایمان هم راوړي د هغه کس پشان کیدې شي څوک چې ړوند وي؟ چې نه دا پیژني او نه په دې یقین ساتي؟ نه نصیحت خو هغه خلق قبلوي کوم چې عقلمند وي چې د الله وعده پورا کوي، کومه چې د دووی نه هغه وخت اخستلې شوې وه چې کله دوی د عالم ذر یعنی د میږو په شکل کښې وو، یا مطلقا هره وعده نه ماتوي او هغوی د ایمان یا فرائض پریښودلو سره وعده نه ماتوي او څوک چې یوځائې کوي هغه څه چې د هغې د یوځائې کولو چې الله حکم کړې دې او هغه چې د کوم حکم ئې ورکړې دې هغه ایمان راوړل دی او صله رحمي کول دی وغیره وغیره او د خپل رب نه ویرېږي یعنی د هغه د وعید نه او د بد حساب نه ویرېږي دغه شان آیت مخکښې تیر شوې دې او هغوی د خپل رب د رضامندئ غوښتلو د پاره نه چې د دنیا د څه مطلب د پاره طاعت باندې او مصیبت باندې، او د ګناه نه لرې اوسیدلو باندې صبر کوي او مونځونو لره برابر ادا کوي، او څه چې مونږ هغوی ته ورکړي دی د هغې نه په تابعدارئې سره په پټه او په ښکاره خرچ کوي، او بدئ لره په نیکئ سره لرې کوي، مثلاً جهالت لره په بردبادئ او تکلیف لره په صبر سره. هم دغه دی د چا د پاره چې دآخرت کور دې. یعنی په آخرت کښې ښه انجام هغه جنت دې، چې په هغې کښې به دوی اوسیږي چرته چې به دوی پخپله هم ځي، او ددوی مور پلار او ښځې او بچي چا چې ایمان راوړې دې هغوی به هم ځي، اګرچې هغوی به ددوی پشان عمل کړې نه وي هغوی به هم ددوی په درجو کښې وي او دا به د اکرام په توګه سره وي، اوفرشتې به دوی ته د جنت د هرې دروازې طرف نه راځي، یا به د محفلو د هرې دروازې نه راځي، د فرشتو اول ځل راتلل به د مبارکئ د پاره وي او وائي به په تاسو دې سلامتیا وي دا اجر او ثواب تاسو ته د هغه صبر په بدله کښې میلاؤ شوې دې کوم چې تاسو په دنیا کښې کړې وو څومره ښه بدله ده. ستاسو د پاره دآخرت د کور، او کوم خلق چې د الله وعده د کلکوالي نه پس ماتوي، او د کوم څیز الله د یوځائې کولو حکم کړې دې هغه پریکوي او د کفر او ګناه د وجه نه په زمکه کښې فساد کوي دا هغه خلق دی چې په دوی باندې لعنت دې یعنی د الله د رحمت نه لرې دی او دوی د پاره خراب کور دې، یعنی په آخرت کښې ددوی دپاره خراب انجام دې او هغه جهنم دې الله چې چاته روزي اوغوارې ئې زیاته کړي او چا ته چې اوغواړي کمه ئې کړي او اهل مکه خو د دنیا په زندګئ کښې پریوتلو سره مست شول یعنی په هغې باندې کوم چې دوی ته د دنیا په زندګئ کښې حاصل شو او ددنیا زندګی د آخرت د زندګئ په مقابله کښې ډیره لږه ذخیره ده، د هغې نه فائده اخلي، او بیا دې پرېږدي رخصت شي

......

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** افمن يعلم: همزه په فعل محذوف باندې داخله ده، او فاء عاطفه ده، تقديري عبارت داسې دې ايستوى المؤمن والكافر فمن يعلم: الخ

**قوله:** لا: په دې کښې اشاره ده چې استفهام انکاري په معنی د نفی کښې دې

**قوله:** اولئك لهم عقبى الدار: دا جمله د الذين صبروا مبتدأ خبر دې

**قوله:** هي: په دې کښې اشاره ده چې جنت عدن د مبتدأ محذوف خبر دې نه چې د عقبى الدار نه خبر، څنګه چې بعضې خلقو وئيلې وو.

**قوله:** يدخلونها هم

**سوال:** هم مقدر ګنړلو څه ضرورت راغلو؟

**جواب:** چې د (من صلح) عطف د يدخلونها په ضمير باندې صحيح شي، ځکه چې په ضمير مرفوع متصل باندې د عطف د پاره د ضمير منفصل په ذريعې سره تاکيد راوړل ضروري دی،

**قوله:** يقولون ئې مقدر اوګنړلو چې کلام مربوط او په ترتيب شي.

**قوله:** بما قالوا فيها: يعنی د دنيا زندګی خو هر چا ته حاصله ده په نفس زندګئ باندې مستبدل مراد نه دی، بلکه د دنيا په زندګئ کښې چې څه هم دوی ته حاصل وی په هغې باندې فخر او غرور کول مراد دی.

**[اياتونه: ۲۷ - ۳۱]**

(وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا) مِنْ أَهْلِ مَكَّة (لَوْلَا) هَلَّا (أُنْزِلَ عَلَيْهِ) عَلَى مُحَمَّد (آيَةٌ مِنْ رَبِّهِ) كَالْعَصَا وَالْيَد وَالنَّاقَة (قُلْ) لَهُمْ (إِنَّ اللهَ يُضِلُّ مَنْ يَشَاءُ) إضلاله فَلَا تُغْنِي عَنْهُ الْآيَات شَيْئًا (وَيَهْدِي) يُرْشِد (إِلَيْهِ) إِلَى دِينه (مَنْ أَنَابَ) رَجَعَ إِلَيْهِ وَيُبْدَلُ مِنْ من (الَّذِينَ آمَنُوا وَتَطْمَئِنُّ) تَسْكُنُ (قُلُوبُهُمْ بِذِكْرِ اللهِ) أَيْ وَعْده (أَلَا بِذِكْرِ اللهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ) أَيْ قُلُوب الْمُؤْمِنِينَ (الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ) مبتدأ خَبَره (طُوبَى) مَصْدَر مِنَ الطِّيب أَوْ شَجَرَة فِي الْجَنَّة يَسِير الرَّاكِب فِي ظِلّهَا مِائَة عَام مَا يَقْطَعهَا (لَهُمْ وَحُسْنُ مَآبٍ) مَرْجِع (كَذَلِكَ) كَمَا أَرْسَلْنَا الْأَنْبِيَاء قَبْلك (أَرْسَلْنَاكَ فِي أُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَا أُمَمٌ لِتَتْلُوَ) تَقْرَأ (عَلَيْهِمُ الَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ) أَيْ الْقُرْآن (وَهُمْ يَكْفُرُونَ بِالرَّحْمَنِ) حَيْثُ قَالُوا لَمَّا أُمِرُوا بِالسُّجُودِ لَهُ وَمَا الرَّحْمَن (قُلْ) لَهُمْ يَا مُحَمَّد (هُوَ رَبِّي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ مَتَابِ) وَنَزَلَ لَمَّا قَالُوا لَهُ إِنْ كُنْت نَبِيًّا فَسَيِّرْ عَنَّا جِبَال مَكَّة وَاجْعَلْ لَنَا فِيهَا أَنْهَارًا وَعُيُونًا لِنَغْرِس وَنَزْرَع وَابْعَثْ لَنَا آبَاءَنَا الْمَوْتَى يُكَلِّمُونَا أَنَّك نَبِيّ (وَلَوْ أَنَّ قُرْآنًا سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ) نُقِلَتْ عَنْ أَمَاكِنهَا (أَوْ قُطِّعَتْ) شُقِّقَتْ (بِهِ الْأَرْضُ أَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتَى) بِأَنْ يَحْيَوْا لَمَا آمَنُوا (بَلْ لِلَّهِ الْأَمْرُ جَمِيعًا) لَا لِغَيْرِهِ فَلَا يُؤْمِنُ إِلَّا مَنْ شَاءَ إِيمَانَهُ دُون غَيْره إِنْ أُوتُوا مَا اقْتَرَحُوا وَنَزَلَ لَمَّا أَرَادَ الصَّحَابَة إِظْهَار مَا

اقترحوا طمعا في ايمانهم ﴿أَفَلَمْ يَيْأَسِ﴾ يعلم ﴿الَّذِينَ آمَنُوا أَنْ﴾ مخففة اي انه ﴿لَوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيعًا﴾ إلى الإيمان من غير آية ﴿وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ من أهل مكة ﴿تُصِيبُهُمْ بِمَا صَنَعُوا﴾ بصنعهم اي كفرهم ﴿قَارِعَةٌ﴾ داهية تقرعهم بصنوف البلاء من القتل والأسر والحرب والجدب ﴿أَوْ تَحُلُّ﴾ يا محمد بجيشك ﴿قَرِيبًا مِنْ دَارِهِمْ﴾ مكة ﴿حَتَّىٰ يَأْتِيَ وَعْدُ اللَّهِ﴾ بالنصر عليهم ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ﴾ وقد حل بالحديبية حتى أتى فتح مكة

**ترجمه:** او د اهل مکه نه کافران وائی چې محمد ﷺ باندې د هغه د رب د طرف نه څه نخښه معجزه، همسا ید بیضا، او د صالح علیه السلام د اوښې پشان ولې نازل نه شول، دوی ته اووایه چې الله څوک ګمراه کول اوغواړی نو بې لارې ئې کړی نښې او معجزې ورته څه فائده نه ورکوی او څوک چې هغه طرف ته رجوع اوکړی نو هغه د خپل دین طرف ته لار ښاودنه کوی او د (من) نه الذین امنوا، بدل دې، کومو خلقو چې ایمان راوړلو د هغوی زړونه د الله په ذکر یعنی د هغه د وعدو نه اطمینان حاصلوی، یاد ساتئ چې د الله د ذکر نه د منومنانو زړونو ته تسلی رسی، کومو خلقو چې ایمان راوړو او نیک عملونه ئې اوکړل د هغوی د پاره خوشحالی ده، اوبهترین ځائې دې، الذین آمنوا مبتدأ ده، او (طوبی) ددې خبر دې، (طوبی) د الطیب نه مصدر دې یا په جنت کښې داسې اونه ده چې په اس باندې سور کس په هغې باندې په سوونو کالونه ځی خو بیا به هم د هغې مسافت ختم نه کړی، یعنی ښنګه چې مونږ ستا نه مخکښې پیغمبران راولیږل، دغه شان مونږ ته په یو داسې امت کښې رالیږلې ئې چې د هغې نه مخکښې ډیر امتونه تیر شوې دی، چې تاسو دوی ته قرآن اولولې کوم چې مونږ د وحی په ذریعه تاسو ته رالیږلې دې، دوی د رحمن نه انکار کونکی دی ځکه چې کله دوی ته اووئیلې شول چې رحمن ته سجده اوکړئ نو دوی اووئیل چې رحمن څه څیز دې؟ ته ورته اووایه چې ځما پروردګار هم هغه دې د هغه نه سوا بل معبود نشته، په هغه باندې ځما بهروسه ده او هم هغه ته ځما واپس کیدل دی، او دا راتلونکې آیت هغه وخت نازل شو چې کله کافرانو نبی ﷺ ته اووئیل که چرې ته پیغمبر یې نو د مکې غرونه ددې ځائې نه لرې کړه، او زمونږ د پاره په مکه کښې نهرونه او ولې جاری کړه چې مونږ اونې اوکروو او پټې جوړ کړو، او زمونږ مړه پلار نیکیا ن ژوندی کړه چې هغوی مونږ ته اووائی چې ته د الله نبی ﷺ ئې او که فرض که داسې یو قرآن وو چې د هغې په ذریعې سره غرونه د خپل ځائې نه لرې کولې شوې یا د زمکې ټکړې ټکړې کیدې شوې یا د هغې په ذریعه سره د مړو سره خبرې کیدې شوې په داسې طریقه چې هغوی به ژوندی کولې شو، نو بیا به هم دوی ایمان راوړې نه وو بلکه پورا اختیا ر هم الله لره دې، نه چې بل چا لره، نو بیا به هم چا ایمان راوړې نه وو، خو هغه کس د چا ایمان چې الله غوښتلو نه چې بل چا، اګرچې ددوی د خوښې نښې اوښودلې شی، او راتلونکې آیت هغه وخت نازل شو چې کله صحابه کرامو د اهل مکه والو د ایمان په

خواهش کښې د غوښتونکو نښو د ښکاره کولو تمنا اوکړه، نو آیا ایمان والا په دې خبره نه پوهیږی چې خبره داده چې که الله غوښتله نو بغیر د نښو نه ئې ټولو خلقو ته د ایمان هدایت ورکړې وو، او کافرانو ته په یعنی اهل مکه ته به د هغوی د کارونو د وجه یعنی د کفر په وجه داسې مصیبتونه ورسیږی چې دوی به پاڅاڅوی، لکه قتل، قید، جنګ او قحط، اې محمد ﷺ ته به خپل لښکر سره مکې ته نزدې په حدیبیه کښې نزول کوئې تردې چې ددوی خلاف د الله د نصرت وعده راورسیږی یقینا الله د خپلې وعدې خلاف ورزی نه کوی، او نبی علیه السلام په حدیبیه کښې نزول اوفرمائیلو تردې چې مکه فتح شوله.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: هلا:** د لولا تفسیر ئې په هلا سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې دلته لولا تحضیضیه دې.

**قوله: ویبدل من من:** یعنی (من اناب) نه واخله تر د الذین آمنوا الخ پورې جمله بدل الکل دې.

**قوله: الذین آمنو:** د ترکیب په لحاظ سره پنځه صورتونه کیدې شی

① الذین آمنوا مبتدأ او روستو راتلونکې (الذین آمنوا) جمله ددې خبر، او په مینځ کښې وتطمئن قلوبهم بذکر الله جمله معترضه

② الذین آمنوا، د (من اناب) نه بدل الکل

③ الذین آمنوا د (من) عطف بیان دې.

④ د مبتدأ محذوف خبر وی، ای هم الذین آمنوا،

⑤ فعل محذوف د وجه نه منصوب وی، ای امدح الذین آمنوا

**قوله: ای وعده:** د (ذکر الله) تفسیر په وعده سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې دلته عام ذکر دې او خاص ترې مراد دې ګنی ذکر الله به وعده او وعید دواړو ته شامل شوې وو، او وعید سره زړونو د مطمئن کیدو په ځای پریشانه کیږی، مفسر علام په (ای وعده) سره دې سوال طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله: طوبی:** خوبی، خوشحالی، د جنت د اونې نوم، علامه آلوسی طوبی د طاب یطیب مصدر ګرځولې دې، لکه بشری، زلفی، او یا ساکن په ماقبل کښې د ضمې د وجه په واؤ سره بدله ده، په اصل کښې طیبی وو،

**قوله: فسیرعنا:** ای سیرعنا لک عنا جبال مکة

**قوله: شققت:** یعنی د نبی علیه السلام د قراءت د وجه نه به زمکه اوشلیده او ددې نه به چینې او نهرونه جاری شوې وو، او بعضو وئیلې دی، چې د قطعت مطلب دې، د قرآن

په ذريعه سره طي الارض، يعنی په تيزئی سره په ان فن کښې مزل کول.
قوله: لمـآمنوا: دا د (لو) جواب دې کوم چې محذوف دې.
قوله: لا بغيره: په دې کښې اشاره ده، چې لله الامر جميعا، اصل عبارت دې الامر جميعا لله، جار مجرور د اختصاص د وجې مقدم کړې شو، چې هغه مصنف علام په (لا بغيره) وئيلو سره ښکاره کړه.
قوله: يعلم: د (ييئس) تفسير ئې په (يعلم) سره کړې دې، يعنی (لم ييئسوا) تفسير په (لم يعلموا) سره په لغت د بنونخع يا د هوازن مطابق دې. او يا د (ياس) د علم معنې لره د متضمن کيدو د وجه کړې دې، ځکه چې کوم سړې خفا وی هغه ته پته وی چې دا کار کيدو والا نه دې.
قوله: بصنعهم: د ماصنعوا تفسير په (بصنعهم) سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې (ما) مصدريه ده، نه چې موصوله، لهذا د عدم عائد اعتراض به نه وی.
قوله: الداهية: الامر العظيم.

[ايات نوله: ۳۲ ـ ۳۷]

(وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِنْ قَبْلِكَ) كَمَا اسْتُهْزِئَ بِكَ وَهٰذَا تَسْلِيَةٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (فَأَمْلَيْتُ) أَمْهَلْتُ (لِلَّذِينَ كَفَرُوا ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ) بِالْعُقُوبَةِ (فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ) أَيْ هُوَ وَاقِعٌ مَوْقِعَه فَكَذٰلِكَ أَفْعَلُ بِمَنِ اسْتَهْزَأَ بِكَ (أَفَمَنْ هُوَ قَائِمٌ) رَقِيبٌ (عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ) عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ وَشَرٍّ وَهُوَ اللّٰهُ كَمَنْ لَيْسَ كَذٰلِكَ مِنَ الْأَصْنَامِ لَا دَلَّ عَلَى هٰذَا (وَجَعَلُوا لِلّٰهِ شُرَكَاءَ قُلْ سَمُّوهُمْ) لَهُ مَنْ هُمْ (أَمْ) بَلْ أَ (تُنَبِّئُونَهُ) تُخْبِرُونَ اللّٰهَ (بِمَا) أَيْ بِشَرِيكٍ (لَا يَعْلَمُ) هُ (فِي الْأَرْضِ) اسْتِفْهَامُ إِنْكَارٍ أَيْ لَا شَرِيكَ لَهُ إِذْ لَوْ كَانَ لَعَلِمَهُ تَعَالَى عَنْ ذٰلِكَ (أَمْ) بَلْ تُسَمُّونَهُمْ شُرَكَاءَ (بِظَاهِرٍ مِنَ الْقَوْلِ) بِظَنٍّ بَاطِلٍ لَا حَقِيقَةَ لَهُ فِي الْبَاطِنِ (بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا مَكْرُهُمْ) كُفْرُهُمْ (وَصُدُّوا عَنِ السَّبِيلِ) طَرِيقِ الْهُدَى (وَمَنْ يُضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ) (لَهُمْ عَذَابٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا) بِالْقَتْلِ وَالْأَسْرِ (وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَقُّ) أَشَدُّ مِنْهُ (وَمَا لَهُمْ مِنَ اللّٰهِ) أَيْ عَذَابِهِ (مِنْ وَاقٍ) مَانِعٍ (مَثَلُ) صِفَةُ (الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ) مُبْتَدَأٌ خَبَرُهُ مَحْذُوفٌ أَيْ فِيمَا نَقُصُّ عَلَيْكُمْ (تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ أُكُلُهَا) مَا يُؤْكَلُ فِيهَا (دَائِمٌ) لَا يَفْنَى (وَظِلُّهَا) دَائِمٌ لَا تَنْسَخُهُ شَمْسٌ لِعَدَمِهَا فِيهَا (تِلْكَ) أَيِ الْجَنَّةُ (عُقْبَى) عَاقِبَةُ (الَّذِينَ اتَّقَوْا) الشِّرْكَ (وَعُقْبَى الْكَافِرِينَ النَّارُ) (وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ) كَعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ وَغَيْرِهِ مِنْ مُؤْمِنِي الْيَهُودِ (يَفْرَحُونَ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ) لِمُوَافَقَتِهِ مَا عِنْدَهُمْ (وَمِنَ الْأَحْزَابِ) الَّذِينَ تَحَزَّبُوا عَلَيْكَ بِالْمُعَادَاةِ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَالْيَهُودِ (مَنْ يُنْكِرُ بَعْضَهُ) كَذِكْرِ الرَّحْمٰنِ وَمَا عَدَا الْقَصَصِ (قُلْ إِنَّمَا أُمِرْتُ) فِيمَا أُنْزِلَ إِلَيَّ (أَنْ) أَيْ بِأَنْ (أَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَا أُشْرِكَ بِهِ إِلَيْهِ أَدْعُو وَإِلَيْهِ مَآبِ) مَرْجِعِي (وَكَذٰلِكَ) الْإِنْزَالِ (أَنْزَلْنَاهُ) أَيِ الْقُرْآنَ (حُكْمًا عَرَبِيًّا) بِلُغَةِ الْعَرَبِ تَحْكُمُ بِهِ بَيْنَ النَّاسِ (وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ) أَيِ الْكُفَّارِ

بِنَا يَدْعُونَكَ إِلَيْهِ من ملتهم فرضا (بَعْدَ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ) بالتوحيد (مَا لَكَ مِنَ اللهِ مِنْ) زائدة (وَلِيٍّ) ناصر (وَّلَا وَاقٍ) مانع من عذابه

ترجمه: يقينا ستا نه مخکښې هم په رسولانو پسې ټوقې شوې دي، خنګه چې تا پسې ټوقې کيږي، او دا نبي ﷺ ته تسلي ده، نو ما کافرانو ته مهلت ورکړو، بيا ما هغوی لره په سزا کښې اونيول، نو څما عذاب څنګه وو، يعنی هغه په خپل ځائې باندې واقع شو ،زه به هر هغه کس سره داسې کوم څوک چې تا پورې ټوقې کوی آيا هغه ذات چې د هرساه اغستونکی د ښه او بد ئې نګران دې او هغه الله دې، نو هغه د هغه چا پشان کيدې شی کوم چې داسې نه دی، چې هغه بتان دی، په دې (حذف د جواب) باندې وجعلوا لله، الخ دلالت کوی، ته دوی ته اووايه چې تاسو د هغوی نومونه خو واخلئ، هغه څوک دی؟ بلکه تاسو الله ته د هغه د شريک خبر ورکوئی، کوم چې هغه په زمکه کښې نه پيژنی، استفهام انکاری دې يعنی د هغه څوک شريک نشته، ځکه چې که شريک وو نو هغه به د هغه په علم کښې وو، الله تعالی د دې نه اوچت دې، يا تاسو هسې دا خبره په باطل ګمان سره کړې ده، چې په واقع کښې ددې څه حقيقت نشته، بلکه حقيقت دادې چې د کافرانو د پاره د هغوی مکر (کفر) خائسته کړې شوې دې او دوی د لار د هدايت نه منع کړې شوې دی، او الله چې څوک ګمراه کړی هغه ته څوک هدايت ورکونکې نشته، د دوی د پاره په دنياوی ژوند کښې د قتل او د قيد عذاب دې، او د آخرت عذاب خو ددې نه زيات سخت دې، او دوی لره د الله د عذاب نه څوک بچ کونکې نشته، د هغه جنت صفت د کوم چې د نيکانو خلقو سره وعده کړې شوې ده، الجنة التی، الخ مبتدأ ده، ددې خبر محذوف دې، او هغه فيما نقص عليکم دې، په هغې به کښې نهرونه جاری وی، د هغې ميوې به هميشه وی، يعنی د جنت خوراکونه به هميشه وی، هغه به چرې ختم نه شی. او د هغې سورې به هم هميشه وی، هغه به نمر ختمولې نشی، ځکه چې په جنت کښې نمر نشته، دا د هغه خلقو به انجام وی چې د شرک نه ئې ځان ساتلې وی، او د کافرانو به انجام دوزخ وی او هغه خلق چاته چې مونږ کتاب ورکړې دې، لکه عبد الله بن سلام د يهوديانو د مومنانو نه وو هغوی ددې نه خوشحالېږی کوم چې ستا طرف ته نازليږلی، د هغه څيز مطابق کيدو د وجه کوم چې دوی سره دی، او د يهودو او مشرکانو څه ډلې چې د دښمنئ د وجه يو محاذ جوړ کړو په تاباندې ئې په يو ځائې حمله وکړه، د قرآن چې د بعضو خبرو انکار کوی او د قصو نه علاوه د احکامو انکار کوی، تاسو په ښکاره اووئې، چې کوم څيز په ما باندې نازل شوې دې ماته خو په دې کښې حکم شوې هغې چې زه صرف د الله عبادت اوکړم او هغه سره څوک شريک جوړ نه کړم، زه هم د هغه طرف ته بلنه کوم او د هغه طرف ته څما ځائې دې، او دغه شان مونږ قرآن د عربئ فرمان جوړولو سره په عربئ ژبه کښې نازل کړو، چې ته ددې په ذريعه د خلقو په مينځ کښې فيصله اوکړې، او که تا لره د توحيد علم راتلو نه پس تا د کافرانو د خواهشاتو فرض کړه

که په هغه خبرو کښې د کومو چې دوی تاته دعوت درکوی، تابعداری دې اوکړه، نو د الله د طرف نه به نه ستا مددګاروی او نه به د هغه د عذاب نه څوک بچ کونکې وی. (من) زائده دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: کیف کان عقاب: ای علی ای حالة کان عقابی؟ هل کان ظلما لهم او کان عدلا؟ یعنی څما عذاب د ظلم وو یا د انصاف؟ ددې جواب شارح ﷫ د خپل قول (هو واقع موقعه) سره ورکړې دې.

قوله: کمن لیس کذلك: دا د (افمن هو قائم) مبتدأ خبر محذوف دې، قرینې د مقابلې د وجې، چونکه د خبر حذف مفهوم دې، څکه د کلام د بې فائدې کیدو اعتراض نشته.

قوله: دل علی هذا: یعنی په ذکر شوې باندې (جعلوا لله شرکاء) دلالت کوی، او د مذکور نه مراد استفهام انکاری کیدل او په خبر محذوف باندې دلالت کول، یعنی جعلوا لله، دواړه خبرو باندې دلالت کوی.

قوله: مثل الجنة التی وعد المتقون: دا جمله مبتدأ، ددې خبر محذوف دې، او هغه فیما نقص علیکم دې، تجری من تحتها الانهر، د ضمیر محذوف نه حال دې، تقدیری عبارت دا دې: مثل الجنة التی وعدها المتقون تجری من تحتها الانهار،

قوله: اکلها دائم وظلها دائم: دادواړه جملې هم مبتدأ خبر حال دې، او ظلها، د مبتدأ خبر دائم، د ماقبل د قرینې د وجه نه محذوف دې،

قوله: ما یؤکل فیها:

سوال: د اکلها تفسیر په (مایؤکل) سره د څه مقصد د پاره کړې دې؟

جواب: ددې مقصد د دوه اعتراضونو جواب کول دی.

(۱) که اکلها مصدر اوګنړلې شی نو د دائم حمل په دې باندې صحیح نه دې، او که اکل په معنی د ماکول واخلې نو ماکول خو د خوړلو نه پس ختم شی، لهذا د دوام دلته هیڅ معنی نشته.

(۲) د اکل نه مراد ما من شانه ان یوکل، په دې تفسیر سره دواړه اعتراضونه ختم شول.

قوله: فیها: په دې کښې اشاره ده چې په اکلها کښې اضافت په معنی د (فی) دې او دا اسناد مجازی دې، په دې کښې علاقه د ظرفیت ده.

قوله: حکما عربیا: دا دواړه د انزلناه د ضمیر یعنی د قرآن نه حال دې، حالانکه د حکما او عربیا په قرآن باندې حمل صحیح نه دې.

جواب: حاصل دادې چې حکما مصدر په معنی د مفعول یعنی ما یحکم به بین الناس.

[ایاتونه:۳۸ـ۴۳]

وَنَزَلَ لَمَّا عَيَّرُوهُ بِكَثْرَةِ النِّسَاءِ ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَاجًا وَذُرِّيَّةً﴾ أَوْلَادًا وَأَنْتَ مِثْلُهُمْ ﴿وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ﴾ مِنْهُمْ ﴿أَن يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ لِأَنَّهُمْ عَبِيدٌ مَرْبُوبُونَ ﴿لِكُلِّ أَجَلٍ﴾ مُدَّةٍ ﴿كِتَابٌ﴾ مَكْتُوبٌ فِيهِ تَحْدِيدُهُ ﴿يَمْحُو اللَّهُ﴾ مِنْهُ ﴿مَا يَشَاءُ وَيُثْبِتُ﴾ بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ فِيهِ مَا يَشَاءُ مِنَ الْأَحْكَامِ وَغَيْرِهَا ﴿وَعِندَهُ أُمُّ الْكِتَابِ﴾ أَصْلُهُ الَّذِي لَا يَتَغَيَّرُ مِنْهُ شَيْءٌ وَهُوَ مَا كَتَبَهُ فِي الْأَزَلِ ﴿وَإِمَّا﴾ فِيهِ إِدْغَامُ نُونِ إِنْ الشَّرْطِيَّةِ فِي مَا الْمَزِيدَةِ ﴿نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ﴾ بِهِ مِنَ الْعَذَابِ فِي حَيَاتِكَ وَجَوَابُ الشَّرْطِ مَحْذُوفٌ أَيْ فَذَاكَ ﴿أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ﴾ قَبْلَ تَعْذِيبِهِمْ ﴿فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ﴾ مَا عَلَيْكَ إِلَّا التَّبْلِيغُ ﴿وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ﴾ إِذَا صَارُوا إِلَيْنَا فَنُجَازِيهِمْ ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا﴾ أَيْ أَهْلُ مَكَّةَ ﴿أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ﴾ نَقْصِدُ أَرْضَهُمْ ﴿نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا﴾ بِالْفَتْحِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿وَاللَّهُ يَحْكُمُ﴾ فِي خَلْقِهِ بِمَا يَشَاءُ ﴿لَا مُعَقِّبَ﴾ لَا رَادَّ ﴿لِحُكْمِهِ وَهُوَ سَرِيعُ الْحِسَابِ﴾ ﴿وَقَدْ مَكَرَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ مِنَ الْأُمَمِ بِأَنْبِيَائِهِمْ كَمَا مَكَرُوا بِكَ ﴿فَلِلَّهِ الْمَكْرُ جَمِيعًا﴾ وَلَيْسَ مَكْرُهُمْ كَمَكْرِهِ لِأَنَّهُ تَعَالَى ﴿يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ﴾ فَيُعِدُّ لَهَا جَزَاءَهُ وَهَذَا هُوَ الْمَكْرُ كُلُّهُ لِأَنَّهُ يَأْتِيهِمْ بِهِ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ ﴿وَسَيَعْلَمُ الْكَافِرُ﴾ الْمُرَادُ بِهِ الْجِنْسُ وَفِي قِرَاءَةٍ الْكُفَّارُ ﴿لِمَنْ عُقْبَى الدَّارِ﴾ أَيِ الْعَاقِبَةُ الْمَحْمُودَةُ فِي الدَّارِ الْآخِرَةِ أَلَهُمْ أَمْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وسلم واصحابه ﴿وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ لَكَ ﴿لَسْتَ مُرْسَلًا قُلْ﴾ لَهُمْ ﴿كَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ﴾ عَلَى صِدْقِي ﴿وَمَنْ عِندَهُ عِلْمُ الْكِتَابِ﴾ مِنْ مُؤْمِنِي الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى

ترجمه: دا راتلونکې آيت هغه وخت نازل شو چې کله هغوی (کافرانو) نبی ﷺ ته په زياتو ودونو کولو باندې طعنه ورکړه مونږ ستا نه مخکښې هم رسولان ليږلي وو مونږ په هغې کښې هر يو د ښځو بچو والا جوړ کړي وو، او تاسو ﷺ هم د هغوی پشان يئ، په هغې کښې د يو رسول دا طاقت نه وو چې هغه د الله د اجازت نه بغير څه معجزه راوړی، ځکه چې هغه تربيت يافته بندګان دی، د هر يو دور د پاره يو کتاب دې، او هغه هم دغه دور د پاره محدود دې، الله چې کوم څيز غواړی د هغې نې نه ختموی او چې کوم احکام وغيره غواړی باقی ئې ساتی، ام الکتاب (اصل) هم د هغه سره دې، اصل کتاب چې په هغې کښې څه تبديلی نه کوی، او هغه هم هغه دې کوم چې هغه په ازل کښې ليکلې دی، او چې د کوم عذاب د دهمکيانو مونږ وعده کړې ده، (اما) کښې د (ان) شرطيه په ما زائده کښې ادغام دې، په هغې کښې بعضې مونږ تا ته اوښايو، يعنی ستا په زندګئ کښې په هغوی باندې عذاب راشی، او جواب شرط محذوف دې، ای فذاک، يعنی داسې هم کيدې شی، يا هغوی ته د عذاب ورکولو نه مخکښې مونږ تا وفات کړو، ستا په ذمه باندې خو صرف رسول دی او بس، يعنی په تا باندې د تبليغ نه علاوه بل څه ذمه داری نشته، او زمونږ په ذمه د هغوی حساب دې، چې کله مونږ له

راشي نو مونږ به هغوی له بدله ورکړو، آیا اهل مکه نه ګوري چې مونږ نبی ﷺ ته فتح ورکولو سره زمکه دهغې د طرفونو نه راغونډوو، او الله چې په مخلوق کښې څه غواړي حکم ئې کوي، څوک د هغه حکم روستو کونکې نشته، هغه زر حساب اخستونکې دې ددوی نه مخکښې امتونو هم خپلو پیغمبرانو سره چالونه کړې وو څنګه چې تاسره چالونه کوي، خو ټول تدبیرونه الله لره دي، او د دوی تدبیر د هغه د تدبیر پشان نه دې، څکه چې الله تعالی ته د هر ساه والا په باره کښې علم دې، چې دې به څه کوي لهذا د هغه د پاره بدله تیاره ساتي او هم دغه دهغه مکمل تدبیر دې څکه چې هغه دا داسې پکار راوړي چې دوی ته احساس هم نه وي، او کافرانو ته به ډیر زر معلومه شي، او د کافر نه مراد جنس کافر مراد دې، او په یو قرامت کښې د کافر په ځائې کفار دې، چې کور د آخرت د چا د پاره دې، یعنی په کور د آخرت کښې بهترین انجام د چا د پاره دې، ددوی یا د نبی ﷺ او د هغه د صحابه کرامو؟ د چا د پاره دې، ددوی یا د نبی ﷺ او د هغه د صحابه کرامو. کافران وائي چې ته د الله رسول نه یې، ته دوی ته اووایه چې ځما او ستا په مینځ کښې ځما په رشتنوالی باندې الله ګواه په اعتبار سره کافي دې، او هغه څوک چې چا سره د کتاب علم دې، او هغه د یهودو او نصاری مومنان دي..

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: فذاك:** مبتدأ ده، او «شافیک» ددې خبر محذوف دې، مبتدأ دْ خبر جمله، او بیا د «اما» جواب شرط شو.

**قوله: نتوفينك:** هم په شرط سابق باندې معطوف کیدو د وجې شرط دې، ددې هم جواب محذوف دې، او هغه «فلا تقصير منک» دې، «فانما عليک» دې محذوف علت دې، کیدې شي چې مفسر علام د شرط ثاني د جواب د حذف ته په اول باندې اعتماد کولو سره یا په علت باندې اعتماد کولو اشاره اونکړه، په خلاف د أول شرط د جواب، چې د هغې علت بیان نه کړې شو.

**قوله: المراد به الجنس:**

**سوال:** دا د دې سوال جواب دې چې په الكافر کښې الف لام د عهد اغستلو څه قرینه نشته، څکه چې یو مخصوص متیقن کافر مراد نه دې، نه مطلقا یو کافر مراد دې، نو بیا د کافر مفرد راوړلو څه مقصد دې؟

**جواب:** ددې سوال جواب دادې چې په الكافر کښې الف لام جنسي دې، کوم چې د جمع په معنی باندې مشتمل دې، فلا اعتراض.

## [۱۴] سورة ابراهیم

سورة ابراهیم مکیة الا الم تر الی الذین بدلوا نعمة الله الاٰیتین احدی او ثنتان او اربع او خمس خمسون اٰیة

سورة ابراهیم مکی دې، مګر ألم تر الی الذین۔ الخ، دوه آیتونه ، په دې کښې ۵۱، ۵۲، ۵۳، ۵۴ آیتونه دی.

### [اٰیاتوله:۱ - ۶]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿الٓر﴾ الله اعلم بمراده بذلك هذا القرآن ﴿كِتَابٌ أَنزَلْنَاهُ إِلَيْكَ﴾ يا محمد ﴿لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمَاتِ﴾ الكفر ﴿إِلَى النُّورِ﴾ الإيمان ﴿بِإِذْنِ﴾ بأمر ﴿رَبِّهِمْ﴾ ويبدل من الى النور ﴿إِلَىٰ صِرَاطِ﴾ طريق ﴿الْعَزِيزِ﴾ الغالب ﴿الْحَمِيدِ﴾ المحمود ﴿اللَّهِ﴾ بالجر بدل أو عطف بيان وما بعده صفة والرفع مبتدأ خبره ﴿الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ ملكا وخلقا وعبيدا ﴿وَوَيْلٌ لِّلْكَافِرِينَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيدٍ﴾ ﴿الَّذِينَ﴾ نعت ﴿يَسْتَحِبُّونَ﴾ يختارون ﴿الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الْآخِرَةِ وَيَصُدُّونَ﴾ الناس ﴿عَن سَبِيلِ اللَّهِ﴾ دين الإسلام ﴿وَيَبْغُونَهَا﴾ أي السبيل ﴿عِوَجًا﴾ معوجة ﴿أُولَٰئِكَ فِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ﴾ عن الحق ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ﴾ بلغة ﴿قَوْمِهِ لِيُبَيِّنَ لَهُمْ﴾ ليفهمهم ما أتى به ﴿فَيُضِلُّ اللَّهُ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ وَهُوَ الْعَزِيزُ﴾ في ملكه ﴿الْحَكِيمُ﴾ في صنعه ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا﴾ التسع وقلنا له ﴿أَنْ أَخْرِجْ قَوْمَكَ﴾ بني إسرائيل ﴿مِنَ الظُّلُمَاتِ﴾ الكفر ﴿إِلَى النُّورِ﴾ الإيمان ﴿وَذَكِّرْهُم بِأَيَّامِ اللَّهِ﴾ بنعمه ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ﴾ التذكير ﴿لَآيَاتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ﴾ على الطاعة ﴿شَكُورٍ﴾ للنعم ﴿وَ﴾ اذكر ﴿إِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ أَنجَاكُم مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ سُوءَ الْعَذَابِ وَيُذَبِّحُونَ أَبْنَاءَكُمْ﴾ المولودين ﴿وَيَسْتَحْيُونَ﴾ يستبقون ﴿نِسَاءَكُمْ﴾ لقول بعض الكهنة إن مولودا يولد في بني إسرائيل يكون سبب ذهاب ملك فرعون ﴿وَفِي ذَٰلِكُم﴾ الإنجاء أو العذاب ﴿بَلَاءٌ﴾ إنعام أو ابتلاء ﴿مِّن رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ﴾

ترجمه: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډیر مهربانه ډیر رحم والا دې، الر الله د دې نه خپل مراد خه پیژنی. دا قرآن کتاب عظیم الشان دې، اې محمد ﷺ دا مونږ په تا نازل کړو چې خلقو له د کفر د تیارو نه د هغوی د رب په حکم سره د ایمان رڼا طرف ته راوباسې لو الی النورنه الی العزیزبدل دې، یعنی غالب او د تعریف قابل دې، د الله لارې طرف ته (راولې)، لفظ د الله جر د العزیز نه بدل یا عطف کیدو د وجې دې، او ما بعد یعنی الذی له. الخ د الله صفت دې، او د الله د رفع په صورت کښې لفظ الله به مبتدأ وی او الذی له به د دې خبر وی، هغه الله چې په آسمانونو او زمکه کښې چې څه دی ټول د الله دی، د ملک، تخلیق او د مملوک په اعتبار سره، او د کافرانو دپاره خو د سخت عذاب د وجې هلاکت او بربادې ده خوک چې د دنیا ژوند د آخرت په مقابله کښې خوښوی، الذین د الکافرین صفت دې، او خلقو له د الله د لارې نه یعنی دین اسلام نه منع کوی، او په دې لاره کښې کوږوالې راوباسی، دا خلق د لرې درجې په ګمراهۍ کښې

دی، یعنی د حق نه لري دی، مونږ هر نبي لره د هغه په قومي زبان کښې ليږلی دی، چې هغه څه راوړي دی هغوی پر پوهه کړی، اوس چې الله څوک گمراه کول اوغواړی گمراه ئې کړی، او چاته چې اوغواړی هدايت نصيب کړی ورته، هغه په خپل بادشاهئ کښې غلبې والا او په خپل کارونو کښې حکمت والا دی، او دا کار واقعی دې چې مونږ موسی عليه السلام د نهه معجزو سره راليږلی وو او دوی ته مو دا اوونيل چې خپل قوم بنی اسرائيلو لره د کفر د تيارو نه د ايمان رڼا طرف ته راوباسئ، او هغوی ته د الله نعمتونه ورياد کړئ، بې شکه دې يادولو کښې په طاعاتو باندې صبر کولو والو او په نعمتونو باندې شکر کولو والو د پاره نښې دی، او د هغه وخت ذکر چې کله موسی عليه السلام خپل قوم ته اووئيل تاسو په خپل ځان باندې د الله نعمتونه ياد کړئ چې کله ئې تاسو له د قوم د فرعون نه نجات درکړو، هغوی تاسو ته سخت تکليف رسولو، او ستاسو ماشومان هلکان ئې قتلول، او ستاسو ښځو لره به ئې ژوندئ پريښودلې، او په دې نجات يا عذاب کښې زمونږ د رب د طرف نه لوئې انعام يا لوئې امتحان وو.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** هذاالقرآن: په دې تقدير کښې اشاره ده چې کتاب انزلناه د مبتدأ محذوف خبر دې، نه چې کتاب مبتدأ او انزلناه ددې خبر، ځکه چې کتاب نکره محضه ده، چې د هغې مبتدأ ، راتلل صحيح نه دی.

**قوله:** ويبدل من الى النور: الى صراط العزيز دالى النورنه د عامل د اعادې سره بدل دې.

**قوله:** بالجربدل اوعطف: بيان يعنى لفظ الله د العزيز نه بدل دې، يا عطف بيان دې.

**سوال:** لفظ لله علم دې او العزيز صفت دې، د علم د صفت نه بدل واقع کيدل صحيح نه دی؟

**جواب:** العزيز د صفت مختصه کيدو د وجه په منزله د علم دې،لهذا د لفظ د الله ددې نه بدل واقع کيدل صحيح دی.

**قاعده معروفه:** صفت د معرفې که په موصوف باندې مقدم وی نو د صفت اعراب به حسب عامل راځی، او موصوف بدل يا عطف بيان واقع کيږی، اصل عبارت داسې دې، الى صراط الله العزيز الذی له ما فی السموات وما فی الارض، د لفظ الله درې صفات دی، په دې کښې دوه مقدم دی، او يو مؤخر، العزيز او الحميد مقدم دی، او الذی له ما فی السموات الخ مؤخر دې.

ددې معروفې قاعدې په اعتبار سره لفظ الله، د العزيز نه بدل يا عطف بيان واقع شوې دې، دويم صورت په لفظ الله کښې د رفع دې، په دې لفظ الله مبتدأ او الذی له مافی السموات الخ ددې خبر به وی.

قوله: نعت: يعني الذين يستحبون الخ جمله د للكافرين د پاره صفت د وجه محلا مجرور ده، او بعضې حضراتو وئيلې دى چې دمبتدأ كيدو د وجه محلا مرفوع ده، او اولئك في ضلال بعيد ددې خبر دې.

قوله: بنعمته: ايام الله، نه نعمت مراد داسې دې چې دا د ظرف ذكر كولو سره د مظروف مراد اخستلو دقبيلې نه دې، نعمتونه او انعامات چونكه په ورځو كښې حاصليږي ځكه ورځې وئيلو سره انعامات او احسانات مراد اخستې دى.

قوله: يستبقون: د يستحبون تفسير په يستبقون سره كولو كښې ئې اشاره اوكړه چې د يستحيون معنى موضوع له مراد نه ده، بلكه لازم معنى مراد ده.

[ايا توله: ۷ ـ ۱۲]

﴿وَإِذْ تَأَذَّنَ﴾ اَعْلَمَ ﴿رَبُّكُمْ لَئِنْ شَكَرْتُمْ﴾ نِعْمَتِي بِالتَّوْحِيدِ وَالطَّاعَةِ ﴿لَأَزِيدَنَّكُمْ وَلَئِنْ كَفَرْتُمْ﴾ جَحَدْتُمُ النِّعْمَةَ بِالْكُفْرِ وَالْمَعْصِيَةِ لَأُعَذِّبَنَّكُمْ دَلَّ عَلَيْهِ ﴿إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ﴾ ﴿وَقَالَ مُوسَى﴾ لِقَوْمِهِ ﴿إِنْ تَكْفُرُوا أَنْتُمْ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا فَإِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ﴾ عَنْ خَلْقِهِ ﴿حَمِيدٌ﴾ مَحْمُودٌ فِي صُنْعِهِ بِهِمْ ﴿أَلَمْ يَأْتِكُمْ﴾ اِسْتِفْهَامُ تَقْرِيرٍ ﴿نَبَأُ﴾ خَبَرُ ﴿الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ قَوْمِ نُوحٍ وَعَادٍ﴾ قَوْمِ هُودٍ ﴿وَثَمُودَ﴾ قَوْمِ صَالِحٍ ﴿وَالَّذِينَ مِنْ بَعْدِهِمْ لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا اللَّهُ﴾ لِكَثْرَتِهِمْ ﴿جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ﴾ بِالْحُجَجِ الْوَاضِحَةِ عَلَى صِدْقِهِمْ ﴿فَرَدُّوا﴾ اَيِ الْأُمَمُ ﴿أَيْدِيَهُمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ﴾ اَيْ إِلَيْهَا لِيَعَضُّوا عَلَيْهَا مِنْ شِدَّةِ الْغَيْظِ ﴿وَقَالُوا إِنَّا كَفَرْنَا بِمَا أُرْسِلْتُمْ بِهِ﴾ فِي زَعْمِكُمْ ﴿وَإِنَّا لَفِي شَكٍّ مِمَّا تَدْعُونَنَا إِلَيْهِ مُرِيبٍ﴾ مُوقِعٍ فِي الرِّيبَةِ ﴿قَالَتْ رُسُلُهُمْ أَفِي اللَّهِ شَكٌّ﴾ اِسْتِفْهَامُ إِنْكَارٍ اَيْ لَا شَكَّ فِي تَوْحِيدِهِ لِلدَّلَائِلِ الظَّاهِرَةِ عَلَيْهِ ﴿فَاطِرِ﴾ خَالِقِ ﴿السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَدْعُوكُمْ﴾ إِلَى طَاعَتِهِ ﴿لِيَغْفِرَ لَكُمْ مِنْ ذُنُوبِكُمْ﴾ مِنْ زَائِدَةٌ فَإِنَّ الْإِسْلَامَ يُغْفَرُ بِهِ مَا قَبْلَهُ أَوْ تَبْعِيضِيَّةٌ لِإِخْرَاجِ حُقُوقِ الْعِبَادِ ﴿وَيُؤَخِّرَكُمْ﴾ بِلَا عَذَابٍ ﴿إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى﴾ اَجَلِ الْمَوْتِ ﴿قَالُوا إِنْ﴾ مَا ﴿أَنْتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا تُرِيدُونَ أَنْ تَصُدُّونَا عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُنَا﴾ مِنَ الْأَصْنَامِ ﴿فَأْتُونَا بِسُلْطَانٍ مُبِينٍ﴾ حُجَّةٍ ظَاهِرَةٍ عَلَى صِدْقِكُمْ ﴿قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ إِنْ﴾ مَا ﴿نَحْنُ إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ﴾ كَمَا قُلْتُمْ ﴿وَلَكِنَّ اللَّهَ يَمُنُّ عَلَى مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ﴾ بِالنُّبُوَّةِ ﴿وَمَا كَانَ﴾ مَا يَنْبَغِي ﴿لَنَا أَنْ نَأْتِيَكُمْ بِسُلْطَانٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ بِأَمْرِهِ لِأَنَّنَا عَبِيدٌ مَرْبُوبُونَ ﴿وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ﴾ يَثِقُوا بِهِ ﴿وَمَا لَنَا أَ﴾ نْ ﴿لَا نَتَوَكَّلَ عَلَى اللَّهِ﴾ اَيْ لَا مَانِعَ لَنَا مِنْ ذَلِكَ ﴿وَقَدْ هَدَانَا سُبُلَنَا وَلَنَصْبِرَنَّ عَلَى مَا آذَيْتُمُونَا﴾ عَلَى اَذَاكُمْ ﴿وعلى الله فليتوكل المتوكلون﴾

ترجمه: او چې كله ستاسو رب تاسو خبرادار كړئ چې كه چرې تاسو د توحيد او د تابعدارئ په ذريعه ځما د نعمتونو شكر وكړو نو ځه به بې شكه تاسو ته ډير دركړم، او كه تاسو كفر او د ګناه په ذريعه ځما د نعمتونو ناشكرى وكړه نو ځه به تاسو ته خامخا عذاب دركړم (لاعذبنكم) جواب محذوف باندې (ان عذابي لشديد) دلالت كوى يقينا ځما عذاب ډير سخت دې، او موسى

قومونو خپل قوم ته اووئیل که چرې تاسو او په مخ د زمکې ټول خلقو ناشکری اوکړی نو بیا هم الله د مخلوق نه بې نیازه دې او په خپل کارونو کښې د ستاینې لائق دې آیا تاسو لره استفهام تقریری دې ستاسو نه د مخکښې خلقو یعنی قوم نوح او د عاد یعنی قوم هود او د قوم ثمود یعنی قوم صالح او د هغه خلقو چې کوم ددوی نه پس وو، خبرونه راغلې نه دی؟ چې د هغې د تعداد د هغوی د زیاتوالی د وجه نه د الله نه سوا بل چا ته پته نشته، او دوی ته ددوی رسولانو په خپل صداقت باندې ښکاره دلیلونه راوړل نو دې امتونو خپل لاسونه په سخته سره د غصې د وجې نه د چک لګولو (کټ کولو) د پاره په خپله خوله کښې ورکړل او وئې وئیل چې په ستاسو په خیال چې تاسو کوم څیز سره رالیږلې شوې یې مونږ د هغې نه انکار کونکی یو، او مونږ د هغه څیز په باره کښې د کوم چې تاسو دعوت راکوې په شک کښې پریوتونکی یو، د هغوی رسولانو هغوی ته اووئیل آیا تاسو د الله تعالی په باره کښې په شک کښې یئ؟ استفهام انکاری دې، په توحید باندې واضحه دلائل موجودیدو د وجې،د هغه په توحید کښې د څه شک ځائې نشته، هغه د اسمانونو او د زمکو پیدا کونکی دې، هغه تاسو خپل تابعدارئی طرف ته رابلی چې تاسو ته ستاسو ګناه معاف کړی، م-(من) زائد دې، او دا واقعی خبره ده چې د اسلام د وجه د اسلام نه مخکښې ګناه معاف کیږی، یا (من) تبعیضیه دې د حقوق العباد بهر کولو د پاره، او دا چې یو مقرر وخت پورې تاسو ته مهلت درکړی یعنی مرګ پورې هغوی اووئیل چې تاسو خو زمونږ په شان انسانان یئ تاسو غواړئ چې مونږ د هغه معبودانو (بتانو) نه منع کړئی د چا عبادت چې زمونږ پلار نیکه کولو، خا نو زمونږ په مخکښې په خپل رشتوالی باندې یو ښکاره دلیل پیش کړئ، هغه پیغمبرانو دوی ته اووئیل دا رشتیا ده چې مونږ ستاسو په شان انسانان یو خنکه چې تاسو اووئیل،خو الله چې په خپلو بندګانو باندې په چا اوغواړی نبوت ورکولو سره پرې خپل فضل اوکړی، او زمونږ جرات نشته، چې مونږ د الله د حکم نه بغیر تاسو ته څه معجزه راوړو او اوښایو، خکه چې مونږ تربیت یافته بندګان یو او ایمان والو له صرف په الله باندې بهروسه کول پکار دی، آخر څه وجه ده چې مونږ په الله باندې بهروسه اونکړو، یعنی زمونږ د پاره ددې نه څه منع کونکې نشته،حالانکه هغه خو مونږ ته لارې اوخودلې والله چې کوم تکلیفونه تاسو مونږ ته راکوئی مونږ به خامخا په هغې باندې صبر کوو، یعنی ستاسو په تکلیفونو باندې د بهروسه کونکو د پاره هم دغه مناسبه ده، چې په الله باندې بهروسه اوکړی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** اعلم:د (تاذن) تفسیر په (اعلم) سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې تاذن باب تفعل د خپل خاصیت په اعتبار سره په تکلف باندې دلالت کوی، کوم چې د شان باری مناسب نه دې،لهذا تاذن په معنی د اذن دې.

**قوله:** لاعذبنکم:دا د شرط جزا ده کومه چې محذوفه ده، نه چې ان عذابی لشدید، لهذا د

(ان عذابی) په شرط باندې د عدم ترتیب اعتراض ختم شو، او په حذف د جواب باندې (ان عذابی لشدید) دلالت کوی.

**قوله: ای الیها:** په دې کښې اشاره ده چې فی په معنی د (الی) دې د (ایدیهم) او (افواههم) د دواړو ضمیرونه کفار طرف ته راجع دی، یعنی کافرانو د سختې غصې نه خپل لاسو نه په خولو کښې نیولې وواو د تفسیر د عضوا علیکم الانامل من الغیظ مطابق دې، او بعضو د (ثانی هم) ضمیر (رسل) طرف ته راجع کړې دې مطلب ئې دا بیان کړې دې چې د امت خلقو خپل لاسونه د رسولانو په خولو باندې کیخودل، چې رشتیا خبره اونکړې شی، خو دا خبره د ظاهر نه خلاف ده

**قوله: بزعمکم:** دا ددې سوال جواب دې چې

**سوال:** د بما ارسلتم نه معلومیږی چې کافران د ما جاء به الرسل منونکې وو، حالانکه حقیقت داسې نه دې؟

**جواب:** د جواب حاصل دادې چې مونږ ته خو ستا رسول کیدل منظور نه دی خو ستا په خبره هم منلو ته تیار نه یو.

**قوله: لاشك فی توحیده:** د یو شبهې جواب دې،

**شبه** داده چې د همزه انکاری حق دادې چې شک په (مظروف) باندې داخل وی نه چې ظرف باندې، او دلته په لفظ د الله باندې داخل دې، کوم چې ظرف دې،

**جواب:** د جواب حاصل دادې چې خبره په شک کښې نه ده، بلکه خبره په مشکوک کښې ده، فتدبر،

**[ایاتونه: ۱۳ ـ ۲۱]**

(وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوا لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُمْ مِّنْ أَرْضِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ) لَتَصِيرُنَّ (فِي مِلَّتِنَا) دِينِنَا (فَأَوْحَى إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ الظَّالِمِينَ) الْكَافِرِينَ (وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْأَرْضَ) أَرْضَهُمْ (مِنْ بَعْدِهِمْ) بَعْدَ هَلَاكِهِمْ (ذَٰلِكَ) النَّصْرُ وَإِيرَاثُ الْأَرْضِ (لِمَنْ خَافَ مَقَامِي) أَيْ مَقَامَهُ بَيْنَ يَدَيَّ (وَخَافَ وَعِيدِ) بِالْعَذَابِ (وَاسْتَفْتَحُوا) اسْتَنْصَرَ الرُّسُلُ بِاللّٰهِ عَلَى قَوْمِهِمْ (وَخَابَ) خَسِرَ (كُلُّ جَبَّارٍ) مُتَكَبِّرٍ عَنْ طَاعَةِ اللّٰهِ (عَنِيدٍ) مُعَانِدٍ لِلْحَقِّ (مِنْ وَرَائِهِ) أَيْ أَمَامَهُ (جَهَنَّمُ) يَدْخُلُهَا (وَيُسْقَى) فِيهَا (مِنْ مَاءٍ صَدِيدٍ) هُوَ مَا يَسِيلُ مِنْ جَوْفِ أَهْلِ النَّارِ مُخْتَلِطًا بِالْقَيْحِ وَالدَّمِ (يَتَجَرَّعُهُ) يَبْتَلِعُهُ مَرَّةً بَعْدَ مَرَّةٍ لِمَرَارَتِهِ (وَلَا يَكَادُ يُسِيغُهُ) يَزْدَرِدُهُ لِقُبْحِهِ وَكَرَاهَتِهِ (وَيَأْتِيهِ الْمَوْتُ) أَيْ أَسْبَابُهُ الْمُقْتَضِيَةُ لَهُ مِنْ أَنْوَاعِ الْعَذَابِ (مِنْ كُلِّ مَكَانٍ وَمَا هُوَ بِمَيِّتٍ وَمِنْ وَرَائِهِ) بَعْدَ ذَٰلِكَ الْعَذَابِ (عَذَابٌ غَلِيظٌ) قَوِيٌّ مُتَّصِلٌ (مَثَلُ) صِفَةُ (الَّذِيْنَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ) مبتدأ وَيُبْدَلُ مِنْهُ (أَعْمَالُهُمْ) الصَّالِحَةُ كَصِلَةٍ وَصَدَقَةٍ فِي عَدَمِ الْانْتِفَاعِ بِهَا (كَرَمَادٍ اشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيحُ فِي يَوْمٍ عَاصِفٍ) شَدِيدِ هُبُوبِ الرِّيحِ فَجَعَلَتْهُ

هباء منثورا لا یقدر علیه والمجرور خبر المبتدا (لا یقدرون) ای الکفار (مما کسبوا) عملوا فی الدنیا (علی شیء) ای لا یجدون له ثوابا لعدم شرطه (ذلک هو الضلال) الهلاك (البعید) (الم تر) تنظر یا مخاطب استفهام تقریر (أن الله خلق السماوات والأرض بالحق) متعلق بخلق (إن یشأ یذهبکم) ایها الناس (ویأت بخلق جدید) بدلکم (وما ذلک علی الله بعزیز) شدید (وبرزوا) ای الخلائق والتعبیر فیه وفیما بعده بالماضی لتحقق وقوعه (لله جمیعا فقال الضعفاء) الاتباع (للذین استکبروا) المتبوعین (إنا کنا لکم تبعا) جمع تابع (فهل أنتم مغنون) دافعون (عنا من عذاب الله من شیء) من الاولی للتبیین والثانیة للتبعیض (قالوا) المتبوعون (لو هدانا الله لهدیناکم) لدعوناکم الی الهدی (سواء علینا أجزعنا أم صبرنا ما لنا من) زائدة (محیص) ملجا

ترجمه: او کافرانو خپل رسولانو ته اوویل چې مونږ به خامخا تاسو د خپل ملک نه اویاسو مګر دا چې تاسو زمونږ په مذهب کښې داخل شئ نو د هغوی پروردګار د هغوی طرف ته وحی راولیږله چې مونږ به دې ظالمانو کافرانو لره تباه کړو، او ددوی د هلاکت نه پس به تاسو په دې زمکه باندې اوسیدونکی جوړ کړو دا مدد او د زمکې وارثان کیدل د هغه چا د پاره دی څوک ثې څما مخې ته د اودریدو نه ویریږی، او زما د عذاب د وعید ویره ساتی، او رسولانو د خپل قوم په مقابله کښې د الله نه مدد اوغوښتلو او د الله د اطاعت په مقابله کښې هر سرکشی کونکی ضدی د حق دشمن نامراد شو، د هغه مخکښې جهنم دې، چې په هغې کښې دې به داخلیږی هلته به پرې د پیپ اوبه څکلولې شی، او هغه داسې اوبه دی چې د جهنمیانو د زخمونه نه به راوځی، او چې کوم به د وینې او دپیپ ملاوې وی. چې هغه به دوی مجبورا څکی یعنی د هغې د تریخ والی د وجه نه به لګ لګ څکی، او د هغې د قبیح والی او ناخوښوالی د وجه به هغه تیرولې نشی، او ده ته به د هر طرف نه مرګ راځی، یعنی د مرګ اسباب کوم چې د مرګ غوښتونکې دی د مختلف قسم عذابونو نه خو دوی به مړه کیږی نه، او دې عذاب نه پس یو نه ختم کیدونکې سخت عذاب به وی، او د خپل رب سره کفر کولو والا خلقو اعمال صالحه یعنی صله رحمی، او د صدقې مثال، ددې نه فائده نه اوچتولو کښې، (الذین کفروا) مبتدأ (مبدل منه) او اعمالهم بدل دې. د هغه ایرې پشان دې په کومه چې تیزه هوا چلیدلې وی، او هغه یې الوزېدلې دوړو پشان کړې وی چې د هغې په اجر حاصلولو باندې قادر نه وی، (یعنی د خپلو نیکو عملونو اجر موندلو باندې به قادر نه وی) او مجرور (کرماد) د مبتدأ خبر دې. او کوم چې دوی په دنیا کښې عملونه (صالح) اوکړل، آیا کافران به په دې باندې یعنی ددې اجر موندلو باندې د هغې شرط نه موندلو په وجه قادر نه وی، دغه د لرې ګمراهی هلاکت دې، اې مخاطب! آیا تا اونه کتل استفهام تقریری دې چې واقعی خبره دا ده چې الله زمکو او آسمانونو لره په مقصد سره پیدا کړې دی، بالحق، د خلق متعلق دې، که هغه اوغواړی نو تاسو

ټول به ختم کړي، او ستاسو په ځائي به يو نوي مخلوق پيدا کړي او دا د هغه د پاره څه مشکله خبره نه ده، او ټول مخلوق به د قيامت په ورځ د الله مخامخ .کيږي او تعبير دلته او مخکښې د صيغه ماضي په ذريعه د يقيني واقع کيدلو د وجې دې دغه وخت به کمزورې خلق يعنى تابعين به مشرانو ته يعنى د چا چې اتباع کړې شوې وى وائي، چې مونږ خو ستاسو تابعدار وو تبع د تابع جمع ده، نو آيا تاسو د الله د عذاب نه مونږ نه څه لږې کولې شئ، رومبى (من) د تبيين د پاره دې، او دويم د تبعيض د پاره دې، مخدومين به جواب ورکړى که الله مونږ ته هدايت نصيب کړې وو نو مونږ به هم ستاسو رهنمائي کړې وه، يعنى مونږ به تاسو ته هدايت طرف ته دعوت درکړې وو، اوس که مونږ چغې وهو يا صبر کوو، دواړه زمونږ د پاره برابر دى، اوس زمونږ د پاره يو د پناه ځائي نشته، (من) زائده دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:لتصيرن:** مفسر علام د (لتعودن) تفسير په لتصيرن سره کولو کښې د يو سوال جواب ورکړې دې

**سوال:** سوال دادې چې د عود د پاره اول په هغه حالت باندې کيدل ضرورى دى، د کوم نه چې عود کيږى، ددې مطلب دا شو چې انبياء (عليهم السلام) مخکښې د خپل امت په دين باندې وو، روستو به د هغې پريښودلو سره په دين حق باندې راتلل، حالانکه واقعى خبره داسې نه ده، نبيان (عليهم السلام) به هميشه به دين حق باندې وى؟

**جواب:** د جواب حاصل دادې چې (لتعودن) د (تصيرن) په معنى دې، يعنى تاسو زمونږ په دين باندې شئ.

**قوله:بعد هلاكهم:** دې کښې د مضاف حذف کولو طرف ته اشاره ده.

**قوله:يدخلها:** يدخلها محذوف گنړلو سره اشاره ئې اوکړه چې د (يسقى) عطف په محذوف باندې دې، چې عطف فعل على الاسم لازم رانشى.

**قوله:فيها:**

**سوال:** د فيها مقدر گنړلو څه فائده ده؟

**جواب:** چې کله معطوف جمله واقع شى نو په هغې کښې د عائد راوړل ضرورى وى کوم چې معطوف عليه طرف ته راجع وى.

**قوله:يزدرده:** الازدراد په آسانئ او په سهولت سره يو څيز حلق ته بوتلل.

**قوله:اسبابه المقتضية للموت:** په دې کښې اشاره ده، چې په جهنم کښې به مرگ نه وى، ځکه چې د مرگ د پاره خو يو سبب کافى وى، او بيا چې ډير اسباب موجود وى او بيا هم مرگ رانشى، نو دا د مرگ د نه راتللو دليل دې.

قوله: ويبدل منه: دا د يو سوال جواب دې.

سوال: د مبتدأ او د خبر په مينځ کښې د (اعمالهم) فصل بالاجنبي لازميږي کوم چې صحيح نه دې؟

جواب: دا فصل اجنبي نه دې، بلکه هغه د مبتدأ نه بدل دې، او بدل د مبدل منه نه اجنبي نه وي.

قوله: في يوم عاصف: د عاصف يوم طرف ته اسناد د مجاز په طور سره دې، او يوم عاصف نهاره صائم، وليله صائم، د قبيلې نه دې.

قوله: من الاولى للتبيين: يعنى (من) د مابعد واقع کيدونکى څيز د بيان د پاره دې، او بيان چې هغه د الله عذاب دې، مبين يعنى په څيز باندې مقدم دې، تقديرى عبارت دا دې هل انتم مغنون عنا بعض الشئ هو بعض عذاب الله.

[ايا تونه: ۲۲ ـ ۲۷]

(وَقَالَ الشَّيْطَانُ) إِبْلِيس (لَمَّا قُضِيَ الْأَمْرُ) وَأُدْخِلَ أَهْل الْجَنَّة الْجَنَّة وَأَهْل النَّار النَّار وَاجْتَمَعُوا عَلَيْهِ (إِنَّ اللَّهَ وَعَدَكُمْ وَعْدَ الْحَقِّ) بِالْبَعْثِ وَالْجَزَاء فَصَدَقَكُمْ (وَوَعَدْتُكُمْ) أَنَّهُ غَيْر كَائِن (فَأَخْلَفْتُكُمْ وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُمْ مِنْ) زَائِدَة (سُلْطَانٍ) قُوَّة وَقُدْرَة أَقْهَرُكُمْ عَلَى مُتَابَعَتِي (إِلَّا) لَكِنْ (أَنْ دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِي فَلَا تَلُومُونِي وَلُومُوا أَنْفُسَكُمْ) عَلَى إِجَابَتِي (مَا أَنَا بِمُصْرِخِكُمْ) بِمُغِيثِكُمْ (وَمَا أَنْتُمْ بِمُصْرِخِيَّ) بِفَتْحِ الْيَاء وَكَسْرهَا (إِنِّي كَفَرْتُ بِمَا أَشْرَكْتُمُونِ) بِإِشْرَاكِكُمْ إِيَّايَ مَعَ اللَّه (مِنْ قَبْلُ) فِي الدُّنْيَا قَالَ تَعَالَى (إِنَّ الظَّالِمِينَ) الْكَافِرِينَ (لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ) مُؤْلِم (وَأُدْخِلَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ) حَال مُقَدَّرَة (فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِمْ تَحِيَّتُهُمْ فِيهَا) مِنَ اللَّه وَمِنَ الْمَلَائِكَة وَفِيمَا بَيْنهمْ (سَلَامٌ) (أَلَمْ تَرَ) تَنْظُر (كَيْفَ ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا) وَيُبْدَل مِنْهُ (كَلِمَةً طَيِّبَةً) أَيْ لَا إِلَه إِلَّا اللَّه (كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ) هِيَ النَّخْلَة (أَصْلُهَا ثَابِتٌ) فِي الْأَرْض (وَفَرْعُهَا) غُصْنهَا (فِي السَّمَاءِ) (تُؤْتِي) تُعْطِي (أُكُلَهَا) ثَمَرهَا (كُلَّ حِينٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا) بِإِرَادَتِهِ كَذَلِكَ كَلِمَة الْإِيمَان ثَابِتَة فِي قَلْب الْمُؤْمِن وَعَمَله يَصْعَد إِلَى السَّمَاء وَيَنَالهُ بَرَكَته وَثَوَابه كُلّ وَقْت (وَيَضْرِبُ) يُبَيِّن (اللَّهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ) يَتَّعِظُونَ فَيُؤْمِنُونَ (وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيثَةٍ) هِيَ كَلِمَة الْكُفْر (كَشَجَرَةٍ خَبِيثَةٍ) هِيَ الْحَنْظَل (اجْتُثَّتْ) اُسْتُؤْصِلَتْ (مِنْ فَوْقِ الْأَرْضِ مَا لَهَا مِنْ قَرَارٍ) مُسْتَقَرّ وَثَبَات كَذَلِكَ كَلِمَة الْكُفْر لَا ثَبَات لَهَا وَلَا فَرْع وَلَا بَرَكَة (يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ) هِيَ كَلِمَة التَّوْحِيد (فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ) أَيْ فِي الْقَبْر لَمَّا يَسْأَلهُمْ الْمَلَكَانِ عَنْ رَبّهمْ وَدِينهمْ وَنَبِيّهمْ فَيُجِيبُونَ بِالصَّوَابِ كَمَا فِي حَدِيث الشَّيْخَيْنِ (وَيُضِلُّ اللَّهُ الظَّالِمِينَ) الْكُفَّار فَلَا يَهْتَدُونَ لِلْجَوَابِ بِالصَّوَابِ بَلْ يَقُولُونَ لَا نَدْرِي كَمَا فِي الْحَدِيث (وَيَفْعَلُ اللَّهُ مَا يَشَاءُ)

ترجمه: او چې کله فيصله اوکړې شي، او دوزخيان دوزخ ته، او جنتيان جنت ته داخل کړې

شي، نو دوزخيان به شيطان سره جمع شي، نو ابليس به هغوی ته اووئي چې حقيقت دادې چې الله چه د بعث او د بدلې څومره وعدې کړې وې هغه ټولې رشتيا وې او ما چې تاسو سره کومه وعده کړې وه، چې بعث وغيره هيڅ نشته، ما هغه پورا نه کړه، يعنی د هغې دروغ کيدل ښکاره شول، او ځما خو په تاسو باندې څه زور زبردستی نه وه، چې د هغې په ذريعه به ما تاسو په خپل عبادت مجبوروئ، البته دومره خبره ده چې ما تاسو ته دعوت درکړې وو، نو تاسو ځما په خبره باندې لبيک اووئيلو، لهذا اوس تاسو ځما په دعوت باندې لبيک وئيلو سره ما ملامت کوئی مه، بلکه خپل ځان ملامته کړئ،څه نه ستاسو فرياد اوريدې شم او نه تاسو ځما، مصرخي، د يآء فتحې او کسرې سره دې، ددې نه مخکښې په دنيا کښې تاسو چې څه د خدائی شريک جوړوم څه د هغې نه بری الذمه يم، الله تعالی اوفرمائيل د داسې ظالمانو د پاره دردناک عذاب يقينې دې، په خلاف د هغه خلقو چې ايمان ئې راوړې دې هغوی به داسې باغونو ته داخل کړې شی، چې په هغې کښې به نهرونه بهيږی، چه په هغې کښې به دوی د خپل رب په اجازت سره هميشه اوسيږی، په دې کښې به ددوی د په پاره د الله د طرف نه او د فرشتو د طرف نه او خپلو کښې هم د سلامتئ مبارکی به وی، خالدين د جنت نه حال مقدره دې، آيا تاسو نه گورئی چې الله تعالی د کلمې طيبې د کوم څيز سره مثال ورکړې دې،؟ يعنی لا اله الا الله، او کلمه طيبه د مثلا نه بدل دې، ددې مثال داسې دې چې د ښه نسل اونه وی، او هغه د کهجور اونه ده، چې د هغې جرړې په زمکه کښې لاندې انختې وی،او دهغې څانگې د اسمانه پورې ختلې وی، په هر وخت کښې د خپل رب په حکم او ارادې سره ميوې ورکوی، د ايمان د کلمې مثال داسې دې چې د مومن په زړه کښې کلمه انختې وی او د هغه عمل آسمان طرف ته ځيژی، او مومن د خپل عمل ثواب او برکت هر وخت مومی. دا مثالونه الله تعالی څکه ورکوی چې خلق ددې نه نصيحت سبق حاصل کړی، او ايمان راوړی او د خبيثې کلمې مثال چې هغه د کفر کلمه ده د خراب نسل د اونې پشان دې او هغه د حنظل اونه ده، چې هغه د زمکې د سطح نه د جرړو نه اوخکلې شی، او د هغې د پاره څه مضبوطيا نشته، کلمه د کفر داسې ده چې د هغې د پاره نه مضبوطيا شته او نه د هغې څانگې او نه برکت، ايمان والو د پاره الله د يو قول ثابت په بنياد باندې چې هغه کلمهٔ توحيد ده، په دنيا او آخرت يعنی د قبر په ژوند کښې ثبات ورنصيب کوی، چې کله دوه فرشتې د الله، د هغه نبی ﷺ او د دين په باره کښې سوال اوکړی، نو هغه به صحيح جواب ورکړی، څنگه چې د شيخينو حديث دې، او د ظالمانو لره کافرانو لره الله گمراه کوی چې د هغې د وجې نه هغوی صحيح جواب نه ورکوی، بلکه هغوی وائی (ها ها لا ندری) هائې افسوس چې مونږ ته پته نه لگی، څنگه چې په حديث کښې راغلی دی، او الله ته اختيار دې چې څه غواړی کوی.

......

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** وعد الحق، أي وعدا من حقه أن ينجز: یعنی داسې وعده چې د هغې حق دادې چې هغه پورا کړې شي، او اضافت إلى الصفت هم کرځولې شي، إلى الوعد الحق.

**قوله:** لكن: په دې کښې اشاره ده چې الاان دعوتكم، دعوتكم مستثنى منقطع ده، ځکه چې دعاء د سلطان د جنس نه، نه ده،

**قوله:** بالفتح: یعنی په (مصرخی) کښې یاء باندې د فتحې اوکسرې دواړه صورتونه دی، فتحه د تخفیف د پاره ده، او کسره د اصل مطابق، مصرخ، اسمْ فاعل مذکر، فریاد رسی کونکې (فریاد اوریدونکی)، (افعال) اصراخ د اضدادو نه دې، ددې معنی فریاد رسی کولو والا، او فریاد خواه، فریاد اوریدونکی (مدد کونکې).

**قوله:** حال مقدرة: یعنی مقدرین خلودهم، خالدین د جنت نه حال دې، د جنت وجود مقدم دې او جنت ته به داخلیدل روستو کیږی، معلومه شوه چې د حال او ذوالحال زمانه یوه نه ده، حالانکه یوه کیدل ضروری دې، جواب دا دې چې حال مقدره دې، أى مقدرين خلودهم:

**قوله:** تعطى: په دې کښې اشاره ده چې (تؤتی) د ایتاء نه دې، نه چې د اتیان نه..

**قوله:** اجتثت: هغه راوخکلې شو، ماضی مجهول واحد مؤنث غائب، مصدر اجتثات، (افتعال)

**[ایاتونه ۲۸ - ۳۴]**

(أَلَمْ تَرَ) تنظر (إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَةَ اللَّهِ) اي شكرها (كُفْرًا) هم كفار قريش (وَأَحَلُّوا) أنزلوا (قَوْمَهُمْ) باضلالهم اياهم (دَارَ الْبَوَارِ) الهلاك (جَهَنَّمَ) عطف بيان (يَصْلَوْنَهَا) يدخلونها (وَبِئْسَ الْقَرَارُ) المقر هي (وَجَعَلُوا لِلَّهِ أَنْدَادًا) شركاء (لِيُضِلُّوا) بفتح الياء وضمها (عَنْ سَبِيلِهِ) دين الاسلام (قُلْ) لهم (تَمَتَّعُوا) بدنياكم قليلا (فَإِنَّ مَصِيرَكُمْ) مرجعكم (إِلَى النَّارِ) (قُلْ لِعِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُوا يُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُنْفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ يَوْمٌ لَا بَيْعٌ) فداء (فِيهِ وَلَا خِلَالٌ) مخالة اي صداقة تنفع هو يوم القيامة (اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَكُمْ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْفُلْكَ) السفن (لِتَجْرِيَ فِي الْبَحْرِ) بالركوب والحمل (بِأَمْرِهِ) باذنه (وَسَخَّرَ لَكُمُ الْأَنْهَارَ (وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَائِبَيْنِ) جاريين في فلكهما لا يفتران (وَسَخَّرَ لَكُمُ اللَّيْلَ) لتسكنوا فيه (وَالنَّهَارَ) لتبتغوا فيه من فضله (وَآتَاكُمْ مِنْ كُلِّ مَا سَأَلْتُمُوهُ) على حسب مصالحكم (وَإِنْ تَعُدُّوا نِعْمَتَ اللَّهِ) بمعنى انعامه (لَا تُحْصُوهَا) لا تطيقوا عدها (إِنَّ الْإِنْسَانَ) الكافر (لَظَلُومٌ كَفَّارٌ) كثير الظلم لنفسه بالمعصية والكفر لنعمة ربه

**ترجمه:** آیا تا په هغه کسانو باندې نظر اچولې نه دې چا چې د الله نعمتونو یعنی د هغې شکر په ناشکرئی سره بدل کړو، او هغه د قریشو کافران دی، او خپل قوم ئې گمراه کولو سره د هلاکت

په کور کښې واچولو، یعنی په جهنم کښې دا عطف بیان دې، چې په هغې کښې به دا تول داخلیږي، او هغه ډیر بد د اوسیدو ځائې دې، هغوی الله تعالی سره شریک جوړ کړو چې خلقو لره د الله د لارې دین اسلام نه گمراه کړي د یاء په فتحې او ضمې سره، تاسو دوی ته اووایئ چې په خپله دنیا کښې یو څو ورځې مزې واخلئ ستاسو د واپس تلو ځاې خو آخري جهنم دې، اې نبي ﷺ ځما هغه بندگانو ته چا چې ایمان راوړې دې اووایه، چې د مونځ پابندي کوي او څه چې مونږ هغوی ته ورکړې دی د هغې نه دې په ښکاره او پټه باندې خرچ کوي، مخکښې د دې نه چې هغه ورځ راشي چې په هغې کښې به نه اخستل او خرڅول وي او نه دوستی، نه به هغوی سره څه وي چې په فدیه کښې ئې ورکړي، او هغه د قیامت ورځ ده، الله هغه ذات دې چا چې زمکه او آسمانونه پیدا کړل، او د وریځو نه ئې اوبه نازل کړې، او د هغې اوبو په ذریعه ستاسو د رزق د پاره میوې پیدا کړې او کشتیانې ئې ستاسو تابع کړې، چې په سیند کښې سورلئ او بوجهونه، د الله په اجازت سره اوړي، او هغه سیندونه ستاسو په اختیار کښې کړل، او نور سپوږمئ ئې ستاسو مسخر کړل، یعنی ستاسو په کار کښې ئې اولګول، چې په خپلو منزلونو باندې راون دی، ذره برابر سستی نه کوي، او شپه ئې هم ستاسو په کار کښې اولګوله چې تاسو په دې کښې آرام اوکړئ، او ورځ هم چې تاسو په دې کښې د الله فضل یعنی روزي تلاش کړئ، او کوم څیز چې تاسو د هغه نه اوغوښتلو په هغې کښې ئې ستاسو د مصلحت مطابق تاسو ته درکړل، او که تاسو د الله نعمتونو لره شمیرل اوغواړئ نو شمیر به ئې نه کړئ، یعنی ستاسو کښې د هغې د شمیر طاقت نشته، یقینا کافر انسان ډیر ناانصاف او ناشکره دې، یعنی د خپل رب د نعمتونو ناشکري او گناه کولو سره په خپل ځان باندې ډیر ظلم کونکې دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** أي شکرها: دا اضافه د یو سوال جواب دې.

**سوال:** دادې چې د (بدلوا نعمة الله کفرا) معنی دا ده چې هغه خلقو د الله نعمت په کفر سره بدل کړو حالانکه نعمت عین دې، او کفر وصف دې، او د عین په وصف سره د بدلولو څه معنی نشته؟

**جواب:** مضاف محذوف دې، مطلب دادې چې د نعمت شکر ئې په ناشکرئ سره بدل کړو یعنی د شکر په ځائې ئې ناشکري اوکړه،

**قوله:** لیضلوا:

**سوال:** د (جعلوا لله أندادا) غرض ئې اضلال او ضلال گرځولې دې، حالانکې شریک جوړولو کښې د مشرکینو غرض اضلال او ضلال نه وو؟

**جواب:** د جواب حاصل دادې چې اضلال او ضلال اگرچې د انداد غرض نه دې خو نتیجه ئې ضرور ده، لهذا نتیجه ئې غرض اوگرځولو.

**قوله: قل لعبادي الذين آمنوا يقيموا الصلاة: الخ**

**سوال:** د (يقيمون الصلاة) مقوله واقع كيدل صحيح نه دى، ځكه چې اقامت صلوة د مخاطب عمل دې، نه چې د قائل مقوله، حالانكه د مقولې د پاره هم د قائل مقوله كيدل ضروري ده.

**جواب:** د (قل) مقوله محذوف ده. او جواب امر كوم چې يقيموا الصلاة دې، په حذف باندې دلالت كوى، تقديرى عبارت داسې دې قل لعبادي الذين آمنوا اقيموا، وانفقوا يقيموا الصلوة وينفقوا، بعضې حضراتو وئيلې دى چې امر مقوله ده، تقديرى عبارت داسې دې قل لهم ليقيموا الخ د (قل) د لالت د وجې نه لام حذف كړې شو نو (يقيموا) شو، او كه د حذف په ابتدا سره يقيموا مقوله اوګرځولې شي نو صحيح به نه وى.

**قوله: سرا وعلانية:** دواړه د انفقوا د ضمير نه د حال واقع كيدو د وجه منصوب دى. اى ينفقون مسرين ومعلنين.

**قوله: السفن:** لسد په وزن باندې لهذا د تجرى فعل مؤنث راوړل صحيح دى.

**قوله: دائبين:** په يو طريقه باندې تلونكې، دا د (دائب) جمع ده، په معنى د حال، عادت، رسم، دستور (ف) داب يداب، دابا، مسلسل په يو كار كښې لګيدل.

**[ایاتونه ۳۵ ـ ۴۱]**

(و) اذكر (إِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ اجْعَلْ هَٰذَا الْبَلَدَ) مَكَّة (آمِنًا) ذَا أَمْنٍ وَقَدْ أَجَابَ اللّٰهُ دُعَاءَهُ فَجَعَلَهُ حَرَمًا لَا يُسْفَكُ فِيهِ دَمُ إِنْسَانٍ وَلَا يُظْلَمُ فِيهِ أَحَدٌ وَلَا يُصَادُ صَيْدُهُ وَلَا يُخْتَلَى خَلَاهُ (وَاجْنُبْنِي) بعدني (وَبَنِيَّ) عن (أَنْ نَعْبُدَ الْأَصْنَامَ) (رَبِّ إِنَّهُنَّ) أي الأصنام (أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِنَ النَّاسِ) بِعِبَادَتِهِمْ لَهَا (فَمَنْ تَبِعَنِي) عَلَى التَّوْحِيدِ (فَإِنَّهُ مِنِّي) مِنْ أَهْلِ دِينِي (وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَحِيمٌ) هَذَا قَبْلَ عِلْمِهِ أَنَّهُ تَعَالَى لَا يَغْفِرُ الشِّرْكَ (رَبَّنَا إِنِّي أَسْكَنْتُ مِنْ ذُرِّيَّتِي) أَيْ بَعْضَهَا وَهُوَ إِسْمَاعِيلُ مَعَ أُمِّهِ هَاجَرَ (بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ) هُوَ مَكَّة (عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ) الَّذِي كَانَ قَبْلَ الطُّوفَانِ (رَبَّنَا لِيُقِيمُوا الصَّلَاةَ فَاجْعَلْ أَفْئِدَةً) قُلُوبًا (مِنَ النَّاسِ تَهْوِي) تَمِيلُ وَتَحِنُّ (إِلَيْهِمْ) قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَوْ قَالَ أَفْئِدَةَ النَّاسِ لَحَنَّتْ إِلَيْهِ فَارِسُ وَالرُّومُ وَالنَّاسُ كُلُّهُمْ (وَارْزُقْهُمْ مِنَ الثَّمَرَاتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُونَ) وَقَدْ فَعَلَ بِنَقْلِ الطَّائِفِ إِلَيْهِ (رَبَّنَا إِنَّكَ تَعْلَمُ مَا نُخْفِي) نُسِرُّ (وَمَا نُعْلِنُ وَمَا يَخْفَى عَلَى اللّٰهِ مِنْ) زَائِدَةٌ (شَيْءٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ) يَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ مِنْ كَلَامِهِ تَعَالَى أَوْ كَلَامِ إِبْرَاهِيمَ (الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي وَهَبَ لِي) أَعْطَانِي (عَلَى) مَعَ (الْكِبَرِ إِسْمَاعِيلَ) وُلِدَ وَلَهُ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ سَنَةً (وَإِسْحَاقَ) وُلِدَ وَلَهُ مِائَةٌ وَاثْنَتَا عَشْرَةَ سَنَةً (إِنَّ رَبِّي لَسَمِيعُ الدُّعَاءِ) (رَبِّ اجْعَلْنِي مُقِيمَ الصَّلَاةِ وَ) اجْعَلْ (مِنْ ذُرِّيَّتِي) مَنْ يُقِيمُهَا وَأَتَى بِمَنْ لِإِعْلَامِ اللّٰهِ تَعَالَى لَهُ أَنَّ مِنْهُمْ كُفَّارًا (رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَاءِ) الْمَذْكُورَ (رَبَّنَا اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ) هَذَا قَبْلَ أَنْ يَتَبَيَّنَ لَهُ عَدَاوَتُهُمَا لِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ وَقِيلَ أَسْلَمَتْ أُمُّهُ وَقُرِئَ وَالِدِي مُفْرَدًا وَوَلَدِي (وَلِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ يَقُومُ) يَثْبُتُ (الْحِسَابُ)

ترجمه: او هغه وخت یاد کړه چې کله ابراهیم علیه السلام دعا اوکړه چې اې د زما پروردګاره ! ته دا د مکې ښار امن والا جوړ کړې، بې شکه الله د هغه دعا قبوله کړه، او هغه ئې محترم جوړه کړه، چې هلته نه د يو انسان وینه توییګی او نه هلته په چا باندې ظلم کیږی، او نه د هغې ځانور لره ښکار کولې شی، او نه د هغې شين بوټې کټ کولې شی، او ته اې ځما پروردګاره ما او ځما اولاد لره ددې خبرې نه چې مونږ بت پرستی اوکړو لرې وساته، اې پروردګار دې بتانو ډيرو انسانانو لره د دې د بندګی کولو د وجه نه ګمراه کړې دی، نو چا چې د توحيد په معامله کښې ځما اتباع اوکړه نو هغه ځما د اهل ملت نه دې او چا چې ځما نافرمانی اوکړه نو ته ډير زيات معافی کولو والا يې او ډير رحم والا يې، (د ابراهيم علیه السلام دا دعا د دې علم نه مخکې وه چې الله تعالی شرک نه معاف کوی، اې ځما پروردګاره ما خپل بعضې اولاد لره چې هغه اسماعيل دې سره د خپلې مور هاجرې، بې اوبو او بې ګياه کلی کښې ستا محترم کور سره چې هغه د طوفان نوح نه مخکښې کور وو، ډيره کړل، اې ځما پروردګاره! دا مې ځکه وکړل چې هغوی مونځ قائم کړی نو د څه خلقو زړونو لره دې کور ته مائل او شوق مند کړې، حضرت ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائيل چې که ابراهيم علیه السلام افئدة الناس وئیلې وو نو د هغې طرف ته به د فارس او د روم ټول خلق مائل وو، او ته دوی ته د ميوو (د هر قسم پيداوار) روزی ورکړه چې هغوی ستا شکر ادا کړی، او د طائف علاقې لره منتقل کولو سره دا دعا قبوله کړې شوه، اې پروردګاره! ته ښه پيژنې چې کوم څه مونږ پټوو، يا ئې ښکاره کوو په الله باندې د زمکې او د اسمان هيڅ شيز پټ نه دې، من زائده دې په مذکوره کلام کښې احتمال دې چې د الله تعالی کلام دې يا د ابراهيم علیه السلام د الله شکر دې چې هغه په دې بوډها والی کښې ځوئې اسماعيل علیه السلام راکړو د اسماعيل علیه السلام پيدائش هغه وخت شوې وو چې کله ابرهيم علیه السلام د ۹۹ کالو وو او اسحق ئې راکړو هغه وخت شوې وو چې کله د ابراهيم علیه السلام عمر ۱۱۲ کاله وو په دې کښې هيڅ شک نشته چې ځما پروردګار دعا اوريدونکې دې اې پروردګاره ته ما د مونځ پابند جوړ کړې او ځما په اولاد کښې هم داسې خلق پيدا کړه چې مونځ ادا کوی، او لفظ (من)ئې استعمال کړو ددې وجې نه چې الله تعالی ابراهيم علیه السلام ته اوفرمائيل چې په دوی کښې به څه کافران هم وی. اې پروردګاره ته دا ذکر شوې دعا قبوله کړه، اې پروردګاره ته ما او ځما مورپلار اوبخښه، او نورو مسلمانانو لره هم چې کله ته حساب کوې د مورپلار د پاره دا دعا د هغوی د الله سره د دشمنئ ښکاره کيدو نه مخکښې وه، او وئیلې شوې دی چې د هغوی مور ايمان راوړې وو، او په يو قراءت کښې والدی اوولدی افراد سره دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

سوال: په سورة بقره کښې (بلدا) نکره استعمال شوې ده او دلته (البلدة) معرفه ده، په دې کښې څه حکمت دې؟

**جواب:** په سورة بقره کښې د بلد د تعمیر نه مخکښې دعا ذکرده چې یا الله دلته یو ښار جوړ کړه او دلته چې کومه دعا ده هغه د ښار جوړیدلو نه پس د هغې د امن د پاره ده.

**قوله:** ذاامن:

**سوال:** د آمنا تفسیر په ذا امن سره د کولو څه مصلحت دې؟

**جواب:** مصلحت دادې چې آمن د نسبت صیغه ده نه چې د اسم فاعل، لکه تامر، کهجورو خرخولو والا، د آمن معنی ده امن والا، نه چې امن ورکولو والا، ځکه آمن اسم فاعل په معنی د امن ورکولو والا صحیح نه دې، ځکه چې بلد غیر ذی روح او غیر ذوی العقول دې، لهذا په دې کښې د امن ورکولو څه صلاحیت نشته، او نه د امن نسبت بلد طرف ته کول مناسب دی، ځکه چې امن ورکول په حقیقت کښې د الله کار دې،

**قوله:** یختلی دا د اختلاء د (افتعال) نه دې، په معنی د شنه گیاه اوخکل.

**قوله:** اجنبنی: (ن) امر واحد مذکر حاضر، په اصل کښې اجنب دې، په دې کښې نون وقایه او یائې متکلم ده، (ته ما بچ کړه) (ته ما لرې وساته.

**قوله:** عن ان نعبد الاصنام: د (عن) اضافه کولو سره ئې اوفرمائیل چې په ان نعبد کښې (ان) مصدریه دې نه چې تفسیریه، ځکه چې د ان تفسیریه د پاره په ماقبل کښې لفظ قول، یا ددې هم معنی ضروری دې، کوم چې دلته نشته.

**قوله:** اضللن کثیرا: د اضلال اسناد بتانو طرف ته مجازی دې دا د اسناد الشیئ الی سببه د قبیلې نه دې، چونکه دا بتان د خلقو د گمراه کیدو وجه ده ځکه د اضلال نسبت دې طرف ته اوکړې شو،

**قوله:** الذي کان قبل الطوفان: دا اضافه ددې سوال جواب دې چې عند بیتك المحرم وئیل څنگه صحیح دی، په وادی غیر ذی زرع کښې څه کور هلو وونه؟

جواب : د جواب حاصل دادې چې بیت وئیل خو یا د (ما کان) په اعتبار سره دې یا د (ما یکون) اعتبار سره، یعنی د طوفان نوح نه مخکښې هلته کښې کور وو راروان وخت کښې به هم موجود وی.

**قوله:** تحن، اي تشتاق وتمیل

**قوله:** افئدة الناس، یعنی که بغیر د من تبعضیه نه ئې وئیلې وو نو د هر چا به شوق او رغبت وو،

**قوله:** اسماعیل، اسحق: د اسمعیل نوم اسمعیل ځکه شو چې کله به ابراهیم علیه السلام د الله تعالی نه د اولاد درخواست کولو نو فرمائیل به ئې اسمع یا ایل، اسمع امر په معنی د واوره. او ایل په عبرانئ کښې الله ته وائی، اوس د اسمعیل معنی شوه چې اې الله ته

واوره، او چې کله الله تعالی د ابراهیم علیه السلام دعا واوریدله او بچي ئې ورته ورکړو نو د هغه نوم ئې اسمعیل کیخودلو، او اسحق ته عبرانئی کښې اضحاک وائي.

**قوله: اجعل:** په دې کښې اشاره ده چې د ومن ذریتي عطف د اجعلني په ضمیر باندې دې.

**قوله: من یقیمها:** دې کښې اشاره ده چې د اجعلني مفعول ثاني محذوف دې.

**[ایاتونه: ۴۲ - ۵۲]**

قال تعالى ﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ اللَّهَ غَافِلًا عَمَّا يَعْمَلُ الظَّالِمُونَ﴾ الكَافِرُونَ مِن أهل مكة ﴿إِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ﴾ بلا عذاب ﴿لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيهِ الْأَبْصَارُ﴾ لِهَوْلِ مَا تَرَى يُقَال شَخَصَ بَصَرُ فُلَانٍ أيْ فَتَحَهُ فلم يغمضه ﴿مُهْطِعِينَ﴾ مسرعين حال ﴿مُقْنِعِي﴾ رافعي ﴿رُءُوسِهِمْ﴾ إلى السماء ﴿لَا يَرْتَدُّ إِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ﴾ بَصَرُهُمْ ﴿وَأَفْئِدَتُهُمْ﴾ قُلُوبهم ﴿هَوَاءٌ﴾ خَالِيَة مِنَ العَقْل لِفَزَعِهِمْ ﴿وَأَنْذِرِ﴾ خَوِّفْ يَا مُحَمَّد ﴿النَّاسَ﴾ الكُفَّار ﴿يَوْمَ يَأْتِيهِمُ الْعَذَابُ﴾ هُوَ يَوْم القِيَامَة ﴿فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا﴾ كَفَرُوا ﴿رَبَّنَا أَخِّرْنَا﴾ بِأَنْ تَرُدّنَا إلَى الدُّنْيَا ﴿إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ نُجِبْ دَعْوَتَكَ﴾ بِالتَّوْحِيدِ ﴿وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ﴾ فيقال لهم توبيخا ﴿أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُمْ﴾ حَلَفْتُمْ ﴿مِنْ قَبْلُ﴾ فِي الدُّنْيَا ﴿مَا لَكُمْ مِنْ﴾ زَائِدَة ﴿زَوَالٍ﴾ عَنْهَا إلى الآخرة ﴿وَسَكَنْتُمْ﴾ فِيهَا ﴿فِي مَسَاكِنِ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ﴾ بِالكُفْر مِنَ الأمم السَّابِقَة ﴿وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ﴾ مِنَ العُقُوبَة فَلَمْ تَنْزَجِرُوا ﴿وَضَرَبْنَا﴾ بَيَّنَّا ﴿لَكُمُ الْأَمْثَالَ﴾ فِي القرآن فَلَمْ تَعْتَبِرُوا ﴿وَقَدْ مَكَرُوا﴾ بِالنَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿مَكْرَهُمْ﴾ حَيْثُ أرَادُوا قتله أو تقييده أو إخراجه ﴿وَعِنْدَ اللَّهِ مَكْرُهُمْ﴾ أيْ عِلْمه أوْ جَزَاؤُهُ ﴿وَإِنْ﴾ مَا ﴿كَانَ مَكْرُهُمْ﴾ وَإِنْ عَظُمَ ﴿لِتَزُولَ مِنْهُ الْجِبَالُ﴾ المَعْنَى لَا يُعْبَأ بِهِ وَلَا يَضُرّ إلَّا أنْفُسهمْ وَالمُرَاد بِالجِبَالِ هُنَا قِيلَ حَقِيقَتهَا وَقِيلَ شَرَائِع الإسْلَام المُشَبَّهَة بِهَا فِي القَرَار وَالثَّبَات وَفِي قِرَاءَة بِفَتْحِ لَام لِتَزُولَ وَرَفْع الفِعْل فَإِنْ مُخَفَّفَة وَالمُرَاد تَعْظِيم مَكْرهمْ وَقِيلَ المُرَاد بِالمَكْرِ كُفْرهمْ وَيُنَاسِبهُ عَلَى الثَّانِيَة ﴿تَكَادُ السَّمَاوَاتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَتَنْشَقُّ الْأَرْضُ وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا﴾ وَعَلَى الأوَّل مَا قُرِئَ وما كان ﴿فَلَا تَحْسَبَنَّ اللَّهَ مُخْلِفَ وَعْدِهِ رُسُلَهُ﴾ بِالنَّصْرِ ﴿إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ﴾ غَالِب لَا يُعْجِزهُ شَيْء ﴿ذُو انْتِقَامٍ﴾ مِمَّنْ عَصَاهُ اذكر ﴿يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمَاوَاتُ﴾ هُوَ يَوْم القِيَامَة فَيُحْشَر النَّاس عَلَى أرْض بَيْضَاء نَقِيَّة كَمَا فِي حَدِيث الصَّحِيحَيْنِ وَرَوَى مُسْلِم حَدِيث سُئِلَ النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أيْنَ النَّاس يَوْمئِذٍ قَالَ عَلَى الصِّرَاط ﴿وَبَرَزُوا﴾ خرجوا من القبور ﴿لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾ ﴿وَتَرَى﴾ يَا مُحَمَّد تُبْصِر ﴿الْمُجْرِمِينَ﴾ الكَافِرِينَ ﴿يَوْمَئِذٍ مُقَرَّنِينَ﴾ مَشْدُودِينَ مَعَ شَيَاطِينهمْ ﴿فِي الْأَصْفَادِ﴾ القُيُود أو الأغلال ﴿سَرَابِيلُهُمْ﴾ قُمُصهمْ ﴿مِنْ قَطِرَانٍ﴾ لِأَنَّهُ أبْلَغ لِاشْتِعَالِ النار ﴿وَتَغْشَىٰ﴾ تعلو ﴿وُجُوهَهُمُ النَّارُ﴾ ﴿لِيَجْزِيَ﴾ مُتَعَلِّق بِبَرَزُوا ﴿اللَّهُ كُلَّ نَفْسٍ مَا كَسَبَتْ﴾ مِنْ خَيْر وَشَرّ ﴿إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ﴾ يُحَاسِب جَمِيع الخَلْق فِي قَدْر نِصْف نَهَار مِنْ أيَّام الدُّنْيَا لِحَدِيثٍ بِذَلِكَ ﴿هَٰذَا﴾ القرآن ﴿بَلَاغٌ لِلنَّاسِ﴾ أيْ أُنْزِلَ لِتَبْلِيغِهِمْ ﴿وَلِيُنْذَرُوا بِهِ وَلِيَعْلَمُوا﴾ بِمَا فِيهِ مِنَ الحُجَج ﴿أَنَّمَا هُوَ﴾ أيْ الله ﴿إِلَٰهٌ وَاحِدٌ وَلِيَذَّكَّرَ﴾ بِإِدْغَامِ التَّاء فِي الأصْل فِي الذَّال يَتَّعِظ ﴿أُولُو الْأَلْبَابِ﴾ أصحاب العقول

ترجمه: د مکې کافران چې څه کوی ددې نه ته الله هیڅ کله غافله مه ګڼره، هغه خو دوی ته د عذاب نه د هغه ورځې پورې مهلت چې په کومه ورځ به د منظر د هولناکئ په وجه سترګې کولاو پاتې شی، ونیلې شی چې شخص بصر فلان، د هغه سترګې کولاؤ پاتې شوې کومې چې هغه بندې نه کړې شوې حال دا چې آسمان طرف ته به ئې خپل سرونه اوچت کړی وی او د رابلونکی آواز طرف ته به) په تیزئی سره وررووان وی، د یوې لمحې د پاره به هم د هغوی سترګه نه ریږی، او د هغوی زړونه به د هغوی د ویرې د وجې نه د عقل نه خالی وی، او اې محمد ﷺ ته کافران د هغه ورځې نه اویروه په کومه ورځ چې به په دوی باندې عذاب راشی، او هغه به د قیامت ورځ وی، او ظالمان کافران به وائی اې زمونږ پروردګاره ته مونږ ته د لږ وخت د پاره مهلت راکړه په دې صورت کښې چې ته مونږ دنیا ته واپس اولیږې، چې مونږ ستا د توحید دعوت قبول کړو، او ستا د رسولانو اتباع اوکړو نو دوی ته به د رټنې په توګه اوونیلې شی، چې د دې نه مخکښې به تاسو په دنیا قسمونه نه خورل؟ چې زمونږ د پاره خو د دنیا نه آخرت طرف ته تلل نشته، حالاتکه تاسو په دنیا کښې د هغه خلقو په کلو کښې اوسیدلې وئ، چې چا په مخکښې امتونو کښې کفر کولو سره په خپل ځان باندې ظلم اوکړو او تاسو ته څه ښکاره شوې وه چې مونږ هغوی سره د عذاب څه معامله اوکړه؟ بیا هم تاسو منع نه شوئ، او مونږ ستاسو د پوهه کولو د پاره په قرآن کښې مختلف مثالونه بیان کړل، خو تاسو عبرت حاصل نه کړو، او داخلق د نبی ﷺ سره خپل چالونه کوی په داسې طریقه چې دوی د هغوی ﷺ د قتل یا د هغوی د وطن نه د ویستلو یا د قید کولو اراده اوکړه، او الله ته د هغوی د مکر علم دې، یا الله سره د هغوی د پاره سزا ده، او ددوی چالونه اګرچې هر څومره لوئې وو داسې نه وو چې غرئې د خپل ځائې نه خوزولې وو، مطلب دا چې د هغوی چالونه د توجه قابل نه دی، او خپل نقصان کوی، او د غرونو نه مراد حقیقی غرونه مراد دی، یا اسمانی احکام دی کوم چې په ثبات او پوخوالی کښې د غرونو سره مشابه دی، او په یو قرات کښې (لتزول) دلام په فتحې سره او د فعل رفع سره دې، او (ان) مخففه دې، او مقصد ددوی د مکر لویوالې بیانول دی، او وئیلې شوې دی چې د مکر نه مراد د دوی کفر دې، او (تکاد السموات یتفطرن) د دویم قرات مناسب دې، او د رومبی قرات مناسب هغه دې کوم چې اولوستلې شو (یعنی وما کان مکرهم) الخ، تاسو هرګز دا خیال مه کوئی چې الله تعالی به د خپلو نبیانو سره د نصرت په باره کښې وعده خلافی اوکړی الله تعالی غالب دې، هغه څوک عاجزه کولې نشی، او د خپله نافرمانو کولو والو نه بدله اخستونکې دې، او هغه ورځ یاد کړه چې دا زمکه به بلې زمکې سره بدله کړې شی، او اسمان هم او هغه به د قیامت ورځ وی، نو خلق به یو صفا ستره زمکه باندې راغونډ کړې شی، څنګه چې د صحیحنو په حدیث کښې دی، او مسلم یو حدیث روایت کړې دې چې په هغې کښې د رسول الله ﷺ نه سوال

کړي شوي دي چې د زمکې د بدلیدلو په وخت کښې به خلق کوم ځائې وی،؟ نو حضور ﷺ اوفرمائیل چې په پل صراط باندې، تول خلق به د قبرونو نه وتلو سره د یو غالب خداې په مخامخ شي، او اې محمد ﷺ تاسو په هغه ورځ باندې مجرمان کافران په بیړو کښې یا په طوقونو کښې د شیطانانو سره تړلې شوي وینې، په داسې حال چې ددوی کپړې به د ګندهک (یاد تارکولو) نه جوړې وی، ځکه چې ګندهک سره اور دیر تیزیګی، او اور به ددوی په مخونو باندې هم خور وی، چې الله هر کس ته د هغه د اعمالو بدله ورکړی، لیجزی، د برزوا متعلق دې. بې شکه الله دیر زر حساب اخستونکې دې. الله تعالی به د ټولې دنیا حساب د دنیا د ورځو په اعتبار سره په نیمه ورځ کښې واخلی، د ددې مضمون د حدیث د وجې نه دا قرآن د ټولو خلقو د پاره خبرداری دې، یعنی د خلقو د تبلیغ د پاره نازل شوې دې، چې خلق ددې په ذریعه خبردار کړی شي، او خلق هغه دلیلونو باندې پوهې شي، کوم چې په قرآن کښې دی چې الله یو دې او د عبادت لائق دې، او داچې اهل عقل او بصیرت ددې نه نصیحت حاصل کړی، (یذکر) په اصل کښې د تاء په ذال کښې ادغام دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله:تشخص: (ف) مضارع واحد مؤنث غائب، مصدر شخوص، چاته مسلسل کتل، نیغ نیغ کتل، د سترګو کولاؤ پاتې کیدل، د سترګو بره تلل.

قوله:مهطعین: مهطع د اسم فاعل جمع ده، (افعال) اهطاع، سر ټیټول، په تیزئی سره تلل، مهطعین:د اصحاب، مضاف چې محذوف دې د هغې نه حال دې، تقدیری عبارت داسې دې، اصحاب الابصار مهطعین.

قوله:مقنعی، د اقناع نه اسم فاعل، اوچت شوې، (افعال) په اصل کښې مقنعین وو، نون د اضافت د وجه نه حذف شو، ماده ئې قنع ده.

قوله:افئدتهم: افئدة د فؤاد جمع ده، په معنی د زړه

قوله:هواء: دا اسم دې، په معنی د خالی، د ویرې د وجه نه د زړه خالی کیدل، د هر خیر خبرې نه خالی کیدل،هوا هغه فضا ته وئیلې شی، کومه چې د اسمان او زمکې په مینځ کښې ده، په محاوره کښې د ویریدونکی زړه په صفت کښې راځی.

قوله:نجب: دا د اخرنا امر جواب دې

قوله:یقال لهم: د ماقبل سره د ربط د پاره ددې محذوف ګڼړلو ضرورت راغلو.

قوله:تبین: ددې فاعل د کلام د دلالت د وجې نه مضمر دې، او هغه حال دې، تقدیری عبارت داسې دې، تبین لکم کیف فعلنا بهم؟

قوله:ان ما: په دې کښې اشاره ده چې (ان نافیه ده، او په لتزول کښې لام د نفی د تاکید

د پاره دي. وفي قراءة بفتح لام الاولى ورفع الاخيرة اي لتزول، په دې صورت کښې به (ان مخففه من الثقيله) وي، مطلب به داوي چې ددوى مكر دومره سخت وو چې غرونه به هم د خپل ځائې نه اوخوزيږي، د (لتزول) لام د مخففه او نافيه په مينځ كښې فرق كونكې دې.

قوله: قطران: قطران يو توره غليظه ماده وي، چې په هغې كښې گرموالې وى او كه د هغې د خارختى اوبښ مالش اوكړې شى، نو خارخ به ختم شى، دا ماده اور ډير زر نيسى، او بدبو داره وى، بعضې حضراتو ددې ترجمه گندهک کړې دې او بعضو تاركول كړې دې.

قوله: متعلق بيبرزوا يعنى ليجزى، د برزوا متعلق سره دې، او په مينځ کښې جمله معترضه ده.

قوله: انزل لبليغهم: په (هذا بلاغ) كښې چونكه د وصف حمل په ذات باندې لازميږي، ځكه شارح ﷫ ذکر شوې عبارت مقدر اوګڼرلو چې حمل درست شى يعنى دا د هذا خبر نه دې، بلكه خبر محذوف دې، د خبر د علت قائمقام ئې كړو.

## پاره نمبر ۱۴ [رُبَمَا]

## [۱۵] سورة الحجر

### سورة الحجر مكية تسع وتسعون اية

سورة حجر مکی دې، يو كم سل (۹۹) آيتونه دى.

[اياتوله: ۱ - ۱۵]

بسم الله الرحمن الرحيم (الر) الله أعلم بمُرَادِهِ بِذٰلِكَ (تِلْكَ) هٰذِهِ الآيَات (آيَاتُ الْكِتَابِ) القرآن وَالإضَافَة بمَعْنَى مِنْ (وَقُرآنٍ مُّبِينٍ) مُظْهِر لِلْحَقِّ مِنَ البَاطِلِ عَطف بزِيَادَةِ صفة (رُبَمَا) بالتَّشْدِيدِ وَالتَّخفِيف (يَوَدُّ) يَتَمَنَّى (الَّذِينَ كَفَرُوا) يَوْم القِيَامَة إذَا عَايَنُوا حَالهمْ وَحَال المُسْلِمِينَ (لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ) وَرُبَّ لِلتَّكْثِيرِ فَإنَّهُ يَكْثُر مِنْهُمْ تَمَنِّي ذٰلِكَ وَقِيلَ لِلتَّقْلِيلِ فَإنَّ الأَهْوَال تُدْهِشهُمْ فَلا يُفِيقُونَ حَتّٰى يَتَمَنَّوْا ذٰلِكَ إلَّا فِي أحْيَان قَلِيلَة (ذَرْهُمْ) اتْرُك الكُفَّار يَا مُحَمَّد (يَأْكُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا) بِدُنْيَاهُمْ (وَيُلْهِهِمُ) يَشْغَلهُمْ (الْأَمَلُ) بِطُولِ العُمُر وَغَيْره عَنِ الإيمَان (فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ) عَاقِبَة أمرهمْ وَهٰذَا قَبْل الأَمْر بِالقِتَالِ (وَمَا أَهْلَكْنَا مِنْ) زَائِدَة (قَرْيَةٍ) أرِيدَ أهْلهَا (إِلَّا وَلَهَا كِتَابٌ) أجَل (مَعْلُومٌ) مَحْدُود لإهْلاكِهَا (مَا تَسْبِقُ مِنْ) زَائِدَة (أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ) يَتَأَخَّرُونَ عَنْهُ (وَقَالُوا) أيْ كُفَّار مَكَّة لِلنَّبِيّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وسلم (يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ) القرآن فِي زَعْمه (إنك لمجنون) (لوما) هَلَّا (تَأْتِينَا بِالْمَلَائِكَةِ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ) فِي قَوْلك إنَّك نَبِيّ وَإنَّ هٰذَا القرآن من عند الله قال تعالى (مَا نُنَزِّلُ) فِيهِ حَذْف إحْدَى التَّاءَيْنِ (الْمَلَائِكَةَ إِلَّا بِالْحَقِّ) بِالعَذَاب (وَمَا كَانُوا إِذًا) أيْ حِين نُزُول المَلائِكَة بِالعَذَاب (مُنْظَرِينَ) مُؤَخَّرِينَ (إِنَّا نَحْنُ) تَأْكِيد لاسْمِ إنَّ أوْ فَصْل (نَزَّلْنَا الذِّكْرَ) القرآن (وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ) مِنَ التَّبْدِيل وَالتَّحْرِيف وَالزِّيَادَة وَالنَّقْص (وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ) رُسُلًا (فِي شِيَعِ) فِرَق (الْأَوَّلِينَ) (وَمَا) كَانَ (يَأْتِيهِمْ مِنْ رَسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ) كاستهزاء قومك بِك وَهٰذَا تَسْلِيَة لَهُ صَلَّى

اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿كَذٰلِكَ نَسْلُكُهٗ﴾ اَيْ مِثْل اِدْخَالِنَا التَّكْذِيب فِي قُلُوب أُولٰئِك نُدْخِلهُ ﴿فِيْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِيْنَ﴾ اَيْ كفار مكة ﴿لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ﴾ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿وَقَدْ خَلَتْ سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ﴾ اَيْ سُنَّة اللّٰه فِيهِمْ مِنْ تَعْذِيبِهِمْ بِتَكْذِيبِهِمْ أَنْبِيَاءَهُمْ وَهٰؤُلَاءِ مِثْلهم ﴿وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا مِّنَ السَّمَاءِ فَظَلُّوْا فِيْهِ﴾ فِي الْبَاب ﴿يَعْرُجُوْنَ﴾ يَصْعَدُوْنَ ﴿لَقَالُوْا اِنَّمَا سُكِّرَتْ﴾ سُدَّتْ ﴿اَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَّسْحُوْرُوْنَ﴾ يُخَيَّل اِلَيْنَا ذٰلِكَ

---

ترجمه: الر الله دديے نه خپل مراد بنه پيژني، دا ايتونه د قرآن ايتونه دي، او اضافت په معنى د (من) دې، او د قرآن مبين (آيتونه)، كوم چې د حق او د باطل په مينځ كښې فرق كونكې دي، دا د صفت د زياتوالى سره عطف دې، لرې نه ده چې كافر خلق به د قيامت په ورځ د خان حال او د مسلمانانو حال اوګوري، نو خواهش به اوكړي چې مونږ هم غاره كيخودلې وې (اسلام مو راوړې وې)، (ربما) د تشديد او تخفيف سره دې، (رب) د زياتوالى د پاره راځى، په دې شان چې ددوى د طرف نه به ددې ډير خواهش وى، او وئيلې شوې دى چې (رب) د تقليل د پاره دې، امر واقعه داده چې د قيامت سختئى به دوى مدهوش كړې وى، چې د هغې د وجه نه به دوى ته هوش نه وى، چې دوى د هغې تمنا اوكړي، مګر دا چې ډير لږ وخت د پاره اې محمد ﷺ دا كافران پريږده چې خپله دنيا كښې اوخوري اوڅكى، او مزې واخلى، او د د ډير عمر اميد دوى لره د ايمان نه په غفلت كښې واچوى، د خپل اعمالو انجام به دوى ته ډير زر معلوم شى او دا حكم د قتال نه مخكښې دې. او مونږ يو كلى له يو كلى والو لره هلاک نه كړل مګر دا چې ددوى د پاره ليكلې شوې وه، يعنى ددوى د هلاكت وخت مقرر وو، (من) زائده دې، او د قريه نه اهل قريه مراد دى. يو ساه اخستونكې د خپل مقرر شوې مرګ وخت نه مخكښې تلې نشى، او نه دهغې نه روستو كيدې شى، (من) زائده دې، كفار مكه نبى ﷺ ته وائى چه اې هغه سړيه په چا چې په خپل خيال قرآن نازل شوې دې، بې شكه ته ليونې ئې، كه ته په خپله دعوى كښې چې ته نبى ئې او دا قرآن د الله د طرف نه دې، رشتونې يې نو زمونږ خوا له فرشتې ولې نه راځى، او مونږ فرشتې په حق سره نازلوو، يعنى په عذاب سره، او چې كله فرشتې عذاب راوړي، نو بيا به دوى ته مهلت نه وركولې شى، هم مونږ دا قرآن نازل كړې دې (نحن) د (ان) د اسم تاكيد يا ضمير فصل دې، او مونږ د تبديل او بدلولو، او د زياتى او نقصان نه حفاظت كونكى يو، او مونږ ستا نه مخكښې په تير شوې قومونو كښې هم برابر رسولان راليږلې دى، او داسې چرته هم شوې نه دى، چې هغوى ته رسول راغلو او هغوى ستا د قوم تاپسې خندا كولو پشان هغوى پسې خندا كړې نه وه. او دا نبى ﷺ ته تسلى ده، او دغه شان د هغه خلقو په زړونو كښې د تكذيب غورزولو په شان د مجرمانو يعنى د كافرانو د مكې په زړونو كښې اچولو، چې د هغې د وجه نه دا خلق د نبى ﷺ د رسالت تصديق نه كوى، او دا دستور د مخكښې نه راروان دې يعنى دهغوى د تكذيب

په وجه هغوی ته د سزا ورکولو د الله دستور د مخکښې نه راروان دې او دوی هم په تکذیب کښې د هغوی په شان دی، او که مونږ ددوی د پاره د اسمان دروازه کولاو هم کړو او دوی په هغه دروازې بره هم اوخيژی نو بیا به هم دوی دا وائی چې زمونږ خو نظرونه بند کړې شو، بلکه په مونږ باندې جادو اوکړې شو، یعنی دا اسمان ته ختل زمونږ په خیال کښې واچولې شول.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** هذه الایات:

**سوال:** د تلك تفسير په (هذه) سره د کولو څه فائده ده؟

**جواب:** قرب حسی بیانول مقصود دی.

**سوال:** نو بیا (هذه) ولې استعمال نکړې شو.

**جواب:** تلك سره د مرتبې اوچتوالې بیانول مقصود دی، تلک د (هذه) په معنی کښې اخستلو سره دواړه فائدې حاصلې شوې، که د تلک په ځائې (هذه) استعمال کړې شوې وې نو صرف د قرب حسی فائده به ئې ورکوله.

**قوله:** اضافت: بمعنی من ای آیات من الکتاب

**قوله:** مظهر الحق:

**سوال:** مفسر علام د (مبین) تفسير عام طور سره په (بین) سره کوی، او دا قیاس ته نژدې هم ده، ځکه چې متعدی په معنی د لازم اخستل مقصود دی، خو دلته د مبين نه هم متعدی معنی اخستلې شوې ده، نه چې لازمه. ځکه مفسر علام د (مبین) تفسير په (مظهر) سره کړې دې.

**قوله:** عطف بزيادة الصفة

**سوال:** ددې اضافې څه مقصد دې؟

**جواب:** دا د یو سوال جواب دې

**سوال:** دا دې چې د قرآن عطف په کتاب باندې کیږی، او د دواړو مصداق هم یو دې، لهذا دا د عطف الشئ علی نفسه د قبیلې نه شو، حالانکه عطف مغایرت غواړی.

**جواب:** کتاب کوم چې معطوف دې مطلق دې، او قرآن د (مبین) صفت سره مقید دې، لهذا دا عطف د مقید علی المطلق د قبیلې نه دې، او په دواړو کښې مغایرت ښکاره دې، لهذا هیڅ اعتراض نشته، مفسر علام عطف بزيادة الصفة سره ددې سوال جواب ورکړې دې.

**قوله:** يستأخرون عنه: دا هم د يو سوال جواب دې.

**سوال:** دا دې چې يستأخرون د باب استفعال نه دې، کوم چې په طلب باندې دلالت کوی، حالانکه دلته د طلب معنی مقصود نه ده؟

جواب: استعمال په معنی د تفعل دي.

قوله: انا نحن نزلنا الذکر وانا له لحفظون: دا د مشرکانو د رد او د انکار جواب دي، کوم چې مشرکینو (انه لمجنون) وئیلو سره د نزول ذکر نه په تاکید سره انکار کړې وو، لهذا د نزول ذکر اثبات هم الله تعالی په تاکید سره اوکړو، انا نحن نزلنا الذکر، الخ وئیلو سره ئې اوفرمائیل.

قوله: تاکید او فصل: یعنی (نحن) د (نا) د اسم تاکید دې یا دا چې فصل دې. (نحن) فصل گرځولو په صورت کښې دا سوال به کیږی، چې فصل د دوو اسمونو په مینځ کښې راځي، نه چې د اسم او فعل په مینځ کښې، ځنگه چې دلته دی، او دویم سوال به دا وی چې فصل د ضمیر غائب نه وی، نه چې ددې علاوه نه، البته جرجانی رحمه الله د اسم او فعل په مینځ کښې هم فصل جائز کړې دې، غالبا چې مفسر علام د جرجانی په مسلک باندې عمل کړې دې.

قوله: کان: د کان اضافه ددې سوال جواب دې چې ما حالیه په هغه مضارع باندې داخلیږی، کومه چې د حال په معنی کښې وی یا په هغه ماضی باندې داخلیږی، کومه چې قریب الی الحال وی، مفسر علام (کان) مقدر گرځولو سره اشاره اوکړه چې (ما) حالیه په ماضی قریب الی الحال باندې داخله ده.

قوله: ندخله: ای الاستهزاء، د (ه) ضمیر مرجع استهزاء ده.

[ایاتونه: ۱۶ ـ ۲۵]

(وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا) اثنی عشر الحمل والثور والجوزاء والسرطان والأسد والسنبلة والميزان والعقرب والقوس والجدي والدلو والحوت وهي منازل الكواكب السبعة السيارة المريخ وله الحمل والعقرب والزهرة ولها الثور والميزان وعطارد وله الجوزاء والسنبلة والقمر وله السرطان والشمس ولها الأسد والمشتري وله القوس والحوت وزحل له الجدي والدلو (وَزَيَّنَّاهَا) بالكواكب (لِلنَّاظِرِينَ) (وَحَفِظْنَاهَا) بالشهب (مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ رَجِيمٍ) مرجوم (إِلَّا) لكن (مَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ) خطفه (فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ مُبِينٌ) كوكب يضيء ويحرقه أو يثقبه او يخبله (وَالْأَرْضَ مَدَدْنَاهَا) بسطناها (وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ) جبالا ثوابت لئلا تتحرك بأهلها (وَأَنْبَتْنَا فِيهَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَوْزُونٍ) معلوم مقدر (وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ) بالياء من الثمار والحبوب (وَ) جعلنا لكم (مَنْ لَسْتُمْ لَهُ بِرَازِقِينَ) من العبيد والدواب والأنعام فإنما يرزقهم الله (وَإِنْ) ما (مِنْ) زائدة (شَيْءٍ إِلَّا عِنْدَنَا خَزَائِنُهُ) مفاتيح خزائنه (وَمَا نُنَزِّلُهُ إِلَّا بِقَدَرٍ مَعْلُومٍ) على حسب المصالح (وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ) تلقح السحاب فيمتلئ ماء (فَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ) السحاب (مَاءً) مطرا (فَأَسْقَيْنَاكُمُوهُ وَمَا أَنْتُمْ لَهُ بِخَازِنِينَ) أي ليست خزائنه بأيديكم (وَإِنَّا لَنَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ وَنَحْنُ الْوَارِثُونَ)

الباقون ترث جمیع الخلق ﴿وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِينَ مِنكُمْ﴾ أي من تقدم من الخلق من لدن آدم ﴿وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَأْخِرِينَ﴾ المتأخرين الی يوم القيامة ﴿وَإِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَحْشُرُهُمْ إِنَّهُ حَكِيمٌ﴾ في صنعه ﴿عَلِيمٌ﴾ بخلقه

ترجمه: او بې شکه مونږ په اسمان کښې غټ غټ دولس برجونه جوړ کړل، حمل، ثور، جوزا، سرطان، اسد، سنبله، میزان، عقرب، قوس، جدی، دلو، حوت، د اووهٔ سیارو دولس منزلونه دی، د مریخ د پاره حمل او عقرب دی، او د زهره دپاره ثور او میزان دی، او د عطارد دپاره جوزاء او سنبله دی، او د قمر د پاره سرطان دې، او د شمس د پاره اسد دې، او د مشتری د پاره قوس او حوت دې، او مونږ اسمان د کتونکو دپاره په ستورو ښکلې کړو او اسمانونه مونږ د ستورو په ذریعه د هر شیطان مردود نه محفوظ کړو، خو دا چې څوک په غلا باندې څه واوری او وتختی، نو ددې پسې يو روښانه ستورې لگی، کوم چې دا اوسزوی، يا پکښې سوری وکړی يا ئې بدحواسه کړی، او مونږ زمکه خوره کړه او په دې کښې مو نه خوزیدونکې غرونه ښخ کړل، چې زمکه خپل اوسیدونکو سره حرکت نه کوی، او مونږ په دې کښې هر يو څیز په يو اندازې سره رازرغون کړو، او مونږ ستاسو د پاره د ژوند تیرولو سامان پیدا کړو، (معایش) يا سره دې، او هغه سامان میوې او غلې دی، او ستاسو د پاره مو هغه څیزونه جوړ کړل کوم ته چې تاسو په حقیقت کښې روزی نه ورکوئی او هغه غلام او څناور دی، دوی ته په حقیقت کښې الله روزی ورکوی، او څومره څیزونه چې دې، ددې مونږ سره خزانې دی، (من) زائده دې، یعنی ددې خزانو چینې مونږ سره دی، او مونږ هر څیز د مصلحت مطابق، په مقرره اندازه رالیږو، او هم مونږ د کونکې هواګانې چلوو، کوم چې وریځې د اوبو نه ډکې کړی، چې د هغې د وجه نه و ریځې د اوبو نه ډکې شی، او مونږ د وریځو نه اوبه راواروو، او هغه اوبه په تاسو څکو، او تاسو ددې جمع کونکی نه وئی، یعنی ددې خزانې ستاسو په قدرت کښې نه دی، او بې شکه مونږ پیدا کول کوو، او مړه کول کوو، او په آخر کښې هم مونږ وارثان يو، باقی پاتې کیدونکې يو، د ټول مخلوق وارثان به يو. او ستاسو نه مخکښې خلق زمونږ په علم کښې دی، یعنی د آدم عليه السلام په اولاد کښې چې څوک مخکښې تلې دی هغه زمونږ په علم کښې دی، او باقی پاتې خلق هم زمونږ په علم کښې دی، یعنی د قیامت پورې راتلونکی خلق او یقینا ستا رب به ټول انسانانو لره جمع کړی، یقینا هغه په خپل صنعت کښې باحکمت او د خپل مخلوق په باره کښې خبردار دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: بروجاً: د (برج) جمع ده، چې د هغې معنی ښکاره کیدل دی، په دې معنی کښې تبرج د ښځې د زینت اظهار ته وئیلې شی، دلته د اسمان ستورو ته برج وئیلې شوې دی، څکه چې هغه هم اوچت او ښکاره دی، او د بعضې مفسرینو خیال دې چې د اوو سیارو د

دولسو منزلونو نوم برج دي، په علم هئيت كښې هم دغه مراد دي.

**قوله: السبع:** دا د سبع سيارو بيان دي.

**قوله: المريخ وله الحمل والعقرب:** د حمل او عقرب د مريخ منزل كيدو مطلب دادي چې مريخ دي دوارو منزلونو ته داخليږي، او د تفاسيرو په كتابونو او په حكمت كښې چې دا ليكي دی چې دولس برجونه د نمر دي، ددې مطلب دادي چې نمر ددې په محاذاتو كښې واقع كيږي نه دا چې نمر په دې كښې داخليږي، د نورو سيارو هم دا حال دي، لهذا په دوارو نظريو كښې څه تضاد نشته.

**قوله: مرجوم:** په دې كښې اشاره ده چې فعيل په معنی د مفعول دي.

**قوله: لكن:** د (الا) تفسير ئې په (لكن) سره كولو كښې اشاره اوكړه چې استثناء منقطع ده، څكه چې استراق د جنس حفظ نه نه دي.

**قوله: خطفه:** د استرق تفسير ئې په خطفه سره كولو كښې د يو اعتراض جواب مقصود دي، اعتراض دادي چې سمع يو صفت دي كوم چې سامع سره قائم دي، لهذا ددې انتقال ممكن نه دي، لهذا د استرق السمع، څه مطلب شو؟

**جواب:** استرق په معنی د الاختلاس سرا، يعنی په پټه باندې تختول، او دا د تشبيه په توگه باندې ده، نو اوس څه اعتراض نشته.

**قوله: لحقه:** د اتبعه تفسير په لحقه سره كولو كښې ئې اشاره اوكړه چه افعال په معنی د مجرد لازم دي لهذا معنی صحيح نه ده.

**قوله: يخبله:** دا د خبل څخه دي، ددې معنی ده بدحواس كول، ليوني جوړول، شيطان د شهاب (څكروتي) په ويشتلو سره بدحواس كيږي، غول يعنی څنگلی بهوت تري جوړيږي كوم چه په څنگل كښې خلق ويروی او دهوكه كوی.

**قوله: وجعلنا لكم:** په دې كښې اشاره ده چه د: من لستم عطف په معايش باندې دي، لهذا دا شبه ختمه شوه چه د من لستم عطف د لكم په ضمير مجرور باندې دي، او په ضمير مجرور باندې عطف بغير د اعادې د جار نه صحيح نه دي.

**[اياتونه: ۲٦ ـ ٤٤]**

---

(وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ) آدم (مِنْ صَلْصَالٍ) طين يابس يُسْمَع لَهُ صَلْصَلَة إذَا نُقِرَ (مِنْ حَمَإٍ) طين أسْوَد (مَسْنُونٍ) مُتَغَيِّر (وَالْجَانَّ) أبَا الجَانّ وَهُوَ إبْلِيس (خَلَقْنَاهُ مِنْ قَبْلُ) أيْ قَبْل خَلْق آدَم (مِنْ نَارِ السَّمُومِ) هِيَ نَار لَا دُخَان لَهَا تَنْفُذ فِي المَسَام (وَ) اذكر (إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِنْ صَلْصَالٍ مِنْ حَمَإٍ مَسْنُونٍ) (فَإِذَا سَوَّيْتُهُ) أتْمَمْته (وَنَفَخْتُ) أجْرَيْت (فِيهِ مِنْ رُوحِي) فَصَارَ حَيًّا وَإِضَافَة الرُّوح إلَيْهِ تَشْرِيف

لآدم (فَقَعُوا لَهُ سَاجِدِينَ) سُجُود تَحِيَّة بِالانحِنَاء (فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ) فِيهِ تَأكِيدَانِ (إِلَّا إِبْلِيسَ) هُوَ أَبُو الجِنّ كَانَ بَيْنَ المَلَائِكَة (أَبَى) امْتَنَعَ مِنْ (أَنْ يَكُونَ مَعَ السَّاجِدِينَ) (قَالَ) تَعَالَى (يَا إِبْلِيسُ مَا لَكَ) مَا منعك (أ) ن (لا) زائدة (تكون مع الساجدين) (قَالَ لَمْ أَكُنْ لِأَسْجُدَ) لَا يَنْبَغِي لِي أن اسجد (لبشر خلقته من صلصال من حمإ مسنون) (قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا) أيْ مِنَ الجَنَّة وَقِيلَ مِنَ السَّمَاوَات (فَإِنَّكَ رَجِيمٌ) مَطْرُود (وَإِنَّ عَلَيْكَ اللَّعْنَةَ إِلَى يَوْمِ الدِّينِ) الجَزَاء (قَالَ رَبِّ فَأَنْظِرْنِي إِلَى يَوْمِ يُبْعَثُونَ) أيْ النَّاس (قال فإنك من المنظرين) (إِلَى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُومِ) وَقْت النَّفْخَة الأُولَى (قَالَ رَبِّ بِمَا أَغْوَيْتَنِي) أيْ بِإغْوَائِك لِي وَالبَاء لِلقَسَم وَجَوَابه (لَأُزَيِّنَنَّ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ) المعاصي (ولأغوينهم أجمعين) (إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ) أيْ المُؤْمِنِينَ (قَالَ) تعالى (هذا صراط علي مستقيم) وَهُوَ (إِنَّ عِبَادِي) أيْ المُؤْمِنِينَ (لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ) قُوَّة (إِلَّا) لَكِنْ (مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغَاوِينَ) الكَافِرِينَ (وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ) أيْ مَنْ اتَّبَعَك معك (لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ) أطْبَاق (لِكُلِّ بَابٍ) مِنْهَا (منهم جزء) نصيب (مقسوم)

**ترجمه:** بې شکه مونږ انسان یعنی آدم د یو توري زړې تکرئی خاورې نه پیدا کړو، یعنی داسې اوچه خاوره، چې کله هغه اوټنکولې شي نو د هغې نه آواز راوخي، او ددې نه مخکښې یعنی د آدم د پیدا کیدو نه مخکښې مونږ ابو الجن یعنی د شیطانانو پلار چې هغه ابلیس دې د شعلې نه په کومه کښې چې لوګې نه وي، او هغه د بدن په مساماتو کښې ننوځي، پیدا مو کړو، او د هغه وخت تذکره او کړه چې کله ستا پروردګار فرشتو ته اوفرمائیل چې څه انسان د توري زړې تیکرئی خاورې نه پیدا کوم چې کله هغه څه پورا کړم او په هغې کښې خپل روح واچوم، او ژوندې شي، او د روح نسبت د الله طرف ته د آدم د کرامت دپاره دی، نو تاسو ټول د هغه ته په سجده کښې پریوزئی، یعنی په ټیټه باندې د هغه عزت اوکړئ، چنانچه ټولو فرشتو په شریکه سجده اوکړه خو ابلیس اونکړه، او هغه د جناتو پلار وو، کوم چې به د فرشتو په مینځ کښې اوسیدلو په سجده کونکو کښې د شاملیدو نه ئې انکار اوکړو الله تعالی اوفرمائیل چې ابلیس تاباندې څه شوې دی، چې ته په سجده کونکو کښې شامل نه شوې من زائده دې، هغه اووئیل چې څه داسې کار کونکو کښې نه یم، یعنی څما د پاره هیڅ کله مناسب نه دی، چې څه داسې انسان ته سجده اوکړم کوم چې تا د زړې توري تکرئی خاورې نه پیدا کړې دې، الله اوفرمائیل، د جنت نه اوځه، او اوئیلې شوی دی چې د اسمانونو نه اوځه، بې شکه ته مردوده ئې، او په تا باندې څما لعنت دې د ورځې د قیامت پورې، وئې وئیل چې ماته د هغې ورځې پورې مهلت راکړه، چې خلقو لره په کومه ورځ ژوندی کیدو نه پس پاسولې شي، الله تعالی اوفرمائیل، خه تاته د مقرر وخت پورې مهلت دې، یعنی د نفحه اولی پورې، شیطان اووئیل چونکه تا څه گمراه کړې یم، یعنی ستا مالره د گمراه کولو په وجه باندې، او باء قسمیه ده، او ددې جواب (لازیننه) دې، څما دې هم قسم وی چې څه به هم ددوی دپاره په دنیا

کښې ګناهونو لره ښائسته کړم، او دوی ټول به وخویوم سوا ستا د هغه بندګانو نه کوم چې مخلصان دي،، ارشاد اوشو چې هم دغه ماته د رارسیدو نیغه لار ده، مخلصه بندګانو باندې يعنې مومنانو باندې ستا قابو راتلې نشي، سوا د هغه ګمراه ډلې نه کومه چې ستا تابعداری کوی، د هغوی ټولو د وعدې ځائې جهنم دې، يعنې د هغه سرې دپاره کوم چې ستا تابعداری اوکړی، چې د هغې اووه طبقې دی د هرې طبقې د پاره د هغوی نه یوه خاصه حصه مقرر شوې ده،

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله:آدم: د انسان تفسير ئې په آدم سره کولو کښې دې ته اشاره اوکړه چې په الانسان کښې الف لام عهدی دې.

قوله:حماً: خټه، تکړئی توره خاوره،

قوله:تنفذفي المسام: په دې کښې د سموم وجه تسمیه ته اشاره ده.

قوله:فقعوا: د وقع يقع نه امر جمع مذکر حاضر، تاسو ټول پريوځئ، (فاء) د جواب شرط کیدو د وجې داخله ده.

قوله: تاکیدان: اول تاکید د اطلاق الجمع على البعض احتمال ختم کړو، ځنګه چې اذقالت الملائكة يا مريم، کښې د جمع اطلاق په بعضې باندې شوې دې، خو اوس هم احتمال د انفراد باقی دې، هغه ئې په اجمعون سره ختم کړو، اوس د آیت مفهوم دا شو چې ټولو فرشتو سجده اوکړه، ګویا چې حکم موجود اوشو، چې په هغې کښې ابلیس هم وو :

قوله:باغوائك: په دې کښې اشاره ده چې په بما اغويتني کښې (ما) مصدريه ده، نه چې موصوله، چې د عائد ضرورت وی او باء قسميه ده، يعنې قسم دې ستا مالره په ګمراه کولو باندې.

قوله:لازينن: : دا د تزيين (تفعيل) نه مضارع واحد متکلم بانون ثقيله دې، ځه به خښکلې والې ورکوم، ښائسته کوم به ئې.

قوله:المعاصي ، : په دې کښې اشاره ده چې ازينن متعدی دې، او ددې مفعول (معاصي) محذوف دې.

قوله:مخلصين: اي خلصته لعبادتك

قوله:هذا : اي تخلص المؤمنين من اغوائك

قوله:صراط علي: اي حق علي

قوله:وهو: په دې کښې اشاره ده چې د (هو) مرجع ان عبادی الخ دې، او ان عبادی د صراط مستقيم بيان دې.

**قوله: اطباق:** دا د طبق جمع ده، یعنی هغه درجات چې په هغې کښې د شیطان د اتباع د مراتبو مناسب په ترتیب سره به جهمیان داخلولې شی، او د جهنم په ترتیب سره اووه درجې دی، ① جهنم ② لظی ③ السقر ④ السعیر ⑤ الجحیم ⑥ الحطمه ⑦ الهاویه.

**[ایاتونه: ٤٥ - ٦٠]**

﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ﴾ بَسَاتِين ﴿وَعُيُونٍ﴾ تَجْرِي فِيهَا وَيُقَال لَهُمْ ﴿ادْخُلُوهَا بِسَلَامٍ﴾ أَيْ سَالِمِينَ مِنْ كُلّ مَخُوف أَوْ مَعَ سَلَام أَيْ سَلِّمُوا وَادْخُلُوا ﴿آمِنِينَ﴾ مِنْ كُلّ فَزَع ﴿ونزعنا ما فی صدورهم من غل﴾ حقد ﴿إِخْوَانًا﴾ حَال مِنْهُمْ ﴿عَلَى سُرُرٍ مُتَقَابِلِينَ﴾ حَال أَيْضًا أَيْ لَا يَنْظُر بَعْضهمْ إِلَى قَفَا بَعْض لِدَوَرَانِ الْأَسِرَّة بِهِمْ ﴿لَا يَمَسُّهُمْ فِيهَا نَصَبٌ﴾ تَعَب ﴿وَمَا هُمْ مِنْهَا بِمُخْرَجِينَ﴾ أَبَدًا ﴿نَبِّئْ﴾ خَبِّرْ يَا مُحَمَّد ﴿عِبَادِي أَنِّي أَنَا الْغَفُورُ﴾ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿الرَّحِيمُ﴾ بِهِمْ ﴿وَأَنَّ عَذَابِي﴾ لِلْعُصَاةِ ﴿هُوَ الْعَذَابُ الْأَلِيمُ﴾ الْمُؤْلِم ﴿وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ﴾ وَهُمْ الْمَلَائِكَة اثْنَا عَشَر أَوْ عَشَرَة أَوْ ثَلَاثَة مِنْهُمْ جِبْرِيل ﴿إِذْ دَخَلُوا عَلَيْهِ فَقَالُوا سَلَامًا﴾ أَيْ هَذَا اللَّفْظ ﴿قَالَ﴾ إِبْرَاهِيم لَمَّا عَرَضَ عَلَيْهِمْ الْأَكْل فَلَمْ يَأْكُلُوا ﴿إِنَّا مِنْكُمْ وَجِلُونَ﴾ خَائِفُونَ ﴿قَالُوا لَا تَوْجَلْ﴾ لَا تَخَفْ ﴿إِنَّا﴾ رُسُل رَبّك ﴿نُبَشِّرُكَ بِغُلَامٍ عَلِيمٍ﴾ ذِي عِلْم كَثِير هُوَ إِسْحَاق كَمَا ذَكَرْنَا فِي سُورَة هُود ﴿قَالَ أَبَشَّرْتُمُونِي﴾ بِالْوَلَدِ ﴿عَلَى أَنْ مَسَّنِيَ الْكِبَرُ﴾ حال اي مع مسه إياي ﴿فبم﴾ فباي شيء ﴿تبشرون﴾ استفهام تعجب ﴿قَالُوا بَشَّرْنَاكَ بِالْحَقِّ﴾ بِالصِّدْقِ ﴿فَلَا تَكُنْ مِنَ الْقَانِطِينَ﴾ الآيسين ﴿قَالَ وَمَنْ﴾ أَيْ لَا ﴿يَقْنَطُ﴾ بِكَسْرِ النُّون وَفَتْحهَا ﴿مِنْ رَحْمَةِ رَبِّهِ إِلَّا الضَّالُّونَ﴾ الْكَافِرُونَ ﴿قال فما خطبكم﴾ شانكم ﴿أيها المرسلون﴾ ﴿قَالُوا إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَى قَوْمٍ مُجْرِمِينَ﴾ كَافِرِينَ أَيْ قَوْم لُوط لِإِهْلَاكِهِمْ ﴿إِلَّا آلَ لُوطٍ إِنَّا لَمُنَجُّوهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ لِإِيمَانِهِمْ ﴿إِلَّا امْرَأَتَهُ قَدَّرْنَا إِنَّهَا لَمِنَ الْغَابِرِينَ﴾ الْبَاقِينَ فِي الْعَذَاب لِكُفْرِهَا

**ترجمه:** د شرک او کفر نه بچکیدونکی متقیان به په باغونو او چینو کښې وی، کوم چې به په باغونو کښې بهیږی، دوی ته به وئیلې شی، د هرې ویرې نه په سلامتیا سره او په امن سره په دې کښې داخل شئ، یعنی په داسې حال کښې چې تاسو د هرې خطرې نه په سلامتیا سره داخل شئ، یا سلام کوئی او داخل شئ، او چې ددوی په زړونو کښې کوم لږ ډیر خفګان وی هغه به مونږ لرې کړو، او خپل مینځ کښې به کله د رونړو پشان په تحت باندې یو بل ته مخامخ ناست وی، (اخوانا د (هم) ضمیر نه حال دې، (متقابلین) هم د (اخوانا) نه حال دې، یعنی څوک به د چا شاه ته نه ګوری، ځکه چې ددوی تحتونه به د دائرې پشان وی، نه به ورته هلته څه تکلیف ملاوېږی، او نه به د هغه ځائې نه دوی ویستلې شی، اې محمد ﷺ ځما بندګانو ته اووایه چې ځه دمومنانو دپاره معافی کولو والا او په دوی باندې ډیر مهربانه یم، او ورسره دا هم اووایه چې د نافرمانو دپاره، ځما عذابونه ډیر دردناک دی، او دوی ته د ابرهیم علیه السلام دمیلمنو قصې واوروه، او هغه میلمانه دولس یا لس یا درې فرښتې وې، په هغې کښې جبرائیل علیه السلام هم وو، کله چه هغوی ابراهیم علیه السلام ته راغلل او هغه ته ئې سلام اوکړو

یعنی هغوی لفظ سلاماً اووئیل، چې کله ابراهیم ﷺ د هغوی مخکښې روټئی کیخودله، نو ابرهیم ﷺ اوفرمائیل چې مونږ ته خو ستاسو نه ویره کیږی، هغوی اوفرمائیل چې ویریږئ مه، مونږ ستا د رب راغوشتې شوې یو، د یو هوښیار ځوی تاته زیرې درکوو، یعنی د زیات علم والا ځوئی، او هغه خوې اسحاق دې، څنگه چې په سوره هود کښې تیر شوې دی ابرهیم ﷺ اوفرمائیل تاسو د بوډا والی په حالت کښې ماته د هلک زیرې راکوئی؟ (علی ان الخ) حال دې، یعنی حال دا دې چې ماته بوډوالې رارسیدلې دې، دا خوشخبری تاسو ماته په کومه وجه راکوئی؟ استفهام تعجبی دې، فرشتو جواب ورکړو مونږ تاته بالکل صحیح خوش خبری درکوو، لهذا تاسو د مایوسی کونکو نه مه کیږئی، ابرهیم ﷺ اوفرمائیل د خپل رب د رحمت نه خو صرف گمره خلق نا امیده کیږی، (یقنط) د نون کسرې سره او د هغه فتحې سره دې، ابراهیم ﷺ تپوس وکړو چې اې د خدائې رالیږلو شوو، تاسو په کوم کار پسې راغلې یئ، هغوی اووئیل چې مونږ یو مجرم قوم پسې رالیږلې شوې یو، یعنی قوم لوط دپاره، د هغوی د هلاک کولو دپاره، صرف د لوط ﷺ کور والا به محفوظ وی، مونږ به دوی ټول د ایمان د وجې نه بچ کړو سوا د هغه د ښځې نه، چې د هغې د پاره الله فرمائی چې مونږ مقدر کښې لیکلې ده چې هغه به د روستو پاتې کیدونکو نه به وی. یعنی د خپل کفر په وجه به په عذاب کښې گیر شوې خلقو نه وی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** سالمین: د سلام تفسیر په سالمین سره کولو کښې د یو سوال جواب ورکول مقصود دی.

**سوال:** دادې چې سلام مصدر دې، ددې حمل په (ها) ضمیر باندې صحیح نه دې، څکه چې د ضمیرنه مراد جنت دې، کوم چې ذات دې، او د مصدر حمل په ذات باندې صحیح نه دې؟

**جواب:** دا دې چې مصدر په تاویل د مشتق سالمین دې او سالمین حال شو، لهذا حمل صحیح دې.

**قوله:** مع سلام: په دې کښې اشاره ده چې په (سلام) کښې باء په معنی د مع دې نه چې سببیه.

**قوله:** ای سلموا: ای سلموا علیکم الملائکة.

**قوله:** ادخلوا:

**سوال:** ادخلوا، د مقدر گڼرلو څه ضرورت وو؟

**جواب:** په دې کښې اشاره ده چې (آمنین) د (ادخلوا) د ضمیر نه دویم حال دې، نه چې د بسلام نه، څکه چې په عمل کښې اصل فعل دې نه چې مصدر.

**قوله:** حال من هم: یعنی اخوانا د (هم) نه حال دې، نه چې صفت دې.

سوال: حال د مضاف نه وی نه چې د مضاف اليه نه، او دلته اخوانا د (هم) نه حال واقع شوي دي، کوم چې مضاف اليه دي؟

جواب: مضاف اليه چې کله د مضاف جز وی نو حال واقع کيدل ئې صحيح وی، دلته چونکه مضاف اليه د مضاف بعض دي، لهذا حال واقع کيدل صحيح دی، او د ادخلوا د ضمير نه حال واقع کيدل هم صحيح دی، او (متقابلين) د (اخوانا) نه هم حال دي، او (اخوانا) د متصافين، يا د متصافين په معنی کښې دي، او د اخوانا صفت هم واقع کيدې شي.

قوله: كما ذكر في الهود: اى فبشرنها باسحق

قوله: بكسر النون: اى من باب ضرب، وبفتح النون اى من باب فتح.

**[اياتونه ٦١ـ٧٩]**

(فلما جاء آل لوط) اي لوطا (المرسلون) (قال) لهم (إنكم قوم منكرون) لا أعرفكم (قالوا بل جئناك بما كانوا) أي قومك (فيه يمترون) يشكون وهو العذاب (وآتيناك بالحق وإنا لصادقون) في قولنا (فأسر بأهلك بقطع من الليل واتبع أدبارهم) امش خلفهم (ولا يلتفت منكم أحد) لئلا يرى عظيم ما ينزل بهم (وامضوا حيث تؤمرون) وهو الشام (وقضينا) أوحينا (إليه ذلك الأمر) وهو (أن دابر هؤلاء مقطوع مصبحين) حال أي يتم استئصالهم في الصباح (وجاء أهل المدينة) مدينة سدوم وهم قوم لوط لما أخبروا أن في بيت لوط مردا حسانا وهم الملائكة (يستبشرون) حال طمعا في فعل الفاحشة بهم (قال) لوط (إن هؤلاء ضيفي فلا تفضحون) (واتقوا الله ولا تخزون) بقصدكم إياهم بفعل الفاحشة بهم (قالوا أولم ننهك عن العالمين) عن إضافتهم (قال هؤلاء بناتي إن كنتم فاعلين) ما تريدون من قضاء الشهوة فتزوجوهن قال تعالى (لعمرك) خطاب للنبي صلى الله عليه وسلم أي وحياتك (إنهم لفي سكرتهم يعمهون) يترددون (فأخذتهم الصيحة) صيحة جبريل (مشرقين) وقت شروق الشمس (فجعلنا عاليها) أي قراهم (سافلها) بأن رفعها جبريل إلى السماء وأسقطها مقلوبة إلى الأرض (وأمطرنا عليهم حجارة من سجيل) طين طبخ بالنار (إن في ذلك) المذكور (لآيات) دلالات على وحدانية الله (للمتوسمين) للناظرين المعتبرين (وإنها) أي قرى قوم لوط (لبسبيل مقيم) طريق قريش إلى الشام لم تندرس أفلا يعتبرون بهم (إن في ذلك لآية) لعبرة (للمؤمنين) (وإن) مخففة أي إنه (كان أصحاب الأيكة) هي غيضة شجر بقرب مدين وهم قوم شعيب (لظالمين) بتكذيبهم شعيبا (فانتقمنا منهم) بأن أهلكناهم بشدة الحر (وإنهما) أي قرى قوم لوط والأيكة (لبإمام) طريق (مبين) واضح افلا تعتبرون بهم يا أهل مكة

ترجمه: چې کله دا راليږلې شوې فرښتې آل لوط ته يعنی لوط عليه‌السلام ته او رسيدلې نو لوط عليه‌السلام هغوی ته او فرمائيل چې تاسو خلق ناشنا معلوميږئ، څه تاسو نه پيژنم فرښتو جواب ورکړو چې مونږ تا ته هغه څيز راوړې دې چې د هغې په راتلو کښې ستا قوم شک کولو، او هغه عذاب

دي، او مونږ تاته ښکاره حق راوړي دي، او مونږ په خپله خبره کښي بالکل رشتوني يو، اوس ته د شپې په يو حصه کښې خپل کور والا څان سره اوباسه، او ته ددوی شاته ځه، يعنی ددوی شا شا ته ځئ، او په تاسو کښې دې څوک شاته اونه ګوري، چې هغه لونې عذاب اونه ويني کوم چې په دوی باندې نازليږی، او د کوم ځائې چې تاته د تلو حکم شوې دې، هغه شام دې هلته سيدها لاړ شه، او مونږ دوی ته خپله دا فيصله راورسوله، او هغه دا چې د سحر کيدو سره به ددوی جرړې کټ کړې شی، (مصبحين) حال دې، يعنی د سحر کيدو سره به ددوی جرړې اوويستلې شی، او د ښارېې والا يعنی د سدوم اوسيدونکی، اوهغه د لوط علیه السلام د قوم خلق وو، چې کله هغوی ته دا خبر ميلاؤ شو چې د لوط علیه السلام کور ته بې ګيرې هلکان راغلې دی، حالانکه هغه فرشتې وې، (يستبشرون) حال دې، هغوی سره د بدفعلئ خواهش کولو سره، په خوشحالئی باندې راغلل، لوط علیه السلام اوفرمائيل رونړو دا زما ميلمانه دی، تاسو ما ددوی په باره کښې رسوا کوئی مه، د الله نه اوېريږئ، او دوی سره د بدفعلئ اراده کولو سره زما سپکاوې مه کوئی، وئې وئيل چې مونږ ته د ټولې دنيا د ټهيکدارئی نه يعنی ددوی د ميلمستيا نه منع کړې نه ئې، لوط علیه السلام اوفرمائيل چې که تاسو خپل خواهش پورا کول غوارئی نو دا زما لونړه دی، دوی سره نکاح اوکړئ الله تعالی اوفرمائيل ستا د عمر قسم دا حضور علیه السلام ته خطاب دې، يعنی ستا د ژوند قسم، هغوی په خپله مستئ کښې پراته وو، آخر کښې سحر کيدو سره يوې چغې يعنی د جبرائيل چغې اونيول يعنی د نمر د راختو په وخت کښې او اخر مونږ دا ښار لاندې باندې کړو، په داسې طريقه چې جبرائيل علیه السلام دا کلې بره اوچت کړو او زمکې ته ئې واپس راغوزار کړو او مونږ په دې خلقو باندې ئې کانړی راووړول، يعنی په اور کښې پاخه شوې کانړی بې شکه په دې ذکر شوې واقعاتو کښې د بصيرت والو د پاره د عبرت حاصل کونکو دپاره د الله په وحدانيت باندې دلالت کونکی نښې دی، او د قوم لوط علیه السلام دا کلی د قريشو شام ته تلونکی لار باندې واقع دی، او اوسه پورې د هغوی نښې ورانې شوې نه دی، نو آيا دا خلق د هغې نه نصيحت نه حاصلوی بې شکه په دې ذکر شوو کښې د مومنانو د پاره عبرت دې، او (ان) مخففه دې يعنی انه کان، او اصحاب ايکه چې هغه (ايکه) مدين سره نزدې وو چې د شعيب علیه السلام قوم وو، يو بنړ وو، دا هم د حضرت شعيب علیه السلام د تکذيب د وجه نه ډير ظالمان وو د چا نه چې مونږ بدله واخستله مونږ هغوی په سخته ګرمئ سره هلاک کړل، او دا دواړه يعنی د قوم لوط کلی او ايکه، په لار باندې واقع وو آيا دا اهل مکه د دوی عبرت نه حاصلوی؟

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** ای لوطا: په دې کښې اشاره ده، چې د آل لوط نه صرف لوط علیه السلام مراد دې، ځکه چې د الله تعالی قول ولقد جاءت رسلنا لوطا، نه هم دا مفهوم ده.

**قوله:لا اعرفکم:** تاسو نااشنائې ځکه چې نه خو تاسو مقامي ئې ګنی ما به ضرور تاسو پیژندلی وئ، او مسافر ښکاري ځکه چې په تاسو باندې د سفر هیڅ علامه نشته.

**قوله:اوحینا:** دا ددې سوال جواب دې، چې د قضینا صله (الی) نه رازی، حالانکه دلته صله الی استعمال شوې ده؟

**جواب:** دلته قضینا د اوحینا معنې لره متضمن دې.

**قوله:ذلك الامر:** دا مبهم دې، ددې تفصیل ئې ان دابر هؤلاء مقطوع مصبحین، سره کړې دې.

**قوله:حال:** یعنی د هؤلاء نه حال دې، او بعضې حضراتو د مقطوع د ضمیر نه حال ګرځولې دې، او مقطوع په معنی د مقطوعین کښې دې.

**قوله:مرداً:** دا د امرد جمع ده، بې ګیرې ځوان ته وائي.

**قوله:حال:** یعنی یستبشرون، د اهل المدینة نه حال دې، نه چې صفت، ځکه چې جمله نکره واقع کیدو سره د معرفې صفت راتلې نشي.

**قوله:عن اضافتهم:** ای ضیافتهم، میلمستیا کول.

**قوله:یترددون:** ای یتحیرون، فکیف یسمعون نصیحتك.

**قوله:وقت شروق الشمس:** د عذاب شروع کیدل د سحر په وخت کښې شوې وو، او پورا والې ئې د جبرئیل ﷺ په چغې سره د طلوع شمس په وخت کښې اوشو، لهذا هیڅ منافات نشته.

**قوله:تندرس:** اندراس، خرابیدل، ختمیدل

**قوله:طریق:** په دې کښې اشاره ده چې د امام نه دلته معروف معنی مراد نه ده، ای ما یؤتم به بلکه دلته لاره مراد ده، ځکه چې مسافر د لارې اقتدا کوی، لار چې چرته ځي، مسافر هم هغه طرف ته ځي،

**قوله:متوسمین:** متوسم د اسم فاعل جمع ده، (تفعل) توسم مصدر دې، اهل فراست، په غور سره کتلو والا، وسم ماده ده، علامت.

**[ایاتونه: ۸۰ ـ ۹۹]**

(وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحَابُ الْحِجْرِ) وَادٍ بَيْنَ الْمَدِينَةِ وَالشَّامِ وَهُمْ ثَمُود (الْمُرْسَلِينَ) بِتَكْذِيبِهِمْ صَالِحًا لِأَنَّهُ تَكْذِيب لِبَاقِي الرُّسُل لِاشْتِرَاكِهِمْ فِي الْمَجِيء بِالتَّوْحِيدِ (وَآتَيْنَاهُمْ آيَاتِنَا) فِي النَّاقَة (فَكَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ) لا يتفكرون فيها (وكانوا ينحتون من الجبال بيوتاً آمنين) (فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُصْبِحِينَ) وَقْت الصَّبَاح (فَمَا أَغْنَى) دَفَعَ (عَنْهُمْ) الْعَذَاب (مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ) مِنْ بِنَاء الْحُصُون وَجَمْع الْأَمْوَال (وما خلقنا السماوات وَالْأَرْض وَمَا بَيْنَهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ وَإِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ) لَا مَحَالَة فَيُجَازَى كُلّ أَحَد بِعَمَلِهِ (فَاصْفَحْ) يَا مُحَمَّد عَنْ

لِقَومِك (الصَّفْحَ الْجَمِيلَ) أعْرِضْ عَنهُمْ إعْرَاضًا لَا جَزَعَ فِيهِ وَهٰذَا مَنسُوخٌ بِآيَةِ السَّيْفِ (إِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْخَلَّاقُ) لِكُلِّ شَيْءٍ (الْعَلِيمُ) بِكُلِّ شَيْءٍ (وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِي) قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ الْفَاتِحَةُ رَوَاهُ الشَّيْخَانِ لِأَنَّهَا تُثْنٰى فِي كُلِّ رَكْعَةٍ (وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ) (لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِ أَزْوَاجًا) أَصْنَافًا (مِّنْهُمْ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ) إِنْ لَمْ يُؤْمِنُوا (وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ) أَلِنْ جَانِبَكَ (لِلْمُؤْمِنِينَ) (وَقُلْ إِنِّي أَنَا النَّذِيرُ) مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ أَنْ يَنْزِلَ عَلَيْكُمْ (الْمُبِينُ) الْبَيِّنُ الْإِنْذَارِ (كَمَا أَنزَلْنَا) الْعَذَابَ (عَلَى الْمُقْتَسِمِينَ) الْيَهُودِ وَالنَّصَارٰى (الَّذِينَ جَعَلُوا الْقُرْآنَ) أَيْ كُتُبَهُمُ الْمُنَزَّلَةَ عَلَيْهِمْ (عِضِينَ) أَجْزَاءً حَيْثُ آمَنُوا بِبَعْضٍ وَكَفَرُوا بِبَعْضٍ وَقِيلَ الْمُرَادُ بِهِمُ الَّذِينَ اقْتَسَمُوا طُرُقَ مَكَّةَ يَصُدُّونَ النَّاسَ عَنِ الْإِسْلَامِ وَقَالَ بَعْضُهُمْ فِي الْقُرْآنِ سِحْرٌ وَبَعْضُهُمْ كَهَانَةٌ وَبَعْضُهُمْ شِعْرٌ (فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ) سُؤَالَ تَوْبِيخٍ (عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ) (فَاصْدَعْ) يَا مُحَمَّدُ (بِمَا تُؤْمَرُ) بِهِ أَيِ اجْهَرْ بِهِ وَامْضِهِ (وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ) هٰذَا قَبْلَ الْأَمْرِ بِالْجِهَادِ (إِنَّا كَفَيْنَاكَ الْمُسْتَهْزِئِينَ) بِكَ بِإِهْلَاكِنَا كُلًّا مِّنْهُمْ بِآفَةٍ وَهُمُ الْوَلِيدُ بْنُ الْمُغِيرَةِ وَالْعَاصِي بْنُ وَائِلٍ وَعَدِيُّ بْنُ قَيْسٍ وَالْأَسْوَدُ بْنُ الْمُطَّلِبِ وَالْأَسْوَدُ بْنُ عَبْدِ يَغُوثَ (الَّذِينَ يَجْعَلُونَ مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ) صِفَةٌ وَقِيلَ مُبْتَدَأٌ وَلِتَضَمُّنِهِ مَعْنَى الشَّرْطِ دَخَلَتِ الْفَاءُ فِي خَبَرِهِ وَهُوَ (فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ) عَاقِبَةَ أَمْرِهِمْ (وَلَقَدْ) لِلتَّحْقِيقِ (نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ) مِنَ الْاِسْتِهْزَاءِ وَالتَّكْذِيبِ (فَسَبِّحْ) مُلْتَبِسًا (بِحَمْدِ رَبِّكَ) أَيْ قُلْ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ (وَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ) الْمُصَلِّينَ (وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ) الْمَوْتُ

---

ترجمه: او حجر والو، حجر د مدینې او د شام په مینځ کښې یو وادی ده، او هغه ثمودیان وو، د صالح علیه السلام تکذیب کولو سره د رسولانو تکذیب اوکړو، ځکه چې د صالح علیه السلام تکذیب کول د ټولو پیغمبرانو تکذیب دې، ځکه چې د توحید راوړلو کښې ټول شریک دی، او مونږ هغوی ته د اوښې په شکل کښې خپلې نښې هم ورکړې خو هغوی هم ددې نه اعراض کولو، یعنی هغوی په دې نښو کښې غور او فکر اونکړو، او دې خلقو به بې ویرې غرونه کنستلو سره کورونه جوړول، خو په آخر کښې هغوی هم دسحر په وخت کښې یو زوردار اواز اونیول، نو د هغوی څه تدبیر او عمل هغوی ته د عذاب لرې کولو کښې هیڅ فائده ورنکړه، یعنی د هغوی قلعو او د هغوی مال جمع کولو هغوی ته هیڅ فائده ورنکړه، او مونږ اسمانونه او زمکې او څه چې ددې په مینځ کښې دی په حق سره یعنی په مقصد باندې پیدا کړې دی، او قیامت خامخا راتلونکې دې هر کس ته به د هغه د عمل بدله میلاؤیږی، اې محمد صلی الله علیه وسلم ته خپل قوم ته په ښې طریقې سره معافی اوکړه، یعنی ددوی نه مخ واړوه، په داسې طریقه چې دوی سره بحث مه کوه، او دا حکم په آیت سیف سره منسوخ شو، یقینا ستا رب د هر څیز پیدا کونکې او په هر څیز عالم دې، او یقینا مونږ تا ته اووه آیتونه درکړې دی یعنی سبع مثانی، حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل هغه سورة فاتحه ده (رواه الشیخان) ځکه دا په هر آیت کښې لوستلې شی، او قرآن عظیم مو هم درکړې دې او ته هیڅ کله خپل نظرونه هغه څیزونو طرف

ته مه اوچتوه، کوم چې مونږ د دوی مختلف خلقو ته ورکړې دی، او که دوی ایمان نه راوړی نو ته په دوی باندې غم مه کوه، او د مومنانو د پاره خپل اوګې ټيټ ساته، یعنی دوی سره د نرمئ رویه کوه، او اووایه چې زه خو د الله د عذاب نه په ښکاره ویرونکې یم، دا چې په تاسو باندې عذاب نازل شی، څنګه چې مونږ دې تقسیمونکې یهودیانو او نصاراؤ باندې نازل کړو چا چې قرآن یعنی هغه کتابونه کوم چې په دوی باندې نازل شوې وو، ټکړې ټکړې کړل، په داسې طریقه چې په بعضې حصه باندې ئې ایمان راوړو او د بعضې نه ئې انکار اوکړو، او وئیلې شوی دی چې مراد هغه خلق دی، چا چې د مکې لارې راتلونکو لره د اسلام نه منع کولو د پاره تقسیمې کړې وې، او بعضې د قرآن په باره کښې جادو اووئیل، او چا ورته کهانت اووئیل، او بعضې ورته اشعار اووئیل، قسم دې ستا د رب! مونږ به خامخا ددوی نه د دوی د اعمالو په باره کښې تپوس کوو، او دا سوال د رټنې د پاره دې، نو اې محمد ﷺ کوم حکم چې تاته درکولې شی په ښکاره دوی ته اووروه، او نافذ ئې کړه پرې، او د مشرکینو نه مخ واړوه، دا حکم د جهاد د آیت د راتلو نه مخکښې وو، تا پورې چې کوم خلق توقې کوی مونږ د هغوی د پاره ستا د طرف نه کافی یو، په داسې طریقه چې مونږ به دوی ټولو لره د څه آفت په وجه باندې هلاک کړو، او هغه ولید بن مغیره، عاص بن وائل، عدی بن قیس، اسود بن المطلب او اسود بن عبد یغوث دی، کوم خلق چې الله سره بل معبود جوړوی، هغوی ته به ډیر زر ددې د انجام پته اولګی، وئیلې شوې دی چې صفت دې او وئیلې شوې دی چې مبتدأ متضمن په معنې د شرط سره ده، څکه ئې ددې په خبر باندې «فاء» راوړې ده، او هغه خبر «فسوف تعلمون» دې او مونږ ته ښه پته ده چې ددوی په دې خبرو باندې ستا زړه تنګیږی، او هغه خبرې د توقو او د تکذیب دی تاسو د خپل رب تسبیح بیانوه یعنی سبحان الله وبحمده وایه او په سجده کونکو کښې یعنی مونځ کونکو کښې شامل اوسیږه، او د خپل رب عبادت کوه تر دې چې ستا یقینی «دمرګ» وخت راشی،

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: فی الناقة:** مفسر علام فی الناقة وئیلو سره ددې سوال جواب ورکړې دې چې آیتنا جمع ده، او ددې تفسیر په الناقة مفرد سره کړې دې کوم چې صحیح نه دې؟

د جواب حاصل دادې چې ناقة په ډیر آیتونو باندې مشتمل وه، د اوښې د غر نه راوتل، او راتللو سره فورا بچې راوړل، او په خپل نمبر کښې تولې اوبه څکل، او په ډیر مقدار کښې پئ ورکول، لهذا د آیتنا تفسیر په ناقة سره صحیح دې.

**قوله: اصنافا:** د ازواجا تفسیر په اصنافا سره کولو کښې ئې دې ته اشاره اوکړه چې د ازواجا معروف معنی مراد نه ده، بلکه اصناف او اقسام مراد دی، مثلا کافر، یهود،

نصاری، مجوس، بت پرست وغیره.

**قوله:كتبهم**: د قرآن تفسیر په کتبهم سره کولو کښې اشاره اوکړې شوه، چې د قرآن نه دلته معروف قرآن مراد نه دې.

**قوله:اجزاء**: دا د عضين لغوی معنی بیانولو د پاره اضافه کړې شوې ده، عضين د عضة جمع ده، ددې اصل عضوة دې، بروزن فعلة، دا د عضى الشاة نه خستلې شوې دې، يعنى ټکړې ټکړې کول.

**قوله:صفة**: يعنى الذين، د مستهزين صفت دې، لهذا فصل بالاجنبی نشته.

## [۱٦] سورة النحل

### سورة النحل مكية الا وان عاقبتم الى اخرها ماة وثمان وعشرون اية

سورة نحل مکی دې، سوا د وان عاقبتم نه تر آخره پورې، ۱۲۸ آیتونه دی.

### [ایاتونه:۱ - ۹]

بسم الله الرحمن الرحيم لَمَّا اسْتَبْطَأَ الْمُشْرِكُونَ الْعَذَابَ نَزَلَ ﴿أَتَىٰ أَمْرُ اللَّهِ﴾ أَيِ السَّاعَةُ وَأَتَى بِصِيغَةِ الْمَاضِي لِتَحَقُّقِ وُقُوعِهِ أَيْ قَرُبَ ﴿فَلَا تَسْتَعْجِلُوهُ﴾ تَطْلُبُوهُ قَبْلَ حِينِهِ فَإِنَّهُ وَاقِعٌ لَا مَحَالَةَ ﴿سُبْحَانَهُ﴾ تَنْزِيهًا لَهُ ﴿وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ بِهِ غَيْرَهُ ﴿يُنَزِّلُ الْمَلَائِكَةَ﴾ أَيْ جِبْرِيلَ ﴿بِالرُّوحِ﴾ بِالْوَحْيِ ﴿مِنْ أَمْرِهِ﴾ بِإِرَادَتِهِ ﴿عَلَىٰ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ﴾ وَهُمُ الْأَنْبِيَاءُ ﴿أَنْ﴾ مُفَسِّرَةٌ ﴿أَنْذِرُوا﴾ خَوِّفُوا الْكَافِرِينَ بِالْعَذَابِ وَأَعْلِمُوهُمْ ﴿أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا فَاتَّقُونِ﴾ خَافُونِ ﴿خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ﴾ أَيْ مُحِقًّا ﴿تَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ بِهِ مِنَ الْأَصْنَامِ ﴿خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ نُطْفَةٍ﴾ مَنِيٍّ إِلَى أَنْ صَيَّرَهُ قَوِيًّا شَدِيدًا ﴿فَإِذَا هُوَ خَصِيمٌ﴾ شَدِيدُ الْخُصُومَةِ ﴿مُبِينٌ﴾ بَيِّنُهَا فِي نَفْيِ الْبَعْثِ قَائِلًا ﴿مَنْ يُحْيِي الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيمٌ﴾ ﴿وَالْأَنْعَامَ﴾ الْإِبِلَ وَالْبَقَرَ وَالْغَنَمَ وَنَصْبُهُ بِفِعْلٍ مُقَدَّرٍ يُفَسِّرُهُ ﴿خَلَقَهَا لَكُمْ﴾ فِي جُمْلَةِ النَّاسِ ﴿فِيهَا دِفْءٌ﴾ مَا تَسْتَدْفِئُونَ بِهِ مِنَ الْأَكْسِيَةِ وَالْأَرْدِيَةِ مِنْ أَشْعَارِهَا وَأَصْوَافِهَا ﴿وَمَنَافِعُ﴾ مِنَ النَّسْلِ وَالدَّرِّ وَالرُّكُوبِ ﴿وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ﴾ قَدَّمَ الظَّرْفَ لِلْفَاصِلَةِ ﴿وَلَكُمْ فِيهَا جَمَالٌ﴾ زِينَةٌ ﴿حِينَ تُرِيحُونَ﴾ تَرُدُّونَهَا إِلَى مَرَاحِهَا بِالْعَشِيِّ ﴿وَحِينَ تَسْرَحُونَ﴾ تُخْرِجُونَهَا إِلَى الْمَرْعَى بِالْغَدَاةِ ﴿وَتَحْمِلُ أَثْقَالَكُمْ﴾ أَحْمَالَكُمْ ﴿إِلَىٰ بَلَدٍ لَمْ تَكُونُوا بَالِغِيهِ﴾ وَاصِلِينَ إِلَيْهِ عَلَى غَيْرِ الْإِبِلِ ﴿إِلَّا بِشِقِّ الْأَنْفُسِ﴾ بِجُهْدِهَا ﴿إِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَحِيمٌ﴾ بِكُمْ حَيْثُ خَلَقَهَا لَكُمْ ﴿وَ﴾ خَلَقَ ﴿الْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً﴾ مَفْعُولٌ لَهُ وَالتَّعْلِيلُ بِهِمَا بِتَعْرِيفِ النِّعَمِ لَا يُنَافِي خَلْقَهَا لِغَيْرِ ذَلِكَ كَالْأَكْلِ فِي الْخَيْلِ الثَّابِتِ بِحَدِيثِ الصَّحِيحَيْنِ ﴿وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ مِنَ الْأَشْيَاءِ الْعَجِيبَةِ الْغَرِيبَةِ ﴿وَعَلَى اللَّهِ قَصْدُ السَّبِيلِ﴾ أَيْ بَيَانُ الطَّرِيقِ الْمُسْتَقِيمِ ﴿وَمِنْهَا﴾ أَيِ السَّبِيلِ ﴿جَائِرٌ﴾ حَائِدٌ عَنِ الْاِسْتِقَامَةِ ﴿وَلَوْ شَاءَ﴾ هِدَايَتَكُمْ ﴿لَهَدَاكُمْ﴾ إِلَى قَصْدِ السَّبِيلِ ﴿أَجْمَعِينَ﴾ فَتَهْتَدُونَ إِلَيْهِ بِاخْتِيَارٍ مِنْكُمْ

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره کوم چې ډیر مهربان او ډیر رحم والا دې، چې کله مشرکانو د

عذاب راتللو کښې روستوالې اوکتلو نو د عذاب مطالبه ئې اوکړه، په هغه وخت کښې دا آيت نازل شو، د الله حکم راغلو يعنې قيامت او د قيامت يقينې راتللو د وجه نه د (اتى) ماضې صيغه استعمال شوۀ، او (اتى) په معنى د (قرب) دې. يعنې د قيامت وخت نزدې راغلو، نو تاسو د هغې د وخت نه مخکښې زر غوښتل مه کوئ، هغه يقينا واقع کيدونکې دې الله پاک دې او کوم غير الله چې دوى د الله شريک جوړوئ، الله د هغې نه اوچت او برتر دې، الله فرشتو ته يعنې جبرائيل ﷺ له وحى ورکولو سره د حکم او ارادې سره په خپل بندګانو کښې چې په چا غواړى نازلوى او هغه پيغمبران دى چې خلقو له خبردار کړى، (ان) مفسره دې، کافرانو له د عذاب نه اويروئ، او دوى ته دا اووايئ چې ځما نه علاوه څوک د عبادت لائق نشته، لهٰذا هم ځما نه اوويريږئ، هغه آسمانونه او زمکې له په حقه سره يعنې د يو مقصد لاندې پيدا کړل، او د دې بتانو نه ډير اوچت او لوئ ذات دې، کوم چې دا خلق د هغه شريک جوړوئ، انسان ئې د منى د نطفې نه پيدا کړو، تر دې چې هغه ئې طاقت ور او مضبوط کړو نو هغه د مرګ نه پس د ژوند انکار کولو سره په ښکاره جهګړمار جوړ شو دې وئيلو سره چې وراسته هډونکى څوک ژوندى کولې شى، او ستاسو د پاره ئې څناورو له مثلا اوښ، غوا، غوې او چيلئ وغيره پيدا کړل، او د انعام نصب د فعل مقدر د وجه دې، چې د هغې تفسير خلقها لکم کوى، سره د نورو خلقو ستاسو د پاره ئې څناور پيدا کړل چې د هغې د ورئې او وينښتو نه جوړشوې په ګرم څادرو او کپړو سره د يخنئ نه ستاسو حفاظت دې، ددې نه علاوه د نسل، پيو، او د سورلئ فائدې هم دى، او په دې کښې بعضې تاسو خورئ، او ظرف (منها) د فواصلو د رعايت دوجه مقدم کړې شوې دې، او ستاسو د پاره هغه د زينت وجه هم وى، چې کله تاسو د ماښام وخت کښې خپلو باړو طرف ته واپس راولئ او هغه وخت هم (باعث د زينت وى) کله چه تاسو دا د سحر په وخت کښې ددې چراهګاهو (د څر ځايونو) په طرف بوځئ، او هغه ستاسو د سامان بوج اچتولو سره داسې ښاريو ته ورى، کوم ځائې ته چې تاسو د اوښانو نه بغير نه رسئ خو د سخت زړه چودن نه پس، حقيقت دادې چې ستاسو رب ډير شفيق او مهربانه دې څکه چې هغه ستاسو د پاره دې څناورو له پيدا کړل، او هغه اسونه، خچر، او خره پيدا کړل ستاسو د سورلئ د پاره او د زينت د پاره دواړه مفعول له دى، او رکوب او زينت علت ګرځول د نعمتونو تعارف د پاره دى، لهٰذا ددې نه علاوه دپاره د تخليق سره منافى نه دى، لکه چې اس د خوړلو د پاره هم دې، کوم چې د صحيحنو د حديث نه ثابت دې، او هغه ډير عجيب او نااشنا څيزونه پيدا کوى، څنګه چې تاسو پيژنئ هم نه، او نيغه لاره خودل د الله په ذمه ده حالانکه کږې لارې هم موجود دى، که هغه ستاسو هدايت غوښتلو نو ټولو ته به ئې هدايت ورکړې وو، نو ستاسو به په اختيار سره هغې رسيدنه شوې وه.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** ای قرب : ای قرب، وقوعه، تطلبوه، ای تطلبوا وقوعه

**قوله:** سبحانه: دا د فعل محذوف مفعول مطلق دې، ای سبح سبحانه

**قوله:** به : په دې کښې اشاره ده، چې په (عما) کښې (ما) موصوله ده، چې د هغې په صله کښې عائد راوړل ضروري دی، او که ما مصدریه وی نو بیا د عائد ضرورت نشته،

**قوله:** عما: کښې سبحانه و تعالی دواړه فعل تنازع کوئ، هر یو په عما کښې ما لره خپل مفعول جوړول غواړی، دا دواړه د تنازع فعلان نه دی، بصریان وائی چې دویم فعل ته او کوفیان وائی چې اول فعل ته به عمل ورکولې شی.

**قوله:** ای جبرئیل:

**سوال:** الملائكة صيغه د جمع وئيلو سره يوه ملائكه مراد اخستلې شوې ده؟

**جواب:** داسې مجازا کړې دی، څنګه چې اذ قالت الملائكة کښې د ملائکه نه جبرئيل امين مراد دې، واحدی وئیلې دی چې کله یو فرد د جماعت سردار وی نو په هغه باندې د جمع اطلاق کیږی، جبرئیل علیه السلام چونکه د فرشتو سردار دې لهذا په هغه باندې هم د جمع اطلاق صحيح دې.

**قوله:** بإرادته: په دې کښې اشاره ده چې په (من امره) کښې (من) په معنی د (باء) دې، لهذا دا اعتراض ختم شو چې په (من امره) کښې من نه بيانيه کيدې شی، نه تبعيضيه او نه ابتدائيه.

**قوله:** ان مفسرة:

**سوال:** (ان) مفسره د (قال) يا د (قال) مشتقاتو يا د هم معنې نه پس واقع کيږئ، او دلته داسې نه ده شوې؟

**جواب:** دلته روح چونکه د وحی په معنی کښې دې او وحی د قال په معنی کښې ده لهذا ان مفسره کيدل صحيح دی.

**قوله:** واعلموهم: دا اضافه د يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** انذار متعدی په يو مفعول سره دې، او هغه محذوف دې، ای انذروا المشركين، لهذا په انه لااله کښې د (ان) د فتحې څه ضرورت دې، د قياس تقاضه خو دا ده، چې ان په کسرې د همزې سره وی؟

**جواب:** دادې چې دلته اعلموا مقدر دې او انه لااله الاانا، مفعول ثانی دې، ددې وجه نه ئې انه راوړې دې.

**قوله:** محقا: په دې کښې اشاره ده چې (بالحق) د حال کيدو د وجه نه منصوب دې،.

قوله: شدید الخصومة: په دې کښې اشاره ده چې خصیم (فعیل) د مبالغې د پاره دې.
قوله: نصبه بفعل یفسره خلقها: یعنی دا د (ما اضمر عامله) دقبیل نه دې، تقدیری عبارت دادې خلق الانعام خلقها لکم،
قوله: دفء: د یخنۍ کپړې، گرمې کپړې، د گرمۍ حاصلولو سامان، د اوښانو د پیداوار او د هغې نه چې کومه نفع حاصله وی، د فۍ (دفاء، دفاءة، گرمیدل،، گرمی محسوسول، استدفاء، گرمې کپړې اغوښتل.
قوله: من اشعارها واصوافها: دا په (ما تستدفئون) کښې د (ما) بیان دې، د (دفء) تفسیر په ما تستدفئون سره کښې ئې دا اشاره اوکړه چې دفء مصدر د اسم مفعول په معنی کښې دې، دغه شان د د (دفء) حمل هم صحیح شو.
قوله: قدم الظرف للفاصلة: یعنی (ومنها تاکلون) په اصل کښې (تاکلون منها) وو، د فواصلو د رعایت کولو د وجه نه ظرف ئې مقدم کړو.
قوله: مراح بضم المیم: د آرام ځائې، د څناورو د اوسیدو ځائې، باړا
قوله: وخلق: خلق مقدر گنړلو سره اشاره ئې اوکړه چې د الخیل عطف په الانعام باندې دې، ای خلق الانعام وخلق الخیل، الخ
قوله: مفعول له: زینة مفعول له دې، او د لترکبوها په محل باندې عطف دې، یعنی ترکبوها، او زینة دواړه د خلق مفعول له دی.
سوال: دواړه مفعول له دی خو دواړه ئې په یو طرز کښې راوړې نه دی؟
جواب: په دواړو کښې فرق دادې چې رکوب د مخاطبینو فعل دې، او زینة د خالق فعل دې.
قوله: والتعلیل بهما لتعریف النعم: الخ دا د احنافو د استدلال جواب دې د احنافو استدلال ددې آیت نه داسې دې چې الله تعالی د اسونو خچرو او د خرو د پیدا کولو علت زینت ښودلې دې، او ددې دریواړو په تخلیق کښې ئې د خوړلو علت نه دې گرځولې، څنگه چې په انعام کښې د تخلیق علت اکل بیان شوې دې. حالانکه د اکل فائده د نورو فائدو نه اهم ده، او آیت د نعمتونو د بیان د پاره راغلې دې، او دا خبره هیڅ کله مناسب نه ده چې د احسان ښکاره کولو په موقع باندې د لږ نعمت ذکر اوکړې شی، او اعلی پرینښودلې شی،
قوله: قصد السبیل: دا اضافت صفت الی الموصوف دې، ای السبیل القصد، او قصد په معنی د قاصد دې چې حمل صحیح شی، قصد نیغې لارې ته وائی، یقال سبیل قصد، وسبیل قاصد، نیغه لاره.

**[ایاتونه: ۱۰ ـ ۲۱]**

{هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً لَكُمْ مِنْهُ شَرَابٌ} تَشْرَبُونَهُ {وَمِنْهُ شَجَرٌ} يَنْبُتُ بِسَبَبِهِ {فِيهِ تُسِيمُونَ} تَرْعَوْنَ دَوَابَّكُمْ {يُنْبِتُ لَكُمْ بِهِ الزَّرْعَ وَالزَّيْتُونَ وَالنَّخِيلَ وَالْأَعْنَابَ وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ إِنَّ فِي ذَلِكَ} الْمَذْكُورِ {لَآيَةً} دَالَّةً عَلَى وَحْدَانِيَّتِهِ تَعَالَى {لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ} فِي صُنْعِهِ فَيُؤْمِنُونَ {وَسَخَّرَ لَكُمُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ} بِالنَّصْبِ عَطْفًا عَلَى مَا قَبْلَهُ وَالرَّفْعِ مبتدأ {وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومُ} بِالْوَجْهَيْنِ {مُسَخَّرَاتٌ} بِالنَّصْبِ حَالٌ وَالرَّفْعِ خَبَرٌ {بِأَمْرِهِ} بِإِرَادَتِهِ {إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ} يتدبرون {وَ} سَخَّرَ لَكُمْ {مَا ذَرَأَ} خَلَقَ {لَكُمْ فِي الْأَرْضِ} مِنَ الْحَيَوَانِ وَالنَّبَاتِ وَغَيْرِ ذَلِكَ {مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ} كَأَحْمَرَ وَأَصْفَرَ وَأَخْضَرَ وَغَيْرِهَا {إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَةً لِقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ} يَتَّعِظُونَ {وَهُوَ الَّذِي سَخَّرَ الْبَحْرَ} ذَلَّلَهُ لِرُكُوبِهِ وَالْغَوْصِ فِيهِ {لِتَأْكُلُوا مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا} هُوَ السَّمَكُ {وَتَسْتَخْرِجُوا مِنْهُ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا} هِيَ اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ {وَتَرَى} تُبْصِرُ {الْفُلْكَ} السُّفُنَ {مَوَاخِرَ فِيهِ} تَمْخَرُ الْمَاءَ أَيْ تَشُقُّهُ بِجَرْيِهَا فِيهِ مُقْبِلَةً وَمُدْبِرَةً بِرِيحٍ وَاحِدَةٍ {وَلِتَبْتَغُوا} عَطْفٌ عَلَى لِتَأْكُلُوا تَطْلُبُوا {مِنْ فَضْلِهِ} تَعَالَى بِالتِّجَارَةِ {وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ} اللّٰه على ذلك {وألقى في الأرض رواسي} جبالا ثوابت ل {أن} لا {تميد} تتحرك {بكم و} جَعَلَ فِيهَا {أَنْهَارًا} كَالنِّيلِ {وَسُبُلًا} طُرُقًا {لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ} إِلَى مَقَاصِدِكُمْ {وَعَلَامَاتٍ} تَسْتَدِلُّونَ بِهَا عَلَى الطُّرُقِ كَالْجِبَالِ بِالنَّهَارِ {وَبِالنَّجْمِ} بِمَعْنَى النُّجُومِ {هُمْ يَهْتَدُونَ} إِلَى الطُّرُقِ والقبلة بالليل {أَفَمَنْ يَخْلُقُ} وَهُوَ اللّٰهُ {كَمَنْ لَا يَخْلُقُ} وَهُوَ الْأَصْنَامُ حَيْثُ تُشْرِكُونَهَا مَعَهُ فِي الْعِبَادَةِ لَا {أَفَلَا تَذَكَّرُونَ} هَذَا فَتُؤْمِنُونَ {وَإِنْ تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوهَا} تَضْبِطُوهَا فَضْلًا أَنْ تُطِيقُوا شُكْرَهَا {إِنَّ اللّٰهَ لَغَفُورٌ رَحِيمٌ} حَيْثُ يُنْعِمُ عَلَيْكُمْ مَعَ تَقْصِيرِكُمْ وَعِصْيَانِكُمْ {والله يعلم ما تسرون وما تعلنون} {وَالَّذِينَ تَدْعُونَ} بِالتَّاءِ وَالْيَاءِ تَعْبُدُونَ {مِنْ دُونِ اللّٰهِ} وَهُمُ الْأَصْنَامُ {لَا يَخْلُقُونَ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ} يُصَوَّرُونَ مِنَ الْحِجَارَةِ وَغَيْرِهَا {أَمْوَاتٌ} لَا رُوحَ فِيهِمْ خَبَرٌ ثَانٍ {غَيْرُ أَحْيَاءٍ} تَأْكِيدٌ {وَمَا يَشْعُرُونَ} أَيِ الْأَصْنَامُ {أَيَّانَ} وَقْتَ {يُبْعَثُونَ} أَيِ الْخَلْقُ فَكَيْفَ يُعْبَدُونَ إِذْ لَا يَكُونُ إِلَهًا إِلَّا الْخَالِقُ الْحَيُّ الْعَالِمُ بِالْغَيْبِ

**ترجمه:** الله هم هغې دې چا چې ستاسو د فائدې د پاره د آسمان نه (اوریځو نه) اوبه راوورولې، هغه تاسو څکئ، او د هم هغې نه بوټي راټوکیږي، چې په هغې کښې د څړلو د پاره تاسو خپل څناور پریږدئ، هم دغه اوبو سره ستاسو د پاره پټي، زیتون او کهجور او انګور او هر قسم میوې راټوکوئ، بې شکه دې تولو څیزونو کښې د الله په وحدانیت باندې دلالت کونکې نښې دي، د هغه خلقو د پاره چې د هغه په صنعت کارئ کښې غوراو فکر کوي، چې د هغې په نتیجه کښې هغوی ایمان راوړي، او هم هغه شپه او ورځ او نور او سپوږمئ او ستورو لره په خپل قدرت سره ستاسو په کار کښې لګولې دي الشمس په نصب سره په ماقبل باندې عطف دې، او په رفع سره د مبتدأ د وجه، او په القمر او النجوم کښې هم مذکوره دواړه اعراب دي، مسخرات نصب سره دې د حال د وجه نه، او رفع سره دې د خبر د وجه نه. بې شکه په دې

کښې ډېرې نښې دي، د هغه خلقو د پاره څوک چې د عقل نه کار اخلي، یعنې غور او فکر کوي، ډېر څیزونو له هغه د زمکې نه پیدا کړل چې د هغې رنګ او ډول مختلف دي، لکه سور، شین، او زیړ وغیره، هغه حیوان او نباتات وغیره دي یقینا په دې ذکر شوې څیزونو کښې د نصیحت اخستونکو د پاره ډېر نصیحتونه دي، او دریاب هم هغه ستاسو د سورلئ د پاره او په هغې کښې د غوښې وهلو د پاره ستاسو په اختیار کښې کړل چې تاسو د هغې نه تازه غوښه راوباسئ، هغه مهې دې او د هغې نه کالي راوباسئ چې هغه تاسو اغوندئ، او هغه ملغره او کنجکې دي او ته کشتیانو له ګورئ چې اوبه شلولو سره ګرځي، یعنې په یو هوا سره تلو راتلو کښې په دریاب کښې اوبو له شلوي او رواني وي، او دا چې تاسو د تجارت په ذریعه باندې د الله فضل (روزي) طلب کړئ، لتبتغوا په لتاکلو باندې عطف دې او دا چې په دې باندې تاسو د الله شکر ادا کړئ، او هغه په زمکه کښې نه خوزېدونکي غرونه کلک کړل چې په تاسو نه خوزي، یعنې اضطرابي حرکت نه کوي، او په زمکه باندې د نیل په شان نهرونه ئې جوړ کړل او لارې ئې جوړې کړې چې تاسو خپل مقصد ته رسیدنه حاصل کړئ، او ډېرې داسې نښې ئې جوړې کړې چې د هغې نه تاسو رهنمائي حاصلوئ، لکه د غرونو نه په ورځ کښې او د ستورو په ذریعه باندې او نجم په معنی د نجوم دې، د لارې او د قبلې د شپې رهنمائي حاصلوئ، آیا هغه الله څوک چې پیدا کول کوي د هغه چا برابر دې څوک چې څه نه پیدا کوي، او هغه بتان دي چې هغوی له تاسو په عبادت کښې د الله شریک جوړوئ، (یعنې برابر کیدې نه شي) آیا تاسو ددې نه نصیحت نه حاصلوئ، چې ایمان راوړئ، او که تاسو د الله نعمتونه شمیرل او غوارئ نو شمیرلې ئې نشئ څه به تاسو د هغه شکر ادا کړئ بې شکه الله ډېر بخښنې والا او ډېر مهربانه دې ځکه چې هغه ستاسو د کمو او خطاګانو باوجود تاسو ته خپل نعمتونه درکوي، او څه چې تاسو پټوئ او څه چې تاسو ښکاره کوئ الله ته د هغې پته ده، او کومو خلقو ته چې دا خلق د الله پرېښودلو سره آوازونو کوي بندګي ئې کوي او هغه بتان دي هغوی هیڅ څیز پیدا کولې نشي، او هغه خو خپله مخلوق دي، یعنې د کاڼي وغیره نه تراشلې (تو ګلې) شوې دي بې ساه دي، دا خبر ثاني دې په هغې کښې ساه نشته، دا تاکید دې، او دې بتانو ته خو دا پته نشته چې مخلوق به کله اوچتولې شي؟ نو بیا دې د هغوی بندګي ولې وکړې شي، ځکه چې معبود خو هغه کیدې شي، څوک چې خالق وي، ژوندې وي او عالم الغیب وي.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: بالنصب:** مسخرات په الشمس باندې د نصب په صورت کښې به د حال د وجه نه منصوب وي، او په ماقبل کښې د مذکور تولونه به حال وي، او عامل به د سخر ضمیر وي، او په الشمس باندې د رفع په صورت کښې به مسخرات د مبتدا خبر د وجې مرفوع وي.

قوله: ماذرا: ددې عطف په الليل باندې دې مفسر علام سخر محذوف راوښکلو سره دې طرف ته اشاره کړې ده.

قوله: مواخر: دا د (ماخر) جمع ده، مخرا، مخورا، او به شلول.

قوله: عطف على لتاكلوا: يعنى تبتغوا، ددې عطف په لتاكلو باندې دې، په مينځ کښې جمله معترضه ده.

قوله: وجعل فيها: ددې عطف په راوسى باندې دې، ځکه چې په القى کښې د جعل معنى ده.

قوله: خبر ثان: يعنى اموات، د الذين يدعون خبر ثانى دې، او اول خبر ئې من دون الله دې.

قوله: تاكيد: يعنى (غير أحياء) د اموات تاكيد دې، لهذا د عدم حاجت اعتراض ختم شو.

**[ايالتونه: ۲۲ _ ۲۵]**

(إِلَهُكُمْ) الْمُسْتَحِقّ لِلْعِبَادَةِ مِنْكُمْ (إِلَهٌ وَاحِدٌ) لَا نَظِير لَهُ فِي ذَاته وَلَا صِفَاته وَهُوَ اللَّه تَعَالَى (فَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ قُلُوبهمْ مُنْكِرَة) جَاحِدَة لِلْوَحْدَانِيَّةِ (وَهُمْ مُسْتَكْبِرُونَ) مُتَكَبِّرُونَ عَنْ الْإِيمَان بِهَا (لَا جَرَمَ) حَقًّا (أَنَّ اللَّه يَعْلَم مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ) فَيُجَازِيهِمْ بِذَلِكَ (إِنَّهُ لَا يُحِبّ الْمُسْتَكْبِرِينَ) بِمَعْنَى أَنَّهُ يُعَاقِبهُمْ وَنَزَلَ فِي النَّضْر بْن الْحَارِث (وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ مَا) اسْتِفْهَامِيَّة (ذَا) مَوْصُولَة (أَنْزَلَ رَبّكُمْ) عَلَى مُحَمَّد (قَالُوا) هُوَ (أَسَاطِير) أَكَاذِيب (الْأَوَّلِينَ) إضْلَالًا لِلنَّاسِ (لِيَحْمِلُوا) فِي عَاقِبَة الْأَمْر (أَوْزَارهمْ) ذُنُوبهمْ (كَامِلَة) لَمْ يُكَفَّر مِنْهَا شَيْء (يَوْم الْقِيَامَة وَمِنْ) بَعْض (أَوْزَار الَّذِينَ يُضِلُّونَهُمْ بِغَيْرِ عِلْم) لِأَنَّهُمْ دَعَوْهُمْ إلَى الضَّلَال فَاتَّبَعُوهُمْ فَاشْتَرَكُوا فِي الْإِثْم (أَلَا سَاءَ) بِئْسَ (مَا يَزِرُونَ) يَحْمِلُونَهُ حَمْلهمْ هَذَا

ترجمه: ستاسو د عبادت مستحق خو صرف يو معبود دې، په ذات او صفاتو کښې د هغه نظير نشته، او هغه الله تعالى دې او څوک چې په آخرت باندې ايمان نه راوړى د هغوى زړونه د وحدانيت نه منکر دى، او هغوى په وحدانيت باندې د ايمان راوړلو نه تکبر کونکى دې، يقينى خبره ده، چې الله هر هغه خبره پيژنى کومه چې هغوى پټوى او ښکاره کوى ئې. لهذا هغه به دوى ته ددې بدله ورکړى هغه تکبر کونکى نه خوښوى په دې معنى چې هغوى ته به سزا ورکړى، او د نضر بن الحارث په باره کښې دا راروان آيت نازل شو. او چې کله د هغوى نه تپوس اوکړې شى، چې ستاسو رب په محمد ﷺ باندې څه نازل کړې دى؟ (ما) استفهاميه ده، او (ذا) موصوله دې نو خلقو لره د گمراه کولو د پاره ئې جواب ورکړو، چې دا د مخکښې خلقو دروغې قصې دى، ددې نتيجه به دا وى چې آخر کار دا خلق به خپل ټول گناهونه چې په هغې کښې هيڅ هم معاف شوې نه وى د قيامت په ورځ اوچت کړى او د هغه خلقو د گناهونو هم څه حصه کوم چې دې خلقو د لاعلمئ د وجه نه گمراه کړې وى ځکه دې خلقو هغوى لره د گمراهئ طرف ته راوبلل، نو هغوى ددوى اتباع اوکړه چې د هغې د وجې نه په گناه کښې دواړه

شریک شول، اوګوره څومره خراب بوج دې؟ کوم چې دوی اوچتوی، یعنی ددوی دا اوچتول ډیر خراب دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:متکبرون:** د مستکبرون تفسیر په متکبرون سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې استفعال د تفعل په معنی دې، لهذا دا اعتراض ختم شو، چې دلته د طلب معنی صحیح نه ده.

**قوله:بمعنی انه یعاقبهم:** دا ددې سوال جواب دې، چې د (حب) لفظ د الله تعالی د پاره استعمالول صحیح نه دی، ځکه چې د (حب) تعلق قلب سره دې، او قلب مجسم وی، کوم نه چې الله تعالی پاک دې؟

**جواب:** د عدم حب لازم معنی مراد ده، یعنی سزا، لهذا اوس څه اعتراض پاتې نه شو.

**قوله:هو: سوال:** د (هو) مقدر ګنړلو څه ضرورت وو؟

**جواب:** اساطیر الاولین چونکه د قال مقوله ده، او د مقولې د پاره جمله کیدل ضروری دی، حالانکه اساطیر الاولین مفرد دې، یعنی جمله تام نه ده.مفسر علام (هو) محذوف ګنړلو سره اشاره اوکړه چې اساطیر الاولین د مبتدأ محذوف خبر کیدو سره جمله تام ده.

**قوله:فی عاقبة الامر:** په دې کښې اشاره ده چې په (لیحملوا) کښې لام د عاقبت دې.

**قوله:حملهم هذا:** دا مخصوص بالذم دې.

**[ایاتونه:۲٦ ـ ۳٤]**

{قَدْ مَكَرَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ} وَهُوَ نَمْرُود بَنَى صَرْحًا طَوِيلًا لِيَصْعَد مِنْهُ إِلَى السَّمَاء لِيُقَاتِل أَهْلهَا {فَأَتَى اللَّه} قَصَدَ {بُنْيَانهمْ مِنَ الْقَوَاعِد} الْأَسَاس فَأَرْسَلَ عَلَيْهِ الرِّيح وَالزَّلْزَلَة فَهَدَمَتْهُ {فَخَرَّ عَلَيْهِمُ السَّقْفُ مِنْ فَوْقِهِمْ} أَيْ هُمْ تَحْته {وَأَتَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ} مِنْ جِهَة لَا تَخْطِر بِبَالِهِمْ وَقِيلَ هَذَا تَمْثِيل لِإِفْسَادِ مَا أَبْرَمُوهُ مِنَ الْمَكْر بِالرُّسُلِ {ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُخْزِيهِمْ} يُذِلّهُمْ {وَيَقُول} اللّٰه لَهُمْ عَلَى لِسَان الْمَلَائِكَة تَوْبِيخًا {أَيْنَ شُرَكَائِيَ} بِزَعْمِكُمْ {الَّذِينَ كُنْتُمْ تُشَاقُّونَ} تُخَالِفُونَ الْمُؤْمِنِينَ {فِيهِمْ} فِي شَأْنهمْ {قَالَ} أَيْ يَقُول {الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ} مِنَ الْأَنْبِيَاء وَالْمُؤْمِنِينَ {إِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَالسُّوءَ عَلَى الْكَافِرِينَ} يَقُولُونَهُ شَمَاتَة بِهِمْ {الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ} بِالتَّاء وَالْيَاء {الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ} بِالْكُفْرِ {فَأَلْقَوُا السَّلَمَ} انْقَادُوا وَاسْتَسْلَمُوا عِنْد الْمَوْت قَائِلِينَ {مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِنْ سُوءٍ} شِرْك فَتَقُول الْمَلَائِكَة {بَلَى إِنَّ اللّٰهَ عَلِيمٌ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ} فَيُجَازِيكُمْ بِهِ وَيُقَال لَهُمْ {فَادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا فَلَبِئْسَ مَثْوَى} مَأْوَى {الْمُتَكَبِّرِينَ} {وَقِيلَ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا} الشِّرْك {مَاذَا أَنْزَلَ رَبُّكُمْ قَالُوا خَيْرًا لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا} بِالْإِيمَانِ {فِي هَذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ} حَيَاة طَيِّبَة {وَلَدَارُ الْآخِرَةِ} أَيِ الْجَنَّة {خَيْرٌ} مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا قَالَ تَعَالَى فِيهَا {وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِينَ} هِيَ {جَنَّاتُ عَدْنٍ} إِقَامَة

مبتدأ خبره ﴿يَدْخُلُونَهَا تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَاءُونَ كَذَٰلِكَ﴾ الجزاء ﴿يَجْزِي اللَّهُ الْمُتَّقِينَ﴾ ﴿الَّذِينَ﴾ نعت ﴿تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ طَيِّبِينَ﴾ طاهرين من الكفر ﴿يَقُولُونَ﴾ لهم عند الموت ﴿سَلَامٌ عَلَيْكُمُ﴾ ويقال لهم في الآخرة ﴿ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ ﴿هَلْ﴾ ما ﴿يَنظُرُونَ﴾ ينتظر الكفار ﴿إِلَّا أَن تَأْتِيَهُمُ﴾ بالتاء والياء ﴿الْمَلَائِكَةُ﴾ لقبض ارواحهم ﴿أَوْ يَأْتِيَ أَمْرُ رَبِّكَ﴾ العذاب أو القيامة المشتملة عليه ﴿كَذَٰلِكَ﴾ كما فعل هؤلاء ﴿فَعَلَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ من الأمم كذبوا رسلهم فاهلكوا ﴿وَمَا ظَلَمَهُمُ اللَّهُ﴾ باهلاكهم بغير ذنب ﴿وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ﴾ بالكفر ﴿فَأَصَابَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا﴾ اي جزاؤها ﴿وَحَاقَ﴾ نزل ﴿بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ﴾ اي العذاب

**ترجمه:** ددوی نه مخکښې خلقو هم مکر کړې وو او هغه نمرود وو، چا چې یو اوچته مناره جوړه کړې وه، چې په هغې باندې اوخیژی او اسمان والو سره جنګ اوکړی الله تعالی آخر هغه د هغې بنیادونه د جړو نه راوخکل، چې په هغې باندې ئې زلزله او خیلئی رولیږله او هغه توله ئې نیست ونابود کره، د هغوی په سرونو باندې د هغوی چتونه د بره نه راپریوتل، کوم وخت چې هغوی ددې لاندې وو او دوی باندې عذاب د هغه ځائې نه راغلو د کوم ځائې نه چې د هغوی خیال او ګمان هم نه وو، یعنی د داسې طرف نه چې د هغوی په خیال او خوب کښې هم نه وو، او وئیلې شوې دی چې دا تمثیل دې د هغه منصوبو ناکامولو د پاره کوم چې دوی د رسول الله ﷺ خلاف تیارې کړې وې، بیا به په ورځې د قیامت باندې هم الله تعالی دوی ذلیله کړی، او د فرشتو په ذریعه باندې به دوی ته په زورنې اووائی، ستاسو په ګمان کښې زما هغه شریکان اوس کوم ځائې دی چې د هغې په باره کښې به تاسو مومنانو سره جهګړې کولې، یعنی مومنانو سره به مو اختلاف کولو او چاته چې علم ورکړې شو یعنی نبیان او مومنان به وائی یقینا نن ورځ د کافرانو د پاره رسوائی او بدبختی ده، او دا خبره به د هغوی په مصیبتونو باندې د خوشحالیدو د وجه کوی، د کوم کافرانو روحونه چې فرشتې د کفر په حالت کښې قبض کوی چې د آخر وخت پورې کفر کولو سره ئې په خپل ځان باندې ظلم اوکړو، دا وخت دا خلق اسلحه ږدی، او د مرګ په وخت کښې د تسلیم او د رضا اظهار کوی، اووائی، مونږ خو هیڅ شرک نه کولو، نو فرشتې به اووائی او ولې نه الله ته خه پته ده، څه چې تاسو کول، هغه به تاسو ته د هغې سزا درکړی او دوی ته به اووئیلې شی اوس تاسو د جهنم په دروازو باندې د همیشه د پاره داخل شئ، هغه څه خراب د اوسیدو ځای دې د تکبر کونکو د پاره، او کوم خلق چې د شرک نه بچ کیږی، هغوی نه فرشتې تپوس کوی، ستاسو رب څه نازل کړې دی؟ نو هغوی جواب ورکوی چې صرف خیر ئې نازل کړې دې، یعنی کومو خلقو د ایمان په ذریعه سره په دې دنیا کښې نیکی اوکړه د هغوی د پاره صرف خیر دې، یعنی پاکه زندګی ده، او د آخرت کور یعنی جنت ډیر ښه دې، د دنیا نه او څه چې په دې دنیا کښې دی د هغې نه، الله

تعالى د جنت په باره کښې اوفرمائيل، جنت د متقيانو د پاره څه ښه کور دې، د هميشه اوسيدلو باغونه دي جنت عدن مبتدأ ده، يدخلونها ددې خبر دې. چې په هغې کښې بهٔ دوی داخليږي، چې د هغې لاندې به نهرونه بهيږي، او څه چې دا خلق په هغې کښې غواړي، هغه به ورته ملاويږي، الله تعالى پرهيزګارو ته داسې بدله ورکوی، هغه پرهيزګار چې د هغوی روحونه فرښتې په داسې حالت کښې قبض کوی چې هغوی د کفر نه پاک وی، فرښتې دوی ته د مرګ په وخت وائی ستاسو د پاره سلامتی ده، او په آخرت کښې به دوی ته اووئيلې شی د خپلو اعمالو په بدله کښې جنت ته داخل شئ. دوی ته صرف ددې خبرې انتظار دې چې فرښتې دوی لره د روح قبض کولو د پاره راشی، ياتيهم د ياء او تاء سره دې، يا ستا د رب حکم، يعنی عذاب يا د قيامت ورځ کومه چې په عذاب باندې مشتمله به وی راشی، دغه شان څنګه چې دوی وکړل د دوی نه مخکښې امتونو هم کړې وو، يعنی خپل رسولانو پورې ئې توقی اوکړې او هغوی ئې شهيدان کړل، هغوی لره بغير د جرم نه هلاک کولو د وجه الله په دوی باندې څه ظلم نه دې کړې خو هغوی د کفر په وجه په خپل ځان باندې ظلم کولو، نو دوی ته ددوی د خرابو اعمالو نتيجه ميلاؤ شوه، يعنی ددوی د اعمالو سزا دوی ته ميلاؤ شوه، او چې کوم عذاب پورې هغوی توقې کولې هم هغه عذاب په هغوی باندې نازل شو.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:قصد:** د اتيان اطلاق چونکه د الله د پاره ناممکن دې، ځکه ئې د (اتيان) تفسير مجازا په (قصد) سره اوکړو.

**قوله:بنيانهم:** ددې نه مخکښې مضاف محذوف دې، ای قصد استيصال بنيانهم

**قوله:لافسادما ابرموه:** يعنی تمثيل مراد اخستلو په صورت کښې د هغوی هغه منصوبې کومې چې هغوی تيارې کړې وې، ناکامه کول به مراد وی، نه چې د نمرود جوړ کړې شوې عمارت ورانول.

**قوله:ای يقول:** په دې کښې اشاره ده، چې ماضی په معنی د مضارع کښې ده، د تحقق وقوع د وجه نه د مضارع ئې په ماضی سره تعبير اوکړو.

**قوله:قائلين:** د قائلين اضافه ئې د کلام مضبوط او مربوط جوړولو د پاره کړې ده، ددې نه بغير په ماقبل او مابعد کښې ربط نه پاتې کيږی.

**قوله:نعت:** يعنی المتقين موصوف دې، او تتوفاهم ددې صفت دې، او طيبين د (تتوفاهم) د ضمير نه حال دې.

.......

[اياتونه: ٣٥ ـ ٤٠]

(وَقَالَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا) مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ (لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا عَبَدْنَا مِنْ دُونِهِ مِنْ شَيْءٍ نَحْنُ وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ دُونِهِ مِنْ شَيْءٍ) مِنَ الْبَحَائِرِ وَالسَّوَائِبِ فَإِشْرَاكُنَا وَتَحْرِيمُنَا بِمَشِيئَتِهِ فَهُوَ رَاضٍ بِهِ قَالَ تَعَالَى (كَذَلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ) أَيْ كَذَّبُوا رُسُلَهُمْ فِيمَا جَاؤُوا بِهِ (فَهَلْ) فَمَا (عَلَى الرُّسُلِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ) وَلَيْسَ عَلَيْهِمْ هِدَايَةٌ (وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا) كَمَا بَعَثْنَاكَ فِي هَؤُلَاءِ (أَنِ) أَيْ بِأَنِ (اعْبُدُوا اللَّهَ) وَحِّدُوهُ (وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ) الْأَوْثَانَ أَنْ تَعْبُدُوهَا (فَمِنْهُمْ مَنْ هَدَى اللَّهُ) فَآمَنَ (وَمِنْهُمْ مَنْ حَقَّتْ) وَجَبَتْ (عَلَيْهِ الضَّلَالَةُ) فِي عِلْمِ اللَّهِ فَلَمْ يُؤْمِنْ (فَسِيرُوا) يَا كُفَّارَ مَكَّةَ (فِي الْأَرْضِ فَانْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ) رُسُلَهُمْ مِنَ الْهَلَاكِ (إِنْ تَحْرِصْ) يَا مُحَمَّدُ (عَلَى هُدَاهُمْ) وَقَدْ أَضَلَّهُمُ اللَّهُ لَا تَقْدِرُ عَلَى ذَلِكَ (فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي) بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُولِ وَلِلْفَاعِلِ (مَنْ يُضِلُّ) مَنْ يُرِيدُ إِضْلَالَهُ (وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ) مَانِعِينَ مِنْ عَذَابِ اللَّهِ (وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ) أَيْ غَايَةَ اجْتِهَادِهِمْ فِيهَا (لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَنْ يَمُوتُ) قَالَ تَعَالَى (بَلَى) يَبْعَثُهُمْ (وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا) مَصْدَرَانِ مُؤَكِّدَانِ مَنْصُوبَانِ بِفِعْلِهِمَا الْمُقَدَّرِ أَيْ وَعَدَ ذَلِكَ وَحَقَّهُ حَقًّا (وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ) أَيْ أَهْلَ مَكَّةَ (لَا يَعْلَمُونَ) ذَلِكَ (لِيُبَيِّنَ) مُتَعَلِّقٌ بِيَبْعَثُهُمُ الْمُقَدَّرِ (لَهُمُ الَّذِي يَخْتَلِفُونَ) مَعَ الْمُؤْمِنِينَ (فِيهِ) مِنْ أَمْرِ الدِّينِ بِتَعْذِيبِهِمْ وَإِثَابَةِ الْمُؤْمِنِينَ (وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّهُمْ كَانُوا كَاذِبِينَ) فِي إِنْكَارِ الْبَعْثِ (إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ) أَيْ أَرَدْنَا إِيجَادَهُ وَقَوْلُنَا مُبْتَدَأٌ خَبَرُهُ (أَنْ نَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ) أَيْ فَهُوَ يَكُونُ وَفِي قِرَاءَةٍ بِالنَّصْبِ عَطْفًا عَلَى نَقُولَ وَالْآيَةُ لِتَقْرِيرِ الْقُدْرَةِ عَلَى الْبَعْثِ

ترجمه: او د مكې مشركانو اووئيل كه چرې الله تعالى غوښتله نو مونږ او زمونږ پلار نيكه به د هغه نه بغير د بل چا عبادت نه كولو او نه به مو د بحائرو او د سوائبو نه څه په خپلې مرضۍ سره حرام ګرځول، نو معلومه شوه، چې زمونږ شرک كول او حرام ګرځول، د هغه د خوښې مطابق دی، او هغه په دې راضي دې، او دغه شان حركت ددوی نه مخكښې خلقو كړې وو، يعنى رسول چې كوم حكم راوړې وو په هغې كښې دوی خپل رسول دروغژن اوګنړلو، نو آيا په رسولانو باندې د صفا صفا خبرې رسولو نه علاوه نور څه ذمه داری شته؟ يعنى په واضح توګه باندې د رسولو، او په دوی د هدايت وركولو ذمه داری نشته، څنګه چې په دوی كښې مونږ ته رسول جوړ كړې راليږلې ئې، دغه شان مونږ په هر قوم كښې رسولان ليږلې دی، چې اې خلقو تاسو صرف د الله عبادت اوكړئ. د هغه د توحيد عقيده اوساتئ، او د بتانو نه بچ شئ يعنى د هغوی د بندګئ نه بچ شئ، نو په دوی كښې څه داسې وو چې هغوی ته الله تعالى هدايت نصيب كړو، نوهغوی ايمان راوړو، او په دوی كښې څه داسې هم وو، چې په هغوی باندې د الله په علم كښې ګمراهي ليكلې شوې وه، چې د هغې د وجه نه هغوی ايمان راونړو، لهذا اې د مكې كافرانو تاسو په زمكه باندې ګرځئ او ګورئ چې د خپلو رسولانو تكذيب كونكو د هلاكت په ذريعه څنګه انجام اوشو؟ اې محمد ﷺ تاسو ددوی د هدايت

اګرچې هر څومره خواهشمند ئې او الله دوی ګمراه کړي دی، تاسو ددوی په هدايت باندې قادر نه يئ ځکه چې الله د چا د ګمراهۍ فيصله اوکړی نو بيا هغه ته هدايت نه ورکوی يهدی مجهول او معروف دواړه قراءتونه دی او نه به د هغوی مددګاروی يعنی د الله د عذاب نه بچ کونکي هغوی ډير درانه درانه قسمونه خوری يعنی ډير تاکيدی قسمونه چې الله به هيڅ کله مړه نه ژوندی کوی ولې نه خامخا به ئې ژوندی کوی، دا خو د هغه برحقه فيصله ده (وعدا، او حقا) دواړه مصدر تاکيدی دی، د خپل فعل مقدر د وجه نه منصوب دی، تقديری عبارت داسې دې وعد وعدا وحقه حقا خو اکثر خلق يعنی مکې والا دې باندې نه پوهيږی، داسې کيدل ځکه ضروری ده چې الله ددوی په مخکښې هغه حقيقت کولاؤ کړی د کوم دين په خبره کښې چې دوی د مومنانو سره جهګړې کوی، دوی ته په عذاب ورکولو او مومنانو له ثواب ورکولو سره، او ځکه هم ضروری ده چې کافرانو ته پته اولګی چې هغوی د بعث بعد الموت نه د انکار په باره کښې په غلطه دی (ليبين) د ببعثهم مقدر متعلق دې، کله چې مونږ د يو څيز د ايجادولو فيصله اوکړونو مونږ هغې ته وايو چې شه، نو هغه شی، قولنا مبتدأ ده، او (ان نقول..الخ) ددې خبر دې، او په يو قراءت کښې (يکون) په نصب سرد دې، په نقول باندې د عطف د وجه نه، او آيت د مرګ نه پس په ژوندی کولو باندې د قدرت د ثابتولو د پاره دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:فهوراض:** دا اضافه ددې شبهې جواب دې چې د کافرانو او د مشرکانو دا وينه وه چې زمونږ شريک کول او يو څيز حرامول د الله د خوښې او ارادې د وجې دی، دا خبره بالکل صحيح ده ځکه چې د الله د خوښې او ارادې نه بغير خو هيڅ هم نه کيږی نو بيا د دې نه د انکار کولو او ددې رد کولو څه وجه ده؟

**جواب:** (فهو راض به) سره ددې شبهې جواب دې خلاصه داده چې د الله د مشيت او ارادې نه مقصد ددوی د الله راضی مندی ده حالانکه مشيت او ارادې د پاره رضامندی ضروری نه ده۔

**قوله:الابلاغ البين:** د البلاغ المبين تفسير په الابلاغ البين سره کولو کښې دې ته اشاره اوشوه چې دوراه په معنی کښې متعدی دې.

**قوله:ان تعبدوها:** په دې کښې د حذف مضاف طرف ته اشاره ده ځکه چې صرف د بتانو نه د بچ کيدو هيڅ مقصد نشته.

**قوله:لا تقدر:** په دې کښې اشاره ده چې د (ان تحرص) جزاء محذوف ده، او هغه جزاء لا تقدر علی ذلک ده.

قوله: بالبناء للمفعول: ددې وجه دا ده چې (من يضل) مبتدأ ده او (لا يهدى) ددې خبر دې معنی ئې دا ده من يضل الله لا يهدى اليه لعدم تغيير فعل الله تعالى

قوله: من يريد اضلاله: يعني كه د (من يضل) نه حقيقة ضلالت مراد وی، نو بيا د هدايت د نفی ضرورت نشته.

قوله: ليبين: متعلق بمضمر المقدر، ددې عبارت مطلب دادې چې د (ليبين) تعلق د (يبعثهم) سره دې، نه چې (لا يعلمون) سره، لهذا دا شبهه ختمه شوه، چې د (ليبين) د (لا يعلمون) علت جوړيدل صحيح نه دی، اوس تقديری عبارت څه دا رنګه به وی انهم يبعثون ليبين لهم الذى يختلفون فيه.

قوله: اي فهو يكون: په دې كښې اشاره ده چې دا د مبتدأ محذوف خبر دې، او جمله په محل د نصب كښې دې، او كومو حضراتو چې يكون جواب امر ګرځولو سره منصوب منلې دې هغه صحيح نه ده، ځكه چې دواړه مصدرونه متحد دی، حالانكه په جواب امر كښې دا شرط دې چې اول د دويم د پاره سبب وی او دا تغاير غواړی، د نصب صورت هم صحيح دې كه په (نقول) باندې عطف وی نه چې د جواب امر كيدو د وجه نه، ګنی يو موجود (مكون) د پاره (دوه وجوده) يعنی د دوو كونونو راتلل به لازم راشی، چې په هغې كښې به يو د بل سبب وی.

قوله: والاية لتقرير القدرة على البعث: ددې عبارت د اضافې مقصد دې اعتراض لره ختمول دی چې الله تعالى قول (كن) يا خو به موجود ته وی، په دې صورت كښې به تحصيل د حاصل راشی، يا به دا معدوم ته خطاب وی، نو معدوم ته به خطاب لازم شی كوم چې محال او ناممكن دې؟

د جواب خلاصه داده چې د (كن) مقصد دقدرت على البعث اثبات دې، او سرعت في الايجاد دې، لهذا اوس څه اعتراض نشته.

[اياتونه: ٤١ _ ٥٠]

(وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي اللَّهِ) لِإِقَامَةِ دِينِهِ (مِنْ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا) بِالْأَذَى مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ وَهُمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُه (لَنُبَوِّئَنَّهُمْ) نُنْزِلُهُمْ (فِي الدُّنْيَا) دَارًا (حَسَنَةً) هِيَ الْمَدِينَةُ (وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ) أَيِ الْجَنَّةُ (أَكْبَرُ) أَعْظَمُ (لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ) أَيِ الْكُفَّارُ أَوِ الْمُتَخَلِّفُونَ عَنِ الْهِجْرَةِ مَا لِلْمُهَاجِرِينَ مِنَ الْكَرَامَةِ لَوَافَقُوهُمْ هُمْ (الَّذِينَ صَبَرُوا) عَلَى أَذَى الْمُشْرِكِينَ وَالْهِجْرَةِ لِإِظْهَارِ الدِّينِ (وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ) فَيَرْزُقُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُونَ (وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُوحِي إِلَيْهِمْ) لَا مَلَائِكَةً (فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ) الْعُلَمَاءَ بِالتَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ (إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ) ذَلِكَ فَإِنَّهُمْ يَعْلَمُونَهُ وَأَنْتُمْ إِلَى تَصْدِيقِهِمْ أَقْرَبُ مِنْ تَصْدِيقِ الْمُؤْمِنِينَ

بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿بِالْبَيِّنَاتِ﴾ مُتَعَلِّق بِمَحْذُوفٍ اَيْ اَرْسَلْنَاهُمْ بِالْحُجَجِ الْوَاضِحَة ﴿وَالزُّبُرِ﴾ الْكُتُب ﴿وَاَنْزَلْنَا اِلَيْكَ الذِّكْرَ﴾ القرآن ﴿لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ اِلَيْهِمْ﴾ فِيْهِ مِنَ الْحَلَال وَالْحَرَام ﴿وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ﴾ فِي ذٰلِكَ فَيَعْتَبِرُوْنَ ﴿اَفَاَمِنَ الَّذِيْنَ مَكَرُوا﴾ المكرات ﴿السَّيِّئَاتِ﴾ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دَار النَّدْوَة مِنْ تَقْيِيْدِه اَوْ قَتْله اَوْ اِخْرَاجه كَمَا ذُكِرَ فِي الْاَنْفَال ﴿اَنْ يَّخْسِفَ اللّٰهُ بِهِمُ الْاَرْضَ﴾ كَقَارُوْن ﴿اَوْ يَاْتِيَهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُوْنَ﴾ اَيْ مِنْ جِهَة لَا تَخْطُر بِبَالِهِمْ وَقَدْ اُهْلِكُوا بِبَدْرٍ وَلَمْ يَكُوْنُوا يُقَدِّرُوْنَ ذٰلِكَ ﴿اَوْ يَاْخُذَهُمْ فِيْ تَقَلُّبِهِمْ﴾ فِي اَسْفَارِهِمْ لِلتِّجَارَةِ ﴿فَمَا هُمْ بِمُعْجِزِيْنَ﴾ بِفَائِتِي الْعَذَاب ﴿اَوْ يَاْخُذَهُمْ عَلٰى تَخَوُّفٍ﴾ تَنَقُّص شَيْئًا فَشَيْئًا حَتّٰى يَهْلِكَ الْجَمِيْع حَال مِنَ الْفَاعِل اَوِ الْمَفْعُوْل ﴿فَاِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ﴾ حَيْثُ لَمْ يُعَاجِلْهُمْ بِالعقوبة ﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ﴾ له ظل كشجرة وجبل ﴿يَتَفَيَّؤُا﴾ يميل ﴿ظِلٰلُهٗ عَنِ الْيَمِيْنِ وَالشَّمَآئِلِ﴾ جَمْع شِمَال اَيْ عَنْ جَانِبَيْهِمَا اَوَّل النَّهَار وَآخِره ﴿سُجَّدًا لِّلّٰهِ﴾ حَال اَيْ خَاضِعِيْنَ لَهُ بِمَا يُرَاد مِنْهُمْ ﴿وَهُمْ﴾ اَيِ الظِّلَال ﴿دٰخِرُوْنَ﴾ صَاغِرُوْنَ نُزِّلُوا منزلة العقلاء ﴿وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ مِنْ دَآبَّةٍ﴾ اَيْ نَسَمَة تَدِبُّ عَلَيْهَا اَيْ تَخْضَعُ لَهُ بِمَا يُرَاد مِنْهَا وَغَلَّبَ فِي الْاِتْيَان بِمَا لَا يَعْقِل لِكَثْرَتِهِ ﴿وَالْمَلٰٓئِكَةُ﴾ خَصَّهُمْ بِالذِّكْرِ تَفْضِيْلًا ﴿وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ﴾ يَتَكَبَّرُوْنَ عن عبادته ﴿يَخَافُوْنَ﴾ اَيِ الْمَلَائِكَة حَال مِنْ ضَمِيْر يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿رَبَّهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ﴾ حَال مِنْ هُمْ اَيْ عَالِيًا عَلَيْهِمْ بِالْقَهْرِ ﴿وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ﴾ بِهٖ

ترجمه: او هغه خلق چا چې د الله دين قائمولو دپاره د اهل مكه د تكليفونو ظلم زغملو نه بعد خپل وطن پرېښودلو او هغه نبي ﷺ او د هغه اصحاب دي، مونږ به هغوی ته په دنيا كښې بهترين ځائې وركړو او هغه ځائې مدينه ده او د آخرت اجر يعنی جنت ډير لوئې دې كاش كافر يا نه هجرت كونكی دې خبره باندې پوهيدلې، چې د مهاجرو د پاره كومې مرتبې دی نو خامخا به ئې دمهاجرينو په هجرت كښې موافقت كولو دا هغه خلق دی چا چې د مشركانو د تكليفونو او د دين د ښكاره كولو د پاره په هجرت باندې صبر اوكړو او په خپل رب باندې بهروسه كوی، نو هغه هغوی ته داسې طريقې سره رزق وركوی چې هغوی ته وهم او گمان هم نه وی اوستاسو نه مخكښې هم مونږ رسولان خلقو ته راليږل، چې هغوی طرف ته مونږ وحی ليږله نه چې فرشتو لره نو تاسو پوهه والو يعنی د تورات زبور او د انجيل د عالمانو نه معلوم كړئ كه چرې تاسو دې باره كښې نه پوهيږئ، ځكه چې هغوی دې باره كښې علم لری او تاسو د هغوی تصديق ته ډير نزدې يئ، په نسبت د تصديق د مومنانو په رسول الله ﷺ باندې. او مونږ هغوی په دلائلو سره اوليږل (بالبينت) د محذوف متعلق دې، يعنی مونږ هغوی په واضحه دليلونه سره اوليږل، او كتابونو سره او مونږ په تا باندې ذكر (قرآن) نازل كړو، چې دوی په دې كښې غور او فكر اوكړی، او عبرت حاصل كړی آيا هغه خلق كوم چې د نبی سره په دارالندوه كښې د حضور ﷺ د قيد يا د قتل يا د وطن نه د ويستلو په باره

کښې بدترین چالونه جوړوي څنګه چې په سورة انفال کښې ذکر کړې شوې دی د دې خبرې نه بې ویرې شوې دی چې الله به دوی د قارون په شان په زمکه کښې ښخ کړي یا به دوی باندې عذاب داسې ځائې نه راشی چې دوی ته به وهم او ګمان هم نه وی یعنی د داسې طرف نه چې د هغې په باره کښې چرته د دوی په زړه کښې خیال هم تیر شوې نه وی، او دوی په بدر کښې هلاک کړې شول، او دوی چرته داسې سوچ هم کړې نه وو، یا دوی به د تجارتی سفر په دوران کښې په تلو راتلو کښې ګیر کړې، او دوی هغه عاجزه کولې نه شی، یعنی د هغه د عذاب نه بچ کیدلې نشی، یا به ددوی په مزه مزه نیول کوی تر دې چې ټول هلاک کړی، (علی تخوف) د فاعل یا د مفعول نه حال دې، ستاسو پروردګار ډیر شفقت والا او ډیر مهربانه دې، ځکه ددوی زر نیول نه کوی آیا دوی هغه څیزونه او نه لیدل چې کوم الله تعالی سوری والا پیدا کړل، لکه چې اونې او غرونه چې د هغې سورې په ټیټه باندې الله تعالی ته سجده کوی، شمائیل د شمال جمع ده، یعنی دا څیزونه ښی او چپ طرف ته، د ورځې په اوله حصه کښې او دویمه حصه کښې (سجدا) د ظلاله د ضمیر نه حال دې، یعنی چې کوم ددوی نه مطلوب دې، هغې ته سر خکته کوی او هغه سورې اظهار د عاجزئی کوی او سورې ئې د ذوی العقول په درجه کښې واچو، او د اسمانونو او د زمکې هر ساه لرونکې کوم چې په زمکه باندې ګرځی، الله تعالی ته سجده کوی، یعنی څه چې د هغې نه مطلوب دې هغې ته سر لاندې کوی او (ما) راوړلو سره غیر ذوی العقول ته د زیاتوالی د وجه په ذوی العقول باندې غلبه ورکړې شوې ده، او فرشتې هم سجده کوی د هغوی د فضیلت د وجه نه په خصوصیت سره د هغوی ذکر اوشو، او هغوی د هغه د عبادت نه تکبر نه کوی، او فرشتې په داسې حال کښې چې د خپل رب نه کوم چې په غلبه کښې ددوی د پاسه دې، ویریږی، او دوی ته چې کوم حکم ورکړې شی، د هغې پورا والې کوی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: لاقامة دینه: په دې اضافه کښې ددې سوال جواب دې، چې په (فی الله) کښې لفظ (الله) د مهاجرت ظرف واقع شوې دې، حالانکه د الله ظرف واقع کیدل هیڅ معنی نه لری، د جواب حاصل دادې چې (فی) په معنی د لام دې، او مضاف محذوف دې، فی الله ای لدین الله.

**قوله**: لنبوانهم: (د تفعیل) نه مضارع جمع متکلم لام تاکید بانون ثقیله، مونږ دوی خامخا کوزوو، خامخا به ځائې ورکوو، ماده ئې (بوء) ده، او (هم) ضمیر دلته د جمع مذکر غائب دې.

**قوله**: دارا: په دې اضافه کښې د (حسنة) د تانیث علت طرف ته اشاره ده.

**قوله**: ای الکفار او المتخلفون عن الهجرة: په دې کښې د یعلمون په ضمیر کښې د دوو احتمالاتو طرف ته اشاره ده.

قوله: ما للمهاجرين: دا د يعلمون مفعول دې.

قوله: لو علمهم: په دې كښې اشاره ده چې د (لو) جواب محذوف دې.

قوله: فانهم ليعلمونه: دا د (ان) شرطيه جواب دې كوم چې محذوف دې.

قوله: متعلق بمحذوف: يعنى بالبينت، دارسلنا محذوف متعلق دې، نه چې د ما ارسلنا مذكور، او نه د نوحى، او نه د تعلمون، ځكه چې په اولنى دوو صورتونو كښې متعلق او متعلق په مينځ كښې فصل بالاجنبى راځى، او هغه فاسئلوا اهل الذكر دې او په دريم صورت كښې شرط د تبكيت او د الزام د پاره دې، ځكه چې د د دوى د عالم كيدو نفى ثابته ده.

قوله: المكرات: دا د (السيئات) وجه تانيث طرف ته اشاره ده.

قوله: يتفيؤا: مضارع واحد مذكر غائب، مصدر تفيّى، (تفعل) ماده ئې (فى) معنى ئې ده (تيتيكى)

قوله: تنقص: د تخوف تفسير په تنقص سره كول د معنى د بيان د پاره دې، ځكه چې د تخوف معنى د ويرې د پاره هم راځى، او په قلار قلار كمولو د پاره هم، دا كمې اگرچې په نفس كښې وى يا په مال كښې، مفسر علام دلته هم دغه معنى مراد اخستلې ده، يقال تخوف الشئ اى تنقصه.

قوله: حال من الفاعل او المفعول: يعنى (على تخوف) يا خو د (ياخذ) د ضمير نه حال دې، يا د (هم) د ضمير نه.

قوله: جمع شمال: دا د انسان د ښى او گس نه كنايه ده، او غالبا د (يمين) مفرد راوړلو كښې د (ما) د لفظ، او د شمائل په جمع راوړلو كښې د (ما) د معنى رعايت كړې دې، ځنكه چې په ظلاله كښې د (ما) د لفظ رعايت دې، او په سجدا كښې د (ما) د معنى.

قوله: نزلوا منزلة العقلاء: په دې كښې د يوې شبهې جواب دې، چې واؤ نون سره جمع د ذوى العقول راوړلې شى، او ظلال د ذوى العقول نه نه دې، حالانكه ددې جمع داخرون د واؤنون سره راوړلې شوې ده؟

جواب: چونكه ظلال ته د دخور (يعنى د عاجزئ) نسبت شوې دې، كوم چې د ذوى العقول صفت دې، ځكه واو نون سره جمع راوړلې شوه.

قوله: من دابة: دا د ما فى السموات وما فى الارض بيان دې، او په دې كښې ددې سوال جواب طرف ته اشاره ده، چې دابة هغې ته وئيلې شى، كوم چې په زمكه باندې گرځى، لهذا په دې كښې هغه مخلوق شامل نه دې، كوم چې په اسمانونو او فضا كښې حركت كوى، او گرځى؟

ددې جواب ئې دا ورکړې دې چې ان الدبيب هي حركة جسمانية سواء كان في الارض او في السماء لهذا دا وئيل چې دابه صرف ما يدب على الارض ته وئيلې شي، چې په هغې کښې ملائکې وغيره داخل نه دى، صحيح نه دى.

[ايا قوله ۵۱ ـ ۶۰]

{وَقَالَ اللّٰهُ لَا تَتَّخِذُوا إِلٰهَيْنِ اثْنَيْنِ} تأكيد {إِنَّمَا هُوَ إِلٰهٌ وَاحِدٌ} أتى به لإثبات الإلهية والوحدانية {فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ} خافون دون غيري وفيه التفات عن الغيبة {وَلَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} ملكًا وخلقًا وعبيدًا {وَلَهُ الدِّينُ} الطاعة {وَاصِبًا} دائمًا حال من الدين والعامل فيه معنى الظرف {أَفَغَيْرَ اللّٰهِ تَتَّقُونَ} وهو الإله الحق ولا إله غيره والاستفهام للإنكار والتوبيخ {وَمَا بِكُمْ مِنْ نِعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ} لا يأتي بها غيره وما شرطية أو موصولة {ثُمَّ إِذَا مَسَّكُمُ} أصابكم {الضُّرُّ} الفقر والمرض {فَإِلَيْهِ تَجْأَرُونَ} ترفعون أصواتكم بالاستغاثة والدعاء ولا تدعون غيره {ثُمَّ إِذَا كَشَفَ الضُّرَّ عَنْكُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِنْكُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُونَ لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ} من النعمة {فَتَمَتَّعُوا} باجتماعكم على عبادة الأصنام أمر تهديد {فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ} عاقبة ذلك {وَيَجْعَلُونَ} أي المشركون {لِمَا لَا يَعْلَمُونَ} أنها تضر ولا تنفع وهي الأصنام {نَصِيبًا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ} من الحرث والأنعام بقولهم هذا لله وهذا لشركائنا {تَاللّٰهِ لَتُسْأَلُنَّ} سؤال توبيخ وفيه التفات عن الغيبة {عَمَّا كُنْتُمْ تَفْتَرُونَ} على الله من أنه أمركم بذلك {وَيَجْعَلُونَ لِلّٰهِ الْبَنَاتِ} بقولهم الملائكة بنات الله {سُبْحَانَهُ} تنزيهًا له عما زعموا {وَلَهُمْ مَا يَشْتَهُونَ} هـ أي البنون والجملة في محل رفع أو نصب بيجعل المعنى يجعلون له البنات التي يكرهونها وهو منزه عن الولد ويجعلون لهم الأبناء الذين يختارونهم فيختصون بالأبناء لقوله {فَاسْتَفْتِهِمْ أَلِرَبِّكَ الْبَنَاتُ وَلَهُمُ الْبَنُونَ} {وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُمْ بِالْأُنْثَىٰ} تولد له {ظَلَّ} صار {وَجْهُهُ مُسْوَدًّا} متغيرًا تغير مغتم {وَهُوَ كَظِيمٌ} ممتلئ غمًا فكيف تنسب البنات إليه تعالى {يَتَوَارَىٰ} يختفي {مِنَ الْقَوْمِ} أي قومه {مِنْ سُوءِ مَا بُشِّرَ بِهِ} خوفًا من التعيير مترددًا فيما يفعل به {أَيُمْسِكُهُ} يتركه بلا قتل {عَلَىٰ هُونٍ} هوان وذل {أَمْ يَدُسُّهُ فِي التُّرَابِ} بأن يئده {أَلَا سَاءَ} بئس {مَا يَحْكُمُونَ} حكمهم هذا حيث نسبوا لخالقهم البنات اللاتي هن عندهم بهذا المحل {لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ} أي الكفار {مَثَلُ السَّوْءِ} أي الصفة السوأى بمعنى القبيحة وهي وأدهم البنات مع احتياجهم إليهن للنكاح {وَلِلّٰهِ الْمَثَلُ الْأَعْلَىٰ} الصفة العليا وهو أنه لا إله إلا هو {وَهُوَ الْعَزِيزُ} في ملكه {الْحَكِيمُ} في خلقه

ترجمه: الله تعالى فرمائيلي دى چې دوه معبودان مه جوړوئ اثنين د الهين تاكيد دې، معبود خو صرف هغه يو واحد دې دا د وحدانيت او د الوهيت ثابتولو د پاره راوړې دې نو تاسو ټول ځما ويره کوئ يعني ځما نه ويريږئ نه چې د بل چا نه، په دې کښې غيبت نه تکلم طرف ته التفات دې په اسمانونو او زمکه کښې چې څه دى ټول د هغه دى، د ملک، مخلوق او غلام کيدو په اعتبار سره او تابعدارى هميشه د هغه لازم ده واصبا د دين نه حال دې، او په

دي کېږي عامل ظرف دي (اى ثبت له الدين) آيا بيا هم تاسو د غير الله نه ويريږئ؟ معبود برحق هم هغه دي، د هغه نه سوا بل معبود نشته، او استفهام د انکار يا د توبيخ د پاره دي او تاسو سره چې څومره هم نعمتونه دي نو هغه د الله ورکړي شوي دي يعنی دا نعمتونه د الله نه سوا بل څوک ورکولې نشي، او ما شرطيه يا موصوله ده، نو اوس هم چې تاسو ته څه فقيري مرض وغيره مصيبت راشي نو تاسو هم هغه ته فرياد او ژړا کوئی يعنی د فرياد اوريدلو د پاره هغه ته په زوره زوره آوازونه کوئی او د هغه غير ته اواز نه کوئی او کله چې هغه ستاسو مصيبت لرې کړو نو په تاسو کښې يوه ډله د خپل رب سره شرک شروع کړی چې د هغه نعمتونو ناشکری اوکړی، کوم چې مونږ هغوی ته ورکړي دی، خه نو د بتانو په عبادت باندې په يوځائ څه مزې واخلئ د دې انجام به تاسو ته معلوم شی او مشرکان د هغه چا د پاره کوم چې نه پيژنی چې هغه نه نقصان رسولې شی او نه نفع رسولې شی، او هغه بتان دی، زمونږ د ورکړې شوي رزق نه چې هغه پتی او څناور دی دا وئيلو سره حصه لګوی چې دا د الله دی او دا زمونږ د شريکانو بتانو د پاره دی والله تاسو چې په الله باندې کوم الزام لګوئ چې هغه مونږ ته د شرک حکم راکړې دې دې باره کښې به تاسو نه ضرور تپوس کيږی په دې کښې د غيبت نه خطاب ته التفات دې او هغوی د الله د پاره دا وئيلو سره چې فرشتې د الله لوريانډې دی لوريانې ثابتوی دوی چې کومه عقيده لری الله د دې نه پاک دې او د ځان د پاره هغه څه ثابتوی کوم چې دوی ته خوښ وی يعنی هلکان، جمله د ما يشتهون په محل د رفع کښې ده يا د جعل د وجه نه په محل د نصب کښې ده، د آيت معنی داده چې د الله د پاره لوريانې خوښوی کومې چې دوی خپله ځان دپاره نه خوښوی حالانکه هغه خو داولاد نه پاک دې او د ځان د پاره هلکان ثابتوی کوم چې دوی ځان دپاره خوښوی، يعنی ځامن د ځان د پاره مخصوص کوی، دليل د الله قول دې تاسو دوی نه تپوس اوکړئ چې آيا ستاسو رب د پاره جينکئ دی او دوی د پاره لوريانې؟ او چې کله په د دوی کښې چا ته د جينئ پيدا کيدو خوشخبری ورکړې شی، نو د هغه مخ تور شی يعنی داسې بدل شی لکه چې يو غم ذپلې، او دې په زړه زړه کښې خفه کيږی يعنی د غم نه ډک وی، نو بيا د الله تعالی طرف ته د جينکو نسبت ولې کولې شی؟ او دې خراب خبر د وجه نه په خپل قوم کښې د شرم نه پټ پټ ګرځی، او دې خفکان کښې پروت وی چې د دې نوی بچی به څه کوم؟ آيا په ذلت سره بغير د قتل نه ئې ځان سره ايسار کړی يعنی ژوندې ئې پريږدی يا ئې هغه په خاورو کښې دفن کړی يعنی هغه ژوندې خبښ کړی آه، دا څنګه غلطې فيصلې کوی يعنی ددوی دا حکم چې د خپل خالق طرف ته د لوريانو نسبت کوی چې کوم خپلې ددوی په نيز د سپکوالی په درجه کښې دی د دې کافرانو کوم چې په آخرت باندې ايمان نه لری، ډير خراب مثال دې، يعنی ډير خراب صفت دې، او (السوئ) په معنی د قبيحه دې اودا (بد صفت) ددوی جينکو لره

ژوندئ دفن کول دی ددوی سره د نکاح دحاجت باوجود اود الله خو ډیر لوئي صفت دي (ای الصفة العليا) او هغه دا دي چې د هغه نه سوا بل د عبادت لائق نشته، هغه په خپله بادشاهئ کښې غالب دې، او د خپل مخلوق په باره کښې باحکمت دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: تاکيد:** يعنی (اثنين) د (الهين) تاکيد دي، د لاتتخذوا الهين اثنين په ترکيب کښې دوه قولونه دی او په لفظ د اثنين کښې دوه احتماله دی

①دا چې اثنين د الهين تاکيد دې، په دې صورت کښې لاتتخذوا په يو مفعول سره متعدی دې، او لا تتخذوا به په معنی د لا تعبدوا وی.

②دويم احتمال دا دې چې لا تتخذوا متعدی په دوه مفعول سره دې، مفعول ثانی محذوف دې، ای لاتتخذوا الهين معبودا، الهين مفعول اول دې، او اثنين ددې تاکيد دې، او معبودا مفعول ثانی دې، کوم چې محذوف دې.

**دويم قول:** دا چې (اثنين) د لا تتخذوا مفعول اول دې، خودې لره روستو کړې شوې دې، او الهين مفعول ثانی دې کوم چې لفظا مقدم دې، اصل عبارت دا دې، لاتتخذوا اثنين الهين.

**قوله: الهين اثنين:**

**سوال:** الهين د تثنيه په وجه په خپله په دوو باندې دلالت کوی په دې کښې د معدود ضرورت نه وی دغه شان په اله واحد کښې هم د معدود د ذکر کولو ضرورت نشته، ځکه چې الهين او اله دواړه په عدد او معدود دواړو باندې دلالت کوی، البته د اثنين نه بره د پاره د معدود راوړل ضروری دی، مثلا رجل، يو سړې، د رجل واحد وئيلو ضرورت نشته، دغه شان رجلين دوه سړی، پدې کښې د رجلين اثنين وئيلو ضرورت نشته، په خلاف د رجال ثلثة، او نساء ثلثة نه، چې په دې کښې د معدود د ذکر کولو ضرورت شته، ځکه چې رجال او نساء مبهم دې، ددې ابهام لرې کولو د پاره د معدود ضرورت شته؟

**جواب:** ددې سوال جواب په يو څو طريقو باندې دې

①په عبارت کښې تقديم او تاخير دې، تقدير دادې لاتتخذوا اثنين الهين

②يو څيز چې کله مستنکر او قبيح وی او ددې په قباحت کښې مبالغه مقصود وی نو دا په ډير عبارت سره تعبير کوی چې کثرتِ حروف په کثرتِ معانی باندې دلالت اوکړی.

**قوله: اتی به لاثبات الواحدنية:** دا ددې سوال جواب دې چې اله خپله په واحد باندې دلالت کوی بيا د واحد راوړلو څه ضرورت؟

**جواب:** صرف اله ذکر کولو سره دا شبه کيدې شوه چې کيدې شی صرف الوهيت ثابتول مقصود وی، ددې وجه نې د واحد اضافه اوکړه چې په الوهيت او وحدانيت دواړو

باندې دلالت اوکړي.
لهذا دا اعتراض ختم شو، چې لفظ اله، په جنسيت او وحدانيت دواړو باندې دلالت کوی لهذا د واحد سره د تاکيد حاجت نشته.

قوله: الطاعة: په دې کښې اشاره ده چې دين په معنی د طاعت دې نه چې په معنی د جزاء، ځکه چې جزاء دائما نه ده، ځکه چې جزاء به په آخرت کښې وی.

قوله: واصب: دا د وصوب نه اسم فاعل واحد مذکر غائب دې، قائم پاتې کيدونکې، هميشه پاتې کيدونکې.

قوله: حال: يعنی واصبا، د (دين) نه حال دې نه چې صفت، ځکه چې نکره د معرفې نه صفت نه واقع کيږی، او عامل په دې کښې هغه فعل دې کوم چې د جار مجرور نه مفهوم کيږی، ای استقر بالثبته او بعضې د استقر يا د ثبت د ضمير مستتر نه حال ګرځولې دې، او معنی په دواړو صورتونو کښې يوه ده، تقديری عبارت دادې استقر الدين وثبت له حال کونه دائما.

قوله: تجأرون: تاسو فرياد کوئی، تاسو آوازونه اوچتوی، الجوار رفع الصوت فی الدعاء مضارع جمع مذکر حاضر.

قوله: ولا تدعون غيره: ددې اضافې مقصد په اليه تجأرون کښې د ظرف د تقديم د فائدې يعنی تخصيص طرف ته اشاره ده.

قوله: امر تهديد: يعنی فتمتعوا کښې امر د تهديد د پاره دې.

قوله: لما لا يعلمون انها: د يعلمون ضمير مشرکينو طرف ته راجع دې، او ما ته راجع ضمير محذوف دې کوم چې علامه سيوطی رحمه الله په انها سره ښکاره کړې دې، لهذا د عدم عائد اعتراض ختم شو، تقديری عبارت دادې لا يعلمونها انهم الهة ويعتقدون فيها انها تضر وتنفع وليس كذلك لانها جماد لا تنفع ولا تضر

قوله: والجملة فی محل رفع او نصب بيجعل: يعنی ولهم ما يشتهون کښې دوه اعراب جائز دی، اول (ما يشتهون) جمله په محل د رفع کښې، او (لهم) د محذوف (ثابت) وغيره متعلق کيدو سره خبر مقدم، او (البنات) باندې د عطف د وجه نه د يجعل مفعول کيدو د وجه نه منصوب دې.

قوله: سبحانه: دا د معطوف او معطوف اليه په مينځ کښې جمله معترضه ده، نه چې فصل بالاجنبی.

قوله: يختارونها: په نسخ متداوله کښې دغه شان دی او ښکاره ده چې يختارونهم پکار وو، ځکه چې ضمير ابناء ته راجع دې.

**قوله:** الذين يختارون: دا اضافه د يو سوال جواب دي.

**سوال:** سوال دا دي چې د يجعلون ضمير فاعل كوم چې كفارو ته راجع دي او د مفعول ضمير كوم چې (لهم) دي د دواړو مصداق يو دي، او هغه كفار دي حالانكه د علم نحو قاعده ده چې د فاعل او مفعول د ضميرونو تعدد د نفس د واسطې نه بغير جائز نه دي، سوا د باب د ظن نه، او د هغې د اخواتو نه، دغه وجه ده چې زيد ضربه، جائز نه دي البته زيد ظنه قائما اى نفسه وئيل صحيح دى؟

**جواب:** الذين يختارون سره هم دغه سوال جواب دي، چې يجعلون په معنى د يختارون دي، ځكه چې اختيار د دوو مفعولو تقاضه نه كوى، او يو مفعول مايشتهون دي، لهذا لام به د اجل په معنى كښې وى.

**قوله:** بمعنى القبيحة: دا ددې سوال جواب دې چې مثل په معنى د صفت مؤنث دي او السوء مذكر دې حالانكه په موصوف صفت كښې مطابقت ضرورى دى؟

د جواب حاصل دادې چې السوء، السواى قبيحة په معنى كښې دې لهذا موافقت موجود دي.

**قوله:** الصفة العليا: دا اضافه دغه شان سوال جواب دي.

**[اياتونه: ٦١ ـ ٦٥]**

{وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللَّهُ النَّاسَ بِظُلْمِهِمْ} بِالْمَعَاصِي {مَا تَرَكَ عَلَيْهَا} أَيِ الْأَرْض {مِنْ دَابَّةٍ} نَسَمَة تَدِبّ عَلَيْهَا {وَلَكِنْ يُؤَخِّرُهُمْ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ} عَنْهُ {سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ} عَلَيْهِ {وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ مَا يَكْرَهُونَ} لِأَنْفُسِهِمْ مِنَ الْبَنَات وَالشَّرِيك فِي الرِّيَاسَة وَإِهَانَة الرُّسُل {وَتَصِفُ} تَقُول {أَلْسِنَتُهُمْ} مَعَ ذَلِكَ {الْكَذِبَ} وَهُوَ {أَنَّ لَهُمُ الْحُسْنَى} عِنْد اللّه أَيِ الْجَنَّة لِقَوْلِهِ {وَلَئِنْ رُجِعْتُ إِلَى رَبِّي إِنَّ لِي عِنْدَهُ لَلْحُسْنَى} قَالَ تَعَالَى {لَا جَرَمَ} حَقًّا {أَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَأَنَّهُمْ مُفْرَطُونَ} مَتْرُوكُونَ فِيهَا أَوْ مُقَدَّمُونَ إِلَيْهَا وَفِي قِرَاءَة بِكَسْرِ الرَّاء أَيْ مُتَجَاوِزُونَ الْحَدّ {تَاللَّهِ لَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَى أُمَمٍ مِنْ قَبْلِكَ} رُسُلًا {فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ} السَّيِّئَة فَرَأَوْهَا حَسَنَة فَكَذَّبُوا الرُّسُل {فَهُوَ وَلِيُّهُمُ} مُتَوَلِّي أُمُورهمْ {الْيَوْمَ} أَيْ فِي الدُّنْيَا {وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِم فِي الْآخِرَة وَقِيلَ الْمُرَاد بِالْيَوْمِ يَوْم الْقِيَامَة عَلَى حِكَايَة الْحَال الْآتِيَة أَيْ لَا وَلِيّ لَهُمْ غَيْره وَهُوَ عَاجِز عَنْ نَصْر نَفْسه فَكَيْفَ يَنْصُرهُمْ {وَمَا أَنْزَلْنَا عَلَيْكَ} يَا مُحَمَّد {الْكِتَابَ} الْقُرْآن {إِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي اخْتَلَفُوا فِيهِ} مِنْ أَمْر الدِّين {وَهُدًى} عَطْف عَلَى لِتُبَيِّن {وَرَحْمَةً لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ} بِهِ {وَاللَّهُ أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ} بِالنَّبَاتِ {بَعْدَ مَوْتِهَا} يُبْسهَا {إِنَّ فِي ذَلِكَ} الْمَذْكُور {لَآيَةً} دَالَّة عَلَى الْبَعْث {لِقَوْمٍ يَسْمَعُونَ} سَمَاع تَدَبُّر

**ترجمه:** كه د گناهونو په وجه الله د خلقو نيول كول نو په زمكه باندې به ئې يو هم تلونكې (ساه اخستونكې) نه وو پرېخودلې خو هغه دوى ته يو مقرر وخت پورې مهلت وركوى نو چې كله د دوى

وخت مقرره راشي نو دوی د هغې نه يو ساعت نه مخکښې کيږی او نه روستو کيږی، او د الله د پاره هغه څيز ثابت کوی کوم چې دوی خپله خپل ځان د پاره نه خوښوی او هغه څيزونه لورياني او په ملک کښې شرکت او د رسول الله ﷺ سپکوالې دې، او ددې سره سره دوی دروغ وائي او هغه دا چې ددوی د پاره د الله په نيز ښه بدله ده، يعنی جنت څنګه چې دوی وائي که چرې څه الله طرف ته واپس شوم نو يقينا خما د پاره هغه سره ښه بدله ده الله تعالى اوفرمائيل يقيني خبره خو داده چې ددوی دپاره اور دې او دوی به اور ته اچولو نه پس پريښودلې شي يا دوی به ټولو نه مخکښې اور ته ورمخکښې کړې شي، او په يو قرامت کښې د راء د کسرې سره دې يعنی دوی دحد نه تجاوز کونکی دی والله مونږ ستا نه مخکښې امتونو طرف ته رسولان اوليږل خو شيطان د هغوی د پاره د هغوی خراب عملونه ښائسته کړل چې د هغې د وجې نه هغوی هغه عملونه ښه اوګڼړل نو هغوی د رسولانو تکذيب وکړو هغه شيطان نن هم يعنی په دنيا کښې ددوی دوست او ددوی د کارونو جوړونکی دې، او ددوی د پاره په آخرت کښې دردناک عذاب دې وئيلې شوې دی چې د اليوم نه د راتلونکی حالت بيانولو په توګه د قيامت ورځ مراد ده، يعنی د قيامت په ورځ به ددوی د شيطان نه بغير بل څوک دوست نه وی، حالانکه هغه شيطان به خپله د خپل ځان د مدد نه عاجز وی نو ددوی به څنګه مدد اوکړی؟ او اې محمد ﷺ مونږ کتاب يعنی قرآن په تا باندې څکه نازل کړې دې چې ته د خلقو د پاره د دين د کارونو نه هر هغه څيز په ښکاره بيان کړې چې په کوم کښې دوی اختلاف کوی او هغه قرآن لارښودونکی دې ددې په لتبين باندې عطف دې او د هغه خلقو دپاره رحمت دې، څوک چې په هغې باندې ايمان راوړی، او الله د اسمان نه اوبه راورولې او ددې اوبو نه ګياګانې راټوکولو سره ئې زمکه ژوندئ کړه ددې بنجر کيدو يعنی د اوچيدو نه پس يقينا په دې ذکر شوې څيزونو کښې د داسې خلقو د پاره کوم چې د غور او فکر سره اوری، د مرګ نه پس راپاسيدو باندې دلالت کونکی نښې دی.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** الارض:

**سوال:** د عليها ضمير مرجع الارض ګرځولې دې، حالانکه په ماقبل کښې د الارض ذکر نشته، په دې کښې اضمار قبل الذکر لازميږی.

**جواب:** چونکه ناس او دابة په ارض باندې دلالت کوی لهذا ارض اګر چې په ښکاره توګه ذکر نه دې خو دلالت مذکور دې، لهذا د اضمار قبل الذکر اعتراض به وارديږی نه.

**قوله:** نسمة: کس، روح (جمع) نسم ونسمات

**قوله:** تقول: د تصف تفسير په تقول سره کولو مقصد ددې سوال جواب ورکول دی چې د تصف لفظ موصوف او د صفت تقاضه کوی، حالانکه دلته نه موصوف شته او نه صفت؟

**جواب:** دلته تصف په معنی د تقول دی، لهذا د موصوف او د صفت حاجت به نه وی
**قوله:** هو: ددې په تقدیر کښې اشاره ده چې (ان) سره د خپل مدخول نه جمله د هو مبتدأ محذوف خبر دې نه د تصف مفعول، ځکه چې د تصف مفعول الکذب موجود دې.
**قوله:** مفرطون: مخکښې کړې شوې، دا د افرطته فی طلب الماءنه ماخوذ دې، ای قدمته له، ما هغه د اوبو د پاره مخکښې اولیږلو.

**[ایاتونه: ٦٦ ـ ۷۰]**

﴿وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً﴾ اعتبار ﴿نُسْقِيكُمْ﴾ بيان للعبرة ﴿مِمَّا فِي بُطُونِهِ﴾ أي الأنعام ﴿مِنْ﴾ للابتداء متعلقة بنسقيكم ﴿بَيْنِ فَرْثٍ﴾ ثفل الكرش ﴿وَدَمٍ لَبَنًا خَالِصًا﴾ لا يشوبه شيء من الفرث والدم من طعم أو ريح أو لون و هو بينهما ﴿سَائِغًا لِلشَّارِبِينَ﴾ سهل المرور في حلقهم لا يغص به ﴿وَمِنْ ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ وَالْأَعْنَابِ﴾ ثمر ﴿تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا﴾ خمرا يسكر سميت بالمصدر وهذا قبل تحريمها ﴿وَرِزْقًا حَسَنًا﴾ كالتمر والزبيب والخل والدبس ﴿إِنَّ فِي ذَلِكَ﴾ المذكور ﴿لَآيَةً﴾ دالة على قدرته تعالى ﴿لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ يتدبرون ﴿وَأَوْحَى رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ﴾ وحي إلهام ﴿أَنِ﴾ مفسرة أو مصدرية ﴿اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا﴾ تأوين إليها ﴿وَمِنَ الشَّجَرِ﴾ بيوتا ﴿وَمِمَّا يَعْرِشُونَ﴾ أي الناس يبنون لك من الأماكن وإلا لم تأو إليها ﴿ثُمَّ كُلِي مِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ فَاسْلُكِي﴾ ادخلي ﴿سُبُلَ رَبِّكِ﴾ طرقه في طلب المرعى ﴿ذُلُلًا﴾ جمع ذلول حال من السبل أي مسخرة لك فلا تعسر عليك وإن توعرت ولا تضلي عن العود منها وإن بعدت وقيل حال من الضمير في اسلكي أي منقادة لما يراد منك ﴿يَخْرُجُ مِنْ بُطُونِهَا شَرَابٌ﴾ هو العسل ﴿مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِلنَّاسِ﴾ من الأوجاع قيل لبعضها كما دل عليه تنكير شفاء أو لكلها بضميمته إلى غيره اقول وبدونها بنيته وقد أمر به صلى الله عليه وسلم من استطلق عليه بطنه رواه الشيخان ﴿إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَةً لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ﴾ في صنعه تعالى ﴿وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ﴾ ولم تكونوا شيئا ﴿ثُمَّ يَتَوَفَّاكُمْ﴾ عند انقضاء آجالكم ﴿وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ﴾ أي اخسه من الهرم والخرف ﴿لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا﴾ قال عكرمة من قرأ القرآن لم يصر بهذه الحالة ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ﴾ بتدبير خلقه ﴿قَدِيرٌ﴾ على ما يريده

**ترجمه:** او امر واقع دادې چې په څناورو کښې هم ستاسو د پاره لوئې عبرت دې، د څناورو په ګیډه کښې چې څه دی مونږ هم هغه غوشیانو یعنی د معدې د فضلاتو او د وینې د مینځ نه (نسقیکم) د عبرت بیان دې، من ابتدائیه ده، د نسقیکم متعلق دې، مونږ څکونکو والو ته خوشګوار نبه ذائقې والا صفا پئ څکوو، کوم چې په مرئ کښې په آسانئ سره تیریدونکی دی او په مرئ کښې اینختیدونکی نه دی چې په هغې کښې نه د غوشیانو او د وینې ملاوټ دې او نه رنګ او بوئی، حالانکه هغه ددې دواړو په مینځ کښې وی او د انګورو او د کهجورو په میوو کښې هم ستاسو د پاره عبرت دې چې د کوم نه تاسو شراب جوړوئی کوم چې نشې والا دی، د خمر نوم سکر په طور د مبالغې مصدر سره ذکر شوې دې. او دا احسان

د شرابو د حرامولو نه مخکښې وو، او د خوړلو ښه ښه څيزونه جوړوئ مثلا چهوارې، اوڅکې، سرکه او شيره وغيره کوم خلق چې عقل سليم لري يعنی غور او فکر کوی، د هغوی د پاره په دې ذکر شوو څيزونو کښې د الله د قدرت لوئې نښې دی، او ستا رب د شهدو مچئ په زړه کښې د وحی الهامی په ذريعه سره دا خبره واچوله ان مفسره يا مصدريه ده چې په غرونو کښې کورونه (چهتئ) جوړې کړه او په اونه کښې هم چهتئ جوړې کړی، او د هغې ځانګو کښې هم د کوم نه چې خلق ستا د پاره د اوسيدو ځائې جوړوی ګنی تا په هغې کښې پناه اخستلې نه شوه او د هرقسم ميوو رس خوره، او د خپل رب په آسانو لارو کښې د خپل خوراک د پاره داخليدو سره ګرځه ذللا د ذلول جمع ده، او ذللا د سبل نه حال دې، يعنی حال دادې چې ستا د پاره لارې ئې اسانې کړې، چې د هغې د وجې نه ستا د پاره څه تکليف نشته، اګر چه هغه لارې د نورو د پاره ګرانې ولې نه وی، او ته په لار باندې ورکيږې نه، اګرچې هغه څومره هم لرې نه وی، او وئيلې شوې دی چې ذللا د اسلکی د ضمير نه حال دې، يعنی د هغه د حکم تابعتدار جوړ شوې داخل شئ کوم چې ستاسو نه مطلوب دې او د هغې د ګيډې نه رنګا رنګ څکاک راوځی، او هغه شهد دی په دې کښې د خلقو د پاره شفا ده، وئيلې شوې دی چې د بعضې بيمارو د پاره پکښې شفا ده څنګه چې د شفا نکره والې په دې باندې دلالت کوی، يا د ټولو بيمارو د پاره شفا ده، نورو دوايانو سره ميلاويدو سره، او نه ميلاويدو سره، په شرط ددې چې نيت صفا وی، او حضور ﷺ د شهد د استعمال هغه کس ته حکم کړې وو کوم چې د خيټې په مرض کښې مبتلا وو يعنی دستونه ئې وو (رواه الشيخان) او د الله په صنعت کښې د غور اوفکر کولو والا د پاره په دې کښې لوئې نښې دی او الله تاسو پيدا کړئ حالانکه ستاسو وجود نه وو، او ستاسو د عمر مروده د پوره کيدو نه پس به تاسو ته مرګ درکړی، په تاسو کښې بعضې هغه دی چې بيکاره عمر ته رسولې شی بعضې خراب ترين عمر ته، او هغه د بوډها والی او د د کم عقلی عمر دې چې په دير څه باندې د پوهيدو باوجود بيا هم نه پوهيږی حضرت عکرمه ﷺ فرمائی چې کوم سړې د قرآن مشغله ساتی، د هغه به داسې حالت نه کيږی، بې شکه الله تعالی د خپل مخلوق د تدبير نه خبردار دې او هغه چې څه غواړی په هغې باندې قادر دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: مما في بطونه:** من تبعيضيه ده، ابتدائيه دې.

**قوله: من بين فرث:** دلبنآنه حال مقدم دې، يا د (ما) نه حال دې کوم چې ددې نه مقدم دې.

**سوال:** د بطون ضمير انعام طرف ته راجع دې او انعام د جمع په وجه مؤنث دې، او دې طرف ته راجع کيدونکې ضمير مذکر دې په دواړو کښې مطابقت نشته؟

جواب: د لفظ انعام د رعايت د وجه نه د مذكر ضمير راوړي دي او په سورة مؤمنون كښې د معنې د رعايت د وجه مؤنث راوړې دې، سيبويه وئيلي دي چې انعام په وزن د افعال مفرد دې،

قوله: وهو بينهما: دا د لبنا نه حال دې.

قوله: من ثمرات النخيل: دا د نسقيكم محذوف متعلق دې، او ددې عطف په وان لكم فى الانعام لعبرة باندې دې.

قوله: سميت للمصدر: يعنى سكرا اگرچې مصدر دې خو په معنى د خمر كښې دې، اى تتخذون من خمرا، اوس د حمل په باره كښې هيڅ اشكال نشته، او د خمر نوم مبالغة او مجازا ايښودلې شوې دې.

قوله: هذا قبل تحريمها: دا ددې سوال جواب دې، چې تتخذون منه سكرا د احسان يادولو په طور بيان شو، حالانكه شراب حرام دى او حرام څيز سره احسان يادول صحيح نه دى؟ د جواب حاصل دادې چې دا احسان د حرمت د نازليدو نه مخكښې وو، او د شرابو حرمت په مدينه كښې نازل شوې وو.

قوله: مما يعرشون: اى ما يبنى الناس بيوتا للنحل التى تتعسل فيها، يعنى د يعرشون نه مراد هغه چهتې (گبين) دى كوم چې خلق د شهدو مچو ساتلو د پاره چهتې جوړه وى.

قوله: جمع ذلول: دا ددې سوال جواب دې چې سبل جمع ده، كوم چې ذوالحال دې او ذللا مفرد دې، حال او ذو الحال كښې مطابقت نشته؟ د جواب حاصل دا دې ذللا مفرد نه دې بلكه د ذلول جمع ده، لهذا د عدم مطابقت اعتراض ختم شو.

قوله: وان توعرت: الوعر، ضد السهل، سخت.

**[ايالتونه ۷۱ - ۷٦]**

(وَاللّٰهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ فِي الرِّزْقِ) فَمِنْكُمْ غَنِيٌّ وَفَقِيرٌ وَمَالِكٌ وَمَمْلُوكٌ (فَمَا الَّذِيْنَ فُضِّلُوْا) أَيْ الْمَوَالِي (بِرَآدِّيْ رِزْقِهِمْ عَلٰى مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ) أَيْ بِجَاعِلِيْ مَا رَزَقْنَاهُمْ مِنَ الْأَمْوَالِ وَغَيْرِهَا شَرِكَةً بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَمَالِيْكِهِمْ (فَهُمْ) أَيْ الْمَمَالِيْكُ (وَالْمَوَالِيْ فِيْهِ سَوَاءٌ) شُرَكَاءُ الْمَعْنَى لَيْسَ لَهُمْ شُرَكَاءُ مِنْ مَمَالِيْكِهِمْ فِيْ أَمْوَالِهِمْ فَكَيْفَ يَجْعَلُوْنَ بَعْضَ مَمَالِيْكِ اللّٰهِ شُرَكَاءَ لَهٗ (أَفَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ) يَكْفُرُوْنَ حَيْثُ يَجْعَلُوْنَ لَهٗ شُرَكَاءَ (وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجًا) فَخَلَقَ حَوَّاءَ مِنْ ضِلْعِ آدَمَ وَسَائِرَ النَّاسِ مِنْ نُطَفِ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ (وَجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ أَزْوَاجِكُمْ بَنِيْنَ وَحَفَدَةً) أَوْلَادَ الْأَوْلَادِ (وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبَاتِ) مِنْ أَنْوَاعِ الثِّمَارِ وَالْحُبُوْبِ وَالْحَيَوَانِ (أَفَبِالْبَاطِلِ) الصَّنَمِ (يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ يَكْفُرُوْنَ) بِإِشْرَاكِهِمْ (وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ) أَيْ غَيْرِهِ (مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمٰوٰتِ) بِالْمَطَرِ (وَالْأَرْضِ) بِالنَّبَاتِ (شَيْئًا) بَدَلٌ مِنْ رِزْقًا (وَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ) يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ وَهُوَ الْأَصْنَامُ (فَلَا تَضْرِبُوْا لِلّٰهِ الْأَمْثَالَ) لَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ أَشْبَاهًا تُشْرِكُوْنَهُمْ بِهٖ

{إِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ} أَنْ لَا مِثْلَ لَهُ {وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ} ذٰلِكَ {ضرب الله مثلا} ويبدل منه {عَبْدًا مَمْلُوكًا} صِفَةٌ تُمَيِّزُهُ مِنَ الْحُرِّ فَإِنَّهُ عَبْدُ اللّٰهِ تعالى {لَا يَقْدِرُ عَلَىٰ شَيْءٍ} لِعَدَمِ مِلْكِهِ {وَمَنْ} نَكِرَةٌ مَوْصُوفَةٌ أَيْ حُرًّا {رَزَقْنَاهُ مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ سِرًّا وَجَهْرًا} أَيْ يَتَصَرَّفُ فِيهِ كَيْفَ يَشَاءُ وَالْأَوَّلُ مَثَلُ الْأَصْنَامِ وَالثَّانِي مَثَلُهُ تَعَالَى {هَلْ يَسْتَوُونَ} أَيِ الْعَبْدُ الْعَاجِزُ وَالْحُرُّ الْمُتَصَرِّفُ لَا {الْحَمْدُ لِلّٰهِ} وَحْدَهُ {بَلْ أَكْثَرُهُمْ} أَيْ أَهْلُ مَكَّةَ {لَا يَعْلَمُونَ} مَا يَصِيرُونَ إِلَيْهِ مِنَ الْعَذَابِ فيشركون {وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا} وَيُبْدَلُ مِنْهُ {رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا أَبْكَمُ} وُلِدَ أَخْرَسَ {لَا يَقْدِرُ عَلَىٰ شَيْءٍ} لِأَنَّهُ لَا يَفْهَمُ وَلَا يُفْهِمُ {وَهُوَ كَلٌّ} ثَقِيلٌ {عَلَىٰ مَوْلَاهُ} وَلِيِّ أَمْرِهِ {أَيْنَمَا يُوَجِّهْهُ} يَصْرِفْهُ {لَا يَأْتِ} مِنْهُ {بِخَيْرٍ} يَنْجَحُ وَهٰذَا مَثَلُ الْكَافِرِ {هَلْ يَسْتَوِي هُوَ} أَيِ الْأَبْكَمُ الْمَذْكُورُ {وَمَنْ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ} أَيْ وَمَنْ هُوَ نَاطِقٌ نَافِعٌ لِلنَّاسِ حَيْثُ يَأْمُرُ بِهِ وَيَحُثُّ عَلَيْهِ {وَهُوَ عَلَىٰ صِرَاطٍ} طَرِيقٍ {مُسْتَقِيمٍ} وَهُوَ الثَّانِي الْمُؤْمِنُ لَا وَقِيلَ هٰذَا مَثَلُ اللّٰهِ وَالْأَبْكَمُ لِلْأَصْنَامِ وَالَّذِي قَبْلَهُ مَثَلُ الْكَافِرِ وَالْمُؤْمِنِ

---

**ترجمه:** او الله تعالى په رزق كښې بعضو لره په بعضو باندې اوچتوالې وركړې دې نو په تاسو كښې مالك او مملوك غريب او مالداره دواړه قسم خلق شته، يعنې كوم مال وغيره چې مونږ هغوى ته وركړې دې په دې كښې د خان او د غلامانو په مينځ كښې شركت كولو والا نه دى، په داسې طريقه چې آقا او غلام په دې كښې برابر شريک شي مطلب دادې چې ددوى په غلامانو كښې يو غلام هم ددوى په مال كښې شريک نه دې نو بيا د الله په غلامانو كښې بعضو لره د هغه شريک ولې جوړوى؟ نو آيا دا خلق د الله د نعمتونو نه منكر دى؟ په داسې طريقه چې د هغه شريک جوړوى او هغه الله دې چې چا ستاسو د جنس نه تاسو ته بيبيانې دركړې چنانچه حوا عليها السلام ئې د آدم د پښتئ نه پيدا كړه او ټول انسانان ئې د ښځو او د سړو د نطفو نه پيدا كړل، او ستاسو د بيبيانو نه ئې تاسو لره ځامن او نمسى دركړل، يا د اولاد اولاد ئې دركړلو او تاسو ته ئې ښه ښه څيزونه دركړل يعنې د قسم قسم ميوې او غلې او څناور ئې د رزق په طور دركړل آيا بيا به هم دا خلق په باطل (بت) باندې ايمان راوړى او آيا دا خلق به د الله شريک جوړولو سره د الله د نعمتونو ناشكرى كوى او د الله پريښودلو سره به د غير الله بندګى كوى او هغوى د باران په ذريعه د اسمان نه د نباتاتو په ذريعه د زمكې نه د رزق وركولو هيڅ اختيار نه لرى، شيئا د رزقا نه بدل دې، او نه په يو څيز باندې قدرت لرى، او هغه بتان دى، نو تاسو د الله د پاره مثالونه مه جوړوئ يعنې د الله څوک مشابه كوئ مه، چې تاسو د هغه شريكان جوړ كړئ، او الله تعالى ته ښه پته ده چې د هغه څوک مثال نشته، او تاسو هغه نه پيژنئ، الله د عبد مملوک يو مثال بيان كړې دې، عبدا مملوكا. د مثلا نه بدل دې، (مملوكا) د عبدا صفت دې، چې د هغې د وجې نه غلام د ازاد نه ممتاز شو، ځكه چې آزاد هم د الله بنده وى، چې هغه د خپل ملكيت نه كيدو د و جه نه په هيڅ يو تميز باندې قدرت نه لرى، او يو سړې هغه دې، چاته چې الله د خپل طرف نه معقول (ښه) روزى وركړى (من) نكره

موصوفه ده، ای عبدا حرا او هغه په پټه او په ښکاره د هغې نه خرچ کوی، یعنی چې څنګه غواړی نو په هغې کښې تصرف کوی، اولنې د بتانو مثال دې، او دویم د الله مثال دې نو آیا یو عاجز بنده او یو آزاد خومختاره بنده په تصرف کښې یو شان کیدې شی؟ نشی کیدې ټول تعریفونه د الله وحده د پاره دی، خو په دوی کښې اکثر یعنی اهل مکه دې عذاب لره نه پیژنی، چې کوم طرف ته دوی روان دی، هم دې ددې ناخبرتیا د وجه نه هغوی شرک کوی، الله د دوو سړو یو بل مثال بیان فرمائی رجلین د مثلا نه بدل دې یو په دې کښې پیدائشی ګونګا دې هغه د هیڅ کار نه دې، څکه چې هغه نه په څه پوهیږی او نه ئې څوک پوهه کولې شی بلکه هغه خو په خپل صاحب باندې بوج دې، کوم طرف ته چې هغه دې اولیږی هغه یو کار صحیح نه کوی، یعنی کامیابی نه حاصلوی، دا د کافر مثال دې آیا داسې یعنې ذکر شوې ګونګا کس او هغه کس کوم چې د انصاف حکم ورکوی یعنی هغه کس کوم چې خبرې کولې شی او خلو ته فائده رسوُنکی دې، په داسې طریقه چې هغه د عدل حکم کولو والا دې او په دې باندې آماده کولو والا دې، برابر کیدې شی؟ حال دا چې هغه خپله په صحیح لاره باندې دې، او دا دویم مومن دې، برابر نشی کیدې، او وئیلې شوې دی چې دا د الله تعال مثال دې، او ګونګا د بتانو مثال دې، او ددې نه مخکښې مثال د کافر او مومن دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: برادي:** باء جاره ده، رادی په اصل کښې رادین وو، ارولو والا، واپس کولو والا، ورکولو والا، ماده (رد) ده، نون د جمع اضافت د وجه اوغورزیدو.

**قوله: بجاعلي:** دا د جعل نه اسم فاعل مذکر غائب په حالت د جر کښې دې، نون د جمع اضافت د وجه ساقط شو.

**قوله: المعنى ليس لهم:** دا جمله د جواب نفی په مقام کښې واقع شوې ده، او دا رد دې په مشرکینو باندې چې هغه خپل غلامان په ملکیت کښې په برابر طریقه باندې شریک کولو د پاره تیار نه دی، او د الله بعضې غلامان په الوهیت کښې د هغه شریک کوی.

**قوله: يكفرون:** د یجحدون تفسیر به یکفرون سره کولو کښې اشاره اوشوه، چې یجحدون د یکفرون معنې لره متضمن دې، لهذا ددې متعدی بالباء کیدل صحیح دی، ګنی یجحدون متعدی بنفسه دې.

**قوله: بدل من رزقا:** خه ره و ، که مفسر علام شیئا د رزق بدل واقع کولو په خائې مفعول به ګرځولې وی، رزقا که مصدر ګنړې یا اسم مصدر، څکه چې بدل په دوو معنو کښې د یوې د پاره راځی، یا د بیان د پاره یا د تاکید د پاره، او دلته دا دواړه صحیح نه دی.

**قوله: ولا يستطيعون:** دا د یو سوال جواب دې

سوال: دلته د جمع صيغه راوړې شوې ده، او په ما لا يملک د واحد حالانکه مرجع د دواړو ضميرونو يو دې، او هغه دې شرکاء؟

جواب: په يملک کښې د (ما) د لفظ رعايت شوې دې، او په يستطيعون کښې د (ما) د معنې رعايت شوې دې.

قوله: يصرفه،اى يصرفه

قوله: نجم بضم النون: اى الظفر بالشئ.

[ايا تو له: ۶۷ _ ۸۳]

{وَلِلَّهِ غَيْبُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} أَيْ عِلْمِ مَا غَابَ فِيهِمَا {وَمَا أَمْرُ السَّاعَةِ إِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ أَوْ هُوَ أَقْرَبُ} لِأَنَّهُ بِلَفْظِ كُنْ فَيَكُون {إن الله على كل شيء قدير} {وَاللَّهُ أَخْرَجَكُمْ مِنْ بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ لَا تَعْلَمُونَ شَيْئًا} الْجُمْلَة حَال {وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ} بِمَعْنَى الْأَسْمَاع {والأبصار والأفئدة} القلوب {لعلكم تشكرون} عَلَى ذَلِكَ فَتُؤْمِنُونَ {أَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرَاتٍ} مُذَلَّلَات لِلطَّيَرَانِ {فِي جَوِّ السَّمَاءِ} أَيْ الْهَوَاء بَيْن السَّمَاء وَالْأَرْض {مَا يُمْسِكُهُنَّ} عِنْد قَبْض أَجْنِحَتهنَّ و بَسْطهَا أَنْ يَقَعْنَ {إِلَّا اللَّهُ} بِقُدْرَتِهِ {إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ} هِيَ خَلَقَهَا بِحَيْثُ يُمْكِنهَا الطَّيَرَانُ وَخَلَقَ الْجَوّ بِحَيْثُ يُمْكِن الطَّيَرَان فِيهِ وَإِمْسَاكهَا {وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ سَكَنًا} مَوْضِعًا تَسْكُنُونَ فِيهِ {وَجَعَلَ لَكُمْ مِنْ جُلُودِ الْأَنْعَامِ بُيُوتًا} كَالْخِيَامِ وَالْقِبَاب {تَسْتَخِفُّونَهَا} لِلْحَمْلِ {يَوْمَ ظَعْنِكُمْ} سَفَركُمْ {وَيَوْمَ إِقَامَتِكُمْ وَمِنْ أَصْوَافِهَا} أَيْ الْغَنَم {وَأَوْبَارِهَا} أَيْ الْإِبِل {وَأَشْعَارِهَا} أَيْ الْمَعْز {أَثَاثًا} مَتَاعًا لِبُيُوتِكُمْ كَبُسُطٍ وَأَكْسِيَة {وَمَتَاعًا} تَتَمَتَّعُونَ بِهِ {إِلَى حِينٍ} تَبْلَى فِيهِ {وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمْ مِمَّا خَلَقَ} مِنْ الْبُيُوت وَالشَّجَر وَالْغَمَام {ظِلَالًا} جَمْع ظِلّ تَقِيكُمْ حَرّ الشَّمْس {وَجَعَلَ لَكُمْ مِنَ الْجِبَالِ أَكْنَانًا} جَمْع كِنّ وَهُوَ مَا يُسْتَكَنّ فِيهِ كَالْغَارِ وَالسِّرْدَاب {وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ} قُمُصًا {تَقِيكُمُ الْحَرَّ} أَيْ وَالْبَرْد {وَسَرَابِيلَ تَقِيكُمْ بَأْسَكُمْ} حَرْبكُمْ أَيْ الطَّعْن وَالضَّرْب فِيهَا كَالدُّرُوعِ وَالْجَوَاشِن {كَذَلِكَ} كَمَا خَلَقَ هَذِهِ الْأَشْيَاء {يُتِمُّ نِعْمَتَهُ} فِي الدُّنْيَا {عَلَيْكُمْ} بِخَلْقِ مَا تَحْتَاجُونَ إلَيْهِ {لَعَلَّكُمْ} يَا أَهْل مَكَّة {تُسْلِمُونَ} تُوَحِّدُونَهُ {فَإِنْ تَوَلَّوْا} أَعْرَضُوا عَنْ الْإِسْلَام {فَإِنَّمَا عَلَيْكَ} يَا مُحَمَّد {الْبَلَاغُ الْمُبِينُ} الْإِبْلَاغ الْبَيِّن وَهَذَا قَبْل الْأَمْر بِالْقِتَالِ {يَعْرِفُونَ نِعْمَةَ اللَّهِ} أَيْ يُقِرُّونَ بِأَنَّهَا مِنْ عِنْده {ثم ينكرونها} باشراكهم {وأكثرهم الكافرون}

ترجمه: د اسمانونو او د زمکې د پټو څیزونو علم الله لره دې یعنی په دې دواړو کښې د پټو څیزونو علم د قیامت معامله خو به بس داسې وی لکه چې د سترګو رپ، یا د دې نه هم زیات نیزدې څکه چې هغه به په لفظ (کن) سره کیږی نو هغه به وشی، یقینا الله په هر څیز باندې قادر دې او الله تاسو د میندو د ګیډو نه داسې پیدا کړئ چې تاسو هیڅ هم نه پیژندل، لاتعلمون د (کم) ضمیر نه حال دې او هغه تاسو ته غوږونه درکړل سمع د اسماع په معنی کښې دې او سترګې ئې درکړې او زړونه ئې درکړل چې تاسو د هغه شکریه ادا کړئ او ایمان راوړئ آیا خلقو مرغو ته کتلې نه دی،؟ چې هغه د الوتلو د پاره د اسمان په فضا کښې مسخر کیږی، یعنی د اسمان او

زمکې په مینځنی فضا کښې د هغوی د وزرو د کولاولو او د بندولو په حالت کښې هم د الله قدرت دې چې هغه ئې د غورزیدلو نه منع کړې دی، د ایمان والو د پاره په دې کښې د قدرت څه نښې دی، یعنی هغه دا داسې جوړکړې دی چې ددوی پرواز ممکن وی، او فضا ئې داسې جوړه کړه چې په هغې کښې د هغې الوتنه ممکن وی، او الله تعالی ستاسو کورونه ستاسو د پاره د آرام ځائې اوګرځولو یعنی داسې ځائې کوم کښې چې تاسو ارام حاصل کړئ او ستاسو د پاره ئې د څناورو څرمنو نه کورونه جوړ کړل، لکه خیمې او قبې، چې د سفر په وخت تاسو هغه په اوچتولو کښې سپک موندئ، او د قیام په دوران کښې هم او د ګډو چیلو د وړو نه او د اوښانو د وړئ او د چیلئی د ویختو نه د خپل کورونو سامان جوړوئی، لکه تکیې او څادرونه او داسې سامان چې د هغې نه تاسو یو مودې پورې چې په هغې کښې هغه زوړ شی فائده حاصلوئی، الله تعالی د خپل پیدا کړې شوې څیزونو نه لکه ونې، کورونه او اوریځې ستاسو د پاره سورې جوړ کړو، ظلال د ظل جمع ده، کوم چې ستاسو د د نمر ګرمئ نه بچ کوی، او ستاسو د پاره په غورونو کښې د پناه ځایونه جوړ کړل، اکنان د (کن) جمع ده، او دا هغه دی چې په هغې کښې پټیدې شی، مثلا غار او تهه خانې، او ستاسو د پاره ئې داسې لباس جوړ کړو کوم چې تاسو د ګرمئ نه بچ کوی، او داسې لباس (زغره) ئې جوړه کړه چې کوم تاسو د خپل مینځ په جنګ کښې د نیزې او د تورې د وهلو نه بچ کوی، لکه زغره او سینه بند، دغه شان څنګه چې هغه دا څیزونه پیدا کړل هغه په دنیا کښې هم ستاسو د ضرورت څیزونه پیدا کولو سره په تاسو باندې خپل نعمتونه پورا کوی، چې تاسو اې اهل مکه فرمانبردار شئ یعنی د هغه دتوحید قائل شئ که دا خلق د اسلام نه مخ واړوی نو اې محمد ﷺ ستا په ذمه خو صفا صفا رسول دی یعنی واضح طور باندې بیان کول، او دا حکم د جهاد د حکم د نازلیدو نه مخکښې وو، دا خلق د الله نعمتونه خو پیژنی یعنی ددې خبرې اقرار کوی چې دا ټول نعمتونه د الله د طرف نه دی، بیا هم شرک کولو سره ددې نعمتونو انکار کوی، او په دوی کښې ډیر ناشکره دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** علم ما غاب: ای ما غاب عن العباد

**قوله:** کلمح البصر: ای کرجع الطرف من اعلی الحدقة الی اسفلها

**قوله:** اوهو اقرب او للتخییر او بمعنی هل

**قوله:** الجملة حال: لاتعلمون جمله د (کم) ضمیر نه حال دې، او د شیئا مفعول به دې،

**قوله:** جعل لکم: ددې عطف په اخرجکم باندې دې، ددې فاعل په دې کښې پټ دې،

**قوله:** بسط: بستره، (واحد) بساط

**قوله:** اکسية: (واحد) کساء څادر

قوله: ظعنكم: ظعن، سفر، (ف) ظعنا، تلل، سفر كول
قوله: قباب: دا د قبة جمع ده، په معنى د قبه، گنبد
قوله: سرابيل: كرته، قميص، دا د (سربال) جمع ده، مطلقا د لباس په معنې كښې هم مجازا استعماليږي
قوله: الجواشن: دا د جوشن جمع ده، زغره، بكتر، سربال عام دې، د اوسپنې وي يا د بل څه، يا دلته جنگي توپئ مراد دې.

**[اياتونه: ۸۴ـ ۸۹]**

(وَ) اذْكُرْ (يَوْمَ نَبْعَثُ مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا) هُوَ نَبِيُّهَا يَشْهَد لَهَا وَعَلَيْهَا وَهُوَ يَوْم الْقِيَامَة (ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا) فِي الِاعْتِذَار (وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ) لَا يُطْلَب مِنْهُمْ الْعُتْبَى أَيْ الرُّجُوع إِلَى مَا يُرْضِي الله (وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ ظَلَمُوا) كَفَرُوا (الْعَذَابَ) النَّار (فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ) الْعَذَاب (وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ) يُمْهَلُونَ عَنْهُ إِذَا رَأَوْهُ (وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ أَشْرَكُوا شُرَكَاءَهُمْ) مِنَ الشَّيَاطِين وَغَيْرهَا (قَالُوا رَبَّنَا هَؤُلَاءِ شُرَكَاؤُنَا الَّذِينَ كُنَّا نَدْعُوا) نَعْبُدهُمْ (مِنْ دُونِكَ فَأَلْقَوْا إِلَيْهِمُ الْقَوْلَ) أَيْ قَالُوا لَهُمْ (إِنَّكُمْ لَكَاذِبُونَ) فِي قَوْلكُمْ إِنَّكُمْ عَبَدْتُمُونَا كَمَا فِي آيَة أُخْرَى (مَا كَانُوا إِيَّانَا يَعْبُدُونَ) سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ (وَأَلْقَوْا إِلَى اللَّهِ يَوْمَئِذٍ السَّلَمَ) أَيْ اسْتَسْلَمُوا لِحُكْمِهِ (وَضَلَّ) غَابَ (عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ) مِنْ أَنَّ آلِهَتهمْ تَشْفَع لَهُمْ (الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا) النَّاس (عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ) دِينه (زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ) الَّذِي اسْتَحَقُّوهُ بِكُفْرِهِمْ قَالَ ابْن مَسْعُود عَقَارِب أَنْيَابهَا كَالنَّخْلِ الطِّوَال (بِمَا كَانُوا يُفْسِدُونَ) بِصَدِّهِمْ النَّاس عَنْ الْإِيمَان (وَ) اذْكُرْ (يَوْمَ نَبْعَثُ فِي كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا عَلَيْهِمْ مِنْ أَنْفُسِهِمْ) وَهُوَ نَبِيّهمْ (وَجِئْنَا بِكَ) يَا مُحَمَّد (شَهِيدًا عَلَى هَؤُلَاءِ) أَيْ قَوْمك (وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ) الْقُرْآن (تِبْيَانًا) بَيَانًا (لِكُلِّ شَيْءٍ) يَحْتَاج إِلَيْهِ النَّاس مِنْ أَمْر الشَّرِيعَة (وَهُدًى) مِنَ الضَّلَالَة (وَرَحْمَةً وَبُشْرَى) بِالْجَنَّةِ (لِلْمُسْلِمِينَ) الْمُوَحِّدِينَ

**ترجمه:** او ياد كړه هغه ورځ چې په كومه ورځ به مونږ د هر امت نه گواه اودروو، او هغه به ددې امت نبي وي، هغه به ددوی د ايمان او كفر گواهي وركړي، او هغه به د قيامت ورځ وي، بيا به كافرانو ته نه د عذر پيش كولو اجازت وركولې شي او نه به ددوی نه خوشنودي طلب كولې شي، يعنې نه به ددوی نه د هغه څيز طلب كولې شي كوم سره چې الله رضا شي، او كله چې كافران عذاب اوينې، نو نه به ددوی نه د عذاب سپكوالې كيږي او نه به دوی ته د عذاب نه مهلت وركولې شي، چې كله هغوی دا اوگوري او چې كله مشركان شيطانان وغيره خپل شريكان اوگوري نو وائي به چې اې زمونږ پروردگاره هم دا دي زمونږ شريكان، د كومو چې سونږ ستا نه علاوه بندگي كوله، نو هغوی به دوی ته جواب وركړي تاسو په دې خبره كښې چې تاسو به زمونږ بندگي كوله بالكل دروغژن يئ څنگه چې په بل آيت كښې دي ما كانوا ايانا يعبدون: هغوی به زمونږ بندگي نه كوله، يعنې ډير زر به ددوی د عبادت نه انكار اوكړي، او په

دغه ورځ به د الله حکم ته سرونه ښکته کړي، او ددوی دا دروغ چې ددوی معبودان به ددوی سفارش کوی ورک به شي، ختم به شي او چا چې کفر کړی دی او خلقو لره ئې د الله د دین نه منع کړې دی مونږ ددوی عذاب باندې چې د هغې دوی د خپل کفر د وجه لائق دی، په عذاب باندې عذاب زیاتوو، حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائی چې داسې لړمانان به وی چې د هغوی د غاښونو اوږدوالې به د کهجورې د اونې برابر وی ددې وجه نه چې هغوی به خلقو لره د ایمان نه منع کولو سره فساد کولو، اویاد ساته، هغه ورځ چې په کومه به د هر امت نه یو گواه اودرولې شي هغه به ددوی نبی ﷺ وی، او اې محمد ﷺ مونږ به تا په دوی باندې یعنی تا به په قوم باندې گواه اودروو، او مونږ په تاسو باندې دا کتاب قرآن نازل کړو، چې په هغې کښې د شرعی ضروریاتو نه د هر ضرورت پورا بیان دې، چې د هغې خلقو ته حاجت وی، او د گمراهی نه هدایت دې، او رحمت دې، د مسلمانانو توحید منونکو د پاره د جنت خوشخبری ده.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: یستعتبون: استعتاب، د استفعال نه مضارع جمع مذکر غائب، د خوشنودی حاصلولو د پاره وئیل، د رضامندئ خواهش کول، بعضې مفسرینو د لا یستعتبون ترجمه کړې ده، چې نه به ددوی عذر قبلولې شي، علامه محلی ددې لفظ په تشریح کښې لیکلې دی لا یطلب منهم ان یرضوا ربهم بالتوبة والطاعة لانها لاتنفع یومئذ ددوی نه به ددې خبرې طلب نه کیږی چې د طاعت او د توبې په ذریعې سره خپل رب رضا کړی، ځکه چې په دغه ورځ به دا څیزونه مفید نه وی.

قوله: الذین کفروا: الخ مبتدأ ده، او (زدناهم) ددې خبر دې، او دا هم کیدې شی، چې الذین کفروا، الخ د یفترون فاعل وی، زدنهم جمله مستانفه ده

قوله: بما کانوا یفسدون: باء سببیه ده، او (ما) مصدریه ده، ای بسبب کونهم مفسدین

قوله: اې قومك: دا یو تفسیر دې، یعنی هر نبی ﷺ به د خپل امت متعلق گواهی ورکوی، حضور ﷺ به هم د خپل امت په باره کښې گواهی ورکوی، بیضاوی هم داسې لیکلې دی، او بعضې مفسرینو لیکلې دی، چې د هؤلاء نه مراد انبیاء دی، یعنی هغوی ﷺ به د انبیاؤ په باره کښې گواهی ورکوی ځکه چې د هر نبی ﷺ د خپل امت په باره کښې گواهی ورکول چې په هغوی کښې حضور ﷺ هم شامل دې، د یوم نبعث فی کل امة شهیدا علیهم من انفسهم نه مفهوم دې، دې خبرې لره دوباره ذکر کول تکرار بغیر د فائدې نه دې، لهذا د شهیدا علی هؤلاء نه شهادت علی الانبیاء مراد دې، او د ابوسعود عبارت څه داسې دې، چې علی هؤلاء الامم وشهدائهم

[ايا تونه: ٩٠ - ١٠٠]

(إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ) التَّوْحِيد أو الإنصاف (وَالْإِحْسَانِ) أداء الفرائض أو أن تعبد الله كأنك تراه كما في الحديث (وَإِيتَاءِ) إعطاء (ذِي الْقُرْبَىٰ) القرابة خصه بالذكر اهتمامًا به (وَيَنْهَىٰ عَنِ الْفَحْشَاءِ) الزنى (وَالْمُنكَرِ) شرعًا من الكفر والمعاصي (وَالْبَغْيِ) الظلم للناس خصه بالذكر اهتمامًا كما بدأ بالفحشاء كذلك (يَعِظُكُمْ) بالأمر والنهي (لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ) تتعظون وفيه إدغام التاء في الأصل في الذال وفي المستدرك عن ابن مسعود هذه أجمع آية في القرآن للخير والشر (وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ) من البيعة والأيمان وغيرها (إِذَا عَاهَدتُّمْ وَلَا تَنقُضُوا الْأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا) توثيقها (وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللَّهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا) بالوفاء حيث حلفتم به والجملة حال (إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ) تهديد لهم (وَلَا تَكُونُوا كَالَّتِي نَقَضَتْ) أفسدت (غَزْلَهَا) ما غزلته (مِن بَعْدِ قُوَّةٍ) إحكام له وبرم (أَنكَاثًا) حال جمع نكث وهو ما ينكث أي يحل إحكامه وهي امرأة حمقاء من مكة كانت تغزل طول يومها ثم تنقضه (تَتَّخِذُونَ) حال من ضمير تكونوا أي لا تكونوا مثلها في اتخاذكم (أَيْمَانَكُمْ دَخَلًا) هو ما يدخل في الشيء وليس منه أي فسادًا أو خديعة (بَيْنَكُمْ) بأن تنقضوها (أَن) أي لأن (تَكُونَ أُمَّةٌ) جماعة (هِيَ أَرْبَىٰ) أكثر (مِنْ أُمَّةٍ) وكانوا يحالفون الحلفاء فإذا وجد أكثر منهم وأعز نقضوا حلف أولئك وحالفوهم (إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ) يختبركم (اللَّهُ بِهِ) أي بما أمر به من الوفاء بالعهد لينظر المطيع منكم والعاصي أو يكون أمة أربى لينظر أتفون أم لا (وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ) في الدنيا من أمر العهد وغيره بأن يعذب الناكث ويثيب الوافي (وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً) أهل دين واحد (وَلَٰكِن يُضِلُّ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ وَلَتُسْأَلُنَّ) يوم القيامة سؤال تبكيت (عَمَّا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ) لتجازوا عليه (وَلَا تَتَّخِذُوا أَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ) كرره تأكيدًا (فَتَزِلَّ قَدَمٌ) أي أقدامكم عن محجة الإسلام (بَعْدَ ثُبُوتِهَا) استقامتها عليها (وَتَذُوقُوا السُّوءَ) أي العذاب (بِمَا صَدَدتُّمْ عَن سَبِيلِ اللَّهِ) أي بصدكم عن الوفاء بالعهد أو بصدكم غيركم عنه لأنه يستن بكم (وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ) في الآخرة (وَلَا تَشْتَرُوا بِعَهْدِ اللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا) من الدنيا بأن تنقضوه لأجله (إِنَّمَا عِندَ اللَّهِ) من الثواب (هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ) مما في الدنيا (إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ) ذلك فلا تنقضوا (مَا عِندَكُمْ) من الدنيا (يَنفَدُ) يفنى (وَمَا عِندَ اللَّهِ بَاقٍ) دائم (وَلَنَجْزِيَنَّ) بالياء والنون (الَّذِينَ صَبَرُوا) على الوفاء بالعهود (أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ) أحسن بمعنى حسن (مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً) قيل هي حياة الجنة وقيل في الدنيا بالقناعة و الرزق الحلال (ولنجزينهم أجرهم بأحسن ما كانوا يعملون) (فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ) أي أردت قراءته (فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ) أي قل أعوذ بالله من الشيطان الرجيم (إنه ليس له سلطان) تسلط (على الذين آمنوا وعلى ربهم يتوكلون) (إِنَّمَا سُلْطَانُهُ عَلَى الَّذِينَ يَتَوَلَّوْنَهُ) بطاعته (وَالَّذِينَ هُم بِهِ) أي الله (مُشْرِكُونَ)

ترجمه: بې شکه الله تعالی د عدل يعنی د توحيد يا د انصاف او د احسان يعنی د فرضو د ادا

کولو یا د داسې عبادت کولو گویا چې ته هغه وینې، څنگه چې په حدیث کښې وارد دی او د رشته دارو سره د ښه سلوک کولو د اهتمام د وجه نه، خاص طور سره د رشته دارو ذکر کړې دې حالانکه د احسان په حکم کښې نور هم داخل دی، حکم ورکوی او الله د بې حیائی یعنی د زنا او د شرعی بدو نه مثلا کفر، گناه او په خلقو باندې ظلم کولو نه منع فرمائی منع د ظلم نه ئې د اهتمام د وجه نه خاص طور سره ذکر کړو، گنی خو په نهی عن الفحش کښې هم په ظلم داخل دی، د امر او نهی تاسو ته نصیحت کوی چې تاسو سبق حاصل کړئ په تذکرون کښې په اصل کښې د تاء په ذال کښې ادغام دې، او په مستدرک کښې د ابن مسعود ﷛ نه نقل دی چې د قرآن په آیتونو کښې دا آیت د خیر او شر د بیانولو د پاره جامع آیت دې، او تاسو د الله وعده پورا کړئ د بیعت په توگه وی او که د ایمان وغیره په توگه، چې کله تاسو خپل مینځ کښې معاهده کوئی او قسمونه ددې د پخولو نه پس مه ماتوئی، حالانکه تاسو الله لره په خپل ځان باندې گواه جوړ کړې دې، په عهد پوره کولو باندې، څکه چې تاسو د هغه قسم خوړلې دې، او وقد جعلتم جمله حال دې، الله ته ښه پته ده څه چې تاسو کوئی دا ددوی د پاره دهمکی ده او تاسو د هغه ښځې پشان مه کیږئی چا چې خپلې ریشلې تارونه مضبوطولو نه پس ټکرې ټکرې کولو سره سپړدل انکاثا حال دې، او د نکث جمع ده، سپړدلو سره د هغې مضبوطوالې ختم کړې شوې وی، دا واقعه د مکې د یو لیونئ ښځې ده توله ورځ به ئې ریشلې جوړوله، او ماښام به ئې سپړدل او خرابول، تاسو خپل قسمونه په خپل مینځ کښې د دهوکې د ذریعه جوړوئی تتخذون د تکونوا د ضمیر نه حال دې، دخلا اجنبی څیز ته وئیلې شی، چې د چا جنس نه وی، یعنی تاسو خپل قسمونه فساد او دهوکه مه جوړوئی، په داسې صورت چې هغه مات کړئ، چې په تاسو کښې یو جماعت د بل جماعت نه زیات شی، او دې خلقو به خپل حلیفانو سره معاهدې کولې، او چې کله یو لوئې جماعت یا ددوی نه زیات عزت والا وموندلو نو د مخکښې معاهده کونکی خلقو وعده به ئې ختمه کړه، او د نورو حلیفان به شول، حقیقت دا دې چې الله تعالی ددې په وجه باندې امتحان اخلی، یعنی د وعدې د پورا کولو حکم کولو سره ستاسو امتحان اخلی، چې په تاسو کښې فرمانبردار او نافرمان ښکاره کړی او یا یو جماعت زیات شی چې الله اوگوری چې تاسو د وعدې پورا والې کوئی یا نه کوئی، او د قیامت په ورځ به الله تعالی ستاسو مخکښې چې د کومې وعدې په باره کښې تاسو په دنیا کښې اختلاف کولو، ښکاره ښکاره بیان کړی، دا چې د وعدې ماتونکی ته به سزا ورکړی او پوراکولو والا ته به بدله ورکړی، او که الله غوښتله، نو تاسو به ئې د یو امت یعنی یو قوم والا جوړکړې وئی، خو الله چې د چا گمراه کول اوغواړی گمراه ئې کړی، او چاته چې اوغواړی هدایت ورکړی، څه چې تاسو کوئی ددې باره کښې د قیامت په ورځ به یقینا ستاسو د لاجواب کولو د پاره تاسو نه تپوس کولې وکړې شی او

تاسو خپل قسمونه په خپل مينځ کښې د دهوکې ذريعه مه جوړوئی، د تاکيد د پاره ئې مکرر راوړې دې، بيا به ستاسو قدمونه د اسلام د لارې نه په دې باندې د کلکيدو نه پس اوخوړي، او تاسو به د بدترين عذاب مزه اوڅکئی، ستاسو د الله د لارې نه د بندولو د وجه نه يعنی ستاسو د وعدې نه پورا کولو د وجه نه، يا نورو لره د د وعدې پورا کولو نه د منع کولو د وجه نه، چې هغوی ستاسو په نقشق قدم باندې لاړشی او تاسو ته به په آخرت کښې لوئې عذاب وی، او تاسو د الله وعده د دنيا د لږ قيمت د پاره مه خرڅوئی، په داسې طريقه چې ددې د پاره وعده ماته کړئ بې شکه الله تعالی سره ستاسو د پاره ښه اجر دې، د هغه نه کوم څه چې په دې دنيا کښې دی، که تاسو ته ددې خبرې علم وی نو تاسو وعده مه ماتوئی او د دنيا څه سامان چې تاسو سره دې، هغه ختميدونکې دې، او کوم چې الله سره دې هغه هميشه د پاره دې او مونږ به ليجزين، د يا او نون سره دې، يقينا په وعده باندې صبر کولو والا ته د هغوی د اعمالو بهترينه بدله ورکړو، احسن په معنی د حسن دې، او کوم سړې چې نيک عملونه اوکړی، ښځه وی او که سړې، او هغه ايماندار وی، نو مونږ به خامخا هغه ته ښه ژوند ورکړو، ونيلې شوې دی، چې هغه د جنت ژوند دې، او ونيلې شوې دی چې په دنيا کښې قناعت او رزق حلال دې، او ددوی د نيک اعمالو بدله به مونږ خامخا ورکوو، او چې کله ته قرآن تلاوت کوی يعنی د ونيلو اراده اوکړې نو د شيطان مردود نه پناه اوغواړه، يعنی اعوذ بالله من الشيطان الرجيم او وايه، يقينی خبره ده چې په ايمان والو او په خپل پروردګار باندې يقين ساتلو والا باندې د هغه بالکل زور نه رسی، خو د هغه زور په هغه چا باندې خامخا چليږی څوک چې د شيطان په اطاعت کښې هغه خپل مشر ګنړی، او څوک چې الله تعالی سره شرک کوی.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** القربی: اسم مصدر دې په معنی د رشته دارئی

**قوله:** تخصيص بعد التعميم: رشته دارو سره ښه سلوک، په احسان کښې داخل دی، خو ددې د اهميت د وجه ئې دوباره خاص طور سره ذکر شو.

**قوله:** کما بدا بالفحشاء لذلك: يعنی د اهتمام د وجه نه اول ئې فحشاء يعنی زنا مخکښې کړه، ځکه چې د زنا د وجه نسب محفوظ نه پاتې کيږی، او د الله د غضب هم سبب جوړيږی.

**قوله:** من البيعة: ای بيعة الرسول علی الاسلام، ددې نه بيعت رضوان مراد نه دې، ځکه چې دا سورت مکې دې، او بيعت رضوان د هجرت نه پس شوې وو.

**قوله:** کفيلا: ای شاهدا

**قوله:** والجملة حال، يعنی (وقد جعلتم) جمله د (تنقضوا) د ضمير نه حال دې، نه چې معطوف، ګنی عطف خبر علی الانشاء به لازم شی.

قوله: تهديدلهم: دا اضافه ددې سوال جواب دې، چې ان الله يعلم ما تفعلون د معطوف عليه، لا تنقضوا، او معطوف (لاتكونوا) په مينځ كښې فصل بالاجنبي دې.
د جواب حاصل دادې چې (ان الله يعلم ما تفعلون) جمله تهديديه ده، كومه چې دلته اجنبي نه ده.
قوله: ما غزلته: دا ددې سوال جواب دې چې غزل مصدر دې، ددې طرف ته نقض (ماتول) نسبت صحيح نه دې، مفسر علام د غزل تفسير د (ما غزلته) سره كولو كښې اشاره اوكړه چې مصدر په معنى د مفعول دې، يعنى څه ئې چې وريشل هغه ئې وسپړدل.
قوله: بعدقوة: بعضې حضراتو د بعد قوة معنى، د مضبوطولو نه پس، كړې ده، مفسرعلام هم دا معنى مراد اخستې ده، او نورو مفسرينو د بعد قوة معنى، محنت سره د ريشلې نه پس اخستې ده.
قوله: غزلها: دا د (ض) نه مصدر دې، كوم چې (ها) ضمير طرف ته مضاف دې، ددې معنى تارونه ريشل، په معنى د اسم مفعول، يعنى ريشلې شوې، په مكه كښې يو ليونئ ښځه وه، چې د سحر نه د مابنام پورې به ئې سوتلئ جوړوله خپلو وينځو سره، او د مابنام به ئې توله تول ريشلې وسپړدل او ضائع به ئې كړل، ددې ښځې نوم ريطه بنت عمر وو، دا د اسد بن عبدالغزى مور، او د سعد لور وه، بعضو وئيلې دى چې ددې نوم ريطة بنت سعد بن تيم القرشية وو، مطلب دادې چې تاسو الله سره كومه وعده كړې ده، هغه ماتوئى مه، گنى ستاسو تول شوې محنت به بې كاره شى.
قوله: برم: صحيح كول، يعنى سوتلئ دوباره بنړول(صراح)
قوله: حال من ضمير تكونوا: يعنى تتخذون دتكونوا د ضمير نه حال دې، نه چې مفعول ثانى، څكه چې تكون متعدى په دوو مفعولو سره نه وى، خو تر دې چې د تصيير وغيره معنې لره متضمن شى.
قوله: انكاثا: دا د نكث جمع ده، زړه مالوچ د ريشولو نه پس تكړې تكړې كول.
قوله: وهوما ينكث: په دې كښې اشاره ده چې نكث په معنى د منكوث (منقوض) ده.
قوله: دخلا: دا د لاتكون د ضمير نه حال دې، اى لاتكونوا مغا بهين بأمراة شأنها هذا.
قوله: دخلا: بهانه، دهوكه، فساد، ظلم كول، پردې.
قوله: اربى: بښتلې شوې، زيات شوې، (ن) دا د (ربا) نه د اسم تفضيل صيغه ده.
قوله: اتفون: همزه د استفهام ده، تفون دا د (وفى) نه مضارع جمع مذكر حاضر صيغه ده، تاسو وفا كوئى.

قوله: اي اقدام: د قدم تفسير په اقدام سره کولو کښې ئې دا اشاره اوکړه، چې د يو قدم د خويدل د شرم او د عزت او د سزا لائق دې، نو چې کله دواړه قدمونه اوخويږي نو څه حال به وي.

قوله: صحيحة: مينځنۍ لاره، عام لاره

قوله: بصدکم عن الوفاء: په دې کښې اشاره ده چې صد لازم دې.

قوله: بصدکم غيرکم: په دې کښې اشاره ده، چې صد د منع معنې لره متضمن کيدو د وجه نه متعدي هم استعماليږي

قوله: فلا تنقضوا: دا د (ان) شرطيه جواب دې.

[اياتوله: ۱۰۱ _ ۱۰۱]

(وَإِذَا بَدَّلْنَا آيَةً مَّكَانَ آيَةٍ) بِنَسْخِهَا وَإِنْزَالِ غَيْرِهَا لِمَصْلَحَةِ الْعِبَادِ (وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ قَالُوا) أَيِ الْكُفَّارُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (إِنَّمَا أَنتَ مُفْتَرٍ) كَذَّابٌ تَقُولُهُ مِنْ عِنْدِكَ (بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ) حَقِيقَةَ الْقُرْآنِ وَفَائِدَةَ النَّسْخِ (قُلْ) لَهُمْ (نَزَّلَهُ رُوحُ الْقُدُسِ) جِبْرِيلُ (مِن رَّبِّكَ بِالْحَقِّ) مُتَعَلِّقٌ بِنَزَّلَ (لِيُثَبِّتَ الَّذِينَ آمَنُوا) بِإِيمَانِهِمْ بِهِ (وَهُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ) (وَلَقَدْ) لِلتَّحْقِيقِ (نَعْلَمُ أَنَّهُمْ يَقُولُونَ إِنَّمَا يُعَلِّمُهُ) الْقُرْآنَ (بَشَرٌ) وَهُوَ قَيْنٌ نَصْرَانِيٌّ كَانَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم يدخل عليه قال تعالى (لِّسَانُ) لُغَةُ (الَّذِي يُلْحِدُونَ) يَمِيلُونَ (إِلَيْهِ) أَنَّهُ يُعَلِّمُهُ (أَعْجَمِيٌّ وَهَٰذَا) الْقُرْآنُ (لِسَانٌ عَرَبِيٌّ مُّبِينٌ) ذُو بَيَانٍ وَفَصَاحَةٍ فَكَيْفَ يُعَلِّمُهُ أَعْجَمِيٌّ (إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ لَا يَهْدِيهِمُ اللَّهُ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ) مُؤْلِمٌ (إِنَّمَا يَفْتَرِي الْكَذِبَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ) الْقُرْآنِ بِقَوْلِهِمْ هَذَا مِنْ قَوْلِ الْبَشَرِ (وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَاذِبُونَ) وَالتَّأْكِيدُ بِالتَّكْرَارِ وَإِنَّ وَغَيْرِهِمَا رَدٌّ لِقَوْلِهِمْ (إِنَّمَا أَنتَ مُفْتَرٍ) (مَن كَفَرَ بِاللَّهِ مِن بَعْدِ إِيمَانِهِ إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ) عَلَى التَّلَفُّظِ بِالْكُفْرِ فَتَلَفَّظَ بِهِ (وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ) وَمَنْ مُبْتَدَأٌ أَوْ شَرْطِيَّةٌ وَالْخَبَرُ أَوِ الْجَوَابُ لَهُمْ وَعِيدٌ شَدِيدٌ دَلَّ عَلَى هَذَا (وَلَٰكِن مَّن شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا) لَهُ أَيْ فَتَحَهُ وَوَسَّعَهُ بِمَعْنَى طَابَتْ بِهِ نَفْسُهُ (فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِّنَ اللَّهِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ) (ذَٰلِكَ) الْوَعِيدُ لَهُمْ (بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا) اخْتَارُوهَا (عَلَى الْآخِرَةِ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ) (أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ) عَمَّا يُرَادُ بِهِمْ (لَا جَرَمَ) حَقًّا (أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْخَاسِرُونَ) لِمَصِيرِهِمْ إِلَى النَّارِ الْمُؤَبَّدَةِ عَلَيْهِمْ (ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ هَاجَرُوا) إِلَى الْمَدِينَةِ (مِن بَعْدِ مَا فُتِنُوا) عُذِّبُوا وَتَلَفَّظُوا بِالْكُفْرِ وَفِي قِرَاءَةٍ بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ أَيْ كَفَرُوا أَوْ فَتَنُوا النَّاسَ عَنِ الْإِيمَانِ (ثُمَّ جَاهَدُوا وَصَبَرُوا) عَلَى الطَّاعَةِ (إِنَّ رَبَّكَ مِن بَعْدِهَا) أَيِ الْفِتْنَةِ (لَغَفُورٌ) لَهُمْ (رَّحِيمٌ) بِهِمْ وَخَبَرُ إِنَّ الْأُولَى دَلَّ عَلَيْهِ خَبَرُ الثَّانِيَةِ

ترجمه: او کله چې مونږ يو آيت منسوخ کولو سره بل ددې په ځائې د بندګانو د مصلحت د پاره نازل کړو او څه چې نازل کړو الله په هغې باندې پورا خبردار دې، نو کفار نبی ﷺ ته وائی ته

خو په دروغه باندې جوړونکي ئې، دروغژن ئې قرآن دې د خپل ځان نه جوړ کړې دې، (داسې نه ده) بلکه حقیقت دادې چې په دوی کښې ډیر خلق د قرآن د حقیقت او د نسخ د فائدې نه ناخبر دي تاسو دوی ته اووایئ چې دې لره جبرئیل ﷺ د خپل رب د طرف نه په حقه سره نازلوی، بالحق د نزل متعلق دې، چې اهل ایمان ددې په ذریعې سره په ایمان باندې ثابت قدم وساتی او د مسلمانانو د پاره د هدایت او خوشخبری وی، مونږ ته خه پته ده چې کافران وائی چې ده ته قرآن یو سړې ورښائی، لقد د تحقیق د پاره دې، هغه یو نصرانی لوهار دې، نبی ﷺ به هغه خوا ته تلو، الله تعالی فرمائی د هغه سړی ژبه چې کوم ته دوی اشاره کوی، چې فلانکې ده ته ښائی عجمی دې، او دا قرآن په صفا عربۍ کښې دې، کوم چې فصیح او بلیغ دې، نو ده ته یو عجمی څنګه خودنه کولې شی، څوک چې د الله په آیتونو باندې ایمان نه راوړی، هغه ته د الله د طرف نه هدایت نه ملاویږی، او د هغوی د پاره دردناک عذاب دې، دروغ خو هغه خلق وائی څوک چې د الله په آیتونو باندې ایمان نه راوړی، ددوی دې وینه د وجې چې دا خو د انسان خبرې دی په حقیقت کښې دروغژن دا خلق دی، او تکرار او (ان) وغیره سره تاکید ددوی قول (انما انت مفتر) د رد د پاره دې، او کوم کس چې د ایمان نه روستو د الله نه منکر شو، نو د هغوی د پاره سخت وعید دې، البته هغه سړې ددې نه خلاص دې څوک چې د کفر په کلمه باندې مجبور کړې شو، او هغه په ژبه د کفر کلمه اووئیله، په داسې حال چې د هغه زړه په ایمان باندې مطمئن وو او (من) مبتدأ یا شرطیه دې، او خبر یا جواب ئې (لهم وعید شدید) دې چې د هغې په حذف باندې دا آیت (علیهم غضب من الله) دلالت کوی خو چې کوم خلق په کولاؤ سینه سره د کفر مرتکب شول یعنی په کولاؤ زړه سره ئې کفر اختیار کړو، یعنی د کفر نه د هغوی زړونه خوشحاله شول نو په هغوی باندې د الله غضب دې، او ددوی د پاره د الله لوئې عذاب دې، ددوی د پاره د عذاب دا وعید ددې وجې دې چې دوی د دنیا ژوند د آخرت په مقابله کښې خوښ کړو یعنی هغه ئې اختیار کړو، او الله د کافرانو رهنمائی نه کوی، دا هغه خلق دی، چې الله د چا په زړونو باندې او غوږونو باندې او په سترګو باندې مهر لګولې دې، او چې کوم کار ددوی نه مقصود دې د هغې نه دا خلق غافله دی، او دا خبره یقینی ده چې دا خلق په آخرت کښې د همیشګیر اور طرف ته تللو د وجه نه په تاوان کښې دی بیا یقینا ستا رب د هغه خلقو د پاره چا چې د تکلیفونو نه پس مدینې طرف ته هجرت اوکړو، او د کفر کلمه د ژبې نه اوخکلو نه پس او په یو قراءت کښې (فتنوا) معلومې صیغې سره دې، یعنی مشرکینو کفر کولو او خلقو لره ئې د ایمان نه منع کولو نه پس بیا هغوی جهاد اوکړو او په طاعت باندې ئې صبر اوکړو، بې شکه ستا رب دې امتحانونو نه پس دوی لره معاف کونکې او په دوی باندې رحم کونکې دې، او د اول (ان) خبر محذوف دې، چې په هغې باندې د دویم (ان) خبر دلالت کوی.

.........

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**:اذا: شرطيه دي، قالوا انما انت مفتر، جواب شرط دی.

**قوله**:والله اعلم بما ينزل: شرط اوجزاء په مينځ کښې جمله معترضه ده.

**قوله**:روح القدس: دا اضافت موصوف الى الصفت دي، اى الروح المقدس، د القدس په دال باندې ضمه او سکون دواړه جائز دی.

**قوله**:متعلق ينزل: يعنى متلبسا لره متعلق کيدو نه پس د «نزله» د ضمير مفعول نه حال دي، اى نزله متلبسا بالحق

**قوله**:هدی وبشری:

**سوال**: ددې عطف په «ليثبت» باندې دې، حالانکه دا عطف صحيح نه دې، ځکه چې دا دواړه معطوف عليه سره نه په اعراب کښې متحد دی او نه په علت کښې، حالانکه دا دواړه خبرې ضروری دی؟

**جواب**:هدی او بشرا عطف د ليثبت په محل باندې دې، ليثبت کښې لام د تعليل دې، چې د هغې نه پس ان مصدريه مقدر دې، چې د هغې د وجه نه مضارع د مصدر په معنى کښې ده، په يثبت کښې «هو» ضمير فاعل دې، چې د هغې مرجع قرآن دې، او ليثبت مفعول لاجله کيدو د وجه نه محلا منصوب دې، او هدی او بشرا دواړه مصدر دی، چې د هغې عطف د ليثبت په محل باندې دې، اى تثبيتا وهداية وبشارة لهذا اوس د مطابقت نه موجود کيدو دلته اعتراض نشته.

**قوله**:للتحقيق: دا ددې سوال جواب دې، چې کله «قد» په مضارع باندې داخل شی، نو عموما د تقليل په معنى کښې وی حالانکه دلته د تقليل، نه د لنعلم سره سمون خوری او نه د الله پاره کښې مناسب دې؟

د جواب حاصل دادې چې «قد» دلته د تحقيق د پاره دې، په «لقد» کښې لام قسميه دې.

**قوله**:قين: لوهار، «جمع» قيون، واقيان

**قوله**:يميلون اليه اي يشيرون اليه:

**قوله**:اعجمى: کوم چې فصيح اللسان نه وی اگرچې عربی وی او عجمی منسوب الى العجم، څوک چې د عربئ نه واقف نه وی، اگرچې فصيح وی.

**قوله**:والتاكيد بالتكرار وان وغيرهما: چونکه کافرانو ډير په تاکيد سره انما انت مفتر وئيلو سره د قرآن د نزول نه انکارکړې وو، نو د هغې جواب هم په ډيرو تکيداتو سره ورکړې شو، د اول تکرار نه مراد د ان الذين لا يؤمنون تکرار دې، او د غيرهما نه ضمير فصل مراد دې او

تعریف د مسند او د جملې اسمیه کیدل دی، لهذا په ظاهر کښې چې د تکذیب حصر کوم چې په قریشو کښې معلومیدو، ختم شو.

**قوله:من مبتدأ: او شرطية:** د (من کفر الله) په (من) کښې دوه احتماله دی، یو دا چې (من) موصوله مبتدأ وی نه چې الذین لا یؤمنون بآیات الله، نه بدل، ځکه چې د بدل او مبدل منه په مینځ کښې فصل بالاجنبی جائز نه دی، او دلته، اولئك هم الكاذبون) فصل موجود دی، (من) موصوله مبتدأ ګڼړلو په صورت کښې (کفر) ددې صله به وی، او موصوله به صلې سره میلاویدو نه پس مبتدأ وی، او ددې خبر به محذوف وی، او هغه ولهم وعید شدید، دی او دویم احتمال دادې چې (من) شرطیه وی او جزا مقدر وی، او هغه ولهم وعید شدید، دی، څنګه علامه سیوطی ښکاره کړې ده، او دال په حذف دا مخکښې جمله فعليهم من الله، ولهم عذاب شدید ده.

**قوله:صدراله:** د (له) اضافه ددې شبهې جواب دې، چې د شرح صله باء نه رازی حالانکه دلته بالکفر کښې باء صله واقع شوې ده؟
جواب دادې چې باء په معنی د لام ده.

**قوله:بمعنی طابت:** دا ددې شبهې جواب دې چې دلته د فتحه هیڅ معنی نشته،
جواب دادې چې فتحه په معنی د طاب دې، او دې خبرې طرف ته هم اشاره اوشوه، چې صدرا مفعول نه منقول کیدو سره تمیز واقع شوې؟

**قوله:اختاروها:** دا اضافه ددې سوال جواب دې، چې د استحبوا صله علی نه رازی، حالانکه دلته علی صله واقع شوې دې،
د جواب حاصل دادې چې استحبوا، د اختاروا په معنی کښې دې، لهذا اوس څه اعتراض پاتې نشو.

**قوله:وفي قراءة بالبناء للفاعل:** یعنی په (فتنوا) کښې دوه قراءتونه دی، مجهول او معروف، د مجهول په صورت کښې مهاجرین به نائب فاعل وی، او د کفروا فاعل هم، او د معروف په صورت کښې د دواړو فعلونو فاعل به کفار وی، یعنی مشرکینو کفر اوکړو، او خلق ئې د ایمان نه منع کړل.

**قوله:خبران الاولى، الخ:** اول (ان) خبر حذف کړې شوې دې، ځکه چې د دویم (ان) خبر د خبر په حذف باندې دلالت کوی.

**[آیاتونه: ۱۱۱ ـ ۱۱۹]**

---

اذْكُرْ {يَوْمَ تَأْتِي كُلُّ نَفْسٍ تُجَادِلُ} تُحَاجُّ {عَنْ نَفْسِهَا} لَا يُهِمُّهَا غَيْرُهَا وَهُوَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ {وَتُوَفَّى كُلُّ نَفْسٍ} جَزَاءَ {مَا عَمِلَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ} شَيْئًا {وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا} وَيُبْدَلُ مِنْهُ {قَرْيَةً} هِيَ مَكَّةُ وَالْمُرَادُ أَهْلُهَا

{كَانَتْ آمِنَةً} مِنَ الغَارَاتِ لَا تُهَاجُ {مُطْمَئِنَّةً} لَا يُحْتَاجُ إِلَى الإِنْتِقَالِ عَنْهَا لِضِيقٍ أَوْ خَوْفٍ {يَأْتِيهَا رِزْقُهَا رَغَدًا} وَاسِعًا {مِنْ كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِأَنْعُمِ اللَّهِ} بِتَكْذِيبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {فَأَذَاقَهَا اللَّهُ لِبَاسَ الْجُوعِ} فَقُحِطُوا سَبْعَ سِنِينَ {وَالْخَوْفِ} بِسَرَايَا النبي صلى الله عليه وسلم {بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ} {وَلَقَدْ جَاءَهُمْ رَسُولٌ مِنْهُمْ} مُحَمَّدٌ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {فَكَذَّبُوهُ فَأَخَذَهُمُ الْعَذَابُ} الجُوعُ وَالْخَوْفُ {وَهُمْ ظَالِمُونَ} {فكلوا} أيها المؤمنون {مما رزقكم الله حلالا طيبا واشكروا نعمة الله إن كنتم إياه تعبدون} {إنما حرم عليكم الميتة والدم ولحم الخنزير وما أهل لغير الله به فمن اضطر غير باغ ولا عاد فإن الله غفور رحيم} {وَلَا تَقُولُوا لِمَا تَصِفُ أَلْسِنَتُكُمُ} أَيْ لِوَصْفِ أَلْسِنَتِكُمُ {الْكَذِبَ هَذَا حَلَالٌ وَهَذَا حَرَامٌ} لِمَا لَمْ يُحِلَّهُ اللهُ وَلَمْ يُحَرِّمْهُ {لِتَفْتَرُوا عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ} بِنِسْبَةِ ذَلِكَ إِلَيْهِ {إن الذين يفترون على الله الكذب لا يفلحون} لَهُمْ {مَتَاعٌ قَلِيلٌ} فِي الدُّنْيَا {وَلَهُمْ} فِي الآخِرَةِ {عَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِمٌ {وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا} أَيِ اليَهُودِ {حَرَّمْنَا مَا قَصَصْنَا عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ} فِي آيَةِ {وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِي ظُفُرٍ} إِلَى آخِرِهَا {وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ} بِتَحْرِيمِ ذَلِكَ {وَلَكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ} بِارْتِكَابِ المَعَاصِي المُوجِبَةِ لِذَلِكَ {ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ عَمِلُوا السُّوءَ} الشِّرْكَ {بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابُوا} رَجَعُوا {مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ وَأَصْلَحُوا} عَمَلَهُمْ {إِنَّ رَبَّكَ مِنْ بَعْدِهَا} أَيِ الجَهَالَةِ أَوِ التَّوْبَةِ {لَغَفُورٌ} لَهُمْ {رَحِيمٌ} بِهِمْ

**ترجمه:** هغه ورځ یاد کړه چې په کومه ورځ به هر کس د خپل ځان د پاره جګړه او دلیل پیش کولو سره راشي، هغه ته به د بل چا غم نه وي، او هغه به د قیامت ورځ وي، هر کس ته به د هغه د اعمالو پورا پورا بدله ورکړې شي، او هغه باندې به بالکل ظلم نه کیږي، او الله تعالی د یو کلی عجیبه حالت بیانوي، قریة د مثلا نه بدل دې، او هغه کلي مکه ده، او مراد ترې نه د مکې اوسیدونکي دي، چې هغوی د تاخت او تاراج نه په امن او حفاظت کښې وو، د څه تنګی او د ویرې نه د هغه ځای نه د منتقل کیدو ضرورت نه وو، د هغه کلي والا رزق یا فراغت د هر ځائې نه راروان وو، بیا هغوی د حضور ﷺ تکذیب کولو سره د الله د نعمتونو ناشکري اوکړه نو الله تعالی دوی ته د اوږدې لوږې عذاب چې اوو کاله په قحط کښې مبتلا وو، او د حضور ﷺ د سرایو د ویرې مزه اوڅکوله، دا ټول هر څه ددوی د کارونو د وجه اوشول دوی ته ددوی نه یو رسول محمد ﷺ راغلو، بیا هم دوی هغه دروغ اوګڼلو نو هغوی د لوږې او د ویرې عذاب اونیول، او هغوی خو وو ظالمان، اې ایمان والو الله چې تاسو ته کوم حلال رزق درکړې دې د هغې نه خوراک کوئی، او د الله د نعمتونو شکر ادا کړئ که چرې تاسو د هغه بندګی کوئی، په تاسو باندې صرف مرداره او وینه او د خنزیر (سور) غوښه، او په کوم څیز چې د الله نه بغیر د بل چا نوم واخستلې شي، حرام کړې شوې دی، بیا هغه کس چې د لوږې د وجې نه بالکل بې قراره شي، په شرط ددې چې د لذت غوښتونکې نه وي، او نه د حد نه تجاوز کونکې وي، نو ددې دې خوراک لره الله تعالی معاف کونکې او رحم کونکې دې، او یو څیز نه چې د ژبې نه اوزی دروغ مه وائی چې دا حلال دی او دا حرام دی، څکه چې الله دې لره نه حرام کړې دی او نه ئې حلال کړې دی، او نه دې

ته حرام وئیلو سره د دې (د حلت او د حرمت) نسبت الله تعالی ته کولو سره په الله باندې الزام تراشي کوئی، یقینا هغه خلق څوک چې په الله باندې الزام لګوی هغوی چرته هم کامیابی نه مومي، ددوی د پاره په دنیا کښې څو ورځې خوشحالی ده، او په آخرت کښې ددوی دپاره دردناک عذاب دې، او په یهودیانو باندې مونږ هغه څیزونه حرام کړل، چې د هغې بیان مونږ ددې نه مخکښې تاته کړې دې، وعلى الذين هادوا حرمنا كل ذى ظفر (الخ) یعنی مونږ په یهودیانو باندې هر نوکونو والا ځناور حرام کړې دی، دې څیزونو لره حرام ګولو سره مونږ په دوی باندې ظلم نه دې کړې، بلکه د هغه ګناهونو ارتکاب کولو سره، کوم چې د دی سزا سبب دې په خپله ځان باندې ظلم اوکړو، بیا ستا رب داسې خلقو د پاره چا چې د کم عقل توب د وجه نه شرک اوکړو بیا هغوی دې نه پس توبه اوکړه، او د خپل اعمالو اصلاح ئې اوکړه، نو ستا رب ددوی د جهالت یا د توبې نه پس ډیر بخښنې والا او لوئې رحمت والا دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: تحاج:** د تجادل صله چونکه (عن) نه رازی څکه مفسر علام اشاره اوکړه چې تجادل د تحاج په معنې کښې دې،

**قوله: لایهمها غیرها:** یعنی چاته به دچا غم نه وی، بلکه هرسړې به نفسی نفسی اوازونه کوی.

**قوله: جزاء:** په دې کښې د مضاف حذف طرف ته اشاره ده، چې دتوفی عمل هیڅ معنی نشته، څکه چې د اعراضو انتقال نه کیږی.

**قوله: لا تهاج:** دا د (اهاج الغبار) نه ماخوذ دې، په معنی د دوړو الوزولو، او په فارسئ کښې په معنی د تاراج شد.

**قوله: لباس الجوع:** لوږې او ویرې لره ئې د لباس سره مشابهت ورکړو، په دواړو کښې وجه تشبیه دا ده، چې څنګه لوږه او ویره د انسان جسم د څلورواړو طرفونو نه ګیر کړی، او ددې اثر په پورا جسم باندې وی، دغه شان لباس هم پورا جسم لره پټوی، څکه ئې د لوږې او د ویرې تشبیه د لباس سره ورکړه، او د ادراک ئې د څکلو سره څکه تعبیر اوکړو چې د څکلو سره د بعضې څیزونو ادراک کیږی.

**قوله: لوصف السنتكم:** په دې کښې اشاره ده چې په لما تصف کښې ما مصدریه ده.

**قوله: الکذب:** د لا تقولو د وجه نه منصوب دې.

**قوله: هذا حلال وهذا حرام:** دا د الکذب نه بدل دې.

**قوله: لهم: متاع، متاع قليل مبتدأ، او لهم خبر مقدم دی.**

**سوال: يوم تأتي كل نفس تجادل عن نفسها:** دلته یو سوال پیدا کیږی چې په عن نفسها کښې د نفس اضافت نفس طرف ته کیږی، حالانکه د مضاف او مضاف الیه په مینځ کښې تغایر

پکار وی، گنی اضافة الشئ الی نفسه به لازم راشی؟

**جواب:** اول نفس نه پورا د انسان جسم مراد دې، او د ثاني نفس نه ذات عبارت دې، کل انسان يجادل عن ذاته ولا يهمه غيرها، د مجادله معنی غذر پيش کول.

**[اياتونه: ۱۲۰ ـ ۱۲۸]**

{إِنَّ إِبْرَاهِيمَ كَانَ أُمَّةً} إمَامًا قُدْوَةً جَامِعًا لِخِصَالِ الْخَيْر {قَانِتًا} مُطِيعًا {لِلَّهِ حَنِيفًا} مَائِلًا إلى الدين القيم {ولم يك من المشركين} {شاكرا لأنعمه اجتباه} اصطفاه {وهداه إلى صراط مستقيم} {وَآتَيْنَاهُ} فِيهِ الْتِفَات عَنْ الْغَيْبَة {فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً} هِيَ الثَّنَاء الْحَسَن فِي كُلّ أَهْل الْأَدْيَان {وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ} الَّذِينَ لَهُمْ الدَّرَجَات الْعُلَى {ثُمَّ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ} يَا مُحَمَّد {أَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ} دِين {إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ} كُرِّرَ رَدًّا عَلَى زَعْم الْيَهُود وَالنَّصَارَى أَنَّهُمْ عَلَى دِينه {إِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ} فُرِضَ تَعْظِيمه {عَلَى الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ} عَلَى نَبِيّهمْ وَهُمْ الْيَهُود أُمِرُوا أَنْ يَتَفَرَّغُوا لِلْعِبَادَةِ يَوْم الْجُمُعَة فَقَالُوا لَا نُرِيدهُ وَاخْتَارُوا السَّبْت فَشُدِّدَ عَلَيْهِمْ فِيهِ {وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ} مِنْ أَمْره بِأَنْ يُثِيب الطَّائِع وَيُعَذِّب الْعَاصِيَ بِانْتِهَاكِ حُرْمَته {ادْعُ} النَّاس يَا مُحَمَّد {إِلَى سَبِيلِ رَبِّكَ} دِينه {بِالْحِكْمَةِ} بالقرآن {وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ} مَوَاعِظه أَوْ القول الرقيق {وجادلهم بالتي} أَيْ الْمُجَادَلَة الَّتِي {هِيَ أَحْسَنُ} كَالدُّعَاءِ إلَى اللَّه بِآيَاتِهِ وَالدُّعَاء إلَى حُجَجه {إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ} أَيْ عَالِم {بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ} فَيُجَازِيهِمْ وَهَذَا قَبْل الْأَمْر بِالْقِتَالِ وَنَزَلَ لَمَّا قُتِلَ حَمْزَة وَمُثِّلَ بِهِ فَقَالَ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ رَآهُ لَأُمَثِّلَنَّ بِسَبْعِينَ مِنْهُمْ مَكَانك {وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ بِهِ وَلَئِنْ صَبَرْتُمْ} عَنْ الِانْتِقَام {لَهُوَ} أَيْ الصَّبْر {خَيْرٌ لِلصَّابِرِينَ} فَكَفَّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَفَّرَ عَنْ يَمِينه رَوَاهُ الْبَزَّار {واصبر وما صبرك إلا بالله} بتوفيقه {ولا تحزن عليهم} أي الكفار وإن لَمْ يُؤْمِنُوا لِحِرْصِك عَلَى إِيمَانهمْ {وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِمَّا يَمْكُرُونَ} أَيْ لَا تَهْتَمّ بِمَكْرِهِمْ فَأَنَا نَاصِرك عَلَيْهِمْ {إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوْا} الْكُفْر وَالْمَعَاصِيَ {وَالَّذِينَ هُمْ مُحْسِنُونَ} بِالطَّاعَةِ وَالصَّبْر بِالْعَوْنِ وَالنَّصْر

**ترجمه:** بې شک ابراهيم عليه السلام امام پيشوا وو، چې د ټولو ښو عادتونو جامع وو، د الله فرمانبردار، صحيح دين طرف ته مخ کونکې وو، هغه د مشرکانو نه نه وو، د الله د نعمتونو شکرگزار وو، الله دې خپل خوښ جوړ کړې وو، او هغه ته ئې نيغه لاره خودلې وه، او مونږ هغه ته په دنيا کښې بهتروالې ورکړې وو، او د هر مذهب او ملت کښ د دوی خه تذکره ده، په دې کښې د غائب نه متکلم طرف ته التفات دې، او هغه به په آخرت کښې هم د نيکوکارو نه وی، د اسې خلقو د پاره اوچتې درجې دی، بيا اې محمد صلى الله عليه وسلم مونږ ستا طرف ته وحی راوليږله، چې ته د ابراهيم حنيف د ملت تابعداری اوکړه، او ابراهيم د مشرکانو نه نه وو، دې آيت لره د يهوديانو او عيسايانو دې دعوې د رد د پاره مکرره کړو، چې دوی د ابراهيم عليه السلام په ملت باندې دی، د خالی د ورځې عظمت هم په هغه خلقو باندې فرض کړې شوې وو، چا چې د خپل نبی سره

اختلاف اوکړو، او هغه یهود وو، دوی ته حکم ورکړې شوې وو، چې دوی د عبادت د پاره دې د جمعې په ورځ باندې فارغ وی نو دوی اووئیل چې مونږ د دی اراده نه کوو یعنی مونږ دا نه خوښوو او دوی د هغې ورځ خوښه کړه، نو الله تعالی دهغتې په ورځ باندې لوړه سختی اوکړه او یقینا ستا رب چې په کوم څیز کښې دوی اختلاف کوی د قیامت په ورځ باندې به د هغې په باره کښې فیصله اوکړی، په داسې طریقه چې فرمانبردارو ته به ثواب ورکړی او د یوم السبت بې حرمتی کولو والو ته به عذاب ورکړی، اې محمد ﷺ د خپل رب دین طرف ته په حکمت سره یعنی د قرآن په ذریعه او د ښو نصیحتونو په ذریعه دعوت ورکړه، یا په نرمئ سره دعوت ورکړه، او دوی سره په ښې طریقې سره بحث اوکړه، مثلا د الله د آیتونو په ذریعه الله طرف ته رابلل، او د هغې دلائلو طرف ته دعوت ورکول یقینا ستا رب هغه خلقو لره ښه پیژنی، څوک چې د هغه د لارې نه اوړیدلې وی، او هغه د هدایت کړې شوو خلقو نه هم خبردار دې، لهذا هغه به دوی ته سزا ورکړی، او دا حکم د جهاد حکم د نازلیدو نه مخکښې دې، او راروان آیت هغه وخت نازل شو، چې کله حمزه ﷺ شهید کړې شو، او د هغوی پوزه سترګې کټ شول، نوحضور ﷺ چې کله دوی اوکتل نو وئې فرمائیل چې څه به اویا کسان دده په ځائې باندې مُثله (مسخ) کوم، او که ته بدله اخلې نو صرف دومره واخله چې څومره تاته تکلیف درسیدلې دې، او که ته د انتقام نه صبر اوکړې نو دا صبر د صبر کونکو د پاره ډیر بهتر دې، چنانچه حضور ﷺ د خپلې ارادې نه واوړیدلو، او د خپل قسم کفاره ئې ادا کړه، (رواه البزار) ته صبر اوکړه یقینا ستا صبر کول د الله په توفیق سره به وی، او ته ددوی د ایمان په باره کښې د سخت حریص کیدو د وجه نه چې دوی ایمان نه راوړی نوتاسو خفه کیږئ مه، او ددوی مکرونو نه دې ستا زړه نه تنګیږی، یعنی ددوی مکرونو سره خفه کیږه مه، ځکه چې مونږ یقینا ددوی په مقابله کښې ستا مددګاریو، بې شکه الله هغه خلقو سره دې، چې د کفر او د ګناه نه ځان بچ کوی، او دمدد او نصرت په ذریعه، د هغه خلقو سره دې، چې د طاعت او د صبر په ذریعه نیکان دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: امة:** لفظ د امة په باره کښې د مفسرینو نه ډیر اقوال منقول دی، په دې آیت کښې د امة اطلاق په ابراهیم ﷺ باندې شوې دې، یا خو ابراهیم ﷺ یواځې په ټولو کمالی صفتونو باندې متصف کیدو د وجه نه د یو امت قائم مقام وو، لکه چې یو شاعر وائی:

لیس من الله بمستنکر ان یجمع العالم فی واحد.

دویمه وجه د ابراهیم ﷺ ته د امت وئیلو دا هم کیدې شی چې دوی په خپله زمانه کښې یوازې مومن وو، باقی ټول کافران وو، ددې وجه نه دوی ته امت اووئیلې شو،

دریمه وجه داده، چې امة په معنی د ماموم، یعنی مقتدا او امام، ځکه چې الله تعالی

اوفرمائيل انى جاعلك للناس اماما: ذكر شوي تولو توجيهاتو په رنړا كښې دا اعتراض ختم شو چې د امة اطلاق په ابراهيم عليه السلام باندې صحيح نه دې، ځكه چې ابراهيم عليه السلام يوازې وو، او د امة اطلاق په جمع باندې كيږي.

**قوله: اجتباه: اى للنبوة**

**قوله: فرض:** دې كښې اشاره ده چې جعل په معنى د فرض كښې د ې.

**قوله: تعظيمه:** په دې كښې د مضاف د حذف طرف ته اشاره ده، ځكه چې د فرض تعلق د فعل سره وى، نه چې څيزونو او زمانې سره، او د خالى ورځ زمانه ده.

**قوله: القول الرفيق:** رفيق د رفق نه ماخوذ دې، ددې معنى نرمى اوسهولت دې، مطلب دادې چې د دين دعوت په نرمې خبرې، په خوږې ژبې سره وركړئ.

## پاره نمبر ۱۵ [سُبْحَانَ الَّذِي] [۱۷] سورة الإسراء

**سورة الاسراء مكية الا وان كادوا ليفتنونك الايات الثمان مائة وعشر ايات او احدى عشرة اية**

سورة اسراء مكى د ې سوا د وَإِنْ كَادُوا لَيَفْتِنُونَكَ اته آيتونو نه، ۱۱۰ يا ۱۱۱ آيتونه دى.

**[ اياتونه: ۱-۱۰ ]**

بسم الله الرحمن الرحيم (سُبْحَانَ) أَيْ تَنْزِيه (الَّذِي أَسْرَى بِعَبْدِهِ) مُحَمَّد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (لَيْلًا) نُصِبَ عَلَى الظَّرْف وَالْإِسْرَاء سَيْر اللَّيْل وَفَائِدَة ذِكْره الْإِشَارَة بِتَنْكِيرِهِ إِلَى تَقْلِيل مُدَّته (مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى) بَيْت الْمَقْدِس لِبُعْدِهِ مِنْهُ (الَّذِي بَارَكْنَا حَوْلَهُ) بِالثِّمَارِ وَالْأَنْهَار (لِنُرِيَهُ مِنْ آيَاتِنَا) عَجَائِب قُدْرَتنَا (إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ) أَيْ الْعَالِم بِأَقْوَالِ النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَفْعَاله فَأَنْعَمَ عَلَيْهِ بِالْإِسْرَاءِ الْمُشْتَمِل عَلَى اجْتِمَاعه بِالْأَنْبِيَاءِ وَعُرُوجه إِلَى السَّمَاء وَرُؤْيَة عَجَائِب الْمَلَكُوت وَمُنَاجَاته لَهُ تَعَالَى فَإِنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُتِيت بِالْبُرَاقِ وَهُوَ دَابَّة أَبْيَض فَوْق الْحِمَار وَدُون الْبَغْل يَضَع حَافِره عِنْد مُنْتَهَى طَرْفه فَرَكِبْته فَسَارَ بِي حَتَّى أَتَيْت بَيْت الْمَقْدِس فَرَبَطْت الدَّابَّة بِالْحَلْقَةِ الَّتِي تَرْبِط فِيهَا الْأَنْبِيَاء ثُمَّ دَخَلْت فَصَلَّيْت فِيهِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجْت فَجَاءَنِي جِبْرِيل بِإِنَاءٍ مِنْ خَمْر وَإِنَاء مِنْ لَبَن فَاخْتَرْت اللَّبَن قَالَ جِبْرِيل أَصَبْت الْفِطْرَة قَالَ ثُمَّ عُرِجَ بِي إِلَى السَّمَاء الدُّنْيَا فَاسْتَفْتَحَ جِبْرِيل قِيلَ مَنْ أَنْتَ قَالَ جِبْرِيل قِيلَ وَمَنْ مَعَك قَالَ مُحَمَّد قِيلَ أَوَ قَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ قَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ فَفُتِحَ لَنَا فَإِذَا أَنَا بِآدَم فَرَحَّبَ بِي وَدَعَا لِي بِالْخَيْرِ ثُمَّ عُرِجَ بِي إِلَى السَّمَاء الثَّانِيَة فَاسْتَفْتَحَ جِبْرِيل فَقِيل مَنْ أَنْتَ قَالَ جِبْرِيل قِيلَ وَمَنْ مَعَك قَالَ مُحَمَّد قِيلَ أَوَ قَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ قَالَ قَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ فَفُتِحَ لَنَا فَإِذَا انا بِابْنَيْ الْخَالَة يَحْيَى وَعِيسَى فَرَحَّبَا بِي وَدَعَوَا لِي بِالْخَيْرِ ثُمَّ عُرِجَ بِنَا إِلَى السَّمَاء الثَّالِثَة فَاسْتَفْتَحَ جِبْرِيل فَقِيلَ مَنْ أَنْتَ قَالَ جِبْرِيل فَقِيلَ وَمَنْ مَعَك قَالَ مُحَمَّد فَقِيلَ أَوَ قَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ قَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ فَفُتِحَ لَنَا فَإِذَا أَنَا بِيُوسُف وَإِذَا هُوَ قَدْ أُعْطِيَ شَطْر الْحُسْن فَرَحَّبَ بِي وَدَعَا لِي بِخَيْرٍ ثُمَّ عُرِجَ بِنَا إِلَى السَّمَاء الرَّابِعَة فَاسْتَفْتَحَ جِبْرِيل فَقِيلَ مَنْ أَنْتَ قَالَ جِبْرِيل فَقِيلَ وَمَنْ مَعَك قَالَ مُحَمَّد فَقِيلَ أَوَ قَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ قَالَ قَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ فَفُتِحَ لَنَا فَإِذَا أَنَا بِإِدْرِيس فَرَحَّبَ بِي وَدَعَا لِي بِخَيْرٍ ثُمَّ عُرِجَ

بنا الی السماء الخامسة فاستفتح جبريل فقيل من انت قال جبريل فقيل ومن معك قال محمد فقيل او قد بعث اليه قال قد بعث اليه ففتح لنا فاذا انا بهارون فرحب بي ودعا لي بخير ثم عرج بنا الى السماء السادسة فاستفتح جبريل فقيل من انت قال جبريل فقيل ومن معك قال محمد فقيل او قد بعث اليه قال قد بعث اليه ففتح لنا فاذا انا بموسى فرحب بي ودعا لي بخير ثم عرج بنا الى السماء السابعة فاستفتح جبريل فقيل من انت قال جبريل قيل ومن معك قال محمد فقيل او قد بعث اليه قال قد بعث اليه ففتح لنا فاذا انا بابراهيم فاذا هو مستند الى البيت المعمور واذا هو يدخله كل يوم سبعون الف ملك ثم لا يعودون اليه ثم ذهب الى سدرة المنتهى فاذا اوراقها كآذان الفيلة واذا ثمرها كالقلال فلما غشيها من امر الله ما غشيها تغيرت فما احد من خلق الله تعالى يستطيع ان يصفها من حسنها قال فاوحى الله الي ما اوحى وفرض علي في كل يوم وليلة خمسين صلاة فنزلت حتى انتهيت الى موسى فقال ما فرض ربك على امتك قلت خمسين صلاة في كل يوم وليلة قال ارجع الى ربك فاسأله التخفيف فان امتك لا تطيق ذلك واني قد بلوت بني اسرائيل وخبرتهم قال فرجعت الى ربي فقلت اي رب خفف عن امتي فحط عني خمسا فرجعت الى موسى قال ما فعلت فقلت قد حط عني خمسا قال ان امتك لا تطيق ذلك فارجع الى ربك فاسأله التخفيف لامتك قال فلم ازل ارجع بين ربي وبين موسى ويحط عني خمسا خمسا حتى قال يا محمد هي خمس صلوات في كل يوم وليلة بكل صلاة عشر فتلك خمسون صلاة ومن هم بحسنة فلم يعملها كتبت له حسنة فان عملها كتبت له عشرا ومن هم بسيئة ولم يعملها لم تكتب فان عملها كتبت له سيئة واحدة فنزلت حتى انتهيت الى موسى فاخبرته فقال ارجع الى ربك فاسأله التخفيف لامتك فان امتك لا تطيق ذلك فقلت قد رجعت الى ربي حتى استحييت رواه الشيخان واللفظ لمسلم وروى الحاكم في المستدرك عن ابن عباس قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم رأيت ربي عز وجل قال تعالى (وآتينا موسى الكتاب) التوراة (وجعلناه هدى لبني اسرائيل) ل (أ) ن (لا يتخذوا من دوني وكيلا) يفوضون اليه امرهم وفي قراءة تتخذوا بالفوقانية التفاتا فان زائدة والقول مضمر يا (ذرية من حملنا مع نوح) في السفينة (انه كان عبدا شكورا) كثير الشكر لنا حامدا في جميع احواله (وقضينا) اوحينا (الى بني اسرائيل في الكتاب) التوراة (لتفسدن في الارض) ارض الشام بالمعاصي (مرتين ولتعلن علوا كبيرا) تبغون بغيا عظيما (فاذا جاء وعد اولاهما) اولى مرتي الفساد (بعثنا عليكم عبادا لنا اولي بأس شديد) اصحاب قوة في الحرب والبطش (فجاسوا) ترددوا لطلبكم (خلال الديار) وسط دياركم ليقتلوكم ويسبوكم (وكان وعدا مفعولا) وقد افسدوا الاولى بقتل زكريا فبعث عليهم جالوت وجنوده فقتلوهم وسبوا اولادهم وخربوا بيت المقدس (ثم رددنا لكم الكرة) الدولة والغلبة (عليهم) بعد مائة سنة بقتل جالوت (وامددناكم باموال وبنين وجعلناكم اكثر نفيرا) عشيرة وقلنا (ان احسنتم) بالطاعة (احسنتم لانفسكم) لان ثوابه لها (وان اسأتم) بالفساد (فلها) اساءتكم (فاذا جاء وعد) المرة (الآخرة) بعثناهم (ليسوءوا وجوهكم) يحزنوكم بالقتل والسبي حزنا يظهر في وجوهكم (وليدخلوا المسجد) بيت المقدس فيخربوه (كما دخلوه) وخربوه

(أول مرة وليتبروا) يهلكوا (ما علوا) غلبوا عَلَيْهِ (تَتْبِيرًا) هَلَاكًا وَقَدْ أَفْسَدُوا ثَانِيًا بِقَتْلِ يَحْيَى فَبَعَثَ عَلَيْهِمْ بُخْتَ نَصَّرَ فَقَتَلَ مِنْهُمْ أُلُوفًا وسبى ذريتهم وخرب بيت المقدس وقلنا في الكتاب (عسى ربكم أن يَّرْحَمَكُمْ) بَعْدَ الْمَرَّةِ الثَّانِيَةِ إِنْ تُبْتُمْ (وَإِنْ عُدْتُمْ) إِلَى الْفَسَادِ (عُدْنَا) إِلَى الْعُقُوبَةِ وَقَدْ عَادُوا بِتَكْذِيبِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسُلِّطَ عَلَيْهِمْ بِقَتْلِ قُرَيْظَةَ وَنَفْيِ النَّضِيرِ وَضَرْبِ الْجِزْيَةِ عَلَيْهِمْ (وجعلنا جهنم للكافرين حصيرا) محبسا وسجنا (إن هذا القرآن يهدي لِلَّتِي) أَيْ لِلطَّرِيقَةِ الَّتِي (هِيَ أَقْوَمُ) أعدل واصوب (ويبشر المؤمنين الذين يعملون الصالحات أن لهم أجرا كبيرا) (وَ) يُخْبِرُ (أَنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ أَعْتَدْنَا) أعددنا (لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا) مؤلما هو النار

**ترجمه:** شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربان ډير رحم کولو والا دې، پاک دې هغه ذات چې خپل بنده، محمد ﷺ ليلا د ظرفيت د وجه نه منصوب دې، او اسراء د شپې سفر ته وئيلې شي، او د ليل د ذکر کولو فائده د ليل د نکره والى نه د سفر د مودې د لږوالى طرف ته اشاره ده، مسجد حرام يعنى د مکې نه مسجد اقصى يعنى بيت المقدس پورې د بيت المقدس نوم بيت الاقصى، ددې د مسجد حرام نه د لرې والى د وجه نه دې، چې د هغې په اطرافو کښې مونږه د ميوو او نهرونو په ذريعه سره برکت اچولې دې، چې مونږ محمد ﷺ ته د خپل قدرت عجائبات اوخايو، بې شکه هغه اوريدو والا او ليدو والا دې، يعنى هغه د نبى ﷺ د خبرو او کارونو نه خبردار دې، نو الله تعالى په دوى باندې د شپې د سفر انعام اوکړو، کوم چې د انبياؤ سره د ملاقات، په اسمانونو ته د هغوى تشريف اوړل، او د عالم بالا عجائبات ليدلو سره، او د الله تعالى په خبرو باندې مشتمل وو، خلاصه دا چې حضور ﷺ اوفرمائيل چې زما طرف ته يو سپين څناور راوړې شو، کوم چې د خر نه غټ او د خچر نه وړوکې وو، هغه خپل قدم د نظر په اختتام بادې اېښودلو چنانچه څۀ په هغې باندې سور شوم، نو هغه روان شو تردې چې زه بيت المقدس ته اورسيدم، او ما هغه څناور هغه حلقې سره اوتړلو کومې سره چې به پيغمبرانو خپلې سورلۍ تړلې، بيا څۀ بيت المقدس ته داخل شوم، ما په هغې کښې دوه رکعته مونځ اوکړو، نو بيا څۀ بهر راوتلم، نو جبرائيل ﷺ ماته دوه لوښې راوړل، په يو کښې شراب وو او بل کښې پئ، ما پئ خوښ کړل، جبرائيل ﷺ عرض اوکړو چې تا فطرت اختيار کړو، بيا هغوى اوفرمائيل چې څۀ د دنيا داسمان نه (نزدې اسمان) طرف ته ئې روان کړم، نو جبرائيل ﷺ دستک اوکړو ددوى نه معلومات اوکړې شو، چې تاسو څوک يئ؟ نو جواب ئې ورکړو، چې څۀ جبرائيل ﷺ بيا سوال اوکړې شو، چې تاسو سره څوک دى؟ وې فرمائيل محمد ﷺ دې، نو بيا تپوس اوکړې شو، چې ايا هغه ته دعوت ورکړې شوې دې،؟ جبرائيل ﷺ جواب ورکړو، رابللې شوې دې،، ددې نه پس زمونږ د پاره دروازه کولاؤ کړې شوه،

نو اچانک زمونږ ملاقات حضرت ادم ﷺ سره اوشو نو حضرت ادم ﷺ ماته مرحبا اوئیل، او ماته ئې د خیر دعا اوکړه، بیا جبرائیل ﷺ څه دویم اسمان ته بوتلم، نو جبرائیل ﷺ دستک اوکړو، نو د هغوی نه تپوس اوکړې شو چې څوک؟ نو وئې فرمائیل چې جبرائیل یم، تپوس اوکړې شو، چې تاسره نور څوک شته؟ وئې فرمائیل محمد ﷺ، معلومه کړې شوه چې ایا دوی رابللې شوې دی؟ جواب ئې ورکړو چې او رابللې شوې دی، چنانچه زمونږ د پاره دروازه کولاؤ کړې شوه، نو اچانک د یحیی او عیسی (علیهما السلام) سره ووم، کوم چې د ترور خامن دی، دواړو ماته مرحبا اووئیل، او د خیر دعا ئې راته اوکړه، بیا جبرائیل ﷺ څه دریم اسمان ته بوتلم، نو جبرائیل ﷺ دستک اوکړو، تپوس اوکړې شو چې څوک؟ وئې فرمائیل جبرائیل، سوال اوشو چې تاسره څوک دی؟ جواب ئې ورکړو چې محمد ﷺ، معلومه کړې شوه چې هغه رابللې شوې دې که نه،؟ وئې فرمائیل چې رابللې شوې دې، نو زمونږ د پاره دروازه کولاؤ کړې شوه، نو اچانک زمونږ ملاقات یوسف ﷺ سره اوشو، اومې کتل نو پته اولږیدله چې د ټول حسن نه هغوی ته نیم ورکړې شوې دې، نو هغوی ماته مرحبا اووئیل، او د خیر دعا ئې اوکړه، بیا جبرائیل څه څلورم اسمان ته بوتلم، نو جبرائیل ﷺ دستک اوکړو، تپوس اوکړې شو چې څوک؟ وئې فرمائیل جبرائیل، سوال اوشو چې تاسره څوک دی؟ جواب ئې ورکړو چې محمد ﷺ، معلومه کړې شوه چې هغه رابللې شوې دې که نه،؟ وئې فرمائیل چې رابللې شوې دې، نو زمونږ د پاره دروازه کولاؤ کړې شوه، نو اچانک زمونږ ملاقات ادریس ﷺ سره اوشو نو هغوی ماته مرحبا اووئیل او د خیر دعا ئې راکړه، ددې نه پس جبرائیل ﷺ څه پنځم اسمان ته بوتلم، نو جبرائیل ﷺ دستک اوکړو، تپوس اوکړې شو چې څوک؟ وئې فرمائیل جبرائیل، سوال اوشو چې تاسره څوک دی؟ جواب ئې ورکړو چې محمد ﷺ، معلومه کړې شوه چې هغه رابللې شوې دې که نه؟ وئې فرمائیل چې رابللې شوې دې، نو زمونږ د پاره دروازه کولاؤ کړې شوه، نو اچانک زمونږ ملاقات هارون ﷺ سره اوشو، نو هغه ماته مرحبا اووئیل او د خیر دعا ئې راته اوکړه، بیا څه جبرائیل ﷺ څه شپږم اسمان ته بوتلم، نو جبرائیل ﷺ دستک اوکړو، تپوس اوکړې شو چې څوک؟ وئې فرمائیل جبرائیل، سوال اوشو چې تاسره څوک دی؟ جواب ئې ورکړو چې محمد ﷺ، معلومه کړې شوه چې هغه رابللې شوې دې که نه،؟ وئې فرمائیل چې رابللې شوې دې، نو زمونږ د پاره دروازه کولاؤ کړې شوه، نو اچانک زمونږ ملاقات موسی ﷺ سره اوشو، هغوی ماته خوش امدید اووئیل او ماته ئې د خیر دعا اوکړه، بیا جبرائیل ﷺ څۀ اووم اسمان ته بوتلم، نو جبرائیل ﷺ دستک اوکړو، تپوس اوکړې شو چې څوک؟ وئې فرمائیل جبرائیل، سوال اوشو چې تاسره څوک

دی؟ جواب ئې ورکړو چې محمد ﷺ ، معلومه کړې شوه چې هغه رابللې شوې دې که نه؟ وئې فرمائيل چې رابللې شوې دې، نو زمونږ د پاره دروازه کولاؤ کړې شوه، نو اچانک زمونږ ملاقات ابراهيم عليه السلام سره اوشو، هغوی بيت المعمور ته ډډه وهلې وه، او په دې کښې روزانه اويا زره فرشتې داخليږی، ددې نه پس دوباره د هغې نمبر نه راځی، بيا ئې څه سدرة المنتهی ته بوتلم، نو اومې کتل چې د هغې پاڼې د هتيانو د غوږونو هومره وې، او د هغې ميوې د چاټئ (خُم) برابر وې، چې کله دې اونې لره د الله حکم پټه کړه يعنی چې کوم نور پټ کړه، نو ددې اونې حالت داسې بدل شو، چې د الله يو مخلوق به ددې د حسن تعريف اونکړې شی، نبی ﷺ اوفرمائيل چې ددې نه پس الله چې زما طرف ته کومه وحی غوښتله وئې کړه، او ما باندې پنځوس وخته مونځ فرض کړې شو، چنانچه چې کله څۀ لاندې راغلم، نو موسی عليه السلام څما نه تپوس اوکړو چې ستا رب ستا په امت باندې څه فرض کړل، نو اومې وئيل چې پنځوس مونځونه روزانه، نو موسی عليه السلام اوفرمائيل چې واپس لاړ شه او د الله نه د تخفيف سوال اوکړه، ځکه چې ستا امت ددې بوجه اوچتولې نشی، او ما بنی اسرائيل څه ازميښت کړی دی، نبی ﷺ اوفرمائيل چې څه خپل پروردګار ته واپس لاړم نو عرض مې اوکړو چې اې پروردګار څما په امت باندې سپکوالې اوکړې، نو ماته پنځه مونځونه کم کړې شول، ددې نه پس موسی عليه السلام ته لاړم، هغوی تپوس اوکړو چې تاسو څه اوکړل؟ ما عرض اوکړو چې پنځه مونځونه کم شول، نو موسی عليه السلام اوفرمائيل چې ستا امت ددې بوجه هم اوچتولې نه شی، خپل رب ته واپس لاړ شه او د خپل امت د پاره د سپکولې سوال اوکړه، نو حضور ﷺ اوفرمائيل چې ما د موسی عليه السلام او د رب په مينځ کښې مسلسل چکرې وهلې، او الله تعالی به په هر ځل باندې پنځه مونځونه معاف کول، تر دې چې الله تعالی اوفرمائيل اې محمد ﷺ په شپه او ورځ کښې دا پنځه مونځونه دی او د هر مونځ په عوض باندې د لس مونځونو ثواب دې، دغه شان دا ټول پنځوس مونځونه شول، او کوم کس چې د نيکئ اراده اوکړه او عمل ئې اونکړو نو د هغه د پاره يوه نيکی ليکم، او که هغه عمل اوکړو نو د هغه د پاره لس نيکئ ليکم، او کوم سړې چې د ګناه اراده اوکړی او هغه وخت هغه کار اونکړی نو څۀ هغه نه ليکم، او که هغه دا کار اوکړی نو د هغه د پاره يوه بدی ليکم، ددې نه پس څه موسی عليه السلام ته لاړم، نو ما ددې صورت حال خبر ورکړو، نو بيا موسی عليه السلام اوفرمائيل چې ستا امت ته به دا هم ګرانه شی، خپل رب ته لاړ شه او د سپکوالی سوال ترې اوکړه، نو هغوی ﷺ اوفرمائيل چې څه بار بار د خپل رب مخکښې حاضر شوم اوس ماته شرم رازی، (رواه الشيخان، او الفاظ د مسلم دی) او حاکم په مستدرک کښې د ابن عباس نه روايت کړې دې، چې رسول الله ﷺ خپل رب ليدلې وو،

الله تعالی فرمائي او مونږ موسی ﷺ ته کتاب تورات ورکړو او مونږ دې د بني اسرائيلو د پاره رهنما جوړ کړې ووچې تمحا نه سوا بل څوک کار ساز مه جوړوئی، چې هغه ته خپل معاملات حواله کړئ، او په يو قرا ت کښې (تتخذوا) بطور التفات تاء فوقانيه سره ده، (ان) زائده او لفظ(قول) مضمر دې، اې د هغه خلقو اولاده، څوک چې مونږ نوح ﷺ سره په کشتۍ کښې سوار کړل، هغه ځمونږ شکر ګذار بنده وو، يعنی زمونږ ډير شکر کولو والا ، په هر حالت کښې تعريف کولو والا ، او مونږ بني اسرائيل ته د وحی په ذريعه په تورات کښې ښکاره وئيلې وو، چې تاسو به د شام په ملک کښې د ګناهونو په ذريعه دوه ځله فساد جوړوئی، او تاسو به ډير لوئ زياتئ کوئی، يعنی ډير ظلم به کوئی، او چې کله دې دواړه موقعو کښې يعنی دفساد په دواړو موقعو کښې اولنئ موقع راغله، نو مونږ ستاسو د سزا د پاره داسې بندګان راولېږل چې ډير قوت والا وو، يعنی په جنګ او نيولو کښې ډير تکړه وو، هغوی ستاسو په تلاش کښې ستاسو کورونو ته دننه شول، چې هغوی تاسو قيد يا قتل کړی، او د الله دا وعده خو پوره کيدل وو، او دې خلقو اولنې فساد د زکريا ﷺ د قتلولو سره اوکړو، نو الله تعالی په دوی باندې جالوت او دهغه لښکر راوليږلو، چې هغه دوی قتل کړل، لو ددوی اولاد ئې قيديان کړل، او بيت المقدس ئې وران کړو، بيا مونږ ستاسو د چالوت د قتل نه سل کاله پس، په‌دوی‌باندې دبدبه او غلبه واپس کړه، يعنی ستاسو ورځې مو واپس کړې، او مال او اولاد سره مو ستاسو مدد اوکړو، او مونږ تاسو لوئ ډلې والا جوړ شی، او مونږ اووئيل که چرې تاسو د اطاعت په ذريعه ښه کارونه اوکړل، نوخپلې فائدې د پاره ځکه چې ددې اجر تاسو ته به ميلاؤيږی، او که د فساد په ذريعه تاسو خراب اعمال اوکړل، نو ددې سزا به هم ستاسو وی، او چې کله (ستاسو د فساد) دويمه موقع راغله، نوبيا مونږ دوی راوليږل، چې هغوی ستاسو مخونه وران کړی، يعنی هغوی تاسو ته د قيد او د قتل په ذريعې داسې خفګان اورسوی چې د هغې اثر ستاسو په مخونو باندې پريوزی، او داچې هغوی مسجد يعنی بيت المقدس ته داخل شی، او هغه وران کړی، څنګه چې هغوی مخکښې داخل شوې وو، او بيت المقدس ئې وران کړی وو، او هغه مکمل تس نس کړی، چې په کوم باندې هغوی غلبه حاصله کړې ده، او دوی حضرت يحيی ﷺ شهيد کولو سره دويم فساد جوړ کړو، نو الله تعالی په دوی باندې بخت نصر راوليږلو، هغه په دوی کښې په زرګونو خلق قتل کړل، او د هغوی اولاد ئې قيد کړل، او بيت المقدس ئې وران کړو، او مونږ کتاب توراة، کښې اووئيل که دويم ځل نه پس هم تاسو توبه اوکړه، نو اميد دې چې ستاسو رب به په تاسو باندې رحم اوکړی، او که تاسو بيا فساد جوړ کړو، نو بيا به مونږ سزا درکړو، چنانچه د حضرت محمد ﷺ تکذيب کولو سره ئې بيا فساد اوکړو نو الله په دوی باندې د قريظه د قتل، او د بنو نظير د وطن نه د ويستلو او په دوی باندې د جرمانې لګولو د پاره محمد ﷺ

په دوی باندې مسلط کړو، او جهنم مونږ د کافرانو د پاره قید خانه جوړه کړې ده، بې شکه قرآن د نیغې لارې طرف یعنی درمیانی او صحیح لارې ته رهنمائی کوئ، او نیک عمل کونکو مومنانو ته دې خوشخبری ورکوی چې د دوی د پاره لوئې اجر دې، او کوم خلق چې په آخرت باندې ایمان نه راوړی هغوی ته دې خبرې خبر ورکوی چې مونږ د دوی د پاره دردناک عذاب تیار کړې دې، او هغه اور دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** سبحان: دا د فعل محذوف مصدر دې، ای سبحت الله سبحانا

**قوله:** لیلا نصب علی الظرفیة: یعنی لیلا، د اسری ظرف زمان دې، نه چې مفعول، ځکه اسرا، او سرا دواړه لازم دی.

**سوال:** اسری، سیر فی اللیل ته وائی، بیا د لیلا د ذکر کولو څه ضرورت وو،؟

**جواب:** دا دې چې سیر فی اللیل اګرچې په اسری کښې داخل دې، خو لیلا نکره ذکر کولو سره د لږې مودې طرف ته اشاره شوې ده، د لیلا تنوین دلته د قلت د پاره دې.

**قوله:** لبعده منه: دا د مسجد اقصی وجه تسمیه طرف ته اشاره کوی، ځکه چې د مسجد حرام او د مسجد اقصی په مینځ کښې د یوې میاشتې مزل دې، یا ځکه چې دغه وخت د مسجد حرام او د مسجد اقصی په مینځ کښې هیڅ یو مسجد نه وو، ددې وجې نه ددې نوم مسجد اقصی کیخودلې شو.

**قوله:** کالقلال: قلال، د قلة جمع ده، په معنی د منګی، غونډئ.

**قوله:** لا تتخذوا: ان مصدریه دې، او لام د تعلیل مقدر دې، کوم چې شارح ښکاره کړې دې، لاتتخذوا په حذف د نون سره منصوب دې، او لا نافیه ده، او دا ترکیب یاء د تحتانیه په صورت کښې دې، او د تا فوقانیه په صورت کښې د نون په حذف سره به مجزوم وی، او لا ناهیه به وی، او دلته (ان) به زائده وی

**قوله:** القول مضمر: ای مقولا لهم لا تتخذوا، او بعضې حضراتو وئیلې دی، چې ان مفسره کیدل راجع دی، ځکه چې اتینا د قلنا په معنی کښې دې، کوم چې د ان مفسره د پاره شرط دې.

**قوله:** نفیرا: دا د نفر جمع دې، په معنی د خاندان، جمعیت.

**قوله:** ان اسأتم فلها:

**سوال:** نقصان د پاره صله علی رازی، حالانکه دلته لام استعمال شوې دې، کوم چې د نفع د پاره استعمالیږی؟

**جواب:** دا ازدواج، یعنی د مقابلې په توګه د (علی) په ځائې لام استعمال شوې دې.

[ایاتونه: ۱۱ _ ۲۲]

(ويدعو الإنسان بالشر) على نفسه وأهله إذا ضجر (دعاءه) أي كدعائه له (بالخير وكان الإنسان) الجنس (عجولا) بالدعاء على نفسه وعدم النظر في عاقبته (وجعلنا الليل والنهار آيتين) دالتين على قدرتنا (فمحونا آية الليل) طمسنا نورها بالظلام لتسكنوا فيه والإضافة للبيان (وجعلنا آية النهار مبصرة) أي مبصرا فيها بالضوء (لتبتغوا) فيه (فضلا من ربكم) بالكسب (ولتعلموا) بهما (عدد السنين والحساب) للأوقات (وكل شيء) يحتاج إليه (فصلناه تفصيلا) بيناه تبيينا (وكل إنسان ألزمناه طائره) عمله يحمله (في عنقه) خص بالذكر لأن اللزوم فيه أشد وقال مجاهد ما من مولود يولد إلا وفي عنقه ورقة مكتوب فيها شقي أو سعيد (ونخرج له يوم القيامة كتابا) مكتوبا فيه عمله (يلقاه منشورا) صفتان لكتابا ويقال له (اقرأ كتابك كفى بنفسك اليوم عليك حسيبا) محاسبا (من اهتدى فإنما يهتدي لنفسه) لأن ثواب اهتدائه له (ومن ضل فإنما يضل عليها) لأن إثمه عليها (ولا تزر) نفس (وازرة) آثمة أي لا تحمل (وزر) نفس (أخرى وما كنا معذبين) أحدا (حتى نبعث رسولا) يبين له ما يجب عليه (وإذا أردنا أن نهلك قرية أمرنا مترفيها) منعميها بمعنى رؤسائها بالطاعة على لسان رسلنا (ففسقوا فيها) فخرجوا عن أمرنا (فحق عليها القول) بالعذاب (فدمرناها تدميرا) أهلكناها بإهلاك أهلها وتخريبها (وكم) أي كثيرا (أهلكنا من القرون) الأمم (من بعد نوح وكفى بربك بذنوب عباده خبيرا بصيرا) عالما ببواطنها وظواهرها وبه يتعلق بذنوب (من كان يريد) بعمله (العاجلة) أي الدنيا (عجلنا له فيها ما نشاء لمن نريد) التعجيل له بدل من له بإعادة الجار (ثم جعلنا له) في الآخرة (جهنم يصلاها) يدخلها (مذموما) ملوما (مدحورا) مطرودا عن الرحمة (ومن أراد الآخرة وسعى لها سعيها) عمل عملها اللائق بها (وهو مؤمن) حال (فأولئك كان سعيهم مشكورا) عند الله أي مقبولا مثابا عليه (كلا) من الفريقين (نمد) نعطي (هؤلاء وهؤلاء) بدل (من) متعلق بنمد (عطاء ربك) في الدنيا (وما كان عطاء ربك) فيها (محظورا) ممنوعا عن أحد (انظر كيف فضلنا بعضهم على بعض) في الرزق والجاه (وللآخرة أكبر) أعظم (درجات وأكبر تفضيلا) من الدنيا فينبغي الاعتناء بها دونها (لا تجعل مع الله إلها آخر فتقعد مذموما مخذولا) لا ناصر لك

**ترجمه:** او چې کله د انسان زړه تنګ شي نو د خپل خاندان د پاره داسې خیرې کوی څنګه چې د هغوی د پاره د خیر دعا کوئی، او هر انسان، د ځان د پاره خیرو کولو کښې جلدباز او انجام نه ناخبره واقع شوې دې، او مونږ شپه او ورځ زمونږ په قدرت باندې دلالت کولو د پاره نښې پیدا کړې دی، نو مونږ د شپې نښه تیاره جوړه کړه، یعنی مونږ د هغې نور په تیارې سره ختم کړو چې تاسو په هغې کښې ارام حاصل کړئ، او په (آیة اللیل) کښې اضافت بیانیه دې، او مونږ د ورځې نښه رڼرا جوړه کړه، یعنی داسې چې په هغې کښې د رڼرا د وجه نه هر څیز په نظر راځی، او چې تاسو د کار کسب په ذریعه د خپل رب فضل تلاش کړئ، او دا چې

تاسو د ددې په ذريعه سره د کلونو شمير او د وختونو حساب اوکړئ، او مونږ د هر ضرورت څيز پورا تفصيل سره ذکر کړې دې، يعنې ښکاره مو بيان کړې دې او مونږ د هر کس عمل د هغه د غاړې هار کړې دې، چې کوم هغه اوچت کړې دې، غاړه ئې خاص طور سره ځکه ذکر کړه، چې په غاړه کښې نيول سخت وی، او مجاهد وئيلی دی چې يو ماشوم نه پيدا کيږی خو دا چې د هغه په غاړه کښې يو خط وی، چې په هغې کښې ليکلې وی چې دا بدنصيبه دې يا خوش نصيبه، او د قيامت په ورځ به مونږ د هغه اعمال نامه راوباسو او مخې ته ئې کيږدو، چې په هغې کښې به د هغه عمل ليکلې شوې وی، کوم چې به هغه د ښکاره کتاب پشان اوګوری، (يلقاه او منشورا) د کتاب صفت دې او ورته به اووئيلې شی ته خپله اعمال نامه خپله اولوله، نن ته خپله د ځان نه حساب اغستلو د پاره کافی يې، چا چې هدايت اوموندلو هغه دخپلې فائدې د پاره هدايت اوموندلو، ځکه چې د هغه د هدايت ثواب هم د هغه د پاره دې، او څوک چې د لارې نه واوړيدلو نو د اوړيدلو نقصان هم د هغه دې، ځکه چې د ګمراهئ ګناه هم په هغه باندې ده، او يو ګنهګار کس به د بل ګنهګار کس بوج اوچتولې نشی، او زمونږ سنت نه دی چې مونږ څوک د رسول ليږلو نه مخکښې چې هغه ته د هغه واجبات وخائی عذاب ورکړو، او چې مونږ د يو کلی د هلاکولو اراده اوکړو نو ددې کلی مالدار خلقو لره يعنی د هغه کلی سردارانو ته د خپل رسول په ذريعې سره د تابعدارئ حکم ورکوو، نو هغوی ددې حکم نافرمانی کوی، يعنی زمونږ د حکم نه مخ اړوی، نو په دوی باندې د عذاب فيصله نافذه شی، نو مونږ دوی پورا طور سره نيست اونابود کړو، يعنی ددې کلی خلقو لره بربادولو سره، دا کلی هم ختم کړو، او د نوح ﷺ نه پس مونږ څومره کلی تباه کړل او ستا پروردګار خپلو د بندګانو د ګناهونو نه باخبر او ليدونکی دې او ټول هر څه ته د کتلو په اعتبار سره کافی دې، يعنی د ښکاره او د پټو خبرو نه خبردار دې، او خبير او بصير سره بذنوب متعلق دې، مونږ سره موجود نسخه کښې هم داسې ده، (غالبا چې دا خطا ده اصل عبارت داسې پکار وو وبذنوب يتعلق بخبيرا وبصيرا) او کوم کس د خپل عمل بدله په دنيا کښې غواړی، نو مونږ چې څومره غواړو او چاته زړ ورکول غواړو نو هغوی ته ئې په تيزئی سره ورکړو لمن نريد، د (له) نه د اعادهٔ جار سره بدل دې بيا ددوی د پاره په آخرت کښې جهنم مقرر کړو، چه په هغې کښې به هغوی ذليل او مردود شوی داخليږی او دچا اراده چه د آخرت وی اوهغه دهغې لائق عمل هم کړې وی حال داچه هغه مؤمن هم وی همدا هغه خلق دی چې د دوی د اعمالو د الله په نيز قدر دې، او مقبول او د اجر لائق دی او مونږ په دواړو ډلو کښې هرې يوې ته دې ته هم او دې ته هم د ښائست سامان ورکوو، هؤلاء و هؤلاء، د کلا نه بدل دې، او (من) د نمد متعلق دې، په دنيا کښې دا ستا د رب ورکړه ده، او په دنيا کښې ستا د رب ورکړه منع کونکې څوک نشته، يعنی د چا نه هم څه منع کونکې نشته اوګورئ مونږ رزق او مرتبه کښې بعضو لره په بعضو باندې څنګه فضيلت ورکوو، اوآخرت خو د

درجو په اعتبار سره د دنیا نه ډیر فضیلت لري، لهذا د آخرت طرف ته د توجو ضرورت دې، نه چې دنیا طرف ته د الله سره د هغه نه بغیر بل معبود مه نیسه، گنې نو ملامته او بې یارو مددگار به ناست پاتې شې، چې ستا به څوک مددگار نه وي.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: الجنس،: په دې کښې اشاره ده چې په الانسان کښې الف لام د جنس دې، نه چې د استغراق، لهذا اوس دا اعتراض نشي راتلې چې ټول انسانان په دعا کښې جلدي نه کوي.

قوله: الاضافة للبيان: یعنی په آیة اللیل کښې اضافت بیانیه دې، دا ددې شبهې جواب دې چې مضاف د مضاف الیه نه غیر وي، حالانکه په آیة اللیل کښې مضاف او مضاف الیه یو دی؟

د جواب حاصل دادې چې دا اضافت بیانیه دې، او دا اضافت د عدد الی المعدود قبیل نه دې، څنګه چې په عشر سنین کښې اضافت بیانیه دې، په آیة النهار کښې هم دا صورت دې

قوله: اي مبصرا فيها: په دې کښې مجاز عقلی دې څکه چې ورځ نه ګوری بلکه په ورځ کښې کتلې شی، د علاقې د ظرفیت د وجه نه اضافت نهار طرف ته شوې دې، یعنی اسم فاعل ذکر دې او ظرف مراد اخستلې شوې دې.

قوله: بالضوء اي بسبب الضوء دې.

قوله: الزمناه طائره في عنقه: د ډیر لزوم بیانولو د پاره دا یو عربی تعبیر دې، د عربو عادت دا دې چې کله به یو اهم کار پیښ شو نو هغوی به د مرغئ نه پال اخستلو، ددې صورت به دا وو چې مرغئ به ئې والوزوله یا هغه به په خپله والوته، که هغه به ښی طرف ته لاړه نو دا به ئې نیک فال ګنړلو، چې کله په عربو کښې دا رواج عام شو، نو نفس شر او خیر به یې د مرغئ سره تعبیر کولو، او دا د تسمية الشئ باسم لازمه نه قبیل نه شماریدلو.

قوله: خص بالذكر: دا ددې سوال جواب دې چې اعمال د ټولو انسانو د پاره لازم وي نه چې صرف دڅټ د پاره، حالانکه اعمال دلته د څټ د پاره لازم ګنړلې شوې دی؟

د جواب حاصل دادې چې څنګه قلاده (د غاړې هار) غاړې لازم غیر منفک وي، دغه شان د انسان اعمال دانسان د پاره لازم دی، په دې تعبیر کښې د ډیر لزوم او د ډیر همیشګیریت طرف ته اشاره کړې شوې ده.

قوله: وقال المجاهد: الخ د مجاهد د قول مطابق په دې کښې به مجاز عقلی نه وي.

قوله: صفتان لكتابا: یلقه جمله دکتاب صفت اول دې، او منشورا صفت ثانی دې، او دا هم صحیح دی چې منشورا د یلقاه د ضمیر مفعولی نه حال وي.

قوله: ويقال له: د ماقبل سره د نظم او ربط د پاره ئې يقال محذوف گنړلې دې.

قوله: نفس: دا د (تزر) وجه تانيث طرف ته اشاره ده.

قوله: لاتحمل: د لاتزر تفسير دې.

قوله: وبه: ضمير على سبيل الانفراد خبيرا او بصيرا طرف ته راجع دې، ښه به دا وه چې عبارت داسې وو وبذنوب يتعلق بخبيرا وبصيرا.

قوله: بدل من له: الخ يعني (لمن نريد) د (له) نه د اعادې د جار سره بدل البعض من الكل دې

**[ايات وله ۲۳ - ۳۰]**

(وقضى) امر (ربك أ) نْ اَيْ بِاَنْ (لَا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَ) ان تحسنوا (بِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا) بان تبروهما (إِمَّا يبلغن عندك الكبر أحدهما) فاعل (أوكلاهما) وَفِي قِرَاءَة يَبْلُغَانِّ فَأَحَدهمَا بَدَل مِنْ أَلِفه (فلا تقل لهما أُفٍّ) بِفَتْحِ الْفَاء وَكَسْرهَا مُنَوَّنًا وَغَيْر مُنَوَّن مَصْدَر بِمَعْنَى تَبًّا وَقُبْحًا (وَلَا تَنْهَرْهُمَا) تَزْجُرهُمَا (وَقُلْ لَهُمَا قَوْلًا كَرِيمًا) جَمِيلًا لَيِّنًا (وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ) أَلِنْ لَهُمَا جَانِبك الذليل (من الرحمة) اي لرقتك عليهما (وقل رب ارحمهما كَمَا) رَحِمَانِي حِين (رَبَّيَانِي صَغِيرًا) (رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا فِي نُفُوسِكُمْ) مِنْ إِضْمَار الْبِرّ وَالْعُقُوق (إِنْ تَكُونُوا صَالِحِينَ) طَائِعِينَ لِلَّهِ (فإنه كان لِلْأَوَّابِينَ) الرَّجَّاعِينَ إِلَى طَاعَته (غَفُورًا) لِمَا صَدَرَ مِنْهُمْ فِي حَقّ الْوَالِدَيْنِ مِنْ بَادِرَة وَهُمْ لَا يُضْمِرُونَ عُقُوقًا (وَآتِ) أَعْطِ (ذَا الْقُرْبَى) الْقَرَابَة (حَقَّهُ) مِنَ الْبِرّ وَالصِّلَة (والمسكين وابن السبيل وَلَا تُبَذِّرْ تَبْذِيرًا) بِالْإِنْفَاقِ فِي غَيْر طَاعَة الله (إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ) أَيْ عَلَى طَرِيقَتهمْ (وكان الشيطان لربه كَفُورًا) شَدِيد الْكُفْر لِنِعَمِهِ فَكَذَلِكَ أَخُوهُ الْمُبَذِّر (وَإِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمْ) أَيْ الْمَذْكُورِينَ مِنْ ذِي الْقُرْبَى وَمَا بَعْدهمْ فَلَمْ تُعْطِهِمْ (ابْتِغَاءَ رَحْمَةٍ مِنْ رَبِّكَ تَرْجُوهَا) أَيْ لِطَلَبِ رِزْق تَنْتَظِرهُ يَأْتِيك فتعطيهم منه (فقل لهم قَوْلًا مَيْسُورًا) لَيِّنًا سَهْلًا بِأَنْ تَعِدهُمْ بِالْإِعْطَاءِ عِنْد مَجِيء الرِّزْق (وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً إِلَى عُنُقِكَ) أَيْ لَا تُمْسِكهَا عَنِ الْإِنْفَاق كُلّ الْمَسْك (وَلَا تَبْسُطْهَا) فِي الْإِنْفَاق (كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُومًا) رَاجِع لِلْأَوَّلِ (مَحْسُورًا) مُنْقَطِعًا لَا شَيْء عِنْدك راجع للثاني (إن ربك يَبْسُطُ الرِّزْقَ) يُوَسِّعهُ (لِمَنْ يَشَاءُ وَيَقْدِرُ) يُضَيِّقهُ لِمَنْ يَشَاء (إِنَّهُ كَانَ بِعِبَادِهِ خَبِيرًا بَصِيرًا) عَالِمًا بِبَوَاطِنِهِمْ وَظَوَاهِرهمْ فَيَرْزُقهُمْ عَلَى حسب مصالحهم

ترجمه: او ستا رب حكم كړې دې چې د هغه نه سوا د بل چا عبادت مه كوئ، او مور پلار سره ښه سلوك كوئ په داسې طريقه چې هغوى سره صحيح رويه ساتئ كه تاسو سره چاته ددوى نه يو يا دواړه د بوډهاوالى عمر ته اورسى احدهما د (يبلغن) فاعل دې، يو قرامت كښې يبلغان دې، په دې صورت كښې به (احدهما) د (بيلغان) د الف نه بدل وى. نو تاسو دوى ته اف قدرې هم مه وائى اف د فاء په فتحې او كسرې سره، په تنوين يا بغير د تنوين نه مصدر دې، په معنى د (تبا او قبحا) كښې دې، (يعنى ستا دې تباهى وى) او نه دوى رټه، او دوى

سره په احترام سره په نرمئ خبرې کوه او په مینه سره دوی ته تیتیږه، یعنی د خپلې عاجزۍ لاسونه دوی ته ښکته کوه، ستا په دوی باندې د شفقت د وجه نه او داسې دعا کوه چې اې پروردګار په دوی دواړو باندې خپل رحمت اوکړه څنګه چې دوی په ماشوموالی کښې ځما د پرورش په وخت په ما باندې شفقت کړې وو، د فرمانبردارئ نه ځه چې ستاسو په زړونو کښې پټ دی هغه ستاسو رب ښه پیژنی، که تاسو نیکان یئ، یعنی دالله تعالی حکم منئ، نو بې شکه هغه ده تابعدارئ طرف ته د رجوع کونکو خطاګانې معاف کوی، یعنی په توندئ کښې چې ددوی نه د مور پلار په حقوقو کښې ځه شوې وو هغه معاف کونکې دې، په شرط ددې چې ددوی په زړه کښې نافرمانی موجود نه وی، او رشته دارو سره ښه سلوک او صله رحمی سره ددوی حق ورکوه او محتاجو او مسافرو ته ددوی حق هم ورکوه، او د الله په نافرمانئ کښې مال فضول مه خرچ کوه، بې شکه بې موقع مال الوزونکی د شیطانانو رونړه دی، یعنی د شیطانانو په طریقه بادې دی، او شیطان د خپل رب ډیر ناشکرا دې، یعنی د هغه د نعمتونو ډیر زیات ناشکری کونکې دې، دغه شان فضول خرچ کونکې د هغه رور دې، او که تاته په ذکر شوو کښې یعنی په رشته دارو او هغه ځوک چې ددې نه پس ذکر دی د خپل رب د رحمت د امید په طلب کښې د کوم چې ته امید ساتې، مخ اړوې، یعنی هغه رزق غوښتل چې د هغې د حاصلولو تاته انتظار دې، چې ددې نه هغوی ته هم ورکړې، ته دوی سره د نرمئ او د اسانتیا خبرې کوه، په داسې طریقه چې د مال حاصلیدو په صورت کښې دو ی ته د ورکولو وعده کوه او نه خپل لاسونه څټ پورې اوتړه، یعنی ته خپل لاسونه بالکل مه بندوه، او نه د خرچ د پاره پوره کولاوهه، چې ته ملامت ګرځې اول صورت طرف ته راجع دې، او خالی لاس کینې، یعنی تاسره هیڅ هم پاتې نشی، دا دویم صورت ته راجع دې، بې شکه ستا رب چې چاته غواړی، په رزق کښې ورته فراخی ورکوی، او چاته چې اوغواړی نو تنګ ئې کړی، بې شکه هغه د خپلو بندګانو د حالت نه ښه خبردار لیدونکې او کتونکې دې، یعنی ددوی د باطن او ظاهر نه ښه خبردار دې، ددوی د مصلحت د تقاضې مطابق دوی ته رزق ورکوی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** بأن: په دې تقدیر کښې دې طرف ته اشاره ده، چې ان مصدریه دې په دې صورت کښې به لا، نافیه وی، او تعبدون به دعبادة په معنی کښې وی، یعنی ستا رب دا تاکید کړې دې چې د هغه نه سوا د بل چا عبادت نشته، او دا هم جائز ده چې (ان) مفسره وی ځکه چې قضی د قال په معنی کښې دې، په دې صورت کښې به لا، ناهیه وی.

**قوله:** یبلغن: واحد مذکر غائب مضارع بانون ثقیله

**قوله:** وان تحسنوا: دا د یو سوال جواب دې.

**سوال:** ان تحسنوا مقدر ګڼرلو ځه ضرورت وو؟

**جواب:** بالوالدين جار مجرور كيدو سره د احسانا مؤخر متعلق نشى كيدي، ځكه چې د مصدر متعلق مقدم كيدې نشى نو ځكه مجبورا (ان تحسنوا) مقدر اوګنړلې شو، دويمه وجه دا ده چې ان تحسنوا مقدر اونه ګنړلې شي، نو د بالوالدين عطف به په لا تعبدوا باندې وی، دا عطف به د جمله اسميه به فعليه باندې وى، او كله چې ان تحسنوا مقدر اوګنړلې شو نو عطف به د جمله فعليه به جمله فعليه باندې وى

**قوله:** عندك: اى فى كفالتك وحرزك

**قوله:** فاعل: يعنى احدهما فاعل دې ددې اضافې مقصد دا ښودل دى چې په يبلغن كښې دفاعل ضمير مستترنه دې چې دفاعل د تكرار اعتراض راشى، بلكه احدهما فاعل دې

**قوله:** فاحدهما بدل من الفه: دا د دويم قراءت تركيب طرف ته اشاره ده، ددې خلاصه داد ه چې په يو قرات كښې د يبلغن په ځائې يبلغان دې، په دې صورت كښې به د فاعل دتكرار اعتراض خامخا كيږى؟

ددې جواب دادې چې په يبلغان كښې الف فاعل دې، او احدهما ددې نه بدل دې، نه چې د يبلغان فاعل، لهذا په دې قراءت كښې به هم د فاعل دتكرار اعتراض نه وى.

**قوله:** الن لهما جانبك: يعنى د جناح نه مجازا د جانب اراده كړې شوې ده، او دا ذكر د خاص او د اراده عام دقبيل نه دې،

**قوله:** الذليل: په دې كښې اشاره ده چې د جناح اضافت د الذل طرف ته بيانيه دې.

**قوله:** اي لرقتك: په دې كښې اشاره ده چې په من الرحمة كښې (من) د اجل د پاره دې.

**قوله:** رحماني: ددې اضافې مقصد تشبيه صحيح كول دى.

**قوله:** وهم لا يفخرون: دا جمله حاليه ده،

**قوله:** في غير طاعة الله تعالى: په دې كښې اشاره ده چې په صحيح كار كښې كه مناسب خرج اوكړې شى نو بيا به هم په فضول خرچئ كښې نه حسابيږى.

**[ايات نمبر: ۳۱ ـ ۴۰]**

---

(وَلَا تَقْتُلُوٓا أَوْلَادَكُمْ) بالوأد (خَشْيَةَ) مخافة (إِمْلَاقٍ) فقر (نحن نرزقهم وإياكم إن قتلهم كان خطئا) إثما (كبيرا) عظيما (ولا تقربوا الزنى) ابلغ من لا تأتوه (إنه كان فاحشة) قبيحا (وَسَاءَ) بئس (سبيلا) طريقا هو (وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِى حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بالحق ومن قتل مظلوما فقد جعلنا لوليه) لوارثه (سُلْطَانًا) تسلطا على القاتل (فَلَا يُسْرِف) يتجاوز الحد (فِى الْقَتْلِ) بأن يقتل غير قاتله أو بغير ما قتل به (إنه كان منصورا) (ولا تقربوا مال اليتيم إلا بالتى هى أحسن حتى يبلغ أشده وَأَوْفُوا بِالْعَهْدِ) إذا عاهدتم الله أو الناس (إن العهد كان مسئولا) عنه (وأوفوا الكيل) أتموه (إذا كلتم وزنوا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ) الميزان السوى (ذَٰلِكَ خَيْرٌ

﴿وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا﴾ مالا ﴿ولا تقف﴾ تتبع ﴿ما ليس لك به علم إن السمع والبصر وَالْفُؤَادَ﴾ القلب ﴿كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا﴾ صَاحِبه مَاذَا فعَلَ بِهِ ﴿وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا﴾ أَيْ ذَا مَرَح بِالْكِبْرِ وَالْخُيَلَاء ﴿إِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ الْأَرْضَ﴾ تَنْقُبهَا حَتَّى تَبْلُغ آخِرهَا بِكِبْرِك ﴿وَلَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُولًا﴾ الْمَعْنَى أَنَّك لَا تَبْلُغ هَذَا الْمَبلغ فكيف تختال ﴿كل ذلك﴾ المذكور ﴿كان سيئه عند ربك مكروها﴾ ﴿ذلك مما أوحى إليك﴾ يا محمد ﴿ربك من الحكمة﴾ الموعظة ﴿ولا تجعل مع الله إلها آخر فتلقى في جهنم ملوما مَدْحُورًا﴾ مَطْرُودًا عَنْ رَحْمَة اللّٰه ﴿أفأصفاكم﴾ أخلصكم يا أهل مكة ﴿ربكم بالبنين واتخذ من الملائكة إناثا﴾ بنات لنفسه بزعمكم ﴿إنكم لتقولون﴾ بذلك ﴿قولا عظيما﴾

ترجمه: او تاسو خپل اولاد د لوږې د وجې نه ژوندی خښولو سره مه قتلوئ، مونږ به دوی ته هم رزق ورکوو او تاسو ته هم، او بې شخه ددوی قتنول لویا گناه د. او زنا ته نژدې هم مه ورزئ، دا تعبیر د (تاسو زنا مه کوئی) نه زیات بلیغ دې، بې شکه دیر بد کار دې، او دیره خرابه لاره ده، او د نفس د قتل جرم مه کوئی، کوم چې الله حرام کړې دې، خو حق سره او کوم کس چې په ظلم سره قتل کړې شو نو مونږ دده وارث ته د ده قتل نه د قصاص اخستلو د حق مطالبه ورکړې ده، نو هغه ته په قتل کښې د شریعت: حد نه تجاوز کول پکار نه دی، په داسې طریقه چې د قاتل نه علاوه بل څوک قتل کړی یا د هغه اسلحې نه علاوه باندې قتل کړې په کومه چې قتل شوې دې، بې شکه د هغه مدد کړې شوې دې، او د یتیم مال ته هم نژدې مه ورزئ، خو په داسې طریقه کومه چې شرعا احسان وی، تردې چې هغه بلوغت ته اورسی، او تاسو چې کله د الله سره یا د خلقو سره څه وعده اوکړئ، نو دې وعدې لره پورا کړئ، بې شکه د عهد په باره کښې به تپوس کیږی او چې کله تول کوئی نو ډکې پیمانې سره ناپ اوکړئ، او صحیح تلې سره تلئ، دا ښه طریقه ده او د انجام په اعتبار سره هم بهتره ده، او داسې څیز پسې مه لگا چې د هغې تا ته علم نه وی یقینا د سترگې غوږونو او د زړه د ټولو به تپوس کیږی، یعنی د سترگو غوږونو او زړه والو ټولو نه به تپوس کیږی، چې ددې نه مو څه کار اخستې دې، او په زمکه باندې په غرور سره مه گرزه، یعنی د غرور او د تکبر په انداز سره مه گرزه، او دا واقعی خبره ده چې نه ته د تکبر په وجه زمکه شلوې شې چې ته د هغې ویخ ته اورسې، او نه په اوچتوالې کښې د غرونو سر ته رسیدلې شې، مطلب دادې چې ته دې درجې ته رسیدلې نشې نو بیا ولې په غرور سره گرځې؟ ددې ټولو کارونو خرابوالې ستا د رب په نیز دیر ناخوښه دې، او اې محمد ﷺ دا د حکمت نصیحت هغه خبرې دی کومې چې ستا رب تا ته د وحی په ذریعه سره نازل کړې دی او ته الله سره بل څوک معبود مه جوړه، گنی ملامته او د الله د رحمت نه به لرې کیدو سره جهنم ته واچولې شې، او اې اهل مکه، آیا ستاسو رب تاسو د ځامنو د پاره خوښ کړې یئ او لوریانې یې د ځان د پاره جوړې کړې دی یعنی ستاسو د قول مطابق ئې جینکئ د ځان د پاره خوښې کړې، تاسو دا خبره یقینا دیر لویه وایئ.

# د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: املاق:** (افعال) غریبی، مسکینی

**قوله: الواد:** (ـ ض) نه مصدر دي، ژوندي دفن کول.

**قوله: خطأ:** خطا، غلطیدل، (س) نه مصدر دي.

**قوله: ابلغ من لا تأتوه:** یعنی (لا تقربوا الزنی) په تعبیر او معنویت کښې د (لا تأتوه) نه زیات ابلغ دي، ځکه چې په لاتقربوا کښې زنا ته د نیزدې ورتلو نه هم منع شوې ده، چې په هغې سره د دواعی د زنا او د هغې د مقدماتو نه هم منع شوې ده، په خلاف د لاتأتوه.

**قوله: انه کان منصورا:** ضمیر ولی د مقتول طرف ته راجع دي، ولی د مقتول ځکه منصور دي چې شریعت هغه ته د قصاص حق ورکړې دي.

**قوله: مسئولا:** عنه، یعنی په قیامت کښې به د وعدې د ماتولو په باره کښې تپوس کیږي.

**قوله: لاتقف:** ته شاته مه ځه، ته اتباع مه کوه، (ن) قفوا، روستو تلل، تابعداری کول، مضارع واحد حاضر فعل نهي.

**قوله: ذامرح:** مضاف محذوف ګنړلو سره دې طرف ته اشاره ورکړې شوې ده چې (مرحا) د (لاتمش) د ضمیر نه حال دې حالانکه د مصدر حمل د مصدر په وجه صحیح نه دي؟

د جواب حاصل دادې چې مضاف محذوف دې ای ذامرح، ای مارحا.

**[ایاتونه: ۴۱ ـ ۵۲]**

(وَلَقَدْ صَرَّفْنَا) بَيَّنَّا (فِي هٰذَا الْقُرْآنِ) مِنَ الْأَمْثَالِ وَالْوَعْدِ وَالْوَعِيْدِ (لِيَذَّكَّرُوْا) يَتَّعِظُوْا (وَمَا يَزِيْدُهُمْ) ذٰلِكَ (إِلَّا نُفُوْرًا) عَنِ الْحَقِّ (قُلْ) لَهُمْ (لَوْ كَانَ مَعَهٗ) أَيِ اللّٰهِ (آلهة كما يقولون إذا لا بتغوا) طَلَبُوْا (إِلٰى ذِي الْعَرْشِ) أَيِ اللّٰهِ (سَبِيْلًا) ليقاتلوه (سُبْحَانَهٗ) تَنْزِيْهًا لَهٗ (وَتَعَالٰى عَمَّا يَقُوْلُوْنَ) مِنَ الشُّرَكَاءِ (علوا كبيرا) (تسبح له) تنزهه (السماوات السبع والأرض ومن فيهن وَإِنْ) مَا (مِنْ شَيْءٍ) مِنَ الْمَخْلُوْقَاتِ (إِلَّا يسبح) مُتَلَبِّسًا (بِحَمْدِهٖ) أَيْ يَقُوْلُ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ (وَلٰكِنْ لَا تَفْقَهُوْنَ) تَفْهَمُوْنَ (تَسْبِيْحَهُمْ) لِأَنَّهٗ لَيْسَ بِلُغَتِكُمْ (إِنَّهٗ كَانَ حَلِيْمًا غَفُوْرًا) حَيْثُ لَمْ يُعَاجِلْكُمْ بِالْعُقُوْبَةِ (وإذا قرأت القرآن جعلنا بينك وبين الذين لا يؤمنون بالآخرة حجابا مَّسْتُوْرًا) أَيْ سَاتِرًا لَكَ عَنْهُمْ فَلَا يَرَوْنَكَ نَزَلَ فِيْمَنْ أَرَادَ الْفَتْكَ بِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عليه وسلم (وجعلنا على قلوبهم أَكِنَّةً) أَغْطِيَةً (أَنْ يَفْقَهُوْهُ) مِنْ أَنْ يَفْهَمُوا الْقُرْآنَ أَيْ فَلَا يَفْهَمُوْنَهٗ (وَفِيْ آذَانِهِمْ وَقْرًا) ثقلا فلا يسمعونه (وإذا ذكرت ربك في القرآن وحده ولوا على أدبارهم نفورا) عنه (نحن أعلم بما يستمعون بِهٖ) بِسَبَبِهٖ مِنَ الْهُزْءِ (إِذْ يَسْتَمِعُوْنَ إِلَيْكَ) قِرَاءَتَكَ (وَإِذْ هُمْ نَجْوٰى) يَتَنَاجَوْنَ بَيْنَهُمْ أَيْ يَتَحَدَّثُوْنَ (إِذْ) بَدَلٌ مِنْ إِذْ قَبْلَهٗ (يَقُوْلُ الظالمون) في تناجيهم (إِنْ) مَا (تَتَّبِعُوْنَ إِلَّا رَجُلًا مَسْحُوْرًا) مَخْدُوْعًا مغلوبا على عقله قال تعالى (أُنْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوْا لَكَ الْأَمْثَالَ) بِالْمَسْحُوْرِ وَالْكَاهِنِ وَالشَّاعِرِ (فَضَلُّوْا) بِذٰلِكَ عَنِ الْهُدٰى (فَلَا

﴿يَسْتَطِيعُونَ سبيلا﴾ طريقا إليه ﴿وقالوا﴾ منكرين للبعث ﴿ءإذا كنا عظاما ورفاتا أئنا لمبعوثون خلقا جديدا﴾ ﴿قل﴾ لهم ﴿كونوا حجارة أو حديدا﴾ ﴿أَوْ خَلْقًا مِمَّا يَكْبُرُ فِي صُدُورِكُمْ﴾ يَعْظُم عَنْ قَبُول الْحَيَاة فَضْلًا عَنْ الْعِظَام وَالرُّفَات فَلَا بُدّ مِنْ إيجَاد الرُّوح فِيكُمْ ﴿فَسَيَقُولُونَ من يعيدنا﴾ إلى الحياة ﴿قل الذي فَطَرَكُمْ﴾ خَلَقَكُمْ ﴿أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ وَلَمْ تَكُونُوا شَيْئًا لِأَنَّ الْقَادِر عَلَى الْبَدْء قَادِر عَلَى الْإِعَادَة بل هي أهون ﴿فسينغضون﴾ يحركون ﴿إليك رؤوسهم﴾ تَعَجُّبًا ﴿وَيَقُولُونَ﴾ اسْتِهْزَاء ﴿مَتَى هُوَ﴾ أَيْ الْبَعْث ﴿قل عسى أن يكون قريبا﴾ ﴿يَوْمَ يَدْعُوكُمْ﴾ يُنَادِيكُمْ مِنْ الْقُبُور عَلَى لِسَان إسْرَافِيل ﴿فَتَسْتَجِيبُونَ﴾ فَتُجِيبُونَ دَعْوَتَهُ مِنْ الْقُبُور ﴿بِحَمْدِهِ﴾ بامره وقيل وله الحمد ﴿وتظنون إنْ﴾ مَا ﴿لَبِثْتُمْ﴾ فِي الدُّنْيَا ﴿إِلَّا قَلِيلًا﴾ لِهَوْلِ مَا تَرَوْنَ

---

ترجمه: مونږ په دې قرآن کښې مختلف مثالونه او وعده او وعيد بيانولو سره ښکاره کړل چې خلق پوهه شي نصيحت حاصل کړي، خو دې سره خو د هغوی د حق نه نفرت نور هم زيات شو ای محمد ﷺ دوی ته اووايه که چرې الله سره بل معبود وو څنګه چې دې خلقو وائي نو اوسه پورې به دا خلق د عرش مالک الله طرف ته خامخا لار راويستې وه، چې هغه سره جنګ اوکړي، د کومو شريکانو چې دوی دا خبره کوی هغه ددې نه پاک او اوچت دې، په اووه زمکو او اسمانونو کښې چې څه دی د هغه پاکی بيانوی، او هر مخلوق د حمد سره د هغه تسبيح بيانوی، يعنی سبحان الله وبحمده وائی خو تاسو دهغوی په تسبيح باندې نه پوهيږئ څکه چې هغه ستاسو په ژبه کښې نه دی بې شکه هغه ډير صبرناک او ډير بخښونکې دې دغه وجه ده چې هغه ستاسو په سزا کښې تونډی نه کوی او چې کله ته د قرآن تلاوت کوی، نو مونږ ستا او په آخرت باندې ايمان نه راوړنکو په مينځ کښې پرده ساتر واچوو، چې د هغې د وجې نه هغوی تا نه وينی، او دا مخکښې آيت د هغه کس په باره کښې نازل شوې دې چا چې د حضور ﷺ د اچانک قتل اراده کړې وه هغه ددوی په زړونو باندې داسې پرده اچوی چې هغوی په هيڅ نه پوهيږی، يعنی داسې غلاف چې هغه د قرآن د پوهې نه منع کوی، يعنی په هغې باندې نه پوهيږی، او ددوی په غوږونو کښې دروند والې پيدا کوو، چې د مغې د وجې نه دوی هغه نه اوری، او چې تاسو کله په قرآن کښې د يو رب ذکر کوئی نو دوی د هغې نه په نفرت سره مخ اړوی، او چې کله غوږ ايښودلو سره ستا قراءت د ټوقو د پاره اوری نو مونږ ته هغه وخت هم پته ده چې دوی څه اوری، او چې کله دوی په خپلو کښې پټې خبرې کوی، نو هم او (اذ) د ماقبل د (اذ) نه بدل دې، او هغه وخت هم چې کله دا ظالمان په خپل مينځ کښې پټې خبرې کوی، وائی، چې تاسو د هغه کس تابعداری کوئی په چا چې جادو شوې دې، يعنی د هغه کس چې مسحور او مغلوب العقل دې، اوګورئی ستاسو باره کښې څنګه مثالونه ورکوی، يعنی د سحر شوې، کاهن او د شاعر مثال، ددې وجې نه دا خلق د هدايت نه اوړيدلې دی، دوی ته الله ته د رسيدلو لاره نه ملاويږی، او د قيامت نه انکار کونکی وائی چې کله مونږ هډوکی او زره زره شو نو آيا مونږ به

بیا په نوي ژوندون پیدا کیږو؟ تاسو دوی ته اووایئ چې تاسو کانړي یا اوسپنه یا څه داسې مخلوق چې د ژوند په قبلولو کښې ستاسو په خیال کښې د هډوکو او د ریزو نه هم لرې وی، شئ نو بیا به هم هغه په تاسو کښې ساه اچوی، نو دوی به خامخا تپوس کوی چې هغه څوک دی چې مونږ به ژوند طرف ته واپس کړی، (په جواب کښې اووایه چا چې په اول ځل باندې پیدا کړی یئ حالانکه تاسو هیڅ هم نه وئی، ځکه چې څوک په ابتدا باندې قادر دې هغه دوباره پیدا کولو کښې هم قادر دې، بلکه دوباره پیدا کول خو ډیر اسان دی.نو دوی به په حیرانتیا سره تاته سر ښکته کړی، او تپوس به اوکړی خا نو دا دوباره ژوندی کیدل به وی کله؟ ته ورته اووایه چې کیدې شی چې هغه وخت نزدې راغلې وی چې په کومه ورځ باندې د اسرفیل په ژبه باندې قبرونو ته اواز اوکړی نو تاسو به د هغه په حکم باندې لبیک وئیلو سره د قبرونو نه بهر راوځئ، او وئیلې شوی دی چې (له الحمد) وئیلو سره راوزځئ، کوم منظر ته چې تاسو ګورئی نو د هغې د هیبت د وجې نه ستاسو ګمان به دا وی چې تاسو په دنیا کښې ډیر لږ وخت پاتې شوی یئ.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: ولقد صرفنا في هذا القرآن:** واؤ عاطفه دې لام قسمیه دې، (صرف) ډیرو معنو کښې استعمالیږی، دلته بینا وأوضحنا په معنی کښې مستعمل دې، ددې مفعول محذوف دې، تقدیری عبارت دادې ولقد صرفنا امثالا

**قوله: ساترا:** په دې کښې اشاره ده چې مفعول په معنی د فاعل دې، ځکه چې حجاب ساتر وی نه چې مستور.

**قوله: الفتك:** بتثليث الفاء القتل على الغفلة، اچانک د غفلت په حالت کښې قتل کول.

**قوله: من ان يفهموا:** په دې کښې اشاره ده چې (ان) مصدریه دې، نه چې تفسیریه، په (من ان یفهموا) کښې د (من) اضافه دا ښودلو د پاره چې (ان یفقهوه) د (من) تقدیر سره د (اکنة) صله ده، او (اکنة) د منع معنې ته مشتمل دې، نه دا چې ان یفقهوا مفعول له دې، چې د مضارع د حذف کولو ضرورت به وی، او تقدیری عبارت دا وی. کراهة ان یفقهوه؛

**قوله: وحده:** مصدر دې په ځای د حال کښې واقع دې.

**قوله: نفورا:** مصدر دې کوم چې د (ولو) مفعول له واقع دې،

**قوله: اذ يستمعون:** الخ، او اذ هم نجوی، دا دواړه د (اعلم) ظرف دی.

**قوله: قراءتك:** مضاف محذوف ګڼړلو سره ئې اووئیل چې د استماع مفعول قراءت محذوف دې، ځکه چې د ذات اوریدل ناممکن دی، او نه ذات داوریدو څیز دې.

**قوله: مسحورا:** أى مسحورًا یعنی داسې مسحور چه د سحر په وجه د هغه عقل زائل شوې وی.

قوله: رُفاتاً: رُفات هغه څيز چه هغه اوچ شي او چوره چوره شي.

قوله: ينغضون: إنغاض د (افعال) نه مضارع جمع مذكر غائب، هغه سر خوزوي، نَغض (ض ن) د پورته نه لاندې سر خوزول.

**[اياتونه: ۵۳ ـ ۶۰]**

(وقل لعبادي) المؤمنين (يقولوا) للكفار الكلمة (التي هي أحسن إن الشيطان ينزغ) يفسد (بينهم إنَّ الشَّيطَانَ كَانَ لِلإِنسَانِ عَدُوًّا مُبِينًا) بَيِّن العداوة والكلمة التي هي احسن هي (رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِكُمْ إِنْ يَشَأْ يَرْحَمْكُمْ) بالتوبة والإيمان (أَوْ إِنْ يَشَأْ) تعذيبكم (يُعَذِّبْكُمْ) بالموت على الكفر (وَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا) فتجبرهم على الإيمان وهذا قبل الأمر بالقتال (وَرَبُّكَ أَعْلَمُ بِمَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) فيخصهم بما شاء على قدر أحوالهم (وَلَقَدْ فَضَّلْنَا بَعْضَ النَّبِيِّينَ عَلَى بَعْضٍ) بتخصيص كل منهم بفضيلة كموسى بالكلام وإبراهيم بالخلة ومحمد بالإسراء (وآتينا داود زبورا (قُلْ) لهم (ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُمْ) أنهم آلهة (من دونه) كالملائكة وعيسى وعزير (فلا يملكون كشف الضر عنكم ولا تحويلا) له إلى غيركم (أولئك الذين يدعون) هم آلهة (يَبْتَغُونَ) يطلبون (إِلَى رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ) القربة بالطاعة (أَيُّهُمْ) بدل من واو يبتغون أي يبتغيها الذي هو (أَقْرَبُ) إليه فكيف بغيره (وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُ) كغيرهم فكيف تدعونهم آلهة (إن عذاب ربك كان محذورا) (وإن) ما (من قرية) اريد اهلها (إلا نحن مهلكوها قبل يوم القيامة) بالموت (أَوْ مُعَذِّبُوهَا عَذَابًا شَدِيدًا) بالقتل وغيره (كَانَ ذَلِكَ فِي الْكِتَابِ) اللوح المحفوظ (مَسْطُورًا) مكتوبا (وَمَا مَنَعَنَا أَنْ نُرْسِلَ بِالْآيَاتِ) التي اقترحها أهل مكة (إِلَّا أَنْ كَذَّبَ بِهَا الْأَوَّلُونَ) لما ارسلناها فاهلكناهم ولو ارسلناها إلى هؤلاء لكذبوا بها واستحقوا الإهلاك وقد حكمنا بإمهالهم لإتمام أمر محمد صلى الله عليه وسلم (وَآتَيْنَا ثَمُودَ النَّاقَةَ) آية (مُبْصِرَةً) بينة واضحة (فظلموا) كفروا (بها) فاهلكوا (وما نرسل بالآيات) المعجزات (إِلَّا تَخْوِيفًا) للعباد فيؤمنوا (و) اذكر (إِذْ قُلْنَا لَكَ إِنَّ رَبَّكَ أَحَاطَ بِالنَّاسِ) علما وقدرة فهم في قبضته فبلغهم ولا تخف احدا فهو يعصمك منهم (وما جعلنا الرؤيا التي أريناك) عيانا ليلة الإسراء (إِلَّا فِتْنَةً لِلنَّاسِ) أهل مكة إذ كذبوا بها وارتد بعضهم لما اخبرهم بها (وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُونَةَ فِي الْقُرْآنِ) وهي الزقوم التي تنبت في أصل الجحيم جعلناها فتنة لهم إذ قالوا النار تحرق الشجر فكيف تنبته (وَنُخَوِّفُهُمْ) بها (فَمَا يَزِيدُهُمْ) تخويفنا (إلا طغيانا كبيرا)

ترجمه: او ځما مومن بندګانو ته اووايه چې کافرانو ته ښه خبره کوئ، بې شکه شيطان ددوی په مينځ کښې فساد اچوی يقيناً شيطان د انسان ښکاره دشمن دې، يعنی د هغه دشمنی ښکاره دہ، او هغه کلمه چې ښه ده هغه دا ده چې ستاسو رب ستاسو په باره کښې ستاسو په نسبت ډير پيژنی، که هغه اوغواړی نو د توبې او د ايمان په ذريعې به په تاسو باندې رحم اوکړی يا که تاسو ته عذاب درکول اوغواړی، نو تاسو ته به په کفر باندې مرګ درکولو سره تاسو ته عذاب

درکړی، او مونږ تاسو ددوی ذمه دار لیږلي نه یئ، چې تاسو دوی په ایمان باندې مجبوره کړئ، او دا حکم د جهاد د حکم نازلیدو نه مخکښې وو، او هغه د اسمانونو او د زمکې د مخلوقاتو په باره کښې ډیر خبردار دې، او ددوی د احوالو مطابق چې څه اوغواړی دوی سره ئې خاص کوی، او یقینا مونږ بعضو نبیانو ته په بعضې باندې فضیلت ورکړې دې، په دوی کښې هر یو ته خاص فضیلت ورکولو سره مثلا موسی علیه السلام ته ئې دخپل خان سره د خبرو فضیلت، ابرهیم علیه السلام ته ئې د دوستئ مرتبه ورکولو سره، او محمد ﷺ ته ئې په دې دوارو باندې د معراج د سفر په ذریعه (فضیلت ورکولو سره) او دواد علیه السلام ته مونږ زبور ورکړې وو، تاسو ص) دوی ته اووایئ څوک چې تاسو د هغه نه علاوه معبود ګنړئی، مثلا ملائکه، عیسی او عزیر (علیهما السلام) هغوی ته اواز اوکړئ خو هغوی نه ستاسو نه څه تکلیف لرې کولې شی، او نه ئې بدل کولو سره به بل چا باندې وراچولې شی، او څوک چې دا خلق معبود ګنړلو سره رابلی په خپله د طاعت په ذریعې سره خپل رب ته د نزدې کیدو کوشش کوی، چې په دوی کښې به څوک وی چې هغه ته ډیر نزدې شی، نو د غیر اقرب به څه حال وی؟ (ایهم) د یتبعون د واؤ نه بدل دې، یعنی کوم چې هغه ته نزدې دی، هغه نور هم د نزدې کیدو کوشش کوی، او هغه د هغه د رحمت امیدوار او د نورو پشان د عذاب نه ویریږی، نو بیا دا خلق هغوی د معبود په حیثیت سره ولې رابلی؟ حقیقت دادې چې ستا د رب عذاب هم د ویریدلو لائق دې، او یو کلې داسې نشته، مراد ترې نه کلی والا دی، چې مونږ هغه د مرګ په ذریعې سره د قیامت نه مخکښې هلاک نه کړو، یا د قتل وغیره په ذریعې سره هغه ته سخت عذاب ورنکړو، دا په لوح محفوظ کښې لیکلې شوې دی، مونږ نښې یعنی د اهل مکې فرمائشی نښې لیږلو نه دې خبرې منع کړې یو، چې کله مونږ دا فرمائشی معجزې لیږلې وی نو مخکښینو خلقو ددې تکذیب کړې وو، او که مونږ ددوی فرمائشی معجزې دوی ته لیږلې وې نو دوی به هم د هغې نه تکذیب کولو، چې د هغې د وجې به د هلاکت لائق شوی وو، او مونږ د محمد ﷺ مشن پورا کولو د پاره دوی ته د مهلت حکم ورکړې دې، او مونږ ثمودیانو ته د ښکاره معجزې په طور اوښه ورکړه نو هغوی په دې باندې ظلم اوکړو، یعنی ددې ناشکری ئې اوکړه نو هغوی هلاک کړې شول، او مونږ خو خلقو لره د ویرولو د پاره نښې معجزات رالیږو، چې منړی ایمان راوړی، او یاد کړه چې کله مونږ تا ته وئیلې وو چې بې شکه ستا رب د خلقو د علم او قدرت په اعتبار سره احاطه کړې ده، نو دا د هغه په قبضه کښې دی، تاسو دوی ته تبلیغ کوئی او د چا ویره مه کوئی، هغه به ستاسو ددوی نه حفاظت کوی، د شپې په سفر کښې چې څه مونږ تا ته په ښکاره اوښودل، هغه د اهل مکې والو د پاره صرف امتحان دې، ځکه چې هغوی نکذیب کړې وو، او چې کله دوی ته د واقع خبر ورکړې شو نو بعضې ضعیف الایمان په دوی کښې مرتد شول، او هغه اونې لره هم په کومه

چې په قرآن کښې لعنت کړې شوې دې، او هغه د زقوم اونه ده، کومه چې د جهنم په لاندې طبقه کښې راښتلې ده، هغه هم مونږ ددوی د پاره امتحان جوړ کړو حالانکه دوی اووئيل چې اور خو اونه سوزوی نو بيا به دا څنګه دې کښې راخيژی، او مونږ دوی لره ددې په ذريعې سره ويره وو، خو زمونږ دا ويرول دوی نور هم په سرکشئ باندې راوچتوی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: الكلمة التي هي احسن:** التى اسم موصول، هى مبتدأ، احسن ددې خبر، مبتدأ سره د خبر نه جمله صله، موصول سره د صله نهه صفت دې د الكلمة محذوف د پاره، موصوف سره د صفت نه مقوله شوه.

**قوله: يقولوا:** مفسر علام الكلمة محذوف ګنړلو سره د التى وجه تانيث ته اشاره کړې ده.

**قوله: هي ربكم اعلم: الخ،** د الكلمة هى أحسن تفسير دې، او په مينځ کښې جمله معترضه ده، لهذا مفسر او مفسر په مينځ کښې د فصل اعتراض ختم شو.

**قوله: عما شاء اى بالنبوة وغيرها**

**قوله: واتينا داود زبورا:** په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې د حضرت داود ﷺ فضيلت ددې وجې دې چې دوی ته په ذريعه د وحی زبور نازل شوې وو، نه چې دده د ملک او د مال د وجه نه.

**قوله: اولئك الذين يدعون هم:** په دې کښې دوه ترکيبه دی:

① اولئک اسم اشاره موصوف، الذين اسم موصول، يدعون فعل با فاعل، هم ضمير صله، مفعول محذوف آلهة، د هم نه تميز، يدعون د خپل فاعل او مفعول سره صله شوه، موصول سره د صلې نه جمله، صفت شو د اولئک د پاره، موصوف سره د صفت نه مبتدأ، يبتغون الى ربهم الوسيلة خبر شو د دې مبتدأ د پاره.

② دويم ترکيب: اولئک مبدل منه، او الذين يدعون بدل، بدل مبدل منه سره مبتدأ، او يبتغون جمله ددې خبر.

**قوله: ايهم اقرب:** مبتدأ خبر دې، او دا هم صحيح ده چې ايهم د يبتغون د ضمير نه بدل وی، اى يبتغى من هو اقرب اليه تعالى الوسيلة فكيف من دونه مفسر علام هم دا ترکيب اختيار کړې دې.

**قوله: مبصرة:** مبصرة، د آية، موصوف محذوف صفت دې، نه چې د الناقة، لهذا په موصوف صفت کښې د عدم مطابقت اعتراض ختم شو.

**قوله: عيانا:** په دې کښې اشاره ده، چې رويا په معنې د رويت بصرى دې.

**قوله: الشجرة:** ددې عطف په الرؤيا باندې دې، يعنی مونږ دواړه د امتحان وجه جوړه کړه.

قوله: الشجرة الملعونة: په دې کښې مجاز دې يعنی لعنت په شجر باندې نه دې، بلکه په اونه خوړلو والا باندې دې، ځکه چې په اونه باندې د لعنت وئيلو څه مطلب نشته.

[آیاتونه: ٦١ - ٧٠]

(وَ) اذْكُرْ (إِذْ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ) سجود تحية بالانحناء (فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ قَالَ أَأَسْجُدُ لِمَنْ خَلَقْتَ طِينًا) نُصِبَ بِنَزْعِ الْخَافِضِ أَيْ مِنْ طِينٍ (قَالَ أَرَأَيْتَكَ) أَيْ أَخْبِرْنِي (هَذَا الَّذِي كَرَّمْتَ) فضلت (عَلَيَّ) بالأمر بالسجود له و (أَنَا خَيْرٌ مِنْهُ خَلَقْتَنِي مِنْ نَارٍ) (لَئِنْ) لام قسم (أَخَّرْتَنِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَأَحْتَنِكَنَّ) لأستأصلنَّ (ذُرِّيَّتَهُ) بالإغواء (إِلَّا قَلِيلًا) مِنْهُمْ ممن عصمته (قَالَ) تَعَالَى لَهُ (اذْهَبْ) مُنظرًا إِلَى وَقْتِ النفخة الأولى (فَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ فَإِنَّ جَهَنَّمَ جَزَاؤُكُمْ) أَنْتَ وَهُمْ (جَزَاءً مَوْفُورًا) وَافِرًا كاملا (وَاسْتَفْزِزْ) استخف (مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُمْ بِصَوْتِكَ) بِدُعَائِكَ بِالْغِنَاءِ وَالْمَزَامِيرِ وَكُلِّ دَاعٍ إِلَى الْمَعْصِيَةِ (وَأَجْلِبْ) صِحْ (عَلَيْهِمْ بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ) وَهُمُ الرُّكَّابُ وَالْمُشَاةُ فِي الْمَعَاصِي (وَشَارِكْهُمْ فِي الْأَمْوَالِ) الْمُحَرَّمَةِ كَالرِّبَا وَالْغَصْبِ (وَالْأَوْلَادِ) مِنَ الزِّنَى (وَعِدْهُمْ) بِأَنْ لَا بَعْثَ وَلَا جَزَاءَ (وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَانُ) بِذَلِكَ (إِلَّا غُرُورًا) بَاطِلًا (إِنَّ عِبَادِي) المؤمنين (لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ) تَسَلُّطٌ وَقُوَّةٌ (وَكَفَى بِرَبِّكَ وَكِيلًا) حَافِظًا لهم منك (رَبُّكُمُ الَّذِي يُزْجِي) يجري (لَكُمُ الْفُلْكَ) السفن (فِي الْبَحْرِ لِتَبْتَغُوا) تَطْلُبُوا (مِنْ فَضْلِهِ) تَعَالَى بِالتِّجَارَةِ (إِنَّهُ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا) فِي تسخيرها لكم (وَإِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ) الشِّدَّةُ (فِي الْبَحْرِ) خَوْفَ الْغَرَقِ (ضَلَّ) غَابَ عَنْكُمْ (مَنْ تَدْعُونَ) تَعْبُدُونَ مِنَ الْآلِهَةِ فَلَا تَدْعُونَهُ (إِلَّا إِيَّاهُ) تَعَالَى فَإِنَّكُمْ تَدْعُونَهُ وحده لأنكم في شدة لا يكشفها إِلَّا هُوَ (فَلَمَّا نَجَّاكُمْ) مِنَ الْغَرَقِ وَأَوْصَلَكُمْ (إِلَى الْبَرِّ أَعْرَضْتُمْ) عَنِ التَّوْحِيدِ (وَكَانَ الْإِنْسَانُ كَفُورًا) جحودا للنعم (أَفَأَمِنْتُمْ أَنْ يَخْسِفَ بِكُمْ جَانِبَ الْبَرِّ) أَيِ الْأَرْضِ كَقَارُونَ (أَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا) أَيْ يَرْمِيكُمْ بِالْحَصْبَاءِ كَقَوْمِ لُوطٍ (ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ وَكِيلًا) حافظا منه (أَمْ أَمِنْتُمْ أَنْ يُعِيدَكُمْ فِيهِ) أي البحر (تَارَةً) مرة (أُخْرَى فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا مِنَ الرِّيحِ) أَيْ رِيحًا شَدِيدَةً لَا تَمُرُّ بِشَيْءٍ إِلَّا قَصَفَتْهُ فَتَكْسِرُ فُلْكَكُمْ (فَيُغْرِقَكُمْ بِمَا كَفَرْتُمْ) بكفركم (ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ عَلَيْنَا بِهِ تَبِيعًا) نَاصِرًا وَتَابِعًا يُطَالِبُنَا بِمَا فَعَلْنَا بِكُمْ (وَلَقَدْ كَرَّمْنَا) فَضَّلْنَا (بَنِي آدَمَ) بِالْعِلْمِ وَالنُّطْقِ وَاعْتِدَالِ الْخَلْقِ وَغَيْرِ ذَلِكَ وَمِنْهُ طَهَارَتُهُمْ بَعْدَ الْمَوْتِ (وَحَمَلْنَاهُمْ فِي الْبَرِّ) عَلَى الدَّوَابِّ (وَالْبَحْرِ) على السفن (وَرَزَقْنَاهُمْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَى كَثِيرٍ مِمَّنْ خَلَقْنَا) كَالْبَهَائِمِ وَالْوُحُوشِ (تَفْضِيلًا) فَمَنْ بِمَعْنَى مَا أَوْ عَلَى بَابِهَا وَتَشْمَلُ الْمَلَائِكَةَ وَالْمُرَادُ تَفْضِيلُ الْجِنْسِ وَلَا يَلْزَمُ تَفْضِيلُ أَفْرَادِهِ إِذْ هُمْ أَفْضَلُ مِنَ الْبَشَرِ غَيْرِ الْأَنْبِيَاءِ

ترجمه: هغه وخت ياد کړه، چې مونږ فرښتو ته حکم اوکړو چې د آدم په مخکښې سجده اوکړئ، د تعظيم په طور سره نو ټولو سجده اوکړه سوا د ابليس نه، هغه اووئيل چې آيا چه هغه چاته ټيټ شم څوک چې تا د خاورې نه پيدا کړې دې، طينا د حذف جار د وجه نه منصوب دې، اى من طين. (ابليس) اووئيل اوګوره آيا دې ددې قابل وو چې تا ماله د سجدې کولو حکم راکړو او

په ما باندې دې ورله فضیلت ورکړو، حالانکه څۀ دده بهتر یم ځکه چې تا څه د اور نه پیدا کړم، ځما دې قسم وی، لام قسمیه دې، که تا ماته د قیامت پورې مهلت راکړو، نو څه به هم په اغوا کولو سره ددوی جرړې اوباسم، او په دوی کښې به ډیر لږ خلق بچ شی، کوم چې ته بچ کول اوغوارې، الله تعالی ده ته اوفرمائیل خا زه تاته د اولنې شپیلئ پورې مهلت دې ځوک چې ددوی نه ستا تابعداری وکړی، نو ستاسو ټولو ځای جهنم دې، لهذا ته چې ځوک ځوک په دوی کښې په ګانو بچانو او د هر ګناه د دعوت په ذریعې سره دوی وخویوه او ته خپل سواره او پیادل په دوی باندې واچوه، یعنی هر یو حربه استعمال کړه، د خیل نه مراد په اس باندې سور، او د مشاة نه مراد پیاده دې. او په حرام مال کښې مثلا سود، د غصب مال، او د زنا په اولاد کښې خپله حصه واچوه او هغوی سره وعده اوکړه، چې نه د مرګ نه پس ژوندی کیدل دی او نه څه حساب شته، او شیطان چې دوی سره کومې وعدې کوی، هغه د دهوکې نه سوا بل هیڅ نه دی، ځما مومن مخلص بندګانو باندې به ستا قابو او زور نه چلیږی، او ستا رب ددوی حفاظت د پاره ستا د طرف نه کافی دې، ستاسو رب خو هغه دې کوم چې په دریاب کښې ستاسو کشتئ چلوی، چې تاسو د تجارت په ذریعې سره د هغه فضل روزی تلاش کړئ، حقیقت دادې چې هغه د کشتو ستاسو د پاره تابع کولو سره په تاسو باندې مهربان دې، او چې کله په سمندر کښې په تاسو باندې د غرقیدو د ویرې نه مصیبت راشی، نو هغه وخت تاسو هغه معبودان غائب شی د کوم کوم چې معبودانو چې تاسو بندګی کوله، یعنی په هغه وخت کښې تاسو هم هغه یو وحده لاشریک لره رابلئ ځکه چې تاسو په داسې مصیبت کښې یئ چې صرف هم هغه ئې لرې کولې شی، بیا چې کله تاسو لره د ډوبیدلو نه بچ کړی، او تاسو اوچکئ ته راورسوئ نو تاسو د توحید نه مخ واړوئی او انسان دې د نعمتونو ناشکره، او ایا تاسو دې خبرې نه داسې بې ویرې شوئی، چې تاسو به د قارون په شان په زمکه کښې ځښ کړې یا په تاسو بندې تیره کانړو والا هوا اوچلوی یعنی د قوم لوط پشان د کانړو باران دربانديې وکړی بیا تاسو د هغې نه د بچ کیدو ځوک حمایتی ونه مومئ آیا تاسو د دې خبرې نه بې فکره شوئ چې هغه بیا تاسو لره سیند ته بوځی او په تاسو باندې طوفانی هوا اوچلوی، یعنی داسې هوا چې په چا باندې ورشی نو هغه ټکړې ټکړې کړی او ستاسو کشتیانو لره هم ماتې کړې، بیا تاسو لره ستاسو دکفر د وجه نه غرق کړی بیا ستاسو په دې خبره باندې ځوک مدد کولو والا هم نه وی، یعنی څه داسې مددګار یا حمایتی چې کوم کار مونږ تاسو سره اوکړو د هغې په سلسله کښې زمونږ نه تپوس اوکړی او مونږ اولاد د آدم ته په علم او د خبرو په ذریعې سره او د اعتدال خلقت وغیره په ذریعې سره عزت ورکړو او هم په هغې کښې ستاسو د مرګ نه پس پاکول هم دی، او مونږ دوی لره په اوچه کښې په څناورو باندې سواره کړل او په دریاب کښې مو په کشتو سواره کړل، او دوی ته مو پاک څیزونه ورکړل او مونږ

دوی ته په خپل ډیر مخلوق کښې فضیلت ورکړو لکه چې ساتلو والا او وحشي ځناور، ما په معنی د من دې، یا په خپل حال باندې دې، او دا فوقیت په فرشتو باندې هم شامل دې او مراد فضیلت جنس علی الجنس دې،او ځکه د افرادو فضیلت لازم نه دې، ځکه ملائک د انبیاؤ نه علاوه د هر انسان نه افضل دی،

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** اخبرني: ارایتک: کاف حرف خطاب دې، نه چې اسم، بلکه د مخاطب فاعل د اسناد د تاکید د پاره دې، لهذا ددې څه محل اعراب نشته، او هذا د اریتک مفعول اول دې، او الذی کرمت د هذا صفت ذې، او د ارایتک مفعول ثانی محذوف دې، او هغه لِمَ کرمت علیّ دې، په دې حذف باندې صفت دلالت کوی.

**قوله:** فضلت: دا د یو سوال جواب دې

**سوال:** کرمت تفسیر ئې فضلت سره ولې اوکړو؟

**جواب:** ځکه چې د تکریم صله (علی) نه واقع کیږی

**قوله:** منظرا: ای ممهلا، اذهب د دهاب نه نه دې کوم چې د المجئ ضد دې، بلکه ددې معنی ده امض لشأنك الذی اخترته، یعنی تا چې کومه اراده کړې ده هغه پوره کړه.

**قوله:** انت وهم: دا اضافه ددې سوال جواب دې چې په منهم کښې هم د جمع غائب ضمیر دې، او په جزاوکم کښې کم جمع حاضر، په دواړو کښې مطابقت نشته؟

**جواب:** حاصل دا دې چې په اصل کښې ان جهنم جزاوءك وجزاءهم، وو، بیا مخاطب ته په غائب باندې غلبه ورکړې شوه، لهذا په دواړ ضمیرونو کښې د مخالفت اعتراض ختم شو.

**قوله:** استفزز: (استفعال) امر واحد مذکر حاضر، ته اویروه.

**قوله:** لأحتنكن: (احتناک افتعال) څه به خامخا دبیخه راوباسم، څه به خامخا په قابو کښې راولم، څه به ورته خامخا پیزوان اچوم، صیغه واحد متکلم مضارع بانون تاکید ثقیله

**قوله:** لاستأصلن: څه به ئې د بیخ نه اوباسم، د جرړو نه به ئې اوباسم

**قوله:** اوصلکم:

**سوال:** د نجاکم تفسیر په اوصلکم سره ئې ولې اوکړو؟

**جواب:** چونکه د نجاکم صله الی نه رازی او دلته صله الی واقع شوې ده، کومه چې صحیح نه ده، نو د هغې وجه ئې اوښودله، چې نجاکم د اوصلکم معنې لره متضمن دې، چې د هغې صله الی رازی.

**قوله:** الحصباء ای الحصاة:

**قوله:** بكفركم: په دې كښې اشاره د ه چې په بما كفرتم كښې ما مصدريه ده، لهذا د عدم عائد اعتراض به نه رازى،

**قوله:** اعتدال الخلق: او هم د اعتدال هغه خبره ده كوم چې ابن عباس ﷺ ذكر كړې ده چې هر خناور مخ ښكته كولو سره خوراک كوى خو انسان خوراک ته د مخ ښكته كولو په ځائې باندې خوراک خلې طرف ته اوچتوى.

**قوله:** المراد تفضيل الجنس: دا اضافه د يو سوال جواب دې

**سوال:** مونږ دا نه منو چې ټول انسانان د ټولو فرشتو نه افضل دى؟

**جواب:** د جنس انسان په جنس فرشتو باندې فضيلت حاصل دې يعنى خاص فرشتې د عامو انسانانو نه افضل دى نه چې د خاص انسانانو نه، مثلا د انبياؤ نه،

**تنبيه:** كه لفظ (على كثير) ته اوكتلې شى، نو دا اعتراض به پيدا نشى.

**[ايات تولد: ۷۱ - ۷۷]**

اذكر (يوم ندعوا كل أناس بإمامهم) نبيهم فيقال يا أمة فلان أو بكتاب أعمالهم و يقال يا صاحب الخير و يا صاحب الشر وهو يوم القيامة (فمن أوتي) منهم (كتابه بيمينه) وهم السعداء أولو البصائر في الدنيا (فأولئك يقرءون كتابهم ولا يظلمون) ينقصون من أعمالهم (فتيلا) قدر قشرة النواة (ومن كان في هذه) أي الدنيا (أعمى) عن الحق (فهو في الآخرة أعمى) عن طريق النجاة وقراءة الكتاب (وأضل سبيلا) أبعد طريقا عنه ونزل في ثقيف وقد سألوه صلى الله عليه وسلم أن يحرم واديهم والحوا عليه (وإن) مخففة (كادوا) قاربوا (ليفتنونك) ليستزلونك (عن الذي أوحينا إليك لتفتري علينا غيره وإذا) لو فعلت ذلك (لا تخذوك خليلا) (ولولا أن ثبتناك) على الحق بالعصمة (لقد كدت) قاربت (تركن) تميل (إليهم شيئا) ركونا (قليلا) لشدة احتيالهم وإلحاحهم وهو صريح في أنه صلى الله عليه وسلم لم يركن ولا قارب (إذا) لو ركنت (لأذقناك ضعف) عذاب (الحياة وضعف) عذاب (الممات) أي مثلي ما يعذب غيرك في الدنيا والآخرة (ثم لا تجد لك علينا نصيرا) مانعا منه ونزل لما قال له اليهود إن كنت نبيا فالحق بالشام فإنها أرض الأنبياء (وإن) مخففة (كادوا ليستفزونك من الأرض) أرض المدينة (ليخرجوك منها وإذا) لو أخرجوك (لا يلبثون خلافك) فيها (إلا قليلا) ثم يهلكون (سنة من قد أرسلنا قبلك من رسلنا) أي كسنتنا فيهم من إهلاك من أخرجهم (ولا تجد لسنتنا تحويلا) تبديلا

**ترجمه:** هغه ورځ ياد ساتل پكار دى چې په كومه ورځ به مونږ هر ډله (امت) د هغوى نبى سره راوغواړو، داسې به اووئيلې شى اې د فلانكى نبى امته يا به دوى د اعمالنامو سره رابللې شى داسې اواز به اوكړې شى اې د خير صاحبه او اې د شر صاحبه، هغه به د قيامت ورځ وى، نو په دوى كښې چې چا ته په ښى لاس كښې اعمالنامه وركړې شى نو دا خلق

به خوش نصیب او په دنیا کښې به د بصیرت خاوندان وو، نو دوی به خپلې اعمالنامې په خوشحالئ لولی، او ددوی په اعمالنامو کښې به د هدوکی د پوستکی برابر هم کمې نه کیږی، او څوک چې په دې دنیا کښې د حق لیدلو نه ړوند شی نو په آخرت کښې به هم د نجات لار او د اعمالنامې د لوستلو ړوند وی او ډیره روکه شوې لاره باندې به وی. یعنی د نیغې لارې نه به ډیر لرې وی، او دا راروان آیت د بنوثقیف په باره کښې نازل شوې، چې کله هغوی د نبی ﷺ نه مطالبه اوکړه، چې د دوی وادی طائف حرم جوړ کړه، او په دې خبره باندې ئې زور راوړو، او بې شکه نیزدې وه چې دا خلق تا د هغه وحی نه کوم چې مونږ تاته نازلوو، لرې کړی، اخوا کړی چې تاسو زمونږ طرف ته د خپل جوړ شوو نسبت اوکړئ، که چرې تاسو ددوی د وئیلو مطابق کړې وو نو دې خلقو به تاسو لره خپل دوست جوړ کړې وو، او که د حفاظت په ذریعه مونږ تاسو لره په حق باندې قائم نه ساتلو نو نزدې وه چې تاسو ددوی د ډیرې بهانو او د اصرار کولو د وجه دوی طرف ته څه نه څه مائل شوې وئی، دا په دې خبره کښې صریح دې چې نه نبی علیه السلام مائل شوې وو او نه مائل کیدو ته نزدې شوې وو. او که مائله شوې وې نو مونږ به تاسو باندې خامخا څکولې وو، دوچنده عذاب په دنیا کښې او دوچنده عذاب په آخرت کښې، د هغې دوچند کوم چې نورو ته په دنیا او آخرت کښې ورکولې شی، بیا به تاسو زمونږ د طرف نه څه مددګار نه موندلو، یعنی ددې عذاب نه د بچ کولو والا، او راروان آیت هغه وخت نازل شو چې کله یهودیانو حضور ﷺ ته اووئیل چې که ته نبی ئې نو شام ته لاړ شه ځکه چې هغه د پیغمبرانو زمکه ده، او بې شکه دا خبره نزدې وه چې دوی ستا قدمونه د مدینې د زمکې نه اویاسی، چې تاسو لره د مدینې نه اوخویږی، که دې خلقو تاسو لره اوباسلئ نو دوی به خپله ستاسو نه پس په مدینه کښې پاتې نه شی، خو ډیر لږ. بیا به دوی هلاک کړې شوې وو، دغه شان دستور د هغه رسولانو وو کوم چې مونږ ستا نه مخکښې لیږلې وو، یعنی د هغه خلقو د هلاکولو زمونږ د دستور مطابق، چا چې پیغمبرانو لره ویستلې وو، او تاسو به زمونږ په دستور کښې تبدیلی نه مومئ.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: اناس: خلق، د نوس نه ماخوذ دې، چې د هغې معنی حرکت کول دی، دا د انسان جمع بغیر لفظه ده، په مصباح کښې دی چې انسان د ناس نه ماخوذ دې، او دا اسم جنس دې، ددې اطلاق په مذکر مؤنث واحد او جمع ټولو باندې کیږی.

قوله: یاصاحب الشر: په دې کښې مضاف محذوف دې، ای صاحب کتاب الشر.

قوله: یقرءون ای یقرءون سرورا: په خوشحالئ خوشحالئ به لولی.

قوله: قدر قشرة النواة: مفسر علام د فتیلا تفسیر په قشرة النواة سره کړې دې، ښه به وه چې

الخيط الذي في نقرة النواة طولا، سره ئې كرې وو، څکه چې د کهجورې په هډوکی کښې درې څيزونه وی ①فتيل، ②قطمير ③نقير، فتيل هغه تار ته وائی، چې د هډوکی په شا باندې په اوږدوالی سره په يوه شق کښې وی، او د هډوکی د پاسه د جالئ په شان يو غلاف وی هغې ته قطمير وائی، او د هډوکی شاته يو سورې وی په هغې کښې چې کومه ريشه يا تار وی هغې ته نقير وائی.

قوله: ابعد طريقا عنه اي ابعد طريقا عن الاعمى في الدنيا: يعنی روند چې څنګه د لارې کتلو نه لرې وی، کافر به په آخرت کښې د خلاصيدلو والې لارې نه ډير لرې وی.

قوله: ركونا: په دې کښې اشاره ده چې شيئا مفعول مطلق د وجه نه منصوب دې، نه چې د مفعول د وجې، څکه چې ترکن لازم دې نه چې متعدی، د لته د شيئا موصوف ركونا محذوف دې،

قوله: يستفزونك: اى ليز عجونك (استفزاز استفعال) مضارع جمع مذكر غائب، (ک) ضمير مفعول، ستا سو قدمونه اوخويوی.

[ايا تونه: ۷۸ - ۸۴]

﴿أَقِمِ الصَّلَاةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ﴾ أي مِنْ وَقْتِ زَوَالِهَا ﴿إِلَى غَسَقِ اللَّيْلِ﴾ إقْبَالِ ظُلْمَتِه أي الظُّهْر وَالْعَصْر وَالْمَغْرِب وَالْعِشَاء ﴿وَقُرْآنَ الْفَجْرِ﴾ صَلَاة الصُّبْح ﴿إِنَّ قُرْآنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا﴾ تَشْهَدهُ ملائكة الليل وملائكة النهار ﴿وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ﴾ فَصَلِّ ﴿بِهِ﴾ بالقرآن ﴿نَافِلَةً لَكَ﴾ فَرِيضَة زَائِدَة لَك دُون أُمَّتك أوْ فَضِيلَة عَلَى الصَّلَوَات الْمَفْرُوضَة ﴿عَسَى أَنْ يَبْعَثَكَ﴾ يُقِيمك ﴿رَبُّكَ﴾ فِي الْآخِرَة ﴿مَقَامًا مَحْمُودًا﴾ يَحْمَدك فِيهِ الْأَوَّلُونَ وَالْآخِرُونَ وَهُوَ مَقَام الشَّفَاعَة فِي فَصْل الْقَضَاء ونزل لما أمر بالهجرة ﴿وَقُلْ رَبِّ أَدْخِلْنِي﴾ الْمَدِينَة ﴿مُدْخَلَ صِدْقٍ﴾ إدْخَالًا مَرْضِيًّا لَا أَرَى فِيهِ مَا أَكْرَه ﴿وَأَخْرِجْنِي﴾ مِنْ مَكَّة ﴿مُخْرَجَ صِدْقٍ﴾ إخْرَاجًا لَا أَلْتَفِت بِقَلْبِي إلَيْهَا ﴿وَاجْعَلْ لِي مِنْ لَدُنْكَ سُلْطَانًا نَصِيرًا﴾ قُوَّة تَنْصُرنِي بِهَا عَلَى أَعْدَائِك ﴿وَقُلْ﴾ عِنْد دُخُولك مَكَّة ﴿جَاءَ الْحَقُّ﴾ الْإِسْلَام ﴿وَزَهَقَ الْبَاطِلُ﴾ بَطَلَ الْكُفْر ﴿إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا﴾ مُضْمَحِلًّا زَائِلًا وَقَدْ دَخَلَهَا صَلَّى الله عليه وسلم وحول البيت ثلاثمائة وَسِتُّونَ صَنَمًا فَجَعَلَ يَطْعَنهَا بِعُودٍ فِي يَده وَيَقُول ذَلِكَ حَتَّى سَقَطَتْ رَوَاهُ الشَّيْخَانِ ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ﴾ للبيان ﴿الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاءٌ﴾ مِنَ الضَّلَالَة ﴿وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِينَ﴾ بِهِ ﴿وَلَا يَزِيدُ الظَّالِمِينَ﴾ الْكَافِرِينَ ﴿إِلَّا خَسَارًا﴾ لِكُفْرِهِمْ بِهِ ﴿وَإِذَا أَنْعَمْنَا عَلَى الْإِنْسَانِ﴾ الْكَافِر ﴿أَعْرَضَ﴾ عَنْ الشُّكْر ﴿وَنَأَى بِجَانِبِهِ﴾ ثَنَى عِطْفه مُتَبَخْتِرًا ﴿وَإِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ﴾ الْفَقْر وَالشِّدَّة ﴿كَانَ يَئُوسًا﴾ قَنُوطًا مِنْ رَحْمَة الله ﴿قُلْ كُلٌّ﴾ مِنَّا وَمِنْكُمْ ﴿يَعْمَلُ عَلَى شَاكِلَتِهِ﴾ طريقته ﴿فَرَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَنْ هُوَ أَهْدَى سَبِيلًا﴾ طَرِيقًا فَيُثِيبهُ

ژباړه: نور غورزيدو نه پس د شپې تياره خوريدو پورې د شپې د تيارې راتلو پورې مونځ قائم کړه، يعنی ظهر عصر مغرب او عشاء او د فجر قرآن يعنی د سحرې مونځ قائم کړه يقينا د

فجر مونځ وخت د حاضرئ وخت دې چې په هغې کښې فرشتې د شپې او ورځې حاضرېږي، او د شپې په څه حصه کښې مونځ ادا کړه د تهجد مونځ قرآن سره ادا کړه، دا ستاسو د پاره اضافي فريضه ده، ستا امت د پاره نه، يا زائد دې په فرضو مونځونو باندې (يعني نفل دې) اميد دې چې ستا پروردګار تا لره په آخرت کښې په مقام محمود باندې فائز کړي، چې هلته به اولين او آخرين ستا تعريف کوي او هغه د شفاعت ځائې دې، د مقدماتو فيصله کولو کښې، او دا راروان آيت هغه وخت نازل شو چې کله هغوی ﷺ ته د هجرت حکم اوشو او دعا اوکړه چې اې پروردګار ما مدينې ته په رشتوني سره داخل کړه، يعني په خوښه سره داخل کړه چې په هغې کښې څه ناخوښه اونه وينم، او د مکې نه ما په رشتيا اوباسه يعني داسې اوباسه چې په زړې کښې دې طرف ته متوجه نه يم، او ماته په خپل فضل سره داسې غلبه راکړه چې هغې سره ستا مدد وي، يعني داسې قوت چې د هغې په ذريعې سره ته ما لره په دشمنانو باندې غلبه راکړې، او مکې ته د داخليدو په وخت کښې اووايه چې حق يعني اسلام راغې او باطل يعني کفر لاړو، يقينا باطل ختميدونکې رژيدونکې دې او چې کله نبي عليه السلام مکې ته داخل شو نو د بيت الله شريف په څلورو وارو طرفونو کښې درې سوه او شپيته بتان پراته وو، او تا (نبي عليه السلام) په هغه لښتې سره کومه چې د هغوی په لاس کښې وه اشاره ئې کوله او جاء الحق الخ ئې لوستلو، تردې چې هغه غورزيدل، (رواه الشيخان) او دا قرآن چې مونږ نازلوو د ګمراهئ نه شفا ده، او په دې باندې يقين ساتلو والا د پاره رحمت دې او د ظالمانو کافرانو د پاره ددوی د کفر د وجې نه په نقصان کښې اضافه کيږي، او چې کله مونږ په يو کافر انسان باندې انعام وکړو نو د هغه د شکر نه اعراض کوي او شا کوي، يعني په تکبر سره ددوه بدله کړي او چې کله هغه لره د غريبئ تکليف لاحق شي نو د الله د رحمت نه مايوسه شي، تاسو ورته اووايئ چې په مونږ او تاسو کښې هر سړې په خپله طريقه باندې عمل کوي، کوم خلق چې پورا هدايت باندې وي هغوی لره ستا رب ډير ښه پيژني، نو هغه به ده ته اجر ورکوي.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** من وقت زوالها: په دې کښې اشاره ده چې په لدلوک الشمس کښې (لام) په معنی د (من) دې، ځکه چې د وخت د پاره د مونځ کولو هيڅ مطلب نشته، صلوة فجر ته قرآن اووئيلې شو ځکه چې قرآن (قراءة) د صلوة رکن دې، ځنګه چې سجدې وئيلو سره مونځ مراد وي او رکوع وئيلو سره مونځ مراد وي، دغه شان قرآن وئيلو سره صلوة مراد وي، او د القرآن عطف په الصلوة باندې دې، اې اقم الصلوة واقم القرآن.

**قوله:** من الليل اي بعض الليل:

**قوله:** دلوك: د نور غورزيدل، د عبدالله بن مسعود ﷺ نه روايت دې، چې د دلوک معنی

غروب ده، عبدالله بن عباس ابن عمر او جابر (رضی الله عنهم) د زوال الشمس معنی ښودلې ده، د زوال شمس معنی د اکثرو حضراتو نه منقول ده، او هم دا معنی مراد اخستل زیات بهتر ده، ځو چې کله د دلوک معنی د زوال واخستې شی نو آیت ټولو پنځو مونځونو ته به شامل شی، دلوک الشمس ظهر او عصر ته شامل دې، او الی غسق اللیل مغرب او عشاء ته شامل دې، او قرآن الفجر د سحر مونځ ته شامل دې

**قوله**: غسق اللیل: الغسق ظلمت،او وئیلې شوې دی د شپې د اولې حصې داخلیدل.

**قوله**: فتهجد، الهجود، ترك النوم للصلوة

**قوله**: نافلة: په معنی د زیاتی سره.

**[ایاتونه: ۸۵_۹۳]**

{وَيَسْأَلُونَكَ} أيْ الْيَهُود {عَنِ الرُّوحِ} الَّذِي يَحْيَا بِهِ الْبَدَن {قُلْ} لَهُمْ {الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي} أيْ عِلْمه لَا تَعْلَمُونَهُ {وَمَا أُوتِيتُمْ مِنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا} بِالنِّسْبَةِ إلَى عِلْمه تعالى {ولئن} لام قسم {شئنا لنذهبن بالذي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ} أيْ الْقُرْآن بِأَنْ نَمْحُوهُ مِنَ الصُّدُور وَالْمَصَاحِف {ثم لا تجد لك به علينا وكيلا} {إِلَّا} لَكِنْ أَبْقَيْنَاهُ {رَحْمَةً مِنْ رَبِّكَ إِنَّ فَضْلَهُ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيرًا} عَظِيمًا حَيْثُ أَنْزَلَهُ عَلَيْك وَأَعْطَاك الْمَقَام الْمَحْمُود وَغَيْر ذَلِكَ مِنَ الْفَضَائِل {قل لئن اجتمعت الإنس والجن على أن يأتوا بمثل هذا القرآن} في الفصاحة والبلاغة {لا يأتون بمثله ولو كان بعضهم لبعض ظهيرا} مُعِينًا نَزَلَ رَدًّا لِقَوْلِهِمْ وَلَوْ نَشَاء لَقُلْنَا مِثْل هَذَا {ولقد صرفنا} بينا {لِلنَّاسِ فِي هَذَا الْقُرْآنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ} صِفَة لِمَحْذُوفٍ أيْ مَثَلًا مِنْ جِنْس كُلّ مَثَل لِيَتَّعِظُوا {فَأَبَى أَكْثَرُ النَّاسِ} أيْ أَهْل مَكَّة {إِلَّا كُفُورًا} جُحُودًا لِلْحَقِّ {وقالوا} عطف على أبى {لن نؤمن لك حتى تفجر لنا من الأرض ينبوعا} عينا ينبع منها الماء {أو تكون لك جنة} بستان {من نخيل وعنب فتفجر الأنهار خلالها} وسطها {تفجيرا} {أو تسقط السماء كما زعمت علينا كسفا} قطعا {أو تأتي بالله والملائكة قبيلا} مقابلة وعيانا فنراهم {أو يكون لك بيت من زخرف} ذَهَب {أَوْ تَرْقَى} تَصْعَد {فِي السَّمَاءِ} بِسُلَّمٍ {وَلَنْ نُؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ} لَوْ رَقِيت فِيهَا {حَتَّى تُنَزِّلَ عَلَيْنَا} مِنْهَا {كِتَابًا} فِيهِ تَصْدِيقك {نقرؤه قل} لَهُمْ {سُبْحَانَ رَبِّي} تَعَجُّب {هَلْ} مَا {كُنْتُ إِلَّا بَشَرًا رَسُولًا} كَسَائِرِ الرُّسُل وَلَمْ يَكُونُوا يَأْتُونَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ الله

**ترجمه**: یهودیان ستا نه د روح باره کښې چې د هغې د وجه نه د انسان بدن ژوندې کیږی سوال کوی تاسو دوی ته جواب ورکړه چې روح ځما د رب حکم دې، چې د هغې د حقیقت هغه ته پته ده تاسو ته نشته، او د هغه د علم په نسبت تاسو ته ډیر کم درکړې شوې دې او که مونږ او غواړو نو مونږ چې کومه وحی تاته رالیږلې ده یعنی قرآن واخلو په داسې طریقه چې هغه د سینو او د صحیفو نه اوباسو بیا به تا نه ددې د پاره زمونږ په مقابله کښې څوک مددګار نه میلاویږی، خو دا ستاد رب د طرف نه د رحمت په توګه باقی ساتلې دې یقینا په تا باندې د هغه لوې فضل دې، ځکه چې دا هغه په تا باندې نازل کړو، او تاسو ته ئې مقام محمود درکړو او ددې نه علاوه

نور فضائل ئې هم درکړل، ته ورته اووايه که جنات او انسانان په دې باندې متفق شي چې په فصاحت او بلاغت کښې د دې مثال راوړي نو هغوی به د دې مثال راونړی شي، اگر چې دوی په خپل مينځ کښې د يو بل مددگار شي، دا آيت د دې قول په جواب کښې نازل شو چې که چرې مونږ اوغواړو نو مونږ هم داسې کتاب راوړې شو، مونږ خو په دې قرآن کښې د خلقو د پوهې د پاره هر قسم مثالونه بيان کړې دی، (من کل مثل) د مثلا محذوف صفت دې، اى مثلا من جنس كل مثل، چې د دې نه نصيحت حاصل کړی، (هر قسم عمده مضمونونه مو بيان کړې دی) خو د اهل مکې نه اکثر خلق د انکار نه نه منع کيږی، هغوی اوويل چې مونږ په تا باندې هيڅ کله ايمان راوړونکی نه يو، تر دې چې ته زمونږ د پاره د زمکې نه يو چينه جاری نه کړې، داسې چينه چې د هغې نه اوبه راوزی، خپله ستا د انگورو او کهجورو يو باغ وی، او د دې په مينځ کښې ته نهرونه جاری کړې، يا اسمان ټکړې ټکړې کولو سره په مونږ باندې راوغورزوې، څنگه چې ستا دعوی ده، يا الله تعالی او فرشتو له زمونږ مخې ته راولې، که ته اسمان ته هم اوخيژې نو مونږ ستا د ختلو يقين نه کوو، تر دې چې يو خط راونړې، چې په هغې کښې ستا د ختلو تصديق وی چې هغه مونږ اولولو، اې محمد ﷺ ته دوی ته اووايه چې پاک دې ځما پروردگار دا د حيرانتيا اظهار دې، ځه خو صرف د نورو رسولانو په شان پيغام راوړونکې يو انسان يم، او هغوی هم يو معجزه د الله د اجازت نه بغير نه ده راوړی،

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** عن الروح: اى عن حقيقة الروح

**قوله:** علمه: يعنى الروح من الامور التى خص الله نفسه بعلمه فالامر بمعنى الشان، اى الروح من شان ربى.

**قوله:** بالنسبة الى علمه تعالى: دا د دې شبه جواب دې چې الله تعالى اوفرمائيل ومن يؤت الحكمة فقد اوتى خيرا كثيرا، او دلته ئې اوفرمائيل ما اوتيتم من العلم الا قليلا: په دواړو کښې تعارض دې؟

**جواب:** د جواب حاصل دا دې چې د ټول کائنات علم د الله د علم په مقابله کښې لږ دې.

**قوله:** لام قسم: دا د قسم په حذف باندې دلالت کوی، لنذهبن جواب قسم دې، کوم چې د جواب شرط قائم مقام هم دې، او بعضې حضراتو ذهبنا به جواب شرط گرځولې دې.

**قوله:** لكن ابقيناه: د الا تفسير په لكن سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې دا مستثنى منقطع ده نه چې متصل، ځکه چې د الا ماقبل د رحمت د جنس نه نه دې.

**قوله:** ابقيناه: ابقيناه ئې محذوف اومنلو چې کلام تام شی، ځکه چې د دې نه بغير کلام نا تمام دې.

**توله: صفة لمحذوف:** دا ددې سوال جواب دې، چې بينا متعدی بنفسه دې، دې لره د (من) په ذريعې سره د متعدی کولو ضرورت نشته؟

جواب دادې چې ددې مفعول محذوف دې او هغه مثلا دې، او (من کل شئی) د (کائنا) متعلق کيدو سره د مفعول محذوف صفت دې.

**توله: الاکفورا:**

**سوال:** چې کله ضربت الا زيدا جائز نه دې، نو بيا ابى أکثر الناس الاکفورا ولې صحيح دې؟ دا خو په مثبت کښې مستثنى مفرغ واقع ده او دا جائز نه ده؟

**جواب:** ابى د نفی فائده ورکوی گويا چې وئيلې شوی دی فلم يرضوا الا کفورا: (فارسی) پس قبول نه کرد بيشتر مردمان مگر ناسپاسی را.

**توله: عطف على قالوا:** يعنى په مستثنى باندې عطف نه دې، چې د هغې د وجې نه د معنې فساد لازم شى.

**[ ایاتونه: ۹۴ ـ ۱۰۰ ]**

(وما منع الناس أن يؤمنوا إذ جاءهم الهدى إلا أن قالوا) أي قولهم منكرين (أبعث الله بشرا رسولا) ولم يبعث ملكا (قل) لهم (لو كان في الأرض) بدل البشر (ملائكة يمشون مطمئنين لنزلنا عليهم من السماء ملكا رسولا) إذ لا يرسل إلى قوم رسول إلا من جنسهم ليمكنهم مخاطبته والفهم عنه (قل كفى بالله شهيدا بيني وبينكم) على صدقي (إنه كان بعباده خبيرا بصيرا) عالما ببواطنهم وظواهرهم (ومن يهد الله فهو المهتد ومن يضلل فلن تجد لهم أولياء) يهدونهم (من دونه ونحشرهم يوم القيامة) ماشين (على وجوههم عميا وبكما وصما مأواهم جهنم كلما خبت) سكن لهبها (زدناهم سعيرا) تلهبا واشتعالا (ذلك جزاؤهم بأنهم كفروا بآياتنا وقالوا) منكرين للبعث (أإذا كنا عظاما ورفاتا أإنا لمبعوثون خلقا جديدا أولم يروا) يعلموا (أن الله الذي خلق السماوات والأرض) مع عظمهما (قادر على أن يخلق مثلهم) أي الأناسي في الصغر (وجعل لهم أجلا) للموت والبعث (لا ريب فيه فأبى الظالمون إلا كفورا) جحودا له (قل) لهم (لو أنتم تملكون خزائن رحمة ربي) من الرزق والمطر (إذا لأمسكتم) لبخلتم (خشية الإنفاق) خوف نفادها بالإنفاق فتفتقروا (وكان الإنسان قتورا) بخيلا

**ترجمه:** خلقو لره د هدايت د رارسيدو نه پس د ايمان نه منع کونکې د منکرينو دوی ته صرف دا وينا وه چې آيا الله انسان رسول راوليږلو او فرښته ئې راونه ليږله، تاسو ورته اووايئ چې که په زمکې باندې فرښتې گرځيدې راگرځيدې او اوسيدې نو مونږ بهٔ هم دوی ته اسمانی فرښته د رسول په شکل کښې راليږلې وه، ځکه چې قوم ته د هغوی د جنس نه رسول ليږلې کيږی، چې د هغه خبرو او ښودنې باندې پوهيږی، تاسو ورته اووايئ چې ځما او ستاسو په مينځ کښې ځما په رشتوالی باندې د الله گواهی کافی ده، هغه د خپلو بندگانو د حالاتو نه ښه خبردار دې، او ډير

ځه لیدونکې دې، یعنی د هغوی دپټو او ښکاره حالاتو نه خبردار دې، او الله چې د چا رهنمائی اوکړی، هغه هدایت موندونکې دې، او څوک چې د نیغې لارې نه واړوی نو ناممکن ده چې ته د هغه مددګار اوموميې، چې د هغه رهنمائی اوکړی، داسې خلقو لره به مونږ د قیامت په ورځ پر مخې رابنکلو سره جمع کړو، په داسې حال چې دوی به ړانده وی او کانړه به وی، ددوی ځائې به جهنم وی، او چې کله هغه مړ کیږی نو مونږ به هغه نور هم تیزوؤ، هغې باندې به نورې هم شعلې لګی، اور په لمبه به وی دا ددوی ددې خبرې سزا ده چې هغوی زمونږ د آیتونو انکار اوکړو، او منکرینو اووئیل چې کله مونږ هډوکی شو، او ریزه ریزه شو نو آیا مونږ په د نوی سر نه ژوندی کیږو، آیا دوی په دې خبره کښې غور نه دې کړې، چې بې شکه هغه الله چا چې زمکه او اسمانو لره د دوی د عظمت باوجود پیدا کړل، هغه په دې باندې قادر دې چې ددوی په شان واړه انسانان پیدا کړی، هم هغه ددوی د پاره د مرګ او د واپس ژوندی کیدو یو وخت مقرر کړې دې، چې په هغې کښې هیڅ شک نشته، خو ظالمان د انکار نه بغیر نه پاتې کیږی، تاسو دوی ته اووایئ چې که چرې تاسو ځما د رب د رحمت رزق او باران د خزانو مالکان وئی نو تاسو د خرچ کیدو په ویره کښې کنجوسی کوله، یعنی خرچ کولو سره د ختمیدو د ویرې نه، چې تاسو به بیا محتاجه شئ، او انسان خو دې تنګ زړه.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** أي قولهم: په دې کښې اشاره ده چې أن مصدریه دې، یعنی دوی ته په قرآن او په تاسو باندې ایمان راوړلو کښې هیڅ شک نشته، سوا د منکرینِ بعث نه، کوم چې مومنانو ته وائی چې ایا الله ته د رسول لیږلو د پاره صرف انسان پاتې وو؟

**قوله:** مطمئنین: اسم فاعل جمع مذکر منصوب، وطن جوړولو والا، قیام کولو والا.

**قوله:** لوأنتم:

**سوال:** لو شرطیه همیشه په فعل باندې داخلیږی، خو دلته په اسم باندې داخل دې؟

**جواب:** د أنتم نه مخکښې فعل محذوف دې، او مابعد فعل ددې تفسیر کوی، تقدیری عبارت داسې دې، لو تملکون انتم تملکون خزائن رحمة ربی أنتم به تملکون کښې د ضمیرِ فاعل تاکید دې، دا د ما أضمر عامله د قبیل نه دې.

**[ایاتونه: ۱۰۱ ـ ۱۱۱]**

(وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَىٰ تِسْعَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ) وَهِيَ الْيَد وَالْعَصَا وَالطُّوفَان وَالْجَرَاد وَالْقُمَّل وَالضَّفَادِع وَالدَّم أَوْ الطَّمْس وَنَقْص الثَّمَرَات (فَاسْأَلْ) يَا مُحَمَّد (بَنِي إِسْرَائِيل) عَنْهُ سُؤَال تَقْرِير لِلْمُشْرِكِينَ عَلَى صِدْقك أَوْ فَقُلْنَا لَهُ اسْأَلْ وَفِي قِرَاءَة بِلَفْظِ الْمَاضِي (إِذْ جَاءَهُمْ فَقَالَ لَهُ فِرْعَوْنُ إِنِّي لَأَظُنُّكَ يَا مُوسَىٰ مَسْحُورًا) مَخْدُوعًا مَغْلُوبًا عَلَى عَقْلك (قَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا أَنْزَلَ هَٰؤُلَاءِ) الْآيَات (إِلَّا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ بَصَائِرَ) عِبَرًا وَلَكِنَّك تُعَانِد

وَفِي قِرَاءَةٍ بِضَمِّ التَّاءِ {وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَا فِرْعَوْنُ مَثْبُورًا} هَالِكًا أَوْ مَصْرُوفًا عَنِ الْخَيْرِ {فَأَرَادَ} فِرْعَوْنُ {أَنْ يَسْتَفِزَّهُمْ} يُخْرِجَ مُوسَى وَقَوْمَهُ {مِنَ الْأَرْضِ} أَرْضِ مِصْرَ {فَأَغْرَقْنَاهُ وَمَنْ مَعَهُ جَمِيعًا} {وَقُلْنَا مِنْ بَعْدِهِ لِبَنِي إِسْرَائِيلَ اسْكُنُوا الْأَرْضَ فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ} أَيِ السَّاعَةِ {جِئْنَا بِكُمْ لَفِيفًا} جَمِيعًا أَنْتُمْ وَهُمْ {وَبِالْحَقِّ أَنْزَلْنَاهُ} أَيِ الْقُرْآنَ {وَبِالْحَقِّ} الْمُشْتَمِلِ عَلَيْهِ {نَزَلَ} كَمَا أُنْزِلَ لَمْ يَعْتَرِهِ تَبْدِيلٌ {وَمَا أَرْسَلْنَاكَ} يَا مُحَمَّدُ {إِلَّا مُبَشِّرًا} مَنْ آمَنَ بِالْجَنَّةِ {وَنَذِيرًا} مَنْ كَفَرَ بِالنَّارِ {وَقُرْآنًا} مَنْصُوبٌ بِفِعْلٍ يُفَسِّرُهُ {فَرَقْنَاهُ} نَزَّلْنَاهُ مُفَرَّقًا فِي عِشْرِينَ سَنَةً أَوْ وَثَلَاثٍ {لِتَقْرَأَهُ عَلَى النَّاسِ عَلَى مُكْثٍ} مَهَلٍ وَتُؤَدَةٍ لِيَفْهَمُوهُ {وَنَزَّلْنَاهُ تَنْزِيلًا} شَيْئًا بَعْدَ شَيْءٍ عَلَى حَسَبِ الْمَصَالِحِ {قُلْ} لِكُفَّارِ مَكَّةَ {آمِنُوا بِهِ أَوْ لَا تُؤْمِنُوا} تَهْدِيدٌ لَهُمْ {إِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهِ} قَبْلَ نُزُولِهِ وَهُمْ مُؤْمِنُوا أَهْلِ الْكِتَابِ {إِذَا يُتْلَى عَلَيْهِمْ يَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ سُجَّدًا} {وَيَقُولُونَ سُبْحَانَ رَبِّنَا} تَنْزِيهًا لَهُ عَنْ خُلْفِ الْوَعْدِ {إِنْ} مُخَفَّفَةٌ {كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا} بِنُزُولِهِ وَبَعْثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {لَمَفْعُولًا} {وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ} عَطْفٌ بِزِيَادَةِ صِفَةٍ {وَيَزِيدُهُمْ} الْقُرْآنُ {خُشُوعًا} تَوَاضُعًا لِلّٰهِ وَكَانَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَا اللهُ يَا رَحْمٰنُ فَقَالُوا يَنْهَانَا أَنْ نَعْبُدَ إِلٰهَيْنِ وَهُوَ يَدْعُو إِلٰهًا آخَرَ مَعَهُ فَنَزَلَ {قُلْ} لَهُمْ {ادْعُوا اللَّهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ} أَيْ سَمُّوهُ بِأَيِّهِمَا أَوْ نَادُوهُ بِأَنْ تَقُولُوا يَا اللهُ يَا رَحْمٰنُ {أَيًّا} شَرْطِيَّةٌ {مَا} زَائِدَةٌ أَيْ أَيَّ هٰذَيْنِ {تَدْعُوا} فَهُوَ حَسَنٌ دَلَّ عَلَى هٰذَا {فَلَهُ} أَيْ لِمُسَمَّاهُمَا {الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَى} وَهٰذَانِ مِنْهَا فَإِنَّهَا كَمَا فِي الْحَدِيثِ اللّٰهُ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ الْغَفَّارُ الْقَهَّارُ الْوَهَّابُ الرَّزَّاقُ الْفَتَّاحُ الْعَلِيمُ الْقَابِضُ الْبَاسِطُ الْخَافِضُ الرَّافِعُ الْمُعِزُّ الْمُذِلُّ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ الْحَكَمُ الْعَدْلُ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ الْحَلِيمُ الْعَظِيمُ الْغَفُورُ الشَّكُورُ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ الْحَفِيظُ الْمُقِيتُ الْحَسِيبُ الْجَلِيلُ الْكَرِيمُ الرَّقِيبُ الْمُجِيبُ الْوَاسِعُ الْحَكِيمُ الْوَدُودُ الْمَجِيدُ الْبَاعِثُ الشَّهِيدُ الْحَقُّ الْوَكِيلُ الْقَوِيُّ الْمَتِينُ الْوَلِيُّ الْحَمِيدُ الْمُحْصِي الْمُبْدِئُ الْمُعِيدُ الْمُحْيِي الْمُمِيتُ الْحَيُّ الْقَيُّومُ الْوَاجِدُ الْمَاجِدُ الْوَاحِدُ الْأَحَدُ الصَّمَدُ الْقَادِرُ الْمُقْتَدِرُ الْمُقَدِّمُ الْمُؤَخِّرُ الْأَوَّلُ الْآخِرُ الظَّاهِرُ الْبَاطِنُ الْوَالِي الْمُتَعَالِي الْبَرُّ التَّوَّابُ الْمُنْتَقِمُ الْعَفُوُّ الرَّؤُوفُ مَالِكُ الْمُلْكِ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ الْمُقْسِطُ الْجَامِعُ الْغَنِيُّ الْمُغْنِي الْمَانِعُ الضَّارُّ النَّافِعُ النُّورُ الْهَادِي الْبَدِيعُ الْبَاقِي الْوَارِثُ الرَّشِيدُ الصَّبُورُ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ قَالَ تَعَالَى {وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ} بِقِرَاءَتِكَ بِهَا فَيَسْمَعَكَ الْمُشْرِكُونَ فَيَسُبُّوكَ وَيَسُبُّوا الْقُرْآنَ وَمَنْ أَنْزَلَهُ {وَلَا تُخَافِتْ} تُسِرَّ {بِهَا} لِيَنْتَفِعَ أَصْحَابُكَ {وَابْتَغِ} اقْصِدْ {بَيْنَ ذٰلِكَ} الْجَهْرِ وَالْمُخَافَتَةِ {سَبِيلًا} طَرِيقًا وَسَطًا {وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُنْ لَهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ} فِي الْأُلُوهِيَّةِ {وَلَمْ يَكُنْ لَهُ وَلِيٌّ} يَنْصُرُهُ {مِنْ} أَجْلِ {الذُّلِّ} أَيْ لَمْ يَذِلَّ فَيَحْتَاجَ إِلَى نَاصِرٍ {وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا} عَظِّمْهُ عَظَمَةً تَامَّةً عَنِ اتِّخَاذِ الْوَلَدِ الشَّرِيكِ وَالذُّلِّ وَكُلِّ مَا لَا يَلِيقُ بِهِ وَتَرْتِيبُ الْحَمْدِ عَلَى ذٰلِكَ لِلدَّلَالَةِ عَلَى أَنَّهُ الْمُسْتَحِقُّ لِجَمِيعِ الْمَحَامِدِ لِكَمَالِ ذَاتِهِ وَتَفَرُّدِهِ فِي صِفَاتِهِ وَرَوَى الْإِمَامُ أَحْمَدُ فِي مُسْنَدِهِ عَنْ مُعَاذٍ الْجُهَنِيِّ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ آيَةُ الْعِزِّ {الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُنْ لَهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ} إِلَى آخِرِ السُّورَةِ وَاللّٰهُ تَعَالَى أَعْلَمُ قَالَ مُؤَلِّفُهُ هٰذَا آخِرُ مَا كَمَّلْتُ بِهِ تَفْسِيرَ الْقُرْآنِ الْكَرِيمِ الَّذِي أَلَّفَهُ الشَّيْخُ الْإِمَامُ الْعَالِمُ الْمُحَقِّقُ جَلَالُ الدِّينِ الْمَحَلِّيُّ

الشَّافِعِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَقَدْ أَفْرَغْتُ جهدي وبذلت فيه فكري في نفائس اراها ان شاء الله تجدي والفته في مدة قدر ميعاد الكليم وجعلته وسيلة للفوز بجنات النعيم وهو في الحقيقة مستفاد من الكتاب المكمل وَعَلَيْهِ فِي الآيِ الْمُتَشَابِهَةِ الإِعْتِمَادُ وَالْمُعَوَّلُ فرحم الله امرءا نَظَرَ بِعَيْنِ الإِنْصَافِ إِلَيْهِ وَوَقَفَ فِيهِ عَلَى خَطَأٍ فَأَطْلَعَنِي عَلَيْهِ وَقَدْ قُلْتُ:

حَمِدْتُ اللّٰهَ رَبِّي إِذْ هَدَانِي :: لِمَا أَبْدَيْتُ مَعَ عَجْزِي وَضَعْفِي

فَمَنْ لِي بِالْخَطَإِ فَأَرُدَّ عَنْهُ :: وَ مَنْ لِي بِالْقَبُولِ وَ لَوْ بِحَرْفٍ

هَذَا وَلَمْ يَكُنْ قَطُّ فِي خَلَدِي أَنْ أَتَعَرَّضَ لِذَلِكَ لِعِلْمِي بِالْعَجْزِ عَنِ الْخَوْضِ فِي هَذِهِ الْمَسَالِكِ وَعَسَى اللّٰهُ أَنْ يَنْفَعَ بِهِ نَفْعًا جَمًّا وَيَفْتَحَ بِهِ قُلُوبًا غُلْفًا وَأَعْيُنًا عُمْيًا وَآذَانًا صُمًّا وَكَأَنِّي بِمَنِ اعْتَادَ الْمُطَوَّلَاتِ وَقَدْ أَضْرَبَ عَنْ هَذِهِ التَّكْمِلَةِ وَأَصْلِهَا حَسْمًا وَعَدَلَ إِلَى صَرِيحِ الْعِنَادِ وَلَمْ يُوَجِّهْ إِلَى دَقَائِقِهَا فَهْمًا ﴿وَمَنْ كَانَ فِي هَٰذِهِ أَعْمَىٰ فَهُوَ فِي الْآخِرَةِ أَعْمَىٰ﴾ رَزَقَنَا اللّٰهُ بِهِ هِدَايَةً إِلَى سَبِيلِ الْحَقِّ وَتَوْفِيقًا وَاطِّلَاعًا عَلَى دَقَائِقِ كَلِمَاتِهِ وَتَحْقِيقًا وَجَعَلَنَا بِهِ ﴿مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا﴾ والحمد لله وحده وصلى الله على سيدنا محمد وآله وصحبه وسلم تسليمًا كثيرًا وحسبنا الله ونعم الوكيل قال مؤلفه عامله الله بلطفه فرغت مِنْ تَأْلِيفِهِ يَوْمَ الأَحَدِ عَاشِرِ شَوَّالٍ سَنَةَ سَبْعِينَ وَثَمَانِمِائَةٍ وَكَانَ الإِبْتِدَاءُ فِي يَوْمِ الأَرْبِعَاءِ مُسْتَهَلَّ رَمَضَانَ مِنَ السَّنَةِ الْمَذْكُورَةِ وَفَرَغَ مِنْ تَبْيِيضِهِ يَوْمَ الأَرْبِعَاءِ سَادِسِ صَفَرٍ سَنَةَ إِحْدَى وَسَبْعِينَ وَثَمَانِمِائَةٍ

ترجمه: او موسی علیه السلام ته مونږ نهه معجزې بالکل واضحه ورکړې وې، او هغه دادي ①ید بیضا ②عصا ③طوفان ④ملخان ⑤سپږې ⑥وینه ⑦د اموال هلاکت ⑧قحط او د میوو کمي، اې محمد ﷺ ته خپله د موسی (ع) په باره کښې د بنی اسرائیل نه تپوس اوکړه، دا سوال ددوی په صداقت باندې د مشرکینو نه د اقرار په توګه دې، یا مونږ موسی علیه السلام ته اووئیل چې د فرعون نه د بنی اسرائیلو د خلاصی سوال اوکړه، او په یو قراءت کښې سئل د ماضي صیغې سره دې، یعنی سوال ئې اوکړو چې کله هغه دوی ته راغلو نو فرعون موسی علیه السلام ته اووئیل څه تا لره جادو کړې شوې یعنی مغلوب العقل، ګنړم، موسی علیه السلام اوفرمائیل اې فرعون ته پوهه یې، چې د بصیرت نه ډکې نښنې د اسمانونو او د زمکې مالک نازل کړې دی، خو ته په دشمننی او عناد باندې راغلې او په یو قراءت کښې د تاء د ضمې سره دې، اې فرعون څه خه پوهیږم چې ته به یقینا هلاک کړې شې، یا به د هر خیر نه محرومه کړې شې، اخر فرعون اراده اوکړه چې موسیٰ او د هغه قوم د مصر د ملک نه بهر کړی، نو مونږ هغه او د هغه ټول ملګری غرق کړل، ددې نه پس مونږ بنی اسرائیلو ته اووئیل چې تاسو هم په دې زمکه کښې اوسیږئ، بیا چې کله آخرت یعنی د قیامت وعده راشی، نو مونږ به تاسو او دا ټول حاضر کړو، او مونږ قرآن لره په رشتیا سره نازل کړې دې، او په حقه سره هغه نازل شو، څنګه چې رالیږلې شوې وو په حق باندې مشتمل کیدو سره، په دې کښې څه قسم تبدیلی نه ده شوې او مونږ تا اې محمد ﷺ د ایمان راوړونکو د پاره د جنت خوشخبری اورولو والا او کافرانو

لره د اور نه ویرولو د پاره رالیږلی یو، او مونږ قرآن لږ لږ ۲۰ یا ۲۳ کالو کښې نازل کړو، چې ته خلقو ته لږ لږ واوروې، یعنی په قلاره او وقفې سره، چې هغوی پرې پوهه شی، او مونږ دا لږ لږ نازل کړو یعنی پرله پسې، د مصلحت مطابق، تاسو کافرانو ته اووایئ چې که تاسو دا منئ یا نه منئ دا ددوی د پاره تهدید دی، بې شکه هغه خلق چاته چې د قرآن دنازلیدو نه مخکښې علم ورکړې شوې وو او په اهل کتاب کښې هغه خلق دی چا چې ایمان راوړې وو، چې کله دوی ته قرآن لوستلې شی نو هغوی پر مخې په سجده کښې پریوزی، او وائی چې زمونږ رب پاک دې، یعنی د وعده خلافی نه د هغه د پاره پاکی ده، او زمونږ د رب دا د قرآن نازلولو او دنبی د بعثت وعده بې شکه پورا کیدو والا ده، او هغوی په ژړا سره پر مخ په سجده پریوزی د زیادت د صفت سره په ماقبل کښې یعنی په یخرون باندې د صفت د زیاتیدو سره عطف دې، او قرآن الله د پاره ددوی عاجزی او خشوع و خضوع زیاتوی، او د الله رسول به یا الله یا رحمن وئیلو، نو مشرکانو اووئیل چې مونږ خو ددوو معبودانو نه منع کوې او په خپله الله سره بل معبود رابلی، نو دا راروان آیت نازل شو تاسو دوی ته اووایئ چې الله وئیلو سره اواز کوئی یا رحمن وئیلو سره، یعنی د هغې په دې دواړو کښې چې کوم نوم هم غواړئی نوم کیږدئ، او هغه ته یا الله یا یا رحمن وئیلو سره اواز کوئی، په دې دواړو نومونو کښې چې کوم سره هم اواز کوئی ټول ښه نومونه د هغه دی، ایا شرطیه ده، (ما) زائده ده، دا دواړه نومونه هم د هغې نه دی.

الله تعالی اوفرمائیل او نه ته خپل مونځ په ډیر اوچت اواز سره لوله، یعنی په مونځ کښې خپل قراءت، ځکه چې ستا قراءت به مشرکین واوری نو هغوی به تاپسې او قرآن پسې بدې ردې وائی، او هغه ذات ته هم چا چې دا نازل کړې دې، او نه په پټ اواز سره وایه، چې ستا ملګری فائده واخلی، د اوچت او پټ دواړو په مینځ کښې لار اختیار کړه، او اووایه چې ټول تعریفونه الله لره دی، چې نه اولاد لری او نه د هغه په عبادت کښې څوک شریک شته، او نه هغه کمزورې دې، چې د هغې د وجه نه هغه ته د مددګار ضرورت وی، یعنی هغه کمزورې نه دې، چې هغه ته د مددګار حاجت وی، او ته د هغه پوره پوره لوئ بیانوه، یعنی ته د هغه د اولاد نیول، د شریک او د کمزورئ نه او د هر هغه څیز نه کوم چې د هغه د شان سره مناسب نه وی، د هغه لوئي والې بیان کړه، او په صفات عدمیه باندې د حمد مرتب کول، ددې دلالت د وجې دې چې هغه د ټولو تعریفونو د خپل کمال ذات او په صفاتو کښې د منفرد کیدو د وجې مستحق دې.

امام احمد په خپل مسند کښې د معاذ جهنی ﷛ په سند سره د نبی کریم ﷺ نه روایت کړې دې چه هغوی ﷺ اوفرمائیل چه آیت دعزت د: الحمدلله الذی لم یتخذ ولدًا، نه تر آخر د سورت پورې دې. (والله أعلم).

ددې مؤلف اوفرمائيل: دا آخري جزء دې چه په دې باندې د قرآن عظيم هغه تفسير مكمل شو كوم چه امام علامه محقق جلال الدين المحلي شافعي رحمه الله تاليف كړې دې، او ما په دې كښې خپل پوره طاقت لګولې دې او ما ددې په نکتې راويستلو کښې خپل پوره ذهني قوت خرچ کړې دې، اې مخاطبه! زه ګنړم چه ته به ددې نه فائده واخلې، انشاء الله، او ما دا دموسى كليم الله (دقيام) مقدار يعني په ۴۰ ورځوکښې تاليف کړو، اوما دا په جنت نعيم كښې دکاميابۍ ذريعه جوړه کړه، اودا حصه (اول نصف) په حقيقت كښې دکتاب دهغه حصې (دويم نصف) نه مستفاد دې کوم چه مکمل شوې دې، اود متشابه آيتونو په باره كښې ما هم په دغه (دويم نصف) باندې اعتماد او بهروسه کړې ده، الله تعالى دې په هغه سړي باندې رحم اوکړي څوک چه دې ته دانصاف په نظر سره اوګوري اوکه هغه په دې کښې په څه غلطۍ باندې پوهه شي نوما دې دهغې نه خبرکړي، اوما دا شعر اووئيلو (په بعضو نسخوکښې لفظ د شعر نشته).

ترجمه: ما دخپل رب حمد بيان کړو څکه چه هغه ماته دهغه څيز توفيق راکړو چه هغه ما دخپلې عاجزۍ او کمزورۍ باوجود شروع کړو، څوک چه زما غلطي ښکاره کړي نو زه به رجوع کوم (يعني اصلاح به کوم) اوڅوک چه ماته د قبوليت (عندالله) خوشخبري راکوي اګرچه يوحرف ولې نه وي (زه به دهغه شکريه اداکوم).

(هذا) أي خذ هذا، اودا خبره زما به زړه کښې بالکل نه وه چه زه به دا کار شروع کوم، په دې لارو کښې دغور او فکر کولو نه د عجز نه د خبرتيا په وجه، د الله تعالى د ذات نه اميد دې چه هغه به ددې په ذريعه ډيره نفع راکوي، اوهغه به ددې په ذريعه بند زړونه اوړندې سترګې او کاڼه غوږونه کهلاؤ کړي، ګويا چه زه دهغه سړي پشان يم چه هغه ته د مطولات (لويو لويو کتابونو د مطالعې) عادت وي او حال دادې چه دهغې تکمله اودهغې اصل (يعني مکمّل اومکمَّل) نه ئې مخ اړولې وي، او صريح عناد طرف ته ئې مخ اړولې وي، اود پوهيدو دپاره دې دواړو طرف ته متوجه شوې نه وي، نوڅوک چه ددې ړوند پاتې شو نوهغه به د نورو نه هم ړوند پاتې کيږي، الله مونږ ته ددې (قرآن) په ذريعه دحق لارې توفيق راکړو او ددې (قرآن) د کلماتو په باريکتيا باندې ئې د پوهيدو اود تحقيق کولو توفيق راکړو، (اود الله نه دعا ده) چه مونږ ددې په وجه دهغه خلقو سره کړي چا باندې چه الله انعام کړې دې او هغه انبياء او صديقين او شهداء او صالحين دي، او دا حضرات د رفيق کيدو په اعتبار سره بهترين رفيقان (ملګري) دي. او ټول تعريفونه د الله وحده لاشريك له دپاره دي، او زمونږ په سردار محمد ﷺ باندې دې د الله د طرفه بې شميره درود اوسلام وي، او الله زمونږ دپاره کافي بهترين کارساز دې، مؤلف رحمه الله ، الله دې ددوي سره د لطف اوکرم معامله اوکړي، اووئيل: زه ددې دتاليف نه د شوال په

میاشت ۸۷۰ هـ د اتوار په ورځ فارغ شوم، او(د تالیف) ابتدا مې د رمضان په شروع کښې د چهارشنبې په ورځ په هم دې کال کښې کړې وو، اوددې د تبییض (نظرثانی) نه فراغت په ۶ صفر د چهارشنبې په ورځ ۸۷۱ هـ کښې اوشو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: تقریر:** دا اضافه ددې سوال جواب دې، چې حضور ﷺ ته خو معلومه وه نو بیا د سوال کولو څه ضرورت وو؟

**جواب:** دا سوال د استفهام نه دې، بلکه سوال د تقریر دې.

**قوله: قبل نزوله:** نزول مضاف محذوف ګنړلو سره مفسر علام اشاره اوکړه چې د قبل القرآن مطلب دې قبل نزول القرآن او دا ممکن نه ده ځکه چې قرآن قدیم دې، لهذا ددې نه وړاندې د علم ورکولو څه مطلب نشته.

**قوله: عطف بزیادة:** دا ددې سوال جواب دې چې د یخرون للاذقان عطف په مخکښینی یخرون للاذقان باندې دې، چې د هغې د وجې نه معطوف او معطوف الیه متحد دی، حالانکه په دې دواړو کښې مغائرت پکاردې؟

**جواب:** په معطوف کښې د یبکون صفت اضافه ده، چې د هغې د وجې نه اتحاد باقی پاتې نه شو.

**قوله: اي شئ:** په دې کښې اشاره ده چې په ایا کښې تنوین د مضاف الیه په عوض کښې دې نه چې د ندا په معنی کښې.

**قوله: فهواحسن:** په دې کښې اشاره ده چې ایاما د شرط جزاء محذوف ده، او په حذف باندې دلالت کونکې فله الاسماء الحسنی دې جزاء حذف کولو سره دال برجزاء ددې قائم مقام کړې شو.

**قوله: لمسماهما:** په دې کښې اشاره ده چې د فله ضمیر مسمی محذوف طرف ته راجع ده، نه چې اسم طرف ته ګنی د اسم د پاره به اسم لازم شي.

**قوله: ترتیب الحمد علی ذلك للدلالة علی أنه المستحق...الخ:** دا عبارت د یو سوال مقدر جواب دې:

**سوال:** دادې چه حمد وائی دچا د ښه اختیاری کار تعریف ته (الحمد هو الثناء علی الجمیل الاختیاری) مذکوره آیت: قل الحمد لله الذی لم یتخذ ولدًا ولم یکن له شریك فی الملك ولم یکن له ولی من الذل» په دې آیت کښې درې اوصاف مذکور دی او درې واړه سلبی دی ایجابی نه دی، حالانکه حمد په وصف ایجابی باندې کیږی په سلبی باندې نه کیږی، ځکه چه په سلبی باندې تنزیهه وی.

جواب: په لکمال ذاته سره ددې اعتراض جواب دې چه مذکوره درې واړه سلبی صفات دهغې امکان نفی کوی کوم چه داحتیاج مقتضی وی اوپه واجب الوجود لذاته باندې دلالت کوی، یعنی ټول دهغه محتاج دی هغه دچا محتاج نه دې، لهذا هم هغه دحمد مستحق دې (جمل).

د جواب حاصل دادې چه څرنګه د صفاتو په وجه مستحق دحمد وی دغسې د ذات په وجه سره هم مستحق دحمد وی، اود تمثیل په طریقه جواب دادې چه مذکوره درې واړه سلبی صفاتو کښې نعمت دادې چه دبادشاه کله ښځه اوبچې وی نو په غلامانو باندې دښځو او د بچو نه پاتې شوې خرچ کوی اوکله چه دهغه ښځه اوبچی نه وی نو بادشاه ټول احسانات او انعامات په غلامانو باندې خرچ کوی دغسې د ولد نفی غلامانو باندې د انعاماتو د زیادت مقتضی وی، اوپه نفی د شریک کښې نعمت دادې چه د شریک کیدو په نسبت د شریک نه کیدو په صورت کښې بادشاه په انعام ورکولو کښې د مزاحم (مقابل) نه کیدو په وجه زیات قادر وی او د نفی د نصیر په صورت کښې نعمت دادې چه د نصیر نفی په قوت او استغناء باندې دلالت کوی او دا دواړه په زیات انعام باندې په قادر کیدو باندې دلالت کوی، په دې طریقې سره مذکوره درې واړه سلبی صفات ایجابی جوړېږی لهذا په دې باندې حمد بیانول صحیح دی.

قوله: آیت العز: یعنی الحمدلله الذی لم یتخذ ولدًا (الآیة) یعنی رسول الله ﷺ دې آیت ته د عزت آیت فرمائیلی دی چه څوک دا آیت پابندئ سره روزانه وائی الله تعالی به هغه ته عزت او شرافت ورکړی، د وئیلو طریقه ئې داده چه اول به توکلت علی الحیّ الذی لایموت، اووائی ددې نه پس دې روزانه ۳۵۱ ځل روزانه قل الحمدلله الذی لم یتخذ ولدًا ولم یکن له شریك فی الملك ولم یکن له ولی من الذل وکبره تکبیرًا، پابندئ سره وائی. (حاشیه جلالین، صاوی)

قوله: قد افرغت فیه جهدی أی فی ما کملت به: یعنی د فیه ضمیر ماکملت طرف ته راجع دې، دغسې د رزقنا الله پورې ټول ضمیرونه ماکملت طرف ته راجع دی.

قوله: فی نفائس: دا د فیه نه بدل دې یا بیا په فی نفائس کښې فی په معنی د مع دې، أی مع نفائس، اود نفائس نه دقائق او حقائق او نکات نفیسه خوبنې شوی مراد دی.

قوله: اراها: په همزه باندې فتحه او ضمه دواړه جائز دی، بمعنی أعلم وأظن، تهدی د أری مفعول ثانی دې، او ها مفعول اول دې، أی أراها تهدی ان شاء الله جدوها، یعنی اې مخاطب زه پوهیږم چه دا نکات به تاته نفع در رسوی، که الله اوغواړی چه دا تاته نفع در اورسوی. تهدی په معنی د تنفع.

**قوله:** وألقته فی مدّة قدر میعاد الکلیم: یعنی موسی علیه السلام چه څومره ورځې په کوه طور باندې مقیم پاتې شوې وو او هغه موده څلوېښت ورځې دی، د تالیف ابتداء د یکم رمضان نه اوشوه او په لسم د شوال باندې تکمیل اوشو، او ددې مودې اظهار مفسر علام سیوطی د تحدیث نعمت په طور باندې اوکړو، ځکه چه عام طور باندې په دومره لږه موده کښې دومره لوئې کار خلاف عادت دې، حالانکه دغه وخت د علامه سیوطی عمر ۲۲ کاله نه هم کم وو. (کما ذکره الکرخی) یعنی هغه حصه کومه چه علامه سیوطی تالیف کړې ده.

**قوله:** وهو مستفاد من الکتاب المکمّل: علامه سیوطی رحمه الله دا د نفس د عاجزئ په طور باندې فرمائیلی دی.

**قوله:** علیه: یعنی د علامه محلی تالیف کړې شوې.

**قوله:** اذهدانی: اذ تعلیلیه ده، أی لأجل هدایته للذی اهدیته واظهرته، او هغه تکمله مذکوره ده.

**قوله:** فمن لی بالخطاء أی من أظهر لی الخطاء: یعنی څوک چه زما غلطی ښکاره کړی زه به دهغې غلطئ نه رجوع کوم یعنی دهغې اصلاح به کوم.

**قوله:** اضرب، صفحا: أی أعرض اعراضا.

**قوله:** من کان فی هذه: فی په معنی د عن دې، أی من کان عن هذه اعمٰی یعنی څوک چه د جلالین د سابقه او لاحقه (د مخکینی او اوسنی) دواړو حصو نه بې خبره او ناپوهه وی هغه به د نورو کتابونو نه هم بې خبره او ناپوهه وی. فهو فی الآخرة أعمٰی، دلته هم فی په معنی د عن دې، اود آخرة نه مراد مطولات دی، مطلب دادې چه څوک ددې مختصر نه ناپوهه او ناخبره پاتې شی هغه به د مطولات نه هم محروم پاتې شی.

**قوله:** رزقنا الله: به ضمیر قرآن طرف ته راجع دې، ددې نه پس نور ضمیرونه هم قرآن طرف ته راجع دی، خو زیاتره مناسب د کلام د سیاق سره مطابق دادی چه دا ضمیر او وروستې نور ضمیرونه لما کمل به یعنی لاحصه حصې طرف ته راجع وی.

**قوله:** فرغت من تألیفه..الخ: علامه سیوطی فرمائی چه زه د نصف اول د تسوید نه په ۱۰ شوال د اتوار په ورځ ۸۷۰ هـ کښې فارغ شوم، اود تالیف ابتداء مې په یکم رمضان ۸۷۰ هـ کښې کړې وه، او ددې تبییض نه فراغت په ۶ صفر د چارشنبې په ورځ ۸۷۱ هـ کښې اوشو.

(تمت جلد الثانی)